


فی

# توضیح الکافیۃ

مصنف
الشیخ العلامہ ابو عبید مولانا عصمت اللہ النورستانی
ابن الحاج الشہید جمعہ خان صاحب



ناشر مکتبۃ الاشاعۃ محلہ جنگی پشاور
0300-5875425 / 0345-9459209

کتاب: المطالب العالية في توضيح الكافية (مبني)

مصنف: الشيخ العلامة ابو عبيد مولانا عصمت الله النورستاني

نظر ثاني: مولانا عبد الحكيم سواتی، مولانا بخت الله صاحب،
مولانا سميع الله خنجر صاحب

زير اهتمام: مولانا نقيب الله حنيف

كمپوز: مكتبة الاشاعت

تعداد: (1100)

خپرونكى: مكتبة الاشاعت (محله جنكي قصه خواني پشاور)

چاپ ځاى: مكتبة الاشاعت

(03459459209)

(03005875425)

فهرست

# المبني

**الحمد لله وكفى وسلام على عباده الذين اصطفى خصوصا على سيد الرسل وخاتم الانبياء وعلى اله واصحابه الاتقياء اما بعد!**

**تقريب: ربط.** هر كله چې فارغ شو مصنف د بيان د معرباتو نه نو شروع ئې وكړه په بيان د مبنياتو كې (٢) يا هر كله چې فارغ شو مصنف د قسم اول د اسم نحوى نه چې اسم معرب وو نو شروع ئې وكړه په بيان د دقسم ثانى د اسم نحوى كې چې اسم مبني دى، او هر كله چې اسم معرب اصل وو په نسبت سره اسم مبني ته نو مقدم ئې كړو معرب په مبني باندې هم په اجمال كې او هم په تفصيل كې

**ترجمه: المبني** اسم مبني په اصطلاح كې **ما** اسم دى، او په تنكير د اسم كې اشاره ده ديته چې دا **ما** موصوفه دى ځكه واقع شوى دى په جانب د خبر كې او قاعده داده چې من او ما واقع شي په جانب د خبر كې نو موصوفيت **دهغې** اولى دى د موصوليت نه ځكه اصل په خبر كې تنكير دى نو دا ما چې موصوفه شى نو عمل په اصل باندې راځي چې كون د خبر دى نكره. **ناسب** دا سې اسم چې مناسب دئ په مناسبت مؤثره سره په منع د اعراب كې په يو د مناسبات سته ؤ سره چې **هغه** ذكر كړى دى جارالله زمخشري په مفصل كې، **مبني الاصل** دهغه شي سره چې اصل دى په بناء كې چې **هغه** درې دى عند الجمهور او څلور دى په نيز د جارالله زمخشري باندې

**تشريح:** بيان د فوائدو د قيردا تو په طريقه دقيل وقال سره:

**سوال:** د دې عبارت ربط او مناسبت د ماقبل سره څه دى او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دى

**جواب:** ربط د ماقبل سره دا دى چې دا مخكې بيان د معرباتو وو، او وس بيان د مبنياتو كوى، يا مخكې بيان د قسم اول د اسم نحوى وو چې هغه معرب وو او اوس بيان د قسم ثانى د اسم نحوى كوى چې هغه مبني دى او عرض او غايه د مصنف د دې عبارت نه تعريف د اسم مبني دى

**سوال:** اسم په دوه قسم دى (١)، معرب او (٢)، مبني او دا دواړه سواسى دى په قسميت كې نو اسم معرب يې ولې مقدم كړو په اسم مبني باندې؟ **جواب:** معرب اصل دى دمبني نه نو ځكه يې مقدم كړى دى هم په جانب د اجمال كې او هم په جانب د تفصيل كې

**سوال:** معرب ولې اصل دى د مبني نه؟ **جواب:** وجه د اصالت د اسم معرب په اسم مبني باندې تيره شوې ده په تعريف د اسم معرب كې فلا نعيدها ثانية

**سوال:** ته وائې چې مبني مطلقاً په اصطلاح كې ماناسب مبني الاصل ته وائي نو دا تعريف جامع نه شو خپلو افرادو لره خارج شو د دې نه فعل ماضى، امر حاضر معلوم، او جمله حروف، دا درې واړه مبني دى او ماناسب مبني الاصل ندى ځكه شى مناسب نوي د خپل ځان سره او په تعريف كې لابدې وى د جامعيت نه كوم تعريف چې جامع نوى خپلو افرادو لره هغه تعريف باطل وي لهذا ستا دا تعريف باطل دى (٢)، دا تعريف د مبني په ما ناسب مبني الاصل سره باطل دى ځكه دا مستلزم دى د دور لره په دې شان سره چې مطلق مبني په تعريف كې محتاج دى مبني اصل ته او مبني اصل په تعريف كې محتاج دى مطلق مبني ته ځكه مبني اصل خاص دى او مطلق مبني عام دى او

معرفت د خاص موقوف وي په معرفت د عام پورې، او کوم تعريف چې مستلزم وي د ورلره هغه باطل وي لهذا ستا دا تعريف باطل دی؟ **جواب:** دا اعتراض به هله وارديدو چې دا تعريف د مطلق مبني وي ليکن دا تعريف د اسم مبني دی ځکه
(۱) المبني کې الف لام عهد خارجي دی نه جنسي او معهود په دې سره اسم مبني دی
(۲) يا المبني صفت دی تقاضا د موصوف کوی نو موصوف ورته را اوباسو الاسم په قرينی د مقام سره چې دا بحث د اسم دی
**سوال:** ته وائې چې المبني کې الف لام عهد خارجي دی نو الف لام عهد خارجي خو قسم دی د الف لام حرفي نه او الف لام د المبني موصولي دی ځکه چې دا داخل شوی دی په اسم مفعول باندې نو ته څنګه ديته الف لام عهد خارجي وائې؟ **جواب:** (۱) دا الف لام حرفي دی نه موصولي ځکه الف لام موصولي هغې ته وائې چې داخليږي په اسم فاعل او اسم مفعول باندې هغه اسم فاعل او اسم مفعول چې دلالت کوی په معنی مصدري باندې په طريقه د تجدد او حدوث سره او دلته دا المبني دلالت په معنی مصدري باندې نه کوي ځکه دا نقل شوی دی د صفتيت نه او علم ګرځيدلی دی د يو نوع د اسم لپاره چې هغه مقابل د معرب دی (۲) او که او منم چې دا الف لام موصولي دی نو لکه څنګه چې الف لام حرفي څلور قسمه راځي (۱) جنسي (۲) استغراقي (۳) عهد خارجي (۴) عهد ذهني الف لام موصولي هم دا څلور قسمه راځي نو دا الف لام موصولي عهد خارجي دی.
**سوال:** ته وائې چې د المبني نه مراد اسم مبني دی نه مطلق مبني او معرفت د خاص موقوف وي په معرفت د عام پورې لهذا مصنف لپاره پکار وو چې اول ئې تعريف د مطلق مبني کړی وی او د هغې نه بعد ئې تعريف د اسم مبني کړی وی؟
**جواب:** دا تعريف داسم مبني په نسبت سره هغه چا ته دی چې هغه ته معلوم وی تعريف د مطلق مبني لهذا ذکر کولو د تعريف د مطلق مبني ته حاجت پاتې نه شو. يا د مطلق مبني تعريف ئې نه دی کړې ځکه چې تعريف د مطلق مبني معلوميږي د تعريف داسم مبني نه
**سوال:** تعريف د اسم مبني مانع نه شو د دخول د غير نه داخل شو پکې فعل مضارع ځکه تعريف د اسم مبني په فعل مضارع باندې صادقيږي په دې شان سره چې دا ما عبارت دی د لفظ يا د شئ نه، نو معنی د دې دا شوه چې اسم مبني په اصطلاح کې ما يو لفظ دی چې مناسب وی د مبني اصل سره او فعل مضارع هم يو لفظ دی چې مناسب دی د يو مبني اصل سره چې فعل ماضی دی په اشتقاق کې؟
**جواب:** دا اعتراض به ستا هله وارديدو چې ما عبارت وی د لفظ يا دشئ نه ليکن ما عبارت دلفظ يا شئ نه نه دی بلکه عبارت دی د اسم نه ځکه (۱) په تعريف د اقسامو کې معتبر وی جنس قريب او جنس قريب د مبني لپاره اسم دی او لفظ او شئ اجناس بعيده دی. (۲) او قاعده دا ده چې مقسم معتبر وی په تعريف د اقسامو کې او اسم مقسم دی د معرب او مبني لپاره ځکه ما عبارت د اسم نه وايو

**سوال**: شارح جامي د كلمه د ما نه تعبير كړي دی په اسم نكره سره دا ولې، په الاسم معرفه سره ئې تعبير ولې ونه كړو؟ **جواب**: جامي صاحب د ما نه تعبير وكړو په اسم نكره سره په دې كې ئې اشاره وكړه دې خبرې ته چې دا ما موصوفه دی خكه واقع شوی دی په جانب د خبر كې او دا قاعده ده
(۱) چې من او ما واقع شي په جانب د مبتدا كې نو موصوليت اولى دى د موصوفيت نه خكه اصل په مبتدا كې تعريف دی چې موصوله واخلو نو عمل په اصل باندې راځي چې تعريف د مبتدا دی
(۲) او دا من او ما چې واقع شي په جانب د خبر كې نو موصوفيت اولى دى د موصوليت نه خكه اصل په خبر كې تنكير دی نو موصوفه چې واخلو عمل په اصل باندې راځي چې تنكير خبر دی.

**سوال**: تقييد د يو د متقابلينو په يو قيد سره واجبه وی تقييد د مقابل اخر لره په ضد د دغه قيد سره، او معرب او مبني متقابلين دی او مصنف تعريف د معرب مقيد كړی دی په عدم مشابهت سره نو پده باندې واجب وو چې ده تعريف د مبني مقيد كړی وی په ضد د عدم مشابهت سره چې مشابهت دی په دې شان سره چې داسې ئې ويلی وی، المبني ما شابه مبني الاصل، يا المبني مايشابه مبني الاصل نو مصنف داسې ولې وويل چې **المبني ماناسب الخ**؟

**جواب**: دا قاعده منم چې تقييد د يو د متقابلينو په يو قيد سره واجبه وي تقييد دمقابل اخر لره په ضد د دغه قيد سره ليكن كوم قيد چې مصنف په تعريف داسم معرب كې ذكر كړی دی لم يشبه، هغه په خپله معنی سره نه دی بلكه هغه په معنی د لم يناسب سره دی هر كله چې لم يشبه په معنی دلم يناسب سره شو نو تعريف داسم معرب مقيد شو په قيد د عدم مناسبت سره نو تعريف د اسم مبني ئې مقيد كړو په ضد دهغه قيد سره چې مناسبت دی.

**سوال**: په تعريف د اسم معرب كې لم يشبه په معنی د لم يناسب سره ولې دی؟

**جواب**: خكه كه لم يشبه په معنی د لم يناسب سره وانه خلو بيا تعريف د اسم معرب نه مانع كيږي د دخول د غير نه بلكه داخليږي پكې اسماء شرط، اسماء استفهام، اسماء افعال وغيره خكه مشابهت ويلی كيږي اشتراك د شيئين ته په صفت خارجي او اسماء استفهام اسماء شرط اسماء افعال شريك ندی دمبني اصل سره په صفت خارجي كې بلكه دا متضمن دی معنی د مبني اصل لره

**سوال**: ته وائې چې اسم مبني په اصطلاح د نحويانو كې اسم دی چې مناسب وی د مبني اصل سره نو زه ستا نه تپوس كوم چې مطلق مناسبت خو په زيد كې هم شته بيا دیته هم مبني ووايه او كه مناسبت كامله وائې نو د هغې بيان نشته نو جهالت راغی په تعريف كې او دا باطل دی؟

**جواب**: مراد د مناسبت نه مناسبت مؤثره دی نه مطلق مناسبت او كه ته وائې چې هغه بيان شوی نه دی نو جواب دا دی چې هغه بيان كړی دی جار الله زمحشري په مفصل كې په بحث د اسم مبني كې چې هغه مناسبات سته دی.

(۱) كون د اسم متضمن معنی د مبني اصل لره لكه اسماء شرط او اسماء استفهام شو.
(۲) كون د اسم مشابه د مبني اصل سره په احتياج كې لكه اسماء اشارات او موصولات شو.

(۳) کون د اسم واقع په موضع د مبني اصل کې لکه نزال
(۴) کون د اسم مشابه د هغه اسم سره چې هغه واقع وی په موضع د مبني اصل کې لکه فساق او فجار
(۵) کون د اسم دی واقع په موضع د هغه اسم کې چې هغه مشابه وی د مبني اصل سره لکه منادی مفرد معرفه (٦) کون د اسم دی مضاف جملی ته بالذات لکه يَوْمُ يَنفَعُ الصَّادِقِينَ صِدْقُهُمْ یا بالواسطه لکه یومئذ او حینئذ

**سوال:** معترض اوّل ترجمه غلطه کوی او بیا اعتراض کوی چې ته وائي چې اسم مبني په اصطلاح د نحاتو کې هغه اسم ته وائي چې مناسب وی د هغه شیٔ سره چې د هغه اصل مبني وی نو بنا په دې تعریف د اسم مبني مانع نه شو د دخول د غیر نه داخل شو پکښې اسم فاعل ځکه اسم فاعل یو اسم دی چې مناسب دی د فعل مضارع سره او د فعل مضارع اصل مبني دی چې هغه فعل ماضی دی؟

**جواب:** دا اعتراض به هله واردیدو چې اضافت د مبني الاصل ته اضافت لامی وی لیکن دا اضافت لامی نه دی بلکه اضافت بیاني دی نو ترجمه د دې دا ده چې اسم مبني هغه اسم ته وائي چې مناسب وی د هغه شیٔ سره چې هغه اصل وی په بنا کې او اسم فاعل مشابه نه دی د هغه شیٔ سره چې هغه اصل وی په بنا کې بلکه دا مشابه دی دفعل مضارع سره او فعل مضارع معرب دی.

**پس زده کړه** دا خبره چې یو مطلق مبني دی، یو مبني اصل دی، او بل اسم مبني دی، په مطلق مبني کې لابدي ده د معرفت د امرینونه (۱) تعریف، (۲) اقسام، او معرفت د حکم ته ضرورت نشته ځکه حکم دهغه شي لپاره وی چې هغه موجود وی په خارج کې او مطلق مبني بنفسه موجود نه دی په خارج کې بلکه دا موجودیږي په ضمن د مبني اصل یا په ضمن د اسم مبني کې نو چې کوم حکم د هغې لپاره وی هغه به د دې حکم وی، نو مطلق مبني د نحویانو په اصطلاح کې ماکان حرکاته وسکناته من غیر عامل ته وائي او دا مطلق مبني په دوه قسم دی (۱) مبني الاصل (۲) اسم مبني، اوس په مبني اصل کې او اسم مبني کې لابدي ده د معرفت د امور ثلاثة ؤ نه (۱) تعریف، (۲) حکم، (۳) اقسام، نو مبني اصل د نحویانو په اصطلاح کې **ما لیس فیه علة الاعراب وموجب الاعراب** ته وائي، او علت او موجب ده اعراب دوه دی (۱) معاني معتورة چې فاعلیت او مفعولیت او مشابهت تامه د اسم معرب سره، او حکم د مبني اصل دا دی چې، **لا یقبل الاعراب اصلا ای لا لفظا ولا تقدیرا ولا محلاً**، ځکه اعراب درې قسمه دی (۱) لفظا (۲) تقدیرا (۳) محلاً، اعراب لفظی او تقدیري راځي په اسم معرب کې او اعراب محلی راځي په اسم مبني کې او مبني اصل بالکل خالی دی او کنګال دی د اعراب نه په دې شان سره چې په دې کې نه اعراب لفظی راځي نه تقدیري راځي او نه محلی راځي.

**سوال:** په زید ضرب کې ضرب خبر واقع شوی دی د مبتدا لپاره او خبر مرفوع وی نو ته څنګه وائي چې په مبني اصل کې اعراب اصلا نه راځي؟

**جواب:** ضرب خبر لپاره د مبتدا مع الضمیر وائي که بدون الضمیر وائي که بدون الضمیر وائي نو دا خبر نه دی واقع شوی لهذا مرفوع نه شو او که مع الضمیر ئي وائي بیا فعل سره د فاعل نه جمله

خبر واقع شوي دي، او جمله کې اعراب محلي راخي، او په مصداقونو د مبني اصل کې خلاف دی
(۱) جمهور وائي چې درې دي (۱) فعل ماضي (۲) جمله حروف (۳) فعل امر حاضر معلوم
(۲) په نزد د جار الله زمخشري باندې څلور دي درې دا مذکور دي او (۴) جمله من حيث انها جملة، او جمهور جملې ته مبني اصل نه وائي ځکه حکم د مبني اصل دا دی چې لا يقبل الاعراب اصلاً او په جمله کې اعراب محلي راخي، او جار الله زمخشري وائي چې جمله من حيث انها جمله مبني اصلي ده او اعراب راخي قطع لحاظ د دې نه
(۳) بعض وائي مصداقونه د مبني اصل څلور دي درې دا مذکور څلورم فعل مضارع مع نوني الضمير والتاكيد.
(۴) بنده په نيز باندې مصداقونه د مبني اصل پنځه دي (۱) فعل ماضي (۲) امر حاضر معلوم
(۳) حروف (۴) جمله من حيث انها جمله (۵) فعل مضارع مع نوني التاكيد والضمير
**سوال:** مبني اصل ديته وائي چې بنا دهغه اصالة او وصفاً وي او د وجې د امر عارض نه نوي راغلى او فعل مضارع مؤکد بانون تاکيد ثقيله کې دا بناء راغلى ده د امر عارض د وجى نه چې هغه اتصال د نون تاکيد دی نو ديته ځکه مبني اصل وائي؟
**جواب:** اصل په اسماء کې اعراب دی ځکه دا محل د معاني معتورو دی په دې کې لابدي ده د اعراب نه چې هغه دلالت وکړي په معانيو معتورو باندې لپاره د دې چې لازم نشي التباس د احدهما د اخر سره او اصل په افعالو کې بناء ده ځکه دا محل د معاني معتورو نه دی او فعل مضارع معرب ګرځيدلی ده د وجې د کمال مشابهت نه د اسم فاعل سره او کله چې ورپورې نون تاکيد او نون دجمع مؤنث متصل شو نو دا فعل مضارع نې د خلاف الاصل نه وويسته، او په خپل اصل باندې نې باقي پاتې کړه ځکه ورته مبني اصل وايو او اسم مبني په اصطلاح د نحاتو کې **ماناسب مبني الاصل او وقع غير مرکب** ته وائي، او حکم د اسم مبني دا دی چې **ان لا يختلف اخره باختلاف العوامل**، او اقسام د اسم مبني شپاړس دي (۱) مضمرات (۲) اسماء اشارات (۳) موصولات (۴) اسماء افعال (۵) مرکبات (۶) کنايات (۷) اصوات (۸) بعض الظروف (۹) اسماء معدوده مفرده (۱۰) اسماء معدوده مضافه (۱۱) اسماء شرط (۱۲) اسماء استفهام (۱۳) من وما الموصوفتان (۱۴) منادی مفرده معرفه (۱۵) اسم دلانکره يلي غير مضاف (۱۶) لاغير ليس غير وحسب.
**او وقع غير مرکب. ربط.** هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د تعريف د قسم اول د اسم مبني نه نو شروع ئې وکړه په بيان د تعريف د قسم ثاني د اسم مبني کې نو وي ويل چې **او وقع غير مرکب.**
**ترجمه:** يا اسم مبني په اصطلاح د نحويانو کې هغه اسم ته وائي چې دا اسم واقع شوي وي غير مضموم سره د غير نه په داسې ترکيب سره چې موجود نه وي ورسره عامل لفظاً يا معنی
**تشريح: سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟
**جواب:** ربط د ماقبل سره دا دی چې ما ناسب مبني الاصل دا تعريف دقسم اول د اسم مبني وو او دا

**او وقع غير مركب** تعريف د قسم ثاني د اسم مبني دی او په دې سره غرض د مصنف هم معلوم شو چې تعريف د قسم ثاني د اسم مبني كوي

**سوال:** دا تعريف د اسم مبني مانع نه دی د دخول د غيرنه داخل شو پكې اسم معرب لكه زيد شو په قام زيد كې ځكه دا واقع شوی دی غير مركب په دی شان سره چې جز دلفظ د دې دلالت نه كوي په جز د معنى موضوع لـه باندې؟ **جواب:** دا اعتراض به هله وارديدو چې دلته مراد د مركب منفيه نه مركب اصطلاحي وی ليكن دلته مراد مركب لغوي دی نه اصطلاحي او مركب په لغت كې مضموم مع الغير ته وائي او زيد په قام زيد كې مركب دی او مضموم دی د غير سره لهذا تعريف د اسم مبني صادق نه شو په ده باندې

**سوال:** په دې ترجمه سره دا تعريف مانع خو شو د دخول د غير نه ليكن جامع نه شو خپلو افرادو لره خارج شو د دې نه اسماء معدوده مضافه لكه غلام زيد غلام عمرو، غلام بكر وغيره ځكه دا مركب دی او مضموم دی د غير سره؟ **جواب:** مراد د عدم تركيب نه دا دی چې مركب نه وی په داسې تركيب سره چې عامل ورسره موجود وی لفظاً يا معنىً نو اسماء معدوده مركبه اگر چې مركب د غير سره خو دی ليكن عامل ورسره موجود ندی لفظاً يا معنىً.

**پس زده كړه** دا خبره چې دا اسم به خالی نه وي يا به مركب مع الغير وی او يا به نه وي كه مركب مع الغير نه وو نو د قبيلې د مبنيات نه به وی لكه اسماء معدوده مفرده شو لكه زيد عمرو، بكر، خالد، وغيره، او كه مركب مع الغير وو نو بيا به خالی نه وي يا به ورسره عامل موجود وی لفظاً او معنأ او يا به نوي كه نه وو نو بيا د قبيلې د مبنيات نه دی لكه اسماء معدوده مضافه شو غلام زيد، غلام عمرو وغيره، او كه عامل ورسره موجود وو لفظاً يا معنىً نو بيا به خالی نه وي يا به مشابه د مبني اصل سره وی او يا به نوي كه مشابه د مبني اصل سره وو نو بيا د قبيلې د مبنيات نه دی لكه هؤلاء شو په قام هؤلاء كې او كه مشابه د مبني اصل سره نه وو نو بيا د قبيلې د معرباتو نه دی لكه زيد شو په قام زيد كې نو اسماء معدوده مفرده او اسماء معدوده مضافه د قبيلې د مبنيات نه دی، د مصنف په نزد باند ځكه د ده په نزد باندې معرب ما له الاعراب بالفعل ته وائي، او په اسماء معدوده مفرده او اسماء معدوده مضافه كې اعراب بالفعل نشته دی، او د جارالله زمخشري په نزد باندې د قبيلې د معرباتو نه دی، ځكه د هغه په نزد باندې معرب ما له صلاحية الاعراب ته وائي او دا هم صالح د اعراب دی.

**سوال:** كلمه د آو راخې د احد الامرين لپاره د دې نه دا معلوميږي چې اسم مبني به يا ما ناسب الاصل وی او يا به **وقع غير مركب** وی يعنی د دې دواړو نه به يو وی نه دواړه نو د دې تعريف د اسم مبني نه هؤلاء خارج شو چې قبل التركيب نې واخلی ځكه دا مناسب د مبني اصل سره هم دی او واقع غير مركب هم دی؟ **جواب:** دا كلمه د آو دلته د مانعة الخلو لپاره ده نه لپاره د انفصال حقيقی او مانعة الجمع يعنی خلوه د اسم مبني ممتنع ده د دې نو عين نه په دې شان سره چې دا اسم مبني

نه یا ماناسب مبني الاصل وی او یا به واقع وی غیر مرکب او د دې دواړو نه خالی کیدی نه شي یعنې داسې اسم مبني په خارج کې وجود نه لري چې نه ماناسب مبني الاصل وی او نه واقع وی غیر مرکب. او که دواړه وو نو بیا به په طریقه اولی سره مبني وی.

**سوال:** کلمه د أو مشترکه ده په مینځ د معانیو ثلاثه ؤ کې چې مانعة الجمع، مانعة الخلوه، او انفصال حقیقي دی او دمشترك نه یوه معنی اراده کولې شي په واسطه د قرینې سره دلته قرینه د تعین څه ده چې او د مانعة الخلو لپاره دی نه د مانعة الجمع او انفصال حقیقي لپاره؟

**جواب:** قرینه د تعین نه دې مقام کې مقابله د اسم مبني ده د اسم معرب سره په دې شان سره چې د اسم معرب په تعریف کې دوه قیدین معتبر دی (۱) ترکیب (۲) عدم مشابهت. او اسم مبني موجودیږي په انتفاء د یو د دې قیدین سره. مثلاً (۱) ترکیب شته لیکن عدم مشابهت نشته بلکه مشابهت دی د مبني الاصل سره نو دا مبني دي لکه هؤلاء شو په جا ءنی هؤلاء کې (۲) یا عدم مشابهت شته لیکن ترکیب نشته بیا هم مبني دی. لکه اسماء معدوده مفرده شو (۳) اوچې ترکیب هم نوی او عدم مشابهت هم نوی نو بیاهم مبنی دی لکه هؤلاء شوقبل الترکیب.

**سوال:** څه وجه ده مصنف لره چې په تعریف د اسم معرب کې ئې قید د ترکیب مقدم کړي وو په قید د عدم مناسبت باندې او په تعریف د اسم مبني کې ئې قید د مناسبت مقدم کړو په عدم ترکیب باندې؟

**جواب:** مصنف لحاظ د وجودی کړي دی په دې شان سره چې په تعریف د اسم معرب کې ترکیب وجودی وو او مناسبت عدمی وو نو ترکیب ئې مقدم کړو په عدم مناسبت باندې او په تعریف د اسم مبني کې مناسبت وجودی دی او ترکیب عدمی دی نو مناسبت ئې مقدم کړو په عدم ترکیب باندې ځکه وجودی اشرف دی د عدمی نه.

**سوال:** دا تعریف د اسم مبني باطل دی ځکه صحیح تعریف هغه وی چې بنا وی په یقین باندې ځکه مقصود په تعریف کې وضاحت د معرف وی او وضاحت د معرف راځي په یقین سره او دا تعریف بنا دی په شك او تردد باندې ځکه مصنف په تعریف کې کلمه د أو ذکر کړې ده او دا راځي لپاره د شك او تردد نو معترض وائي چې مصنف په خپله په دې تعریف د اسم مبني کې شکی او متردد دی نو موږ ته د څه شي وضاحت کوی؟

**جواب:** کلمه د أو هر ځای د شك او تردد لپاره نوي بلکه دا په ډیر معانیو سره راځي او دلته لپاره د تنویع او د تقسیم ده په دې شان سره چې مصنف په دې کلمه د أو سره اشاره وکړه تقسیم د اسم مبني ته چې اسم مبني دوه قسمه دی (۱) یو ماناسب مبنی الاصل دی دیته قسم اول د اسم مبني وائي او دویم ما وقع غیر مرکب دی دیته قسم ثانی د اسم مبني وائي او دا قاعده ده چې کله کلمه د أو راشي په تعریف کې نو هغه لپاره د تنویع او تقسیم وی نه لپاره د شك او تردد

**سوال:** وقع فعل دی ضمیر پکښې مستتر دی چې راجع دی ما ته هغه ورله فاعل دی او غیر مرکب مفعول به دی د وقع لپاره، او وقع فعل لازم دی او فعل لازم مفعول به نه غواړي او عمل د نصب بنا بر مفعول به نشی کولې نو دی وقع په غیر مرکب کې عمل د نصب بنابر مفعول به څنګه کړي دی؟

**جواب:** (۱) دا غیر مرکب منصوب دی بنابر حالیت نه بنابر مفعول به.

(۲) وقع فعل دی د افعال ناقصه غیر مشهورو نه ضمیر پکښې مستتر دی هغه ئې اسم دی او غیر مرکب ئې خبر دی.

(۳) یا غیر مرکب منصوب دی بنابر مفعول به د وقع لپاره ځکه دا وقع لازم نه دی مطلقاً بلکه وقع دوه قسمه دی یو هغه دی چې مشتق دی د وقوعاً نه هغه متعدي دی دویم هغه دی چې مشتق دی د وقعاً نه هغه لازم دی لکه وقف چې مشتق شي د وقوفاً نه نو متعدي دی کما في قول الشاعر:

وقوفاً بها صحبي علي مطيهم    یقولون لا تهلك اسیً وتجملی

او چې مشتق شي د وقفاً نه نو بیا لازم دی او دلته دا وقع مشتق دی د وقوعا نه. نه د وقعا نه لهذا دا متعدي دی نو ځکه ئې عمل د نصب کړي دی بنابر مفعول به په غیر مرکب کې

**والقابه ضم وفتح وکسر و وقف. ربط.** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د تعریف داسم مبني نه نو شروع ئې وکړه په بیان د نومونو د حرکاتو او سکناتو د اخیر د اسم مبني کې لپاره د کمال و ضاحت د اسم مبني نو وی ویل والقابه الخ ترجمه: نومونه د حرکاتو او سکناتو د اخیر داسم مبني ضم، فتح، کسر، او وقف دی عند البصریین په تقدیم د عطف سره په ربط باندې نو حمل د واحد په متعدد رانغلو بلکه حمل د متعدد په متعدد باندې راغلو او اعراب ئې جاري کړی دی په هر واحد باندې د وجې د صلاحیت لفظی نه لپاره د دې چې لازم نشي ترجیح بلا مرجح

**تشریح: سوال:** د دې عبارت د ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟

**جواب:** ربط مخکې سره دا دی چې مخکې مصنف تعریف د اسم مبني وکړو او اوس القاب او نومونه د حرکاتو او سکناتو د اخیر د اسم مبني بیانوی او غرض د دې نه کمال وضاحت د اسم مبني دی.

**سوال:** اعراب او بناء متضادین او متقابلین دی او په اعراب کې ویلی وو چې وانواعه رفع ونصب و جر نو دلته ئې وانواعه ولې ونه ویل او القابه ئې وویل؟ **جواب:** ځکه چې اعراب دلالت کوی په هغه مدلولاتو باندې چې متنوع وو چې یو فاعل دی بل مفعول دی او بل مضاف الیه دی نو انواعه ئې اوی او بناغیر متنوعه ده دلالت په مدلولات متنوعه باندې نه کوي نو القابه ئې وویل

**سوال:** القاب جمع د لقب ده او لقب اسم د شئ ته وائي نو معنی داشوه چې نومونه داسم مبني ضم، فتح، کسر، دی نو دا خو نومونه د اسم مبني ندی، بالفاظ دیګر، القابه مبتدا ده او ضم، فتح، کسر ئې خبر دی او خبر حمل وی په مبتداء باندې او دلته حمل ندی صحیح ځکه لقب د شئ محمول وی په شئ باندې لکه سعید د زید لقب دی نو داسې ویل کیږي چې زید سعید او دلته خو حمل د ضم الخ په مبني باندې ندی صحیح یعنی ته داسې نشي ویلی چې المبني ضم الخ. لهذا دینه القاب ویل نه دی صحیح؟

**جواب:** دا عبارت په حذف د مضاف سره دی ای والقاب حرکاته وسکناته ضم، وفتح، کسر
**سوال:** ته وائي چې نومونه د حرکاتو او سکناتو د اسم مبني ضم، فتح، کسر، دی نو د دې حرکاتو او سکناتو امحله درې دی (۱) اول (۲) اخیر (۳) مینځ نو دا ضم فتح کسر نومونه د کومو حرکاتو دی؟
**جواب:** دا نومونه د حرکاتو او سکناتو د اخیر د اسم مبني دي نه د اول او د مینځ
**سوال:** ته وائي چې دا نومونه د حرکاتو سکناتو بنائیه ؤ دی نو مطلب دا دی چې د حرکاتو او سکناتو بنائیه ؤ نه تعبیر کولې شي په ضم فتح کسر سره نه د حرکاتو اعرابیه ؤنه. نو په دې سره خو تعبیر د حرکاتو سکنات اعرابیه ؤ نه هم کولې شي نو دا د هغې نومونه هم شو نو تا څنګه وویل چې دا نومونه صرف د حرکاتو بنائیه ؤ دی؟
**جواب:** دلته چې مصنف دی ضم، فتح، کسر ته نومونه د حرکاتو سکناتو د اسم مبني ویلی دی نو دا بنا، په مذهب د بصریانو باندې په دې شان سره چې بصریان د ضم، فتح، کسر اطلاق کوی په حرکاتو سکنات بنائیه ؤ باندې او په حرکاتو سکناتو اعرابیه ؤ باندې د دې اطلاق نه کوي بلکه د حرکاتو سکناتو اعرابیه ؤ نه بصریین تعبیر کوی په رفع، نصب، جر، جزم سره او د کوفیانو مذهب دا دی چې د دې اطلاق په حرکاتو سکنات اعرابیه ؤ او بنائیه ؤ دواړو باندې کیږي
**پس زده کړه** دا خبره چې د حرکاتو او سکناتو لپاره درې قسمه نومونه دی (۱) رفع، نصب، جر (۲) ضم، فتح، کسر، مجرد عن التاء (۳) ضمة، فتحة، کسرة، متلبس بالتاء.
**سوال:** په دې کې څه نسبت دی؟ **جواب:** په دې کې دوه مذهبه دی (۱) بصریین (۲) کوفیین. په نزد د کوفیینو باندې په دې ټولو کې نسبت د مساوات دی په دې شان سره چې د دې درې قسمه نومونو اطلاق کیږي په حرکاتو سکنات اعرابیه ؤ او حرکاتو سکنات بنائیه ؤ باندې علی السویه.
او بنا په مذهب د بصریینو باندې په مینځ د رفع، نصب، جر، او ضم، فتح، کسر، مجرد عن التاء، کې نسبت ده تباین دی په دې شان سره چې رفع، نصب، جر اطلاق کوی فقط په حرکات اعرابیه ؤ باندې نه په حرکات بنائیه ؤ، او د ضم، فتح، کسر اطلاق کوی په حرکاتو بنائیه ؤ باندې فقط نه په حرکاتو اعرابیه ؤ باندې، او په مینځ د ضمه، فتحه، کسره، او رفع، نصب، جر، کې نسبت د عموم خصوص من وجه دی (۱) ماده اجتماعی لکه حرکات اعرابیه شو (۲) ماده افتراقی د جانب د رفع، نصب، جر نه لکه اعراب بالحرف شو (۳) او ماده افتراقی د جانب د ضمه فتحه، کسره، نه لکه حرکات بنائیه شو.
او په مینځ د ضمة، فتحة، کسرة، او ضم، فتح، کسر، کې نسبت د عموم خصوص مطلق دی ضمة، فتحة، کسرة، اعم مطلق او ضم، فتح، کسر اخص مطلق دی، ماده اجتماعی لکه حرکات بنائیه شو او ماده افتراقی د جانب د ضمة، فتحة، کسرة نه لکه حرکات اعرابیه شو.
**سوال:** القابه مبتداء ده او ضم وفتح وکسر ووقف ورله خبر دی او قانون دا دی چې د مبتداء واحدی لپاره چې اخبار متعدده راشي نو یا عطف مقدم وی او یا ربط مقدم وی عطف عبارت دی د تعداد د امورو کثیرونه چې حکم وکړي شي په مجموعه باندې او ربط عبارت دی د تعداد د امور

كثيرونه چې حکم وکړي شي په هر واحد باندې اوس هم دلته د مبتدا واحدې لپاره اخبار متعدد راغلي دي نو ايا دلته عطف مقدم دی که ربط يو هم نه صحيح کيږي ځکه که ربط مقدم شي نو معنی به ئې دا وی چې نومونه د حرکاتو او سکناتو د اخير د اسم مبني ضم دی فتح دی کسر دی نو حمل د واحد راغی په متعدد باندې او دا ندی صحيح، او که عطف مقدم شي نو معنی به ئې دا وی چې نومونه د حرکاتو او سکناتو د اخير د اسم مبني ضم فتح کسر دی نو حمل د متعدد په متعدد باندې خو راغی ليکن بيا يو اعراب جاری کول پکار وو د وجې د وحدت د مقتضی د اعراب نه چې خبريت دی؟ **جواب:** دا دی چې دلته عطف مقدم دی په ربط باندې نو حمل د متعدد راغی په متعدد باندې او اعراب ئې جاری کړی دی په هر واحد باندې د وجې د صلاحيت لفظی د هر واحد نه لپاره د دې چې لازم نشي ترجيح بلا مرجح.

**سوال:** نه وائي چې والقابه عبارت په حذف د مضاف سره دی چې والقاب حرکاته وسکناته نو دا حرکات مقدر کول صحيح دی ځکه حرکات درې دی خو سکنات مقدر کول ندی صحيح ځکه سکون خو يو دی زيات نه دی؟

**جواب:** اگر چې سکون يو دی په واقع کې ليکن دا جمع شوی دی د يته جمع مشاکلة وائي

**سوال:** ضم ته ضم ولې وائي فتح ته فتح ولې وائي او کسر ته کسر ولې وائي؟

**جواب:** ضم ته ضم وائي د وجې د حصول د حرکة بنائي په ضم د شفتين سره، او فتح ته فتح وائي د وجې د انفتاح د فم نه په تلفظ کې او کسر ته کسر وائي د وجې د انکسار د شفت سفلی نه په وقت د تلفظ کې او سکون بنائي ته وقف وائي د وجې د توقف د نفس نه په سکون بنائي باندې د جری نه.

**وحکمه ان لا يختلف اخره لاختلاف العوامل. ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د تعريف د اسم مبني نه او د بيان د القابو د حرکاتو او سکناتو د اسم مبني نه نو شروع ئې وکړه په بيان د اثر مرتبه د اسم مبني کې لپاره د کمال وضاحت د اسم مبني نو وی ويل و حکمه الخ،

**ترجمه:** اثر مرتبه او فائده مرتبه په اسم مبني باندې د وجې د بنا نه عدم اختلاف د حرف اخير د اسم مبني دی د وجې د دخول د جنس عامل مختلف فی العمل نه په ده، اندې مثال لکه هؤلاء شو چې دا اسم مبني دی ځکه ماناسب مبني الاصل دی او اخير د دې نه مختلف کيږي په اختلاف د عوامل سره لکه جاءنی هؤلاء رأيت هؤلاء ومررت بهؤلاء.

**تشريح: سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟

**جواب:** ربط د ماقبل سره دا دی چې هر کله چې فارغ شو د بيان د تعريف د اسم مبني نه او د بيان د حرکاتو سکناتو د اخير د اسم مبني نه نو شروع ئې وکړه په حکم د اسم مبني کې په دې شان سره چې غرض د مصنف بيان د اثر مرتبه او فائده مرتبه د اسم مبني دی يا دا جمله مستانفه ده واقع شوې ده په جواب د سوال کې ځکه کله چې مصنف تعريف د اسم مبني وکړو ماناسب الخ سره نو معترض اعتراض وکړو چې کله يو اسم مبني وکرځی د وجې د مناسبت نه د مبني الاصل سره يا

واقع شي غير مركب نو په دې باندې څه فائده او اثر مرتبه ده نو مصنف جواب وکړو وحکمه سره چې فائده پرې دا مرتبه ده چې قسما قسم عوامل پرې داخلوه خو حرف اخيرئ نه مختلف كيږي د دې وجې نه يو شاعر ويلي دي. شعر!

مبنی آن باشد کہ باشد برقرار     معرب آن باشد کہ شد دو بار بار

**سوال:** اضافت د حكم مبني ته باطل دي ځكه حكم نسبت ته وائي او نسبت د جملې لپاره وي او مبني مفرد دی نسبت پكښې نشته؟

**جواب:** حكم دلته بمعنی نسبت نه دی بلكه بمعنی اثر مرتبه سره دی.

**سوال:** حكم چې بمعنی اثر مرتبه شي بيا هم د دې اضافت مبني ته ندی صحيح ځكه حكم چې په معنی د اثر مرتبه سره وی نو دهغې اضافت كيږي مؤثر ته او دلته مؤثر د عدم اختلاف د اخير لپاره بنا ده نه مبني، مبني محل د اثر دی چې عدم اختلاف دی؟ **جواب:** حكم چې په معنی د اثر مرتبه سره وی نو د هغې اضافت غالبا كيږي مؤثر ته او كله كله ئې اضافت محل د اثر ته هم كيږي، مثال لكه رڼا اثر د نمر دی او زمكه محل د دې اثر دی نو غالبا اضافت د ضوء شمس ته كيږي او ضوء الشمس ويلي كيږي او كله كله ئې اضافت ارض ته كيږي او ضوء الارض ويلي كيږي نو دارنګې دلته هم اضافت شوی دی محل د مؤثر ته د وجې د ادنی مناسبت نه چې دی بنا اثر كړی دی په اسم مبني كې.

**سوال:** په ان لا يختلف اخره كې دا لالاي نفي دی او اخره فاعل د يختلف دی او لاختلاف العوامل مفعول له دی د يختلف لپاره ځكه دا لام تعليلي دی نو دا علت دی د يختلف لپاره او قاعده دا ده چې نفي داخله شي په يو كلام باندې چې هغه مقيد وي په يو قيد باندې نو نفي د قيد كوی نو د دې معنی دا شوه چې په اخير د اسم مبني كې اختلاف د عواملو د وجې نه نه شي راتلي او د بلې وجې نه راتلی شي حالانكه دا خو مقصود د مصنف ندی بلكه مقصود دا دی چې اختلاف به نوی په اخير د اسم مبني كې سره د وجود د عواملو مختلفو نه؟

**جواب:** نه منم دا خبره چې لاختلاف العوامل مفعول له دی، دا لام دلته تعليلي ندی بلكه وقتيه دی نو معنی داده چې حكم د اسم مبني عدم اختلاف د اخير د اسم مبني دی په وقت د اختلاف د عوامل كې

**سوال:** ماته بل ځای مثال او ښايه چې لام وقتيه راغلی وی؟ **جواب:** لام وقتيه ر سنی دی په حديث كې چې المستحاضة تتوضأ لكل صلوة ای وقت كل صلوة؛ (۲) او كه او منم چې لاختلاف العوامل مفعول له دی او لام تعليلي دی نو دا خبره نه منم چې حرف نفي چې داخل شي په يو كلام باندې او هغه مقيد وی په يو قيد سره نو دا نفي د قيد كوي دائماً ابداً بلكه په دې كې درې صورتونه دی

(۱) غالبا نفي دقيد كوی لكه ما رأيت زيدا مصلياً؟

(۲) او كله كله نفي متوجه كيږي مقيد ته او قيد باقي پاتې كيږي نحو قوله تعالى ﴿وَلَمْ يُصِرُّوا عَلَىٰ مَا فَعَلُوا وَهُمْ يَعْلَمُونَ﴾ (۳) او كله نفي دقيد او مقيد دواړو كوی نحو قوله تعالى ﴿وَمَا رَبُّكَ بِظَلَّامٍ

لِلْعَبِيدِ ﴾او دا ترکيب د مصنف د قبيلې د ﴿وَلَمْ يُصِرُّوا عَلَىٰ مَا فَعَلُوا وَهُمْ يَعْلَمُونَ﴾نه دی نو دلته نفي د اختلاف شوی ده نه د عوامل.

**جواب:** (۳)، او که اومنم چې نفي متوجه ده قيد ته نو هم صحيح ده ځکه چې اختلاف دا خير د اسم مبني راتلی شي بې د اختلاف د عواملو نه نحو من زيد په سکون د نون سره من امرأ په ضمې د نون سره منِ الرجل په کسره د نون سره دلته اختلاف راغلی دی په اخير د اسم مبني کې خو دا اختلاف د عوامل د وجې نه ندی راغلی بلکه د يوی قاعدی صرفی د وجی نه راغلی دی چې منِ الرجل اصل کې مَنْ الرجل وو، کله چې مَنْ يو ځای شو د الرجل سره نو همزه په درج کې او غورځيده التقاء د ساکنين راغله په مابين د نون او لام کې نو نون له کسره ورکړې شوه لان الساکن اذا حرك حرك بالکسر هکذا فی من امراء ليکن دلته نون له ضمه وزکړې شوه د وجې د التقاء د ساکنين نه په مينځ د ميم او نون کې لپاره د مطابقت د مابعد سره دارنګې جاءني زيد منْ رايت زيداً منا مررت بزيدٍ منِ دا من مبني دی او اختلاف په کې راغلی دی خو د عامل د وجې ندی راغلی بلکه د بلْ شي د وجې نه راغلی دی چې هغه حقيقت دی په مينځ د استفهام او منستفهم عنه کې.

**سوال:** ستا د دې عبارت نه معلومه شوه چې په آخير د اسم مبني کې اختلاف نه راځي د اختلاف د عواملو د وجې نه نو عوامل خو جمع ده نو معنی دا چې ډير عوامل پرې داخل شي نو اختلاف نه راځي او که دوه يا يو عامل پرې داخل شی نو بيا به اختلاف راځي حالانکه که يو يا دوه پرې داخل شي نو بيا خو هم اختلاف دا خير د اسم مبني نه راځي؟

**جواب:** دا اعتراض به تا هله کولو چې دلته العوامل نه مراد جمع وی ليکن دلته جنس عوامل مراد دی ځکه په دې باندې الف لام داخل شوی دی دا معنی د جمعيت ختموی او جنسيت پيدا کوی.

**سوال:** الف لام جنسي چې داخل شي نو جمعيت ولې باطلوی؟

**جواب:** ځکه چې دا دلالت کوی په ماهيت د مدخول باندې قطع لحاظ د افرادو نه او جمع دلالت کوی په افرادو باندې او په مينځ د ماهيت او افرادو کې منافات دی.

**سوال:** دا الف لام چې ناسخ د جمع ګرځوی نو جمع ناسخ د الف لام لپاره ولې نه ګرځوی؟

**جواب:** داسې نه شم کولې ځکه چې الف لام ثانی دی او جمع اول دی او ثانی ناسخ وی د اول لپاره نه اول ثانی لپاره اوس په دې سره بو ډيه مسئله هم معلومه شوه چې حديث کې راځي چې: عليکم بسنتی وسنة الخلفاء الراشدين: دلته الخلفاء کې الف لام جنسي او مراد جنس خلفاء دی نو که تولو خلفاؤ يو کار نه وی کړي بلکه يو کړي وی نو هم ورته دا حکم شامل دی لکه شل رکعته تراويح شوی چې دا عمر رضی الله تعالی عنه کړي دی او اذان ثانی شو فی يوم الجمعة دا عثمان ايجاد کړی دی

**سوال:** ته وائې چې حکم د اسم مبني دا دی چې اخير د دې نه مختلف کيږي په اختلاف د عواملو سره نو ... ته مبني ووايه ځکه دا نه مختلف کيږي په اختلاف د عوامل سره لکه ان زيداً قائم، انا

ضارب زیداً . ضربت زیداً . عوامل مختلفه پرې داخل شوی دی یو اسم، بل فعل، او بل حرف دی. او دا منصوب دی سره د دې نه چې دا خو معرب دی نه مبني؟
**جواب:** د دې مطلب دا دی چې عوامل به مختلف وی په عمل کې نه په ذات کې او دا عوامل مختلفه فی الذات دی نه فی العمل، او عوامل مختلفه فی العمل چې په دې باندې داخل شي نو اخیر د دې مختلف کیږي لکه جاءنی زید رأیت زیداً مررت بزید
**سوال:** ته وائي چې حکم د اسم مبني دا دی چې ان لایختلف اخره الخ نو دا حکم شامل نه شو بعض افرادو د اسم مبني لره چې اسماء معدوده مفرده دی، او اسماء معدوده مضافه دی په هغې چې عوامل داخل شي نو اخیر ئې مختلف کیږي؟
**جواب:** دا حکم د قسم اول د اسم مبني دی نه د قسم ثانی (۲) یا دا حکم د اسم مبني دی خو هله چې دا مبني پس د دخول د عواملو نه مبني پاتې شي او دا پس د دخول د عواملو نه مبني نه پاتې کیږي.
**وهی المضمرات واسماء الاشارات. ربط.** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د حکم د اسم مبني نه نو شروع ئې وکړه په بیان د تقسیم د اسم مبني کې ځکه تقسیم د متمماتو او مکملاتو د تعریف نه دی ځکه په تعریف سره معلومیږي معنی او مفهوم د شئ او په تقسیم سره معلومیږي افراد او مصداق د شئ نو وی ویل **وهی المضمرات الخ. ترجمه:** دا اسم مبني مضمرات او اسماء اشارات دی الخ دی په تقدیم د عطف سره په ربط باندې په دې شان سره چې په دې اته بابو نو کې اسماء مبنیه بیانولې شي نه بلې شئ داسې نه چې اسم مبني منحصر دی په دی اقسامو کې نور د اقسام د اسم مبني نشته ځکه د دې نه علاوه نور اقسام د اسم مبني شته دی لکه اسماء استفهام او اسماء شرط او منادي مفرد معرفه او اسم د لانکره یلی غیر مضاف، او هر کله چې مضمرات اسماء افعال او اصوات ټول دقبیلې د مبنیات نه وو بالاتفاق نو وګرځول مصنف دغه اقسام ثلاثه د قبیلې ذ مبنیات نه مطلقاً حقیقةً او هر کله چې اسماء اشارات ټول د قبیلې د مبنیات نه وو عند الجمهور او اکثر د قبیلې د مبنیات نه وو عند البعض او موصولات مرکبات کنایات اکثر دقبیلې د مبنیات نه وو او بعض د معرباتو نه وو نو مطلقاً ئې وګرځول د قبیلې د مبنیات نه مجازاً ځکه للاکثر حکم الکل، او هر کله چې ظروف بعض دقبیلې د مبنیات نه وو نه اکثر او نه کل نو ذکر کړو مصنف د ظروفو سره لفظ د بعض او مطلقاً ئې و نه ګرځول دقبیلې د مبنیات نه ځکه ګرځول د دې مطلقاً نه حقیقتاً صحیح کیدل او نه مجازاً او الموصولات والمرکبات والکنایات مرفوع دی ځکه عطف دی په اسماء الاشارة باندې او الموصولات الخ مجرور هم صحیح دی چې عطف شي په الاشارة باندې او دا الاسماء لاندې راشی ځکه اطلاق د اسماء په دې جائز دی او الاصوات مرفوع دی فقط عند الجامی عطف دی په اسماء او مجرور ندی چې عطف شي په الافعال باندې نو د الاسماء لاندې به راشی ځکه لازمیږي مخالفت په مینځ د اجمال او د تفصیل کې ځکه په تفصیل کې الاصوات ذکر دی او دلته به اسماء الاصوات شی

**تشریح: سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی
**جواب:** ربط د ماقبل سره دا دی چې هر کله چې مصنف فارغ شو د بیان د حکم د اسم مبني نه نو
شروع ئې وکړه په تقسیم د اسم مبني کې او غرض د مصنف تقسیم د اسم مبني دی
**سوال:** د اسم مبني تعریف او حکم بیان شو نو اوس دا تقسیم د اسم مبني ولې کوی؟
**جواب:** دا تقسیم د اسم مبني کوی لپاره د اتمام د تعریف د اسم مبني څکه تقسیم د متمماتو او
مکملاتو د تعریف نه دی نو که تقسیم ئې نه وی کړې نو دا تعریف د اسم مبني به ناقص وو
**سوال:** تقسیم د متمماتو او مکملاتو د تعریف نه ولې نه دی؟
**جواب:** څکه چې په تعریف سره مفهوم او معنی دشی معلومیږي او په تقسیم سره افراد او مصداق د
شی معلومیږي نو پس د تقسیم نه به موږ ته دا اسم مبني معلوم شی مفهوماً او مصداقاً
**سوال:** هی ضمیر غایب دی تقدیم د مرجع غواړي دا چا ته راجع دی؟ **جواب:** دا المبني ته راجع دی
**سوال:** مطابقت رانغلو بین المرجع والضمیر څکه هی ضمیر د مؤنث دی او المبني مذکر دی؟
**جواب:** دا ضمیر مؤنث راجع دی مذکر ته لپاره د وجې رعایت د خبر نه څکه دا قاعده ده چې ضمیر
دائر شي بین المرجع والخبر نو رعایت د خبر اولی دی نو مصنف رعایت د خبر کړی دی
**سوال:** رعایت د خبر ولې اولی دی؟ **جواب:** څکه خبر محل د فائده دی نه مرجع (۲) خبر داخل دی په کلام
کې او مرجع خارج ده او رعایت د محل دفائده اولیٰ دی د غیر محل نه او رعایت د داخل اولی دی د
خارج نه او دا رنګی اسم اشاره چې دائر شی بین المشار الیه والخبر نو رعایت د خبر اولی دی د
مشار الیه نه نو اعتراض وارد نه شو په دې قول د الله تعالی سره ﴿ فَلَمَّا رَءَا الشَّمْسَ بَازِغَةً قَالَ هَٰذَا رَبِّي ﴾
**سوال:** هی مبتداء ده او المضمرات معطوف علیه مع المعطوفات ورله خبر دی او د مبتداء واحدی
لپاره چې اخبار متعدده راشي نو یا ربط مقدم وی او یا عطف دلته عطف مقدم وائي که ربط یې
هم نه صحیح کیږي، څکه که ربط مقدم شي نو حمل د خاص راځي په عام باندې او دا نه دی جائز
او که عطف مقدم شي نو بیا حمل د امور متعدده راځي په شی واحد باندې، او بیا یو اعراب
جاري کول پکار وو د وجې د وحدت د مقتضی د اعراب نه چې خبریت دی، جمع په حرف جمع سره
دا په شان د جمع دی لفظ د جمع سره نو د دې معنی دا شوه اسم مبني مضمرات الخ مجموعه دی
نه هر واحد او دا باطل دی؟
**جواب:** دلته عطف مقدم دې په ربط باندې نو حمل د خاص رانغلو په عام باندې او که ته وائي چې
حمل د متعدد راغي په واحد باندې نو حمل د متعدد په واحد باندې دا هله نه دی جائز چې دغه
شی واحد قابل لپاره د تعدد نوي او دلته قابل د تعدد دی نو حمل صحیح دی او که ته وائي چې یو
اعراب پکار وو نو اعراب یې جاري کړي دی په هر واحد باندې د وجې د صلاحیت لفظی نه لپاره د
دې چې لازم نشی ترجیح بلا مرجح او دا تقسیم د کلی دی جزئیاتو ته نه تقسیم د کل اجزاء ته

**سوال:** دا مضمرات به خالي نه وي يا به جمع د مضمر وائي او يا به ئې جمع د مضمرة وائي كه جمع د مضمرة شي نو مطابقت ئې د واحد سره راغي خو مطابقت نشته د موصوف سره چې الاسم دی او که نه وائي چې جمع د مضمر ده نو مطابقت ئې د موصوف سره راغلو ليكن مطابقت ئې نشته د مفرد سره؟
**جواب:** مضمرات جمع د مضمر ده نه د مضمرة ځكه دا صفت د مذكر لا يعقل دی او دا جمع كولې شي په الف او تاء سره قياساً او اطراداً كالايام الخاليات (۲) او دا جمع د مضمر ده نه د مضمرة ځكه صفت د مونث په جمع سالم سره هله جمع كيږي چې مذكر ئې جمع شوی وی په جمع مذكر سالم سره او دلته مضمر نه دی جمع شوی په مضمرون سره نو مضمرة نه شي جمع كيدی په مضمرات سره او مضمر نه دی جمع شوی په مضمرون سره ځكه مذكر چې صفت وی نو جمع كولې شي په واو او نون سره هله چې صفت د مذكر عاقل وی او دا صفت د مذكر لايعقل دی او دا رنګې موصولات جمع د موصول ده او مركبات جمع د مركب ده نه د موصولة او مركبة.
**سوال:** والاصوات په رفع سره دی كه په جر سره؟ **جواب:** شارح هندي وائي چې دا مجرور دی عطف دی په الافعال باندې نو د الاسماء لاندې راغلو او جامي صاحب وائي چې دا مرفوع دی عطف دی په الاسماء باندې او مجرور نه دی ځكه كه مجرور شي نو عطف به شي په الافعال باندې نو د اسماء لاندې به راشي نو مخالفة د اجمال راځي د تفصيل سره.
**سوال:** په تفصيل كې يې الاصوات مطلق ولې ذكر كړي دی؟
**جواب:** هر كله چې اصوات د قبيلې د اسماؤ نه ندی حقيقة خو جار مجرى د اسماؤ دی په دې شان سره چې دا مستعمليږي په كلام د عربو كې په شان د اسم مبني باندې نو ځكه ئې دلته ذكر كړې دی.
**سوال:** الموصولات مرفوع دی كه مجرور؟ **جواب:** په دې كې رفع لوستل هم جائز دی او جر لوستل هم جائز دی كه مرفوع شي نو عطف دی په اسماء باندې او كه مجرور شي نو بيا عطف دی په الاشارة باندې د اسماء لاندې راغی ځكه اطلاق د اسماء په دوی جائز دی.
**سوال:** اصل په عبارت كې دی په نمط واحده سره نو دا مضمرات اسماء اشارات الخ ئې مطلق ذكر كړه نو د ظروفو سره ئې دا قيد د بعض ولې ذكر كړو مطلقاً ئې ولې د قبيلې د مبنيات نه ونه ګرځول؟
**جواب:** هر كله چې مضمرات اسماء افعال او اصوات ټول د قبيلې د مبنيات نه وو بالاتفاق او اسماء اشارات ټول د قبيلې د مبنيات نه وو عند الجهمور نو هغه ئې مطلقاً د قبيلې د مبنياتو نه وګرځول حقيقةً او موصولات مركبات كنايات اكثر د قبيلې د مبنيات نه وو نو مطلقاً ئې د قبيلې د مبنيات نه وګرځول مجازاً ځكه للاكثر حكم الكل په خلاف د ظروفو نه دا نه كل د مبنيات نه دی چې مطلقاً ئې ذكر كړي وی حقيقة او نه اكثر د مبنيات نه دی چې مطلقاً ئې ذكر كړي وی مجازاً نو ځكه ئې وبعض الظروف وويل.
**سوال:** وهی مبتدا ده او المضمرات الخ خبر دی او مبتدا او خبر چې دواړه معرفه وی نو دا فائده كوی حصر په كلام كې نو معنی دا شوه چې اسم مبني مضمرات الخ دی نه بل شیٔ نو حصر د اسم مبني

راغلو په اقسام ثمانيو كې او دا باطل دی ځكه نور اقسام د اسم مبني هم شته تول اقسام د اسم مبني شپارس دی كما مر؟ **جواب:** مبتدا او خبر چې دواړه معرفی وی نو دا حصر فائده كوی خو د دې حصر درې صورتونه دی (۱)، كله حصر من الجانبين وی (۲)، كله حصر د مبتدا وی په خبر كې (۳)، او كله حصر د خبر وی په مبتدا كې دلته حصر د خبر راغلی دی په مبتدا كې يعنی دا اته بابونه منحصر دی په مبني پورې په دې كې بل شئ نشته او حصر د اسم مبني په دې پورې نشته، كما فی قوله تعالی ﴿إِنَّ اللَّهَ هُوَ الرَّزَّاقُ ذُو الْقُوَّةِ الْمَتِينُ﴾ دلته د رزاق حصر راغلی دی په الله پورې نه بالعكس.

**سوال:** مبتدا او خبر دواړه معرفه وی ايراد د ضمير فصل ضروری دی دلته يې ضمير فصل نه دی ذكر كړې؟ **جواب:** ضمير فصل ذكر كوولې شي دفع د التباس لپاره ده خبر او صفة په مينځ كې دلته التباس نشته ځكه مبتدا ضمير واقع شوی دی والضمير لايوصف ولا يوصف به (۲) ايراد د ضمير فصل بين المبتدا والخبر مشروط دی په كون د مبتدا او خبرسره معرفه وجود د مشروط مستلزم دی وجود د شرط لره او وجود د شرط مستلزم ندی وجود د مشروط لره.

**المضمر ما وضع لمتكلم او مخاطب او غائب الخ. ربط.** هر كله چې فارغ شو مصنف د بيان د اقسام د اسم مبني نه اجمالاً نو شروع ئې وكړه په بيان د اقسامو د اسم مبني كې تفصيلاً او هر كله چې مضمرات تول د قبيلې د مبنيات نه وو بالاتفاق په خلاف د باقي اقسامونه نو مقدم ئې كړه مضمرات په نورو اقسامو د اسم مبني باندې هم په جانب د اجمال كې او هم په جانب د تفصيل كې او هر كله چې انواع د مضمر ډير وو نو په جانب د اجمال كې ئې المضمرات جمع ذكر كړه لپاره د دې چې دلالت وكړي په كثرت د انواعو باندې او دا مقام مقام د تعريف دی او تعريف كيږي د جنس جنس سره نو ذكر كړو مصنف په دې مقام كې المضمر لپاره د دې چې دلالت وكړي په جنس باندې او مضمر په لغت كې ماخوذ دی د اضمار نه او اضمار استتار ته وائي او ضمير ته ضمير ځكه وائي چې دا هم مستتر كيږي په كلام د عربو كې يا مضمر ماخوذ دی د ضمر نه او ضمر قليل اللحم ته وائي، او ضمير ته ضمير ځكه وائي چې دا قليل الحروف دی په نسبت سره اسم ظاهر ته او ضمير په اصطلاح د نحويانو كې **ما** اسم دی داسې اسم **وضع** چې وضع كړې شوی دی **لمتكلم** د متكلم لپاره من حيث انه متكلم يحكی عن نفسه **او مخاطب** يا د مخاطب لپاره من حيث انه مخاطب يخاطب به **او غائب** يا د غائب لپاره داسې **غائب تقدم ذكره** چې مخكې شوی دی ذكر د دې غائب او دا ذكر د غائب عام دی لفظاً وی كه معناً وی كه حكماً وی.

**تشريح: سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟

**جواب:** ربط او مناسبت د ماقبل سره دا دی چې هر كله مصنف فارغ شو د اقسامو د اسم مبني نه اجمالاً نو شروع ئې وكړه په تفصيل د هغې كې او غرض د مصنف د دې ځای نه تفصيل د اجمال دی.

**سوال:** مصنف دلته د اسم مبني اته اقسام ذكر كړی دی او دا اته واړه سواسی دی په قسميت كې نو مضمرات ئې ولې مقدم كړه په اجمال او تفصيل كې **جواب:** هر كله چې مضمرات تول د قبيلې د

مبنيات نه وو بالاتفاق په خلاف د باقي اقسامونه چې هغه بالاتفاق د قبيلې دمبنيات نه نوو نو مقدم ئې کړه مضمرات اجمالاً وتفصيلاً

**سوال:** تفصيل موافق وی د اجمال سره نو څه وجه ده چې مضمرات په اجمال کې جمع ذکر کړه او په تفصيل کې ئې المضمر مفرد ذکر کړو؟ **جواب:** په جانب د اجمال کې ئې مضمرات جمع ذکر کړې ده لپاره د دې چې دلالت وکړي په کثرت د انواعو باندې او په تفصيل کې ئې مفرد ذکر کړو ځکه دا مقام د تعريف دی او تعريف د جنس کيږي په جنس سره او په جنس باندې دلالت مفرد کوی او که جمع ئې ذکر کړي وی نو تعريف د افرادو راتلو او دا نه دی جائز، بيا په هر يو قسم د اقسامود اسم مبني کې لابدي ده د معرفت د امور ثلاثه ؤ نه.

(۱): يو دا چې اصل په اسماؤ کې اعراب دی ځکه دا محل د معانيو معتوره وو دی په دې کې لابدي ده د اعراب نه چې هغه علامه وګرځی په دغه معانيو معتوره وو چې التباس د احدهما رانشی دا خر سره او بنا خلاف الاصل ده نو چې يو اسم مبني ګرځيدلی وی نو هلته لابدي ده د علت د بناء نه.

(۲): اصل په بناء کې سکون دی نو چې يو اسم مبني على الحرکت وی نو هلته به لابدي وی د علت د بناء على الحرکت نه.

(۳): دريم لابدي ده د علت د بناء على الحرکت المعين نه مثال لکه اما بعد شو دا بعد مبني على الضمه دی نو علت د نفس بناء لپاره مشابهت دی د حرف سره په احتياج کې او علت د بناء على الحرکت لپاره دا دی چې که چرته دا مبني شی په سکون سره نو لازميږي التقاء د ساکنينو او علت د حرکت معين لپاره دا دی چې په دې کې په حذف د مضاف اليه سره نقصان راغلی دی د هغې لپاره جبيره قويه پکاره ده او جبيره قويه نده مګر ضمّه ده.

**سوال:** اصل په اسماء کې اعراب دی او بنا خلاف الاصل ده نو دا مضمرات مبني ولې شو؟

**جواب:** (۱): ضمائر مبني دی ځکه دامشابه دی د حرف سره په احتياج کې په دې شان سره چې حرف محتاج دی انضمام د کلمه اخری ته په دلالت کې په معنی خپله باندې او دا ضمائر محتاج دی تقدم د داسې لفظ ته چې دلالت وکړی په مرجع د دې ضمير باندې يا په خضور د مرجع باندې لهذا دا وجه د بناء غلطه ده چې بعض خلق ئې بيانوی چې ضمير مشابه دی د حرف سره په احتياج کې ځکه چې حرف محتاج دی ضم د کلمی اخری ته او ضمير محتاج دی مرجع ته ځکه چې بيا خوبکار ده چې زيد هم مبني شی ځکه چې دا مشابه دی د حرف سره په احيتاج کې ځکه چې دا محتاج دی مرجع ته چې معنی موضوع له د دې ده ځکه چې مرجع معنی موضوع له ته وائي.

(۲): يا ضمائر د قبيلې د مبنيات نه دی ځکه چې دا مشابه دی د حرف سره په وضع احادی يا ثنائي کې او کوم ضمائر چې احادی دی او ثنائي ندی هغه حمل دی په نورو باندې، او ضمير کې لابدي ده د معرفت د امور اربعونه (۱) مفهوم لغوی (۲) مفهوم اصطلاحی (۳) وجه د تسميه (۴) اقسام، نو مضمر په لغت کې مستتر ته وائي او په اصطلاح د نحويانو کې ما وضع لمتکلم الخ ته وائي او

ضمير اصطلاحی ته ضمير ځکه وائي چې دا ماخوذ دی د اضمار نه او اضمار استتار ته وائي. او دا هم کله کله مستتر کيږي (۲) يا ماخوذ دی د ضمرنه او ضمر قليل اللحم ته وائي او دیته مضمر ځکه وائي چې دا قليل الحروف وی د اسم ظاهر نه او اقسام ئې دلته مصنف په خپله بيانوی.

**سوال:** دا تعريف مانع نه شو د دخول د غيرنه داخل شو پکې الف لام عهد خارجي او کاف حرفي خطابی ځکه دا هم يو لفظ دی چې واضع وضع کړی دی دمخاطب لپاره او دا خو ضمير نه دی؛ منشا د اعتراض دا ده چې معترض ما عبارت اخستی دی د لفظ نه؟

**جواب:** دا اعتراض به هله وارديدو چې دلته دا ما عبارت وی د لفظ نه ليکن دا ما عبارت د اسم نه دی په قرينی د مقام سره (۱): ځکه معتبر په تعريف د اقسامو کې جنس قريب وی او جنس قريب دلته اسم دی. (۲): مقسم معتبر وی په تعريف د اقسامو کې او ضمير او ظاهر اقسام د اسم دی نو الف لام عهدی دی او کاف حرفي ترې خارج شو ځکه چې هغه اسم نه دی او په تنکير د اسم کې اشاره ده موصوفيت د ما ته ځکه دا واقع دی په جانب د خبر کې نو چې موصوفه شی نو عمل په اصل باندې راځي.

**سوال:** تعريف د ضمير مانع نه شو د دخول د غير نه داخل شو پکې زيد چې دا واضع وضع کړی دی د متکلم لپاره. يعنی زيد وضع شوی دی د يو مسمی لپاره دغه مسمی چې کله متکلم وی نو دا داخل شو په تعريف د ضمير کې؟ **جواب:** ضمير هغه اسم ته وائي چې وضع شوی وی د متکلم لپاره من حيث انه متکلم، او دا زيد واضع نه دی وضع کړي د دې مسمی لپاره من حيث انه متکلم بلکه دا وضع دی د دغه مسمی لپاره خوا که دغه مسمی متکلم وی او که مخاطب وی او که غائب وی.

**سوال:** دا تعريف د ضمير مانع نه شو د دخول د غير نه داخل شو پکې لفظ د متکلم ځکه دا واضع وضع کړي دی د متکلم لپاره من حيث انه متکلم ځکه دا په مخاطب يا غائب باندې نه صادقيږي سره د دې نه چې دا اسم ظاهر دی نه ضمير؟ **جواب:** ضمير هغه اسم ته وائي چې وضع شوی وی د متکلم لپاره من حيث انه متکلم يحکی عن نفسه لکه انا شو او متکلم اګر که واضع وضع کړي دی د متکلم لپاره من حيث انه متکلم ليکن د دې حيثيت نه ندی چې يحکی عن نفسه بلکه د متکلم اطلاق په دغه متکلم باندې کيږي برابره خبره ده که حکايت کوی او که نه کوي.

**سوال:** تعريف د ضمير مانع نه شو د دخول د غير نه داخل شو پکې زيد چې دا اسم واخلی د مخاطب لپاره ځکه دا يو اسم دی چې واضع وضع کړي دی د مخاطب لپاره او سره د دې نه چې ضمير نه دی؟

**جواب:** ضمير هغه اسم ته وائي چې واضع وضع کړي وی د مخاطب لپاره من حيث انه مخاطب او د زيد اطلاق په دغه مسمی باندې کيږي خوا که مخاطب وی او که متکلم وی او که غائب وی.

سوال: تعريف د ضمير مانع نه شو د دخول د غير نه داخل شو پکې لفظ د مخاطب ځکه دا واضع وضع کړي دی د مخاطب لپاره من حيث انه مخاطب؟

**جواب:** ضمير هغه اسم ته وائي چې واضع وضع کړي وی د مخاطب لپاره من حيث انه مخاطب يخاطب به او لفظ د مخاطب اګر چې واضع وضع کړي دی د مخاطب لپاره من حيث انه مخاطب خو من حيث انه يخاطب به ندی او انت من حيث انه يخاطب به دی

او مصنف توصيف د غائب وکړو په تقدم الخ سره په دې سره ئې احتراز وکړو د اسم ظاهر نه ځکه دا هم غائب لپاره وضع دی خو هلته تقدم د ذکر لفظا یا معناً یا حکماً شرط نه دی.

**سوال:** تعریف د ضمیر جامع نه شو ځیلو افرادو لره خارج شو د دې نه ضمیر د هو په ﴿قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ﴾ کې ځکه چې د دې غائب مرجع مخکې نه ده ذکر دارنګې خارج شو د دې نه ضمیر د ﴿اعْدِلُوا هُوَ أَقْرَبُ لِلتَّقْوَىٰ﴾ ځکه د دې هو مرجع مخکې نه ده ذکر دارنګې خارج شو د دې نه ضمیر د ﴿وَلِأَبَوَيْهِ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا السُّدُسُ﴾ ځکه د دې مرجع مخکې نده ذکر؟

**جواب:** سکاری ته ورشه یعنی ما د ضمیر تعریف لاسر ته ندی رسولې او ته راباندې مخکې سوال کوی دا تقدم د مرجع عام دی که لفظا وی او که معنا وی او که حکماً وی په ﴿قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ﴾ کې مرجع مذکور دی حکما او باقي مثالونو کې مذکور دی معناً

**لطیفه:** پخوا یو سړي وو مونځ ئې نه کولو نو بل سړي ورته وویل چې مونځ کوه هغه بې نماز ورته په جواب کې وویل چې الله ویلی دی چې مونځ مه کوئی، یعنی کول خو لاپریږده خو الله تعالی ویلی دی چې مونځ ته نږدې نه شئ نو هغه بل سړي ورته وویل چې الله تعالی چرته ویلی دی چې مونځ مه کوئ بې نماز ورته وویل چې الله تعالی ویلی دی چې ﴿لَا تَقْرَبُوا الصَّلَاةَ﴾ نو دې بل سړي ورته وویل چې سکاری ته ورشه یعنی الله ویلی دی چې ﴿لَا تَقْرَبُوا الصَّلَاةَ وَأَنتُمْ سُكَارَىٰ﴾ او ته خو لیوني نه ئې.

**سوال:** تعریف د ضمیر ما وضع الخ سره باطل دی ځکه مقصد په تعریف کې وضاحت د معرف دی او وضاحت د معرف راځي په جزم او یقین سره او مصنف په ځپله په دې تعریف کې شکی دی نو مونږ ته به د څه وضاحت وکړي اوس شکي ځنګه دی، نو ځکه چې ده کلمه د او ذکر کړې ده او دا راځي لپاره د شك او تردد؟

**جواب:** کلمه د او دلته لپاره د شك او تردد نده بلکه لپاره د تنویع او تقسیم ده نو مصنف ضمیر منقسم کړو اقسام ثلاثه ؤ ته، او دا ذکر د غائب د ضمیر نه مخکې لفظا عام دی که حقیقة وی لکه ضرب زید غلامه او که حکما وی لکه ضرب غلامه زید، او ذکر د غائب مخکې د ضمیر نه معنا د دې صورتونه هم دوه دی (۱) یو دا چې مخکې یو لفظ وی هغه په دې باندې دلالت کوی نحو قوله تعالی ﴿اعْدِلُوا هُوَ أَقْرَبُ لِلتَّقْوَىٰ﴾ اعدلوا دلالت کوی په عدل باندې چې مرجع د هو دی (۲) او یا دا معلومیږي د سیاق او د سباق نه نحو قوله تعالی ﴿وَلِأَبَوَيْهِ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا السُّدُسُ﴾ او که دا مرجع مخکې لفظا او معناً نه وو نو هغې ته تقدم حکمی وائي لکه په ضمیر شان او ضمیر قصه کې شو نحو قوله تعالی ﴿قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ﴾

**وهو متصل او منفصل: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د تعریف د مضمر نه نو شروع ئې وکړه په بیان د تقسیم د مضمر کې ځکه تقسیم د متمات او مکملات د تعریف نه دی ځکه چې په

تعریف سره معلومیږي معنی او مفهوم د شيء او په تقسیم سره معلومیږي افراد او مصداق د شيء نو وی ویل **وهو متصل او منفصل. ترجمه**: دا ضمیر په اعتبار د ماقبل سره متصل راځي یا منفصل راځي او په شيء واحد کې تقسیمات کثیره جاري کیږي په اعتبار د جهات کثیرو سره نو ده اول په تعریف کې تقسیم د ضمیر وکړو اقسام ثلاثه ؤ ته (۱) متکلم (۲) مخاطب (۳) غائب، او اوس ئې تقسیم وکړو نوعین ته چې متصل او منفصل دی او وروستو ئې تقسیم کوی انواع ثلاثه ؤ ته. مرفوع، منصوب، مجرور، نو دا تقسیمات په جهات مختلفو سره دی د اول لپاره جهت ذات دی. د دویم تقسیم لپاره جهت ماقبل دی او د دریم تقسیم لپاره جهت اعراب محلی دی.

**تشریح: سوال**: د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟

**جواب**: ربط دا دی چې دا مخکې تعریف د ضمیر وو او دا تقسیم د ضمیر دی او غرض د مصنف هم معلوم شو چې تقسیم دی په مطلق ضمیر کې.

**سوال**: په تعریف سره مونږه ضمیر وپیژندو نو پکاره وه چې ده په احکامو باندې شروع کړې وی نو دا تقسیم ولې کوی؟ **جواب**: دا تقسیم کوی لپاره د اتمام د تعریف ځکه تقسیم د متمماتو او مکملاتو د تعریف نه دی.

**سوال**: تقسیم د متمماتو او مکملاتو د تعریف نه ولې دی؟

**جواب**: ځکه چې په تعریف سره معلومیږي معنی او مفهوم د شيء او په تقسیم سره معلومیږي افراد او مصداق د شيء نو پس د تقسیم نه به دا ضمیر مونږ ته وګرځی مفهوماً او مصداقاً.

**سوال**: ستا په دې خبرو کې تناقض دی مخکې دی وویل چې ضمیر درې قسمه دی. متکلم، مخاطب، او غائب، او اوس وائي چې ضمیر دوه قسمه، متصل او منفصل او وروستو بیا وائي چې ضمیر درې قسمه دی، مرفوع، منصوب، مجرور، نو مونږ ته پته ونه لګیده چې ضمیر دوه قسمه دی که درې قسمه دی، او که درې قسمه وی نو بیا کوم درې اقسام دی، متکلم، مخاطب، او غائب دی، او که مرفوع، منصوب، مجرور دی؟ **جواب**: دا ستا اعتراض به هله واردیدواو دا تناقض به زما په کلام کې هله وی چې ما دا تقسیمات په ضمیر کې کړي وی په اعتبار د جهت واحده سره لیکن دا تقسیمات په اعتبار د جهات مختلفو سره دی په دې شان سره چې دا ضمیر په اعتبار د ذات سره درې قسمه دی، متکلم، مخاطب، غائب، او په اعتبار د ماقبل سره دوه قسمه دی، متصل، منفصل او په اعتبار د اعراب محلی سره درې قسمه دی مرفوع، منصوب، مجرور، او په بعض نسخو د کافیه کې داسې عبارت دی چې وهو متصل ومنفصل په واو سره نو په هغه نسخه باندې.

**سوال**: دی چې دا قاعده ده چې د مبتدا او احد لپاره اخبار متعدده راشی نو یا عطف مقدم وی او یا ربط مقدم وی اوس دلته عطف مقدم دی که ربط، که ربط مقدم وائي په عطف باندې نو حمل د خاص راځي په عام باندې او دا ندې صحیح، او که عطف مقدم کوی په ربط باندې نو (۱) حمل د متعدد

راځي په واحد باندې دا نه دي جائز (٢) او بل په دې باندې يو اعراب جاري کول پکار وو د وجې د وحدت د مقتضی د اعراب نه چې خبريت دی نو بيا په دواړو باندې اعراب ولې جاري کړی دی؟

**جواب:** د دې اعتراض نه يو جواب شارح هندي کړي دی چې نه عطف مقدم وايم او نه ربط بلکه دلته د هو لپاره خبر محذوف دی چې قسمان دی، او متصل اومنفصل هر واحد خبر دی لپاره د مبتدا محذوف، ای احدهما متصل وثانيهما منفصل (٢) او بل جواب د دې شارح جامي صاحب کړی دی چې عطف مقدم دی په ربط باندې او حمل د متعدد په واحد باندې هله نه دی جائز چې دا شئ واحد قابل لپاره د تعدد نه وي او دلته دا امر واحد قابل لپاره د تعدد دی او اعراب ئې جاري کړی دی په هر واحد باندې د وجی د صلاحيت لفظی نه لپاره د دې چې لازم نه شي ترجيح بلامرجح او جواب د شارح هندي ضعيف دی ځکه هغه بنا دی په تقدير باندې.

**فالمنفصل المستقل بنفسه والمتصل غير المستقل بنفسه:** **ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د ضمير متصل او منفصل نه اجمالاً نو شروع ئې وکړه په بيان د ضمير متصل کې او منفصل کې تفصيلاً.

**ترجمه:** ضمير منفصل هغه ضمير ته وائي چې هغه مستقل وی باعتبار الذات په تلفظ کې په دې شان سره چې صحيح وی تلفظ د متکلم په دغه ضمير باندې انفراداً بی دما قبل نه چې هغه عامل دی په اصطلاح کې، **والمتصل** او ضمير متصل هغه ضمير ته وائي چې ندی مستقل باعتبار الذات په تلفظ کې په دې شان سره چې صحيح ندی تلفظ د متکلم په دې ضمير باندې بی د ماقبل نه چې عامل دی په اصطلاح کې، او هر کله چې ضمير متصل اصل وو د منفصل نه ځکه چې ضمائر وضع شوی دی لپاره د ايجاز او اختصار او ضمير متصل جز دی د منفصل نه نو مقدم ئې کړو متصل په منفصل باندې په اجمال کې، او هر کله چې تعريف د منفصل وجودی وو او تعريف د منفصل عدمی وو نو مقدم ئې کړو ضمير منفصل په متصل باندې په تفصيل کې ځکه وجودی اشرف دی د عدمی نه.

**تشريح: سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟

**جواب:** ربط دا دی چې هر کله چې فارغ شو د بيان د ضمير متصل او منفصل نه اجمالاً نو شروع ئې وکړه په په تفصيل د دې کې او غرض د مصنف هم معلوم شو چې بيان د ضمير متصل او منفصل دی تفصيلاً.

**سوال:** څه وجه ده مصنف لره چې ضمير متصل ئې مقدم کړو په اجمال کې او په تفصيل کې ئې ضمير منفصل مقدم کړو يعنی تفصيل ئې ولې مقدم کړو په اجمال کې او په تفصيل کې ئې ضمير منفصل مقدم کړو يعنی تفصيل ئې ولې مخالف وګرځو د اجمال نه؟

**جواب:** هر کله چې ضمير متصل اصل وو د منفصل نه ځکه چې وضع د ضمائرو شوې ده لپاره د ايجاز او اختصار او ضمير متصل اوجز دی د منفصل نه نو په اجمال کې ئې متصل مقدم کړو، او هر کله چې تعريف د منفصل وجودی وو او تعريف د متصل عدمی وو او وجودی اشرف وی د عدمی نه نو په تفصيل کې ئې منفصل مقدم کړو په متصل باندې.

مستقل بنفسه ته وائي دا
**سوال:** ته وائي چې ضمير منفصل مستقل بنفسه ته وائي او متصل غير مستقل بنفسه ته وائي دا تعريف نه دی صحيح ځکه ضمائر د قبيلې د اسماؤ نه دي او اسم مستقل بنفسه وی او غير مستقل بنفسه خو حرف وی نو تا اسم ته څنګه غير مستقل ووايه؟ **جواب:** غير مستقل دوه قسمه دی (١) فی الدلالت (٢) فی التلفظ نو دا ضمير متصل غير مستقل فی التلفظ دی نه فی الدلالت، او حرف غير مستقل فی التلفظ والدلالت دواړه دی اوس په دې مقام کې درې صورتونه دی.
(١) ضمير منفصل مستقل بنفسه فی الدلالت هم دی او مستقل فی التلفظ هم دی.
(٢) او ضمير متصل غير مستقل فی التلفظ دی او مستقل فی الدلالت دی.
(٣) او حرف هم غير مستقل دی په تلفظ کې په دې شان سره اطلاق او تلفظ په حرف باندې بې د انضمام د کلمه اخرى نه صحيح ندی او هم غير مستقل دی په دلالت کې.
**سوال:** د غير مستقل فی التلفظ څه مقصد دی؟
**جواب:** د دې مطلب دا دی چې نه صحيح کيږي تلفظ د متکلم په دې ضمير باندې انفراداً بې د ماقبل نه چې عامل دی په اصطلاح کې لکه ت شو په ضربتُ کې او مستقل فی التلفظ دا معنی چې صحيح وی تلفظ د متکلم په دې ضمير باندې انفراداً بې د ماقبل نه چې عامل دی اصطلاحاً لکه انا شو اوس د دې مقام نه يوه بله مسئله معلومه شوه چې هغه ذکر کولې شی په مبتدا قسم ثانی کې مبتدا قسم ثانی دی ته وائي چې دا به صفت وی او واقع به وی پس د حرف نفی يا حرف استفهام نه او رافعةً لظاهر به وی نو اعتراض واردیږی چې دا قاعده ستا منقوضه شوه په اراغب انت باندې دلته دا صفت رافع اسم ظاهر لره نه دی بلکه رافع دی ضمير لره؟
**جواب:** اسم ظاهر عام دی که حقيقتاً وی او که حکماً وی دلته دا انت ضمير منفصل اسم ظاهر دی حکماً ځکه لکه څنګه چې اسم ظاهر مستقل فی التنفظ دی نو دارنګې دا هم مستقل فی التلفظ دی
**وهو مرفوع و منصوب و مجرور فالاولان متصل ومنفصل الخ: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د تقسيم د ضمير نه نو عين نه په اعتبار د ماقبل سره چې متصل او منفصل وو نو شروع ئې وکړه په تقسيم د ضمير کې په اعتبار د اعراب محلی سره اقسام ثلاثه ؤ ته چې مرفوع منصوب مجرور دی.
**ترجمه:** دا مضمر مطلقاً په اعتبار د اعراب محلی سره مرفوع او منصوب او مجرور راځي، **فالاولان** پس دا دوه اولنی چې مرفوع او منصوب دی هر واحد د دې مرفوع او منصوب نه متصل راځي او منفصل راځي **والثالث** او قسم ثالث چې ضمير مجرور دی متصل راځي فقط نه منفصل **فذلك** پس دغه مضمر **خمسة انواع** پنځه قسم دی مرفوع متصل، مرفوع منفصل، منصوب متصل، منصوب منفصل، مجرور متصل
**تشريح: سوال:** ضمير په اعتبار د اعراب سره ولې درې قسم دی؟ **جواب:** ځکه چې ضمير قائم مقام د اسم ظاهر دی او اسم ظاهر کې لابدي وی د اعراب نه يعنی د رفع، نصب، جر نه لفظاً او يا تقديرا نو په دی قائم مقام د هغه کې هم لابدي وی د رفع، نصب، جر نه البته دومره فرق دی چې اسم ظاهر کې رفع، نصب، جر راځي لفظاً يا تقديراً او په دی کې اعراب راځي محلاً

**سوال: هو** مبتدا ده او مرفوع الخ ئې خبر دی او عطف د منصوب او مجرور راغلی ده په مرفوع باندې او جمع په حرف جمع سره په شان د جمع ده په لفظ د جمع سره نو **معنی** دا شوه چې ضمیر مرفوع، منصوب، او مجرور، درې واړه راځي جمعاً او دا **معنی باطله ده**؟
**جواب:** دا اعتراض به تا هله کولې چې واو په خپله معنی وی لیکن واو بمعنی او دی یا جواب دا دی چې دا اعتراض به هله واردیدو چې دا تقسیم د مضمر دی اقسامو ته تقسیم د کل وی اجزاء ته لیکن دا تقسیم د کلی دی جزیاتو ته نه د کل اجزاء ته ځکه چې دا حملیږي په هر واحد باندې علیحدة
**سوال:** ته وائي چې **فالاولان** چې اول دوه مرفوع او منصوب دی نو اول خو صرف مرفوع دی منصوب خو ثانی دی؟ **جواب:** دا تثنیه تغلیباً ده دا ثانی ئې یو فرد وګرځوو د افرادو د اول نه او بیا ئې تثنیه جوړه کړی ده په شان د **شمسین** او**قمرین** وغیره باندې
**سوال:** فالاولان مبتدا ده او **متصل** الخ ئې خبر دی او قانون دا دی چې خبر چې مشتقی وی او حامل دی ضمیر د **مبتدا** لره نو هلته مطابقت ضروری دی او دلته خو مطابقت نشته؟
**جواب:** دا متصل او منفصل خبر د **الاولان** ندی بلکه دا خبر د مبتدا محذوف دی چې کل واحد دی دا جمله خبر د الاولان لپاره دی (۲) یا الاولان مبتدا ده او متصل الخ بیان دی د خبر د مبتدا محذوفی ای فالاولان کل واحد منهما قسمان متصل ومنفصل (۳) یا دا خبر دی د الاولان لپاره په اعتبار د حذف د موصوف سره ای ضمیر متصل ومنفصل او ضمیر مشتقی ندی نو ځکه مطابقت نشته
**سوال:** ضمیر مرفوع او منصوب متصل او منفصل راځي او ضمیر مجرور متصل راځي او منفصل نه راځي دا ولې؟ **جواب:** (۱) السند علیه التتبع والاستقراء (۲) ضمیر مجرور متصل راځي او منفصل نه راځي لپاره د دې چې لازم نشی تقدیم د مجرور په جار باندې ځکه تقدیم د مجرور په جار باندې ندی جائز ځکه دا ګرځیدلی وی بمنزلة الجز او تقدیم د جز په کل باندې نه وي جائز
**سوال:** ضمیر مجرور چې منفصل راشی نو تقدیم د مجرور په جار باندې څنګه راځي؟
**جواب:** دا خبره دوی کړې ده مقایسة دا قیاس کوی په ضمیر منصوب باندې چې هغه کله منفصل وی نو تقدیم د ضمیر راځي په عامل باندې لکه ایاك نعبد نو دا چې منفصل شی نو هم به مقدم کیږي (۳) ضمیر مجرور متصل راځي نه منفصل ځکه دا قائم مقام د اسم ظاهر دی چې مجرور وی نو متصل وی نو دا قائم مقام د هغه به هم متصل وی نه منفصل ځکه کل شئ وقع فی محل غیره فله حکم الغیر (۴) ضمیر مجرور متصل راځي نه منفصل ځکه دا قاعده ده چې **لایسوغ المنفصل الا لتعذر المتصل** او په ضمیر مجرور کې تعذر د اتصال نشته یعنی اتصال د مجرور په جار پورې غیر متعذر دی **فقط** قط درې قسم دی (۱) یو قط راځي د ظروف مبنیو نه وروستو د ماضی منفی نه لپاره د استغراق د نفی نحو ما رأیت زیداً قط (۲) بمعنی حسب نحو قطی درهم بمعنی حسبی درهم (۳) اسم فعل بمعنی الامر چې انته او دلته په معنی د حسب سره دی، او یا په معنی د انته

سره دی یعنی دا دریم قسم متصل دی او ته منع شه د انفصال د ضمیر مجرور نه او دا فاء زائده راغلی ده لپاره د تزین او تحسین د کلمه د قط.

**الاول ضربت وضربت الی ضربن و ضربن الخ: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د انواع خمسه د مضمر نه اجمالاً نو شروع ئې وکړه په بیان د انواع خمسه د مضمر کې تفصیلاً.

**ترجمه: الاول** نوع اوله د انواع خمسه ؤ نه چې هغه ضمیر مرفوع متصل دی ضربت وضربت ضمیر د ضربتُ او ضربتَ وغیرهما دی داسې ضربت چې منتهی دی ضربن ته او داسې ضربت چې منتهی دی ضربن ته او صرفیان د گردان شروع کوی د غائب نه ځکه هغه لحاظ د مجردو کوی او نحویان گردان شروع کوی د متکلم نه ځکه دوی لحاظ د اعرف کوی او متکلم اعرف دی د غائب او محاطب نه نو ځکه مصنف گردان شروع کړي دی د صیغی د متکلم نه.

**تشریح: سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض دمصنف د دې عبارت نه څه دی؟

**جواب:** ربط د دې عبارت د ماقبل سره دا دی چې مخکې مصنف بیان د انواع خمسه وکړو اجمالاً او اوس ئې بیان کوی تفصیلاً په اعتبار د مصداق سره او په بیان د ربط سره غرض د مصنف هم معلوم شو چې هغه بیان د انواع خمسه ؤ د ضمیر دی باعتبار المصداق تفصیلاً.

**سوال: الاول** په اعتبار د موصوف محذوف سره چې النوع دی مبتدا ده مراد د دې نه ضمیر مرفوع متصل دی او ضربت وضربت ورلره خبر دی او خبر محمول وی په مبتدا باندې او دلته حمل نه دی صحیح ځکه ضربتَ او ضربتُ خو ضمیر مرفوع متصل ندی بلکه جمله ده او مرکب تام دی؟

**جواب:** ضَربت او ضُربت محمول دی په دی مبتدا باندې په اعتبار د حذف د مضاف سره نو کیږي تقدیر د عبارت دارنگې چې والاول ضمیر ضَربت وضُربت.

(۲): یا جواب دا دی چې ستا دا اعتراض به هله واردیدو چې دا عبارت د مصنف بنا وی په حقیقة باندې لیکن دا بنا دی په مجاز باندې په دې شان سره چې ذکر د کل دی چې ضَربت او ضُربت دی او مراد ترینه جز دې چې ضمیر د ضَربت او ضُربت دی.

**سوال:** الی ضربن وضُربن جار مجرور دی او د جار مجرور لپاره لابدي وی د اعراب محلی نه د دې اعراب محلی څه شئ دی؟ **جواب:** اعراب محلی د دې جر دی بنا بر نعتیت په دې شان سره چې دا جار مجرور په اعتبار د متعلق محذوف سره صفت واقع شوی دی د ضَربت او ضُربت لپاره نو تقدیر د عبارت دا شو چې النوع الاول ضمیر ضَربت وضُربت المنتهین الی ضَربن و ضُربن.

**سوال:** الی په دوه قسمه دی (۱) یو الی راځي لپاره د مدد حکم په دې شان سره چې دا الی د ماقبل حکم رسوی مدخول خپل ته او دا غایه داخله نه وي په ماقبل کې د هغې علامه دا ده چې سر د کلام به متناول نه وي مدخول د الی ته نحو قوله تعالی ﴿ أَتِمُّوا الصِّيَامَ إِلَى اللَّيْلِ ﴾ (۲) قسم راځي د اسقاط د ماوراء لپاره په دې شان سره چې دا الی د ماقبل حکم راکاږي مدخول خپل ته او دا مدخول د الی داخل وی په ماقبل حکم کې او د مدخول نه علاوه د نورو نه دا حکم ساقط کوی او د هغې علامه

دا ده چې سر د کلام به متناول وی مدخول د الی لره نحو قوله تعالی ﴿ فَاغْسِلُوا وُجُوهَكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ إِلَى الْمَرَافِقِ ﴾ دلته الی د اسقاط د ماوراء لپاره دی ځکه دا حکم چې غسل دی دائې راخکلی دی مدخول ته چې مرافق دی او د هغه نه علاوه د نورو نه ساقط دی نو دلته کوم یو الی وائې یو هم نه صحیح کیږي که ته وائې چې د اسقاط د ماوراء لپاره دی نو دا ندی صحیح ځکه چې هلته سر د کلام متناول وی مدخول د الی لره او د لته ضَربت او ضُربت متناول نه دی ضَربن او ضُربن لره او که ته وائې چې الی د مدد حکم لپاره دی نو هلته خو مدخول د الی داخل نوی په ماقبل کې او دلته خو داخل دی؟

**جواب:** الی په دی مقام کې د اسقاط د ماوراء لپاره دی چې دا ضمیر مرفوع متصل د ضَربت او ضُربت نه واخله د ضَربن او ضُربن پورې دی او د هغه نه اخوا نشته او که ته وائې چې سر د کلام متناول نه دی مابعد لره نو جواب دا دی چې دا عبارت په حذف د معطوف سره دی ای الاول ضَربت و ضُربت وغیرهما الی ضَربن و ضُربن نو دا غیرهما متناول دی ضَربن او ضُربن ته.

**سوال:** صرفیان گردان د غائب نه شروع کوی نو تا د متکلم نه ولې شروع کړو؟

**جواب:** صرفیان گردان د غائب نه کوی ځکه هغه لحاظ د مجردو کوی ځکه غائب مجرد دی په نسبت سره متکلم او مخاطب ته او نحویان لحاظ د اعرف کوی او اعرف متکلم دی نو ځکه شروع د متکلم نه کوی **والثانی** او نوع ثانی د انواع خمسه ؤ نه چې ضمیر مرفوع منفصل دی **انا** انا دی **الی هن** تر هن پورې او صورة د گردان دا دی انا، نحن، انت، انتما، انتم، انتِ، انتما، انتن، هو، هما، هم، هی، هُما، هُن، بیا په دې انتَ، انتما، انتم، کې خلاف دی.

(۱): **بصریان وائي** ضمیر فقط ان دی او ت، تما، تم حروف دی متصل شوی دی په اخر د ضمیر پورې لپاره د دې چې دلالت وکړي په احوالو د مخاطب باندې چې یو دی که دوه که درې دی او مذکر دی که مؤنث دی.

(۲): **او کوفیان وائي** چې ضمیر دا ت، تما، تم دی او ان ذکر شوی دی لپاره د دې چې د دې ضمیر اعتماد پرې راشی او تلفظ پرې صحیح شي.

(۳): **مذهب د بعض دی** هغه وائي چې نه یوازې ان ضمیر دی او نه یوازې ت ضمیر دی بلکه دا مجموعه ضمیر دی **والثالث ضربنی الی ضربهن و اننی الی انهن** نوع ثالثه د انواع خمسه ؤ نه چې ضمیر منصوب متصل دی ضمیر د ضربنی دی تر ضربهن پورې کیږي گردان دا رنگې ضربنی، ضربنا، ضربك، ضربكما، ضربكم، ضربكِ، ضربكما، ضربكن، ضربه، ضربهما، ضربهم، ضربها، ضربهما، ضربهن، او بل ضمیر د اننی دی داسې اننی چې منتهی دی د انهن پورې نو کیږي گردان دا رنگې، اننی، اننا، انك، انكما، انكم، انكِ، انكما، انكن، انه، انهما، انهم، انها، انهما، انهن.

**سوال:** د ضمیر مرفوع متصل لپاره ئې مثال یو ذکر کړو او د منصوب متصل لپاره ئې مثالونه دوه ذکر کړه دا ولې؟ **جواب:** تعدد د مثال بنا دی په تعدد د مثمل باندې په دې شان سره چې ضمیر منصوب

متصل دوه قسم دی (۱) یو متصل بالفعل دی لکه ضربنی الخ، (۲) متصل بالحرف دی لکه اننی الخ شو په خلاف د ضمیر مرفوع متصل نه چې هغه متصل کيږي په فعل پورې نه په اسم او حرف پورې.
**والرابع ایای الی ایاهن:** او نوع رابع د انواع خمسه د ضمیر نه چې منصوب منفصل دی ایای دی داسې ایای چې منتهی دی تر ایاهن پورې کیږي گردان دا رنگې، ایای، ایانا، ایاك، ایاكما، ایاكم، ایاكِ، ایاكما، ایاكن، ایاه، ایاهما، ایاهم، ایاها، ایاهما، ایاهن، او دا ایای ضمیر منصوب منفصل دی لکه راغلی دی په دی قول د الله تعالی کې ﴿ وَإِيَّايَ فَارْهَبُونِ ﴾ او په دې ایای کې مذاهب اربعه دی.
(۱) **یو مذهب د ابوالحسن بن کیسان او د کوفیانو دی** چې دا ي، ك، ه، ضمائر دی او دا ایا معتمد علیه د دې ضمیر دی لپاره د صحت د تلفظ ذکر شوی دی.
(۲) **مذهب بصریانو دی** بالعکس دی چې ایا ضمیر دی او ي، ك، ه، حروف دی او متصل کيږي په اخیر د دې ضمیر پورې لپاره د دې چې دلالت وکړي په حالت د مفعول باندې (۳) مذهب د خلیل دی هغه وائي چې دا ایا مضاف دی او ي، او کاف، او ها، مضاف الیه دی لانه لا یفید معنی بانفراده ولا یقع معرفة بخلاف غیره من الضمائر، او دلیل د هغه لپاره دا قول د شاعر دی!

اذا بلغ الرجل الستین ایاه و ایا الشواب

دلته ایا مضاف دی الشواب ته نو معلومه شوه چې دلته هم ایا مضاف دی او يَ مضاف الیه دی دویم قول د خلیل دا دی چې دا مظهر دی او قائم شویدی په مقام د مضمر کې او بوالعباس مبرد وائي انه اسم مبهم اضیف للتخصیص ابو اسحق الزجاج ویلې دي انه اسم مظهر خص بالاضافة الی سائر المضمرات مثل الوحد فانهم (۴) مذهب دا دی چې دا مجموعه ضمیر دی **والخامس** او نوع خامسه د انواع خمسه د دې ضمیر نه چې مجرور متصل دی غلامی ولې ضمیر د غلامی او لی دی **الی غلامهن ولهن** د اسې غلامی چې منتهی دی غلامهن ته او داسې لی چې منتهی دی لهن ته او صورة د گردان ئې دا دی، غلامی، غلامنا، غلامك، غلامكما، غلامكم، غلامكِ، غلامكما، غلامكن، غلامه، غلامهما، غُلامهم، غُلامها، غُلامهما، غلامهن، او د دې بل گردان داسې کیږي، لی، لنا، لك، لكما، لكم، لكِ، لكما، لكن، له، لهما، لهم، لها، لهما، لهن.
**سوال:** مصنف د مرفوع متصل او منفصل او منصوب متصل او منفصل او مجرور متصل لپاره مثالونه ذکر کړه نو د مجرور منفصل لپاره ئې مثال ولې ذکر نه کړو؟ **جواب:** مثال د هغه شیٔ لپاره ذکر کولې شي چې هغه موجود وی په خارج کې او ضمیر مجرور منفصل درخارج وجود ندارد.
**سوال:** مثال ذکر کولې شي لپاره د وضاحت د ممثل او وضاحت د ممثل راځي په مثال واحد سره نو دوه مثالونه ئې ولې ذکر کړه؟
**جواب:** تعدد د مثال بنا دی په تعدد د ممثل باندې په دې شان سره چې ضمیر مجرور متصل دوه قسم دی (۱) متصل بالاسم نحو غلامی (۲) متصل بالحرف دی نحو لی، لنا، الخ.
**پس زده کړه** دا خبره چې ضمیر متصل په اعتبار د اعراب محلی سره درې قسمه دی.

(۱) **مختص بالرفع** دا پنځه ضمائر دی (۱) التاء نحو قمت (۲) الالف نحو قاما (۳) الواو نحو قاموا (۴) النون نحو قمن (۵) یا ضمیر د مؤنث مخاطب نحو تضربین خلافا للاخفش والمازنی (۲) **مشترك بين النصب والجر**، دا درې دی (۱) یاء المتکلم نحو ربی اکرمنی (۲) کاف الخطاب نحو ما ودعك ربك (۳) یاء الغائب نحو قال له صاحبه وهو یحاوره.

(۳) **مشترك بين الرفع والنصب والجر**، دا صرف یو ضمیر دی نا نحو قوله تعالی ﴿ رَبَّنَآ إِنَّنَا سَمِعْنَا ﴾ دا هله چې ضمیر متصل واحد المعنی واخلی والا مشترك بین الاحوال الثلاثه درې دی (۱) نا کما مر (۲) هم نحو هم قائمون، لهم، اکرمتهم (۳) یاء ضمیری نحو اضربی اکرمنی زید، ﴿ لَكُمْ دِينُكُمْ وَلِيَ دِينِ ﴾، دا یاء اګر چې ضمیر متصل دی لیکن واحد المعنی نه دی په احوال ثلاثه کې ځکه د اضربی د ایاء ضمیر د مخاطب دی او په دی نورو کې ضمیر د متکلم دی او **هم** اګر چې واحد المعنی دی لیکن متصل ندی په ټولو صورتونو کې او دا قاعده ده چې کله اقسام مستعمله خارجي موافق وی د اقسام عقلیه احتمالیه ؤ سره لکه کلمه شوه چې هغې کې احتمالات عقلیه هم درې دی او اقسام مستعمله هم درې دی، او کله اقسام مستعمله خارجي موافق نوي د اقسامو عقلیو احتمالیه ؤ سره لکه ضمائر شو ځکه د عقل تقاضه دا ده چې دهر یو نوع ضمیر لپاره دی اتلس (۱۸) صیغې راشی موافق د عدد د فاعل ځکه فاعل درې قسمه دی (۱) متکلم (۲) مخاطب (۳) غائب، د هر یو لپاره دی شپږ شپږ صیغې راشی (۱) واحد مذکر لپاره (۲) تثنیه مذکر (۳) جمع مذکر (۴) واحده مؤنث (۵) تثنیه مؤنث (۶) جمع مؤنث، لیکن دوی د متکلم لپاره دوه صیغې وضع کړې دی چې هغه دلالت کوی په شپږو معانیو باندې ځکه متکلم غالبا روبرو حبری کوی دفع د التباس راځي او کله چې متکلم په پرده کې خبري کوی نو امتیاز دمذکر او مؤنث په اواز سره کولی شي دارنګې مخاطب غالبا روبرو د متکلم سره وی لیکن کله کله په پرده کې وی بیا امتیاز نه شي کولی د مذکر او مؤنث نه ځکه په دی کې صرف یوه صیغه مشترکه وګرځولې شوه او ورکړې شو غائب لره حکم د مخاطب په اشتراك د صیغه واحد کې چې الف ضمیری مشترك وګرځولی شي په مابین د تثنیه مؤنث، او تثنیه مذکر کې پس وګرځیدی ټولې صیغې دولس د اتلس معنی ګانو لپاره.

**سوال:** الف د تثنیه لپاره او واو د جمع لپاره او تا د مخاطب لپاره ولې وګرځول؟

**جواب:** د دې لپاره وجوه او مناسبات بیان کړې دی صاحب د مراح الارواح هلته اوګوره دلته ئې مونږ نه بیانوو د دې لپاره چې طوالت د کلام رانه شي.

**سوال:** په ضمیر د ضَرَبْنَا او ضمیر د ضَرَبَنَا کې څه فرق دی؟

**جواب:** دا نا په ضربنا کې مرفوع محلاً دی بنابر فاعلیت او نا په ضربنا کې منصوب محلاً دی بنا بر مفعول به او فاعل به ورله ضمیر مستتر وی او یا به اسم ظاهر وی، لهذا د ضربنا معنی دا ده چې مونږ وهلی دی بل څوك، او ضربنا معنی دا ده چې مونږه وهلی یو بل چا. لهذا په دی حدیث د نبی

ﷺ کې به عبارت داسې وائي چې الحمد لله الذی اطعمنا وسقانا، او اطعمَنا ويل غلط دی او دارنګې وائي به په خطبه د جمعه کې و نَفَعَنا بالايات والذکر الحکيم، او ونَفَعْنا ويل غلط دی.

**فالمرفوع المتصل خاصة يستتر فی الماضی الخ: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د تقسيم د ضمير نه نو شروع ئې وکړه په بيان د احکامو د ضمير کې او يو حکم د احکامو د ضمير نه استتار دی نووی ويل **فالمرفوع الخ** (۲) هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د تقسيم د مطلق ضمير نه نو شروع ئې وکړه په بيان د تقسيم د يو خاص ضمير کې چې ضمير مرفوع متصل دی نو دا ضمير مرفوع متصل دوه قسمه دی، بارز مستتر.

**ترجمه: فالمرفوع المتصل** ضمير مرفوع متصل داسې ضمير مرفوع چې متصل وی په عامل خپل پورې **يستتر** دا مستتر کيږي **خاصة** په حال کون د دې ضمير مرفوع متصل کې چې دا خاص دی په استتار پورې په دې شان سره چې دا استتار خاص دی په دې ضمير مرفوع متصل پورې او مجاوز نه دی غير ته (۲) يا ضمير مرفوع متصل مستتر کيږي په فعل ماضی کې او زه خاص کوم دا استتار د ضمير په ضمير مرفوع متصل پورې په خاص کولو سره (۳) يا زه خاص کوم دا استتار د ضمير مرفوع متصل په حال کون زما کې چې زه خاص کونکی يم **للغائب والغائبة** داسې ماضی چې کائن وی د مذکر غائب لپاره او د واحد مؤنث غائب لپاره په دی شرط سره چې د دې فعل ماضی مذکر غائب او واحدی مؤنثی غائبی اسناد نوي شوی اسم ظاهر ته نو دا مستتر کيږي په دې کې جوازً، مثال د اول لکه زيد ضرب او مثال د ثانی لکه هند ضربت.

**تشريح: سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟

**جواب:** ربط د ماقبل سره دا دی چې مخکې بيان د اقسامو د ضمير وو او اوس احکام د ضمير بيانوی او په دې بيان د ربط سره غرض د مصنف هم معلوم شو چې بيان د حکم د ضمير دی چې استتار دی (۲) يا ربط دا دی چې مخکې ئې تقسيم وکړو په مطلق ضمير کې او اوس تقسيم کوی په يو نوع د ضمير کې چې ضمير مرفوع متصل دی قسمين ته چې بارز او مستتر دی.

**سوال:** المرفوع صيغه د اسم مفعول ده صفت دی د دې موصوف راته وښايه؟

**جواب:** المرفوع صفت دی د موصوف محذوف چې الضمير دی او الضمير مقدر راوباسم په قرينه د مقام سره، ضمير سره احتراز راغلی د اسم ظاهر نه ځکه اسم ظاهر نه مستتر کيږي او استتار خصوصيت د ضمير دی او په دې سره يو بل اعتراض هم دفع شو.

**سوال:** ته وائي چې مرفوع متصل مستتر کيږي په ماضی کې نو قام زيد کې خو دا زيد اسم دی او مرفوع دی او متصل دی او د دې استتار خو جائز نه دی په استعمال د کلام د عربو کې؟

**جواب:** دا اعتراض به هله وارديدو چې دا المرفوع صفت وی د الاسم محذوفه لپاره ليکن موصوف د دې مقدر دی الضمير په قرينې د مقام سره او **مرفوع** چې ئې وويل نو احتراز ئې وکړو د ضمير منصوب او د مجرور نه ځکه ضمير منصوب مطلقاً خوا که متصل وی او که منفصل وی او ضمير

مجرور متصل نه مستتر کیږي په استعمال د کلام د عربو کې او متصل سره ئې احتراز وکړو د
مرفوع منفصل نه دا هم نه مستتر کیږي او استتار خصوصیت د مرفوع متصل دی.
**سوال:** استتار خصوصیت د ضمیر مرفوع متصل ولې دی منصوب او مجرور او مرفوع منفصل ولې
نه مستتر کیږي؟ **جواب:** ځکه چې مرفوع متصل جز دی د فعل نه لفظاً او معناً هر چې دی معناً نو
ځکه چې فعل نه موجود یږي بې دفاعل نه په وجودات ثلاثه ؤ کې چې وجود ذهني وجود خارجي او
وجود لفظي دی او هر چې دی لفظاً نو د وجې د سکون دلام کلمې د فعل ماضي نه په وقت د اتصال د
ضمیر مرفوع متصل کې لپاره د دې چې لازم نشي توالي د حرکات اربعه فیما هو کالکلمة الواحدة،
اوس هر کله چې دا جز شو نو که مستتر شي نو دا مابقي دلالت کوی په ما القی باندې په خلاف د دې
نورونه چې هغه جز نه دی نو که مستتر شي نو ما بقي دلالت نه کوی په هغې باندې
**سوال:** ته وائي چې استتار خوصیت د مرفوع متصل دی دا قاعده ستا منقوضه شوه په زید ضَرَبَ سره
په دې کې ضمیر مستتر دی چې مونږ ترې تعبیر کوو په هو سره نو هو خو ضمیر مرفوع منفصل دی؟
**جواب:** کوم ضمیر چې مستتر دی په ضرب کې هغه ضمیر مرفوع متصل دی هغه ما یتلفظ به
الانسان ندی خو د هغې نه مونږه تعبیر کوو په هو سره مجازاً لپاره د جریان د تعلیم او تعلم
**سوال:** فالمرفوع المتصل موصوف صفت مبتدا ده او یستتر جمله ئې خبر دی او خاصة منصوب
دی او منصوبات دولس دی دا کم یو قسم دی ولې منصوب دی؟ **جواب:** دا منصوب دی بنا بر
حالیت او حال دی د ضمیر د یستتر نه چې راجع دی ضمیر مرفوع متصل ته.
**سوال:** حال مطابق وی د ذوالحال سره په تذکیر او تانیث کې او دلته خو مطابقت نشته ځکه
ذوالحال لمذکر دی او خاصة مؤنث دی؟ **جواب:** دا اعتراض به هله راتلو چې دا تا د تانیث لپاره
وی، لیکن دلته دا تا د مبالغې لپاره ده (۲): یا د اخاصة منصوب دی بنابر مفعول مطلق د فعل
مقدر لپاره چې اخص دی ای اخص هذا الحکم بالضمیر المرفوع المتصل خاصة.
**سوال:** خاصة ته منصوب ویل بنابر مفعول مطلق نه دی صحیح ځکه چې مفعول مطلق مصدر وی او
دا اسم فاعل دی اسم فاعل چرته مفعول مطلق ندی واقع شوی؟
**جواب:** هر ځای چې اسم په وزن د فاعلة راشي نو هغه اسم فاعل نوی بلکه کله کله مصدر هم راځي په
وزن د فاعلة باندې په استعمال د کلام د عربو کې لکه عافیة، عاقبة، باقیة، کاذبة شو نو دغه شان
خاصة هم مصدر دی په معنی د خصوص باندې (۳) یادا خاصة منصوب دی بنابر حالیة او عامل د
دې سره د ذوالحال نه حذف شوی دی چې اخص دی او دیته دوی په اصطلاح کې حال موکده وائي
**فالماضي: سوال:** ماضي صفت دی تقاضه د موصوف کوی او موصوف د دې حذف شوی دی چې
الزمان دی نو معنی د دې دا شوه چې ضمیر مرفوع متصل مستتر کیږي په زمانه د ماضي کې او
ضمیر لکه چې څنګه مستتر کیږي په زمانه د ماضي کې دارنګې مستتر کیږي په زمانه د حال او

استقبال كې هم مثال لكه پرون ما زيد قام ويلې دې په استتار د ضمير سره نو اوس هم ما لپاره جائز دي چې زيد قام ووايم او زمانه اينده كې هم جائز دي چې زيد قام ووايم؟

**جواب:** دا اعتراض به ستا هله وارديدو چې دلته الماضي صفت وى لپاره د موصوف محذوف چې زمان دي بلكه دا صفت دي لپاره د موصوف محذوف چې فعل دى نو كيږي تقدير د عبارت دارنگې فالمرفوع المتصل يستتر في الفعل الماضي.

**سوال:** **للغائب** جار مجرور دى او د جار مجرور لپاره لابدي وى د اعراب محلي نه نو د دې اعراب محلي څه دى او دا په تركيب كې څه واقع شوى دى؟

**جواب:** دا په اعتبار د متعلق محذوف سره حال واقع شوى دى د الماضي نه ځكه دا قاعده ده چې جار مجرور چې واقع شي وروستو د نكرى نه نو هغه باعتبار المتعلق صفت واقع كولې شي او چې واقع شي وروستو د معرفى نه نو هغه باعتبار المتعلق حال واقع كولي شي ځكه كه صفت ئې واقع كړو نو تكثير في الحذف راځي او كه حال ئې واقع كړو نو تقليل في الحذف راځي او تقليل في الحذف اولى دى د تكثير في الحذف نه.

**سوال:** دا ضمير چې په واحد او واحده كې مستتر كيږي نو په تثنيه او جمع كې ولې نه مستتر كيږي؟

**جواب:** په تثنيه او جمع كې بارز راځي نه مستتر لپاره د دې چې لازم نه شي التباس د تثنيه او جمع د مفرد سره په حالت داستتار كې.

**سوال:** ته وائي چې ضمير مستتر كيږي په واحد مذكر غائب او غائبه كې دا قاعده ستا منقوضه شوه په ضرب زيداً او تضرب هند سره دلته خو ضمير نه دى مستتر؟

**جواب:** دا ضمير مستتر كيږي په غائب او غائبه كې خو په دى شرط سره چې اسم ظاهر د دې لپاره فاعل نه وو واقع شوى او كه اسم ظاهر ورله فاعل واقع شوى وو نو بيا نه مستتر كيږي لپاره د دې چې لازم نه شي تعدد د فاعل، **والمضارع المتكلم مطلقاً** دا عطف دى په الماضي باندې او قاعده د عطف دا ده چې ماقبل د معطوف عليه معاد وى د معطوف سره نو كيږي تقدير د عبارت دارنگې ويستتر في الفعل المضارع.

**ترجمه:** او دارنگې دا ضمير مرفوع متصل مستتر كيږي په فعل مضارع كې په حال كون د دې مضارع كې چې د متكلم لپاره ئې واخلى **مطلقاً** برا بره خبره ده كه د واحد متكلم لپاره وى لكه اضرب شو او كه د متكلم مع الغير لپاره وى لكه نضربُ شو **والمخاطب** او دارنگې مستتر كيږي دا ضمير په واحد مذكر مخاطب فعل مضارع كې لكه تضرب شو، په دى درې وارو صيغو د مضارع كې مستتر كيږي وجوباً **والغائب** او په واحد مذكر غائب فعل مضارع كې لكه يضربُ **والغائبة** او مضارع چې واحد مؤنث غائبه وى لكه تضرب شوه په دى شرط سره چې د دې اسناد اسم ظاهر ته نه وو شوى او كه شوى وو نو بيا نه مستتر كيږي لپاره د دې چې لازم نه شي تعدد د فاعل او په دى دوه صيغو كې مستتر كيږي جوازً **اوفي الصفة مطلقاً** او دا ضمير مرفوع متصل مستتر كيږي په

صفت کې جوازاً په دی شرط سره چې د دې لپاره اسم ظاهر فاعل نه وو واقع شوی **مطلقا** په حال کون د دې صفت کې چې دا مطلق واخلی یا په استتار مطلق سره یا په مطلق زمانه کې په دی شان سره چې دا صفت عام دی (۱) که اسم فاعل وی که اسم مفعول وی، که صفت مشبه وی، او که اسم تفضیل وی (۲) که واحد وی، که تثنیه وی، او که جمع وی (۳) او مذکر وی، که مؤنث وی.

**سوال:** مطلقاً منصوب دی او منصوبات دولس دی دا کوم یو دی د هغې نه؟ **جواب:** (۱): دا منصوب دی بنابر مفعول مطلق د یستتر لپاره (۲): یا منصوب دی بنابر مفعول فیه د یستتر لپاره.

**سوال:** مطلقاً منصوب بنابر مفعول مطلق هم ندی صحیح او بنابر مفعول فیه هم ندی صحیح ځکه مفعول مطلق مصدر دفعل مذکور وی او دا مصدر د فعل مذکور ندی او مفعول فیه زمان یا مکان وی او دا نه زمان دی او نه مکان دی؟

**جواب:** دا مفعول مطلق دی په اعتبار د موصوف محذوف سره ای استتاراً مطلقاً او یا مفعول فیه دی په اعتبار د موصوف محذوف سره ای زماناً مطلقاً (۳) یا دا مطلقاً منصوب دی بنابر حالیة د الصفة نه او دا مفعول به غیر صریحی دی د یستتر لپاره په واسطه د فی سره

**سوال:** په حال او ذوالحال کې مطابقت شرط دی په تذکیر او تانیث کې او دلته مطابقت نشته ځکه چې مطلقاً مذکر دی او صفة مؤنث دی؟

**جواب:** دا حال واقع شوی دی د الصفة نه په تاویل د وصف سره او وصف مذکر دی.

**سوال:** ته وائي چې ضمیر مرفوع مستتر کیږي په صفت کې مطلقاً دا قاعده ستا منقوضه شوه په دی قول د الله تعالی کې ﴿أَرَاغِبٌ أَنتَ﴾ دلته دا انت ضمیر مستتر نه دی بلکه منفصل دی دارنګې دا قاعده منقوضه شوه په قایم زید سره دلته په قائم کې ضمیر مستتر نشته ځکه چې فاعل ورله اسم ظاهر واقع شوی دی؟ **جواب:** زه وایم چې دا مستتر کیږي په صفت کې مطلقاً په دې شرط سره چې د دې صفت لپاره اسم ظاهر فاعل نوي واقع شوی او که اسم ظاهر فاعل واقع شوی وو نو استتار نه دی جائز او دا اسم ظاهر عام دی که حقیقة وي او که حکماً وی.

**سوال:** ته وائي چې ضمیر مستتر کیږي په صفت کې مطلقاً یعنی که واحد وی که تثنیه وی او که جمع وی نو په الزیدآن ضاربان او الذیدون ضاربون کې خو نه دی مستتر بلکه بارز دی چې الف او واو دی؟

**جواب:** په ضاربان کې الف ضمیری ندی بلکه علامه د جمع ده او ضمیر پکې مستتر دی هما دارنګې په ضاربون کې دا واو ضمیری ندی بلکه دا علامه د تثنیه ده او ضمیر پکې مستتر دی چې هم دی اوس دا الف او واو ضمیری ولې ندی نو ځکه چې ضمائر د قبیلې د مبنیات نه دی او حکم د مبني دا دی چې ان لایختلف اخره باختلاف العوامل او دلته مختلف کیږي په حالت رفعی کې ضاربان ویل کیږي، او په حالت نصبی او جری کې ضاربین ویلی کیږي، نو معلومه شوه چې دا الف او واو ضمیری نه دی.

**سوال:** صفت د نحاتو په اصطلاح کې څه ته وائي او مصداقات د صفت کوم کوم دی؟

**جواب:** صفت د نحاتو په اصطلاح کې هغه اسم ته وائي چې دلالت کوی په ذات مبهمه باندې چې معتبر وی ورسره يو صفت د صفات نه او مصداقونه ئې څلور دی، اسم فاعل، اسم مفعول، صفت مشبه، اسم تفضيل، او مصدر ته عند النحات صفت نه وائي ځکه مصدر دلالت په ذات نه کوی بلکه صرف په وصف باندې دلالت کوی او مبهمه سره اعلام خارج شو او دا قيد چې ذکر شو چې معتبر وی ورسره يو صفت د صفات نه نو په دې سره نکره او اسم جنس خارج شو لکه رجل شو.

**پس زده کړه دا خبره** چې استتار د ضمير دوه قسمه دی (۱) جوازاً (۲) وجوباً ضمير جوازاً مستتر کيږي په مواضع خمسه ؤ کې (۱) واحد مذکر غائب فعل ماضی (۲) واحده مؤنثه غائبه فعل ماضی (۳) واحد مذکر غائب فعل مضارع (۴) واحده مؤنثه غائبه فعل مضارع (۵) صفت مطلقاً او وجوباً هم مستتر کيږي په مواضع خمسه ؤ کې (۱) واحد متکلم فعل مضارع (۲) متکلم مع الغير فعل مضارع (۳) واحد مذکر مخاطب فعل مضارع (۴) امر حاضر معلوم (۵) اسم فعل بمعنی الامر، نو ټول مواضع د استتار د ضمير لس شو.

**سوال:** دا به مونږه د څه نه معلومه وو چې دا استتار د ضمير واجب دی که جائز دی؟

**جواب:** دا عامل به خالی نه وی يا به ورله اسم ظاهر فاعل راځي په استعمال د کلام د عربو کې او يا به نه راځي که راتلو نو بيا استتار د ضمير جائز دی په وقت د عدم د فاعل اسم ظاهر کې او که اسم ظاهر ورله فاعل نه راتلو نو واجب دی لهذا واحد متکلم فعل مضارع متکلم مع الغير فعل مضارع الخ، پدې پنځه ځايونو کې استتار واجب ځکه دی چې د دې لپاره اسم ظاهر فاعل نه شي واقع کيدی.

**سوال:** د دې لپاره اسم ظاهر فاعل ولې نه راځي؟ **جواب:** ځکه چې د متکلم لپاره فاعل متکلم وی او د مخاطب لپاره فاعل مخاطب وی او اسم ظاهر د قبيلې د غيبوبات نه دی د متکلم او مخاطب لپاره فاعل نه شي واقع کيدی. **ولايسوغ المنفصل الا لتعذر المتصل. ربط.** هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د يو حکم د ضمير نه چې استتار وو نو شروع ئې وکړه په بل حکم د ضمير کې چې انفصال د ضمير دی د عامل خپل نه نو وی ويل چې ولا يسوغ المنفصل الخ.

**ترجمه:** جائز نه دی استعمال د ضمير منفصل په کلام د عربو کې يا جائز نه دی اتيان د متکلم په ضمير منفصل باندې د وجې د يو شئ نه **الا** مګر جائز دی **لتعذر المتصل** د وجې د تعذر د ضمير متصل نه (۲) جائز نه دی استعمال د ضمير منفصل فی جميع الاوقات الاوقت تعذر المتصل ځکه وضع د ضمائرو شوې ده لپاره د ايجاز او اختصار او ضمير متصل او جز او اخصر دی د منفصل نه لهذا تر څو پورې چې اتصال د ضمير ممکن وو نو جائز نه دی انفصال.

**تشريح: سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟

**جواب:** ربط دا دی چې مصنف شروع کړې وه په احکامو د ضمائرو کې نو يو حکم ئې بيان کړو چه استتار د ضمير وو نو اوس بل حکم بيانوی چې انفصال د ضمير دی او غرض د مصنف هم معلوم شو چې بيان د بل حکم د ضمير دی.

**سوال:** يسوغ مشتق دی د سوغ نه او سوغ ویلی کیږي شراب په مرئي کې تیرولو ته کما فی قول الشاعر:
فساغ لی الشراب وکنت قبلاً اکاد اغص بالماء الفرات
نو اسناد د یسوغ ضمیر منفصل ته نه دی صحیح ځکه چې د سوغ په دغه معنی سره اسناد کیږي انسان ته او ضمیر خو انسان نه دی؟

**جواب:** دلته د سوغ د غه معنی نده مراد بلکه لایسوغ په معنی د لا یجوز سره دی.

**سوال:** لایسوغ چې په معنی د لا یجوز سره شي د دې نسبت بیا هم نه دی صحیح منفصل ته ځکه د دې معنی دا ده چې نه دی جائز منفصل او دا معنی خو نده صحیح؟ **جواب:** المنفصل فاعل واقع شوی دی د لایسوغ لپاره په اعتبار د حذف د مضاف سره نو کیږي معنی دارنګې چې نه دی جائز اتیان د متکلم په ضمیر منفصل باندې او نه دی جائز استعمال د ضمیر منفصل.

**سوال:** دا الااستثنائیه دی او تعذر المتصل مستثنی دی او دا تقاضه د مستثنی منه کوی او مستثنی منه د دې لپاره المنفصل دی نو استثناء د دلیل راغله د مدعی نه او استثناء د اسم راغله د فعل نه او دا باطله ده؟ **جواب:** دا اعتراض به هله راتلو چې د دې مستثنی منه مذکور وی، لیکن دا مستثنی مفرغه ده مستثنی منه ئې محذوف ده او په تقدیر د مستثنی منه کې دوه مذهبه دی بعض وائي چې مستثنی منه محذوف دی لاجل شئ نو تقدیر دارنګې دی چې ولایسوغ المنفصل لاجل شئ الالتعذر المتصل، ځکه دا لام تعلیلی دی او مستثنی منه به را اوباسی د جنس دمذکور نه (٢) او بعض وائي چې مستثنی منه محذوف دی فی جمیع الاوقات ځکه په لتعذر المتصل کې لام وقتیه دی نو کیږي تقدیر دارنګې چې ولایسوغ المنفصل فی جمیع الاوقات الاوقت تعذر المتصل. او دا اول مذهب غوره دی د دویم نه ځکه لام چې راځي تعلیلی نو دا د دې معنی موضوع له ده او لام چې وقتیه راځي دا د دې معنی مجازی ده، او قانون دا دی چې مجاز ته صیرورت کولي شي عند تعذر الحقیقة او دلته خو معنی حقیقی متعذره نده نو صیرورت مجاز ته باطل دی.

**سوال:** په وقت د عدم تعذر د ضمیر متصل کې انفصال د ضمیر ولې ممتنع دی؟

**جواب:** ځکه چې ضمائر واضع وضع کړي دی لپاره د ایجاز او اختصار او ضمیر متصل اوجز او احضر دی د منفصل نه نو تر څو پورې چې استعمال د ضمیر متصل ممکن وو نو نه دی جائز استعمال د ضمیر منفصل.

**سوال:** تعذر د اتصال د ضمیر په کومو کومو ځایونو کې راځي؟

**جواب: وذلك بالتقديم على عامله:** دا تعذر د متصل کائن دی د وجې د تقدیم د ضمیرنه په عامل خپل باندې مثال لکه ایاك ضربت شو بل مثال لکه ایاك نعبد وایاك نستعین دلته ضمیر منفصل مستعمل شوی دی د وجې د تعذر د اتصال نه او دا تعذر د اتصال راغلي دی د وجې د تقدیم د ضمیر نه په عامل باندې ځکه ضمیر چې مقدم شي په عامل باندې نو هلته ممکن نه دی اتصال د ضمیر په عامل پورې ځکه اتصال راځي په اخیر د عامل پورې نه په اول پورې.

(۲): **او بالفصل لغرض**: يا تعذر د متصل كائن دى دوجي ده جدائي نه په مابين د ضمير او د عامل د ضمير كې او دا فصل بين الضمير والعامل راغلي وى لپاره د حصول د يو غرض او مقصد داسې غرض چې بي د فصل نه بين العامل والمعمول نه حاصليږي او دا فصل بين العامل والضمير منافى دى د اتصال د ضمير سره مثال لكه ماضربك الا انا شو، بل مثال نحو قوله تعالى ﴿اَسْكُنْ اَنْتَ وَزَوْجُكَ الْجَنَّةَ﴾ دلته انا منفصل دى د وجې د تعذر د اتصال د ضمير نه او تعذر د اتصال د ضمير راغلى دى د وجې د فصل نه په مينځ د عامل كې چې ضربك دى او معمول يعنى ضمير كې چې انا دى په الاسره او دا فصل راغلي دى د يو غرض لپاره چې حصر دى او دا فصل منافى دى د اتصال سره او كه فصل رانه وړو او ضمير متصل كړو نو بيا فوت كيږي مقصد د متكلم چې حصر دى او په اسكن انت وزجك الجنة كې دا انت ضمير مرفوع منفصل دى او دا انفصال راغلي دى دوجي د تعذر د اتصال نه او دا تعذر د اتصال راغلي دى د وجي د فصل نه بين العامل والضمير، په ضمير مرفوع متصل مستتر سره، او دا فصل راغلي دى لپاره د يو غرض چې تاكيد د ضمير مرفوع متصل دى په منفصل سره لپاره د عطف د اسم په ضمير مرفوع متصل باندې.

(۳): **او بالحذف**: او يا دا تعذر دمتصل كائن دى د وجى د حذف كولو د متكلم نه عامل د ضمير لره ځكه عامل چې حذف كړي شو نو انفصال د ضمير واجب دى د وجى د عدم وجود د مايتصل به نه مثال لكه اياك والشر شو چې په دي كې دا اياك ضمير منفصل مستعمل دى د وجي د تعذر د اتصال نه او تعذر د اتصال راغلي دى د وجي د حذف د عامل نه ځكه چې دا اصل كې اتق نفسك والشر وو هر كله چې عامل حذف شو نو دا نفس ورسره هم حذف شو نو د ضمير متصل نه منفصل وګرځيدو د وجي د عدم وجود د مايتصل به نه.

(۴): **او بكون العامل معنويا**: يا دا تعذر كائن دى د وجې دكيدو د عامل نه معنوى ځكه عامل چې معنوى راشي نو انفصال د ضمير واجب دى دوجي د عدم وجود د مايتصل به نه ځكه ضمير امرلفظى دى او عامل معنوى امر معنوى دى او اتصال د امر لفظى په امر معنوى پورې محال دى مثال لكه انازيد شو دلته انا ضمير منفصل مستعمل دى د وجي د تعذر د اتصال نه او دا تعذر راغلي دى د وجي د كيدو د عامل نه په انا كې عامل معنوى چې ابتداء ده.

(۵): **اوحرفا والضمير مرفوع**: يا دا تعذر د متصل كائن دى د وجي د كيدو د عامل نه حرف په داسې حال كې چې ضمير مرفوع دى، مثال لكه ما انت قائماً شو او دا مثال بنا دى په مذهب د حجازين باندې ځكه د دوى په نزد باندې ما د حروف عاملونه دى اسم مرفوع او خبر منصوب غواړي، انت اسم د ما دى او قائماً يې خبر دى او په دې ما انت قائماً كې دا انت ضمير منفصل مستعمل شوى دى د وجي د تعذر د اتصال نه او دا تعذر د اتصال راغلي دى د وجي د كيدو د عامل نه حرف او ضمير مرفوع دى ځكه اتصال د ضمير په فعل پورې راځي نه په حرف پورې.

**سوال:** د دې اتصال په حرف پورې ولې نه راځي؟ **جواب:** السند عليه التتبع والاستقراء (۲) دا ضمير مرفوع قوي دی او عمده دی او حرف ضعيف دی او اتصال د قوي په ضعيف پورې نه راځي، يا دا حرف ضعيف دی او ضمير مرفوع قوي دی نو لپاره د دې چې مذليت د عمده رانه شي، او والضمير مرفوع سره ئې احتراز وکړو د منصوب او مجرور نه ځکه د هغې اتصال په حرف پورې راځي اول نحو قوله تعالی ﴿ وَإِنَّكَ لَعَلَىٰ خُلُقٍ عَظِيمٍ ﴾ ثاني لکه ﴿ لَكُمْ دِينُكُمْ وَلِيَ دِينِ ﴾ او د بني تميم په نزد باندې ماانت قائما نه دی جائز بلکه ماانت قائم به وائي ځکه عندهم ما غير عامل دی او ضمير منفصل راغلي دی د وجې د کيدو د عامل د دې نه عامل معنوي.

(٦): **او بكونه مسندا اليه صفت جرت على غير من هى له:** يا دا تعذر د متصل کائن دی د وجې د کيدو د دې ضمير نه **مسندا** اسناد کړې شوی او نسبت کړې شوی **اليه** دی ضمير ته **صفة** يو اسم چې هغه دلالت کوی په ذات مبهمه باندې چې معتبر وی ورسره يو صفت د صفات نه داسې صفت **جرت** چې جاري کړې شوی دی دا صفت **على غير من** په غير د هغه موصوف باندې **هى** چې دا صفت ثابت دی **له** د دغه موصوف لپاره په واقع او نفس الامر کې يعنی ماجری عليه او مسند اليه د صفت غير غير وو بيا انفصال د ضمير واجب دی لپاره د دې چې لازم نه شي التباس د مقصد د متکلم په مخاطب باندې او صورة د عدم التباس محمول دی په صورة د التباس باندې او که مسند اليه او ماجری عليه د فعل غير غير وو نو بيا به خالي نه وي يا به په استتار د ضمير سره التباس د مقصد د متکلم په مخاطب باندې راځي او يا به نه راځي که التباس د مقصد د متکلم په مخاطب باندې راتلو نو انفصال واجب دی او که نه راتلو نو بيا انفصال واجب نه دی ځکه فعل ثقيل دی په اعتبار د معنی سره تقاضه د تخفيف کوی او تخفيف ورله مونږه ورکړو په اتصال د ضمير سره ځکه ضمير متصل خفيف دی په نسبت سره منفصل ته.

**تشريح:** **سوال:** صفة په ترکيب کې څه واقع شوی دی؟ **جواب:** صفة موصوف دی او على غير من هی له دا جمله ورله صفت دی موصوف سره د صفت نه نائب فاعل دی د مسندا لپاره.

**سوال:** صفة مؤنث دی او د فعل يا شبه فعل اسناد چې وشي مؤنث ته نو فعل مؤنث کولې شي نو لهذا مسندة اليه ويل پکار وو نو مسندا مذکر ئې ولې وويل؟ **جواب:** صفت مؤنث دی او مؤنث دوه قسمه دی (۱) لفظی (۲) حقيقی، دا مؤنث لفظی دی، او د فعل يا شبه فعل اسناد چې وشي اسم ظاهر د مؤنث لفظی ته نو هلته جواز د وجهين.

دی تذکير د فعل شبه فعل او تانيث دواړه جائز دی.

**سوال:** نسبت د صفت چې وشي فاعل ته فاعل عام دی که ضمير وی او که اسم ظاهر وی دا مفيد د فائده تامه نه دی او اسناد ديته وائي چې نسبت د مفهوم د احدهما وشي مفهوم د اخر ته چې هغه مفيد د فائده تامه دی سامع او مخاطب ته نو دی مصنف صفة ته مسند او ضمير ته مسند اليه څنګه وويل؟

**جواب:** دا اعتراض به ستاهله وازدیدوچې دا خبره د مصنف بنا وی په حقیقت باندې لیکن دا خبره بنا نده په حقیقت باندې بلکه بنا ده په مجاز باندې چې ذکر د خاص دی چې مسند الیه دی او مراد ترینه عام دی چې منسوب الیه دی.

**سوال:** دی ماتن ویلي دی چې صفة جرت علی غیر من هی له، او مَن راځي د ذوی العقول لپاره نو د مصنف لپاره پکار وه چې دلته ئې بجاي مَن لفظ د ما ذکر کړي وی ځکه ما عام دی شامل دی ذوی العقول او غیر ذوی العقول دواړو لره نو داخل شوی به وو په دې عبارت د مصنف کې دغه ترکیب چې الغنم والبقر ناتحه هؤ ځکه غنم او بقر د غیر ذوی العقول نه دی اطلاق د مَن پرې نه کیږي؟

**جواب:** لکه څنګه چې ما ذوی العقول او غیر ذوی العقول دواړو لپاره راځي دارنګې من هم د دواړو لپاره راځي مثال د من چې راغلي وی د غیر ذوی العقول لپاره کمافی قوله تعالی فَمِنْهُم مَّن يَمْشِي عَلَىٰ بَطْنِهِ نو دا من هم دواړو ته شامل دی (۲) دی مصنف ذکر د من کړی دی د وجي د اصالت نه تغلیباً ځکه ده ذوی العقول لره غلبه ورکړې ده په غیر ذوی العقول باندې

**سوال:** ما جری علیه د صفت او من هی له د صفت څه ته وائي؟

**جواب:** ما جری علیه د صفت هغه شئ ته وائي چې دا صفت په ترکیب کې د هغه لپاره څه واقع شوی وی او د هغې مصداقونه په خارج کې څلور دی

(۱): یو دا چې دا صفت خبر د مبتدا وی نو مبتدا ماجری علیه شو.

(۲): یا دا مشتقی په ترکیب کې صفت وی د موصوف لپاره نو موصوف ما جری علیه شو.

(۳): یا حال وی د ذوالحال لپاره نو ذوالحال ما جری علیه شو.

(۴): یا صله وی د موصول نو موصول ما جری علیه شو.

او من هو له، من هی له، ماهوله، ماهی له، او مسندالیه، پنځه واړه الفاظ مترافه دی عبارت دی د شئ واحد نه چې دا معنی مصدري ثابته وی هغه شئ لره په واقع او نفس الامر کې او ماجری علیه او مسندالیه د صفت کله یو وی مثال لکه زید قائم شو نو دا زید مسندالیه دی د قائم لپاره ځکه دا معنی مصدري زید لره ثابته ده او ماجری علیه هم دی ځکه چې دا د هغې خبر دی، او کله ما جری علیه او مسندالیه غیر غیر وی مثال لکه زید عمرو ضاربه هو دلته مسندالیه او ماجری علیه د صفت چې ضارب دی غیر غیر دی په دې شان سره چې ماجری علیه دلته عمرو دی ځکه دا ضارب دی د عمرو لپاره اومسندالیه ورله زید دی ځکه دا معنی مصدري چې ضرب دی قائمه شوې ده په دې زید پورې او صادره ده د زید نه او دا قاعده ده چې کله مسندالیه او ماجری علیه د صفت یو وو نو هلته اتصال د ضمیر واجب دی او انفصال ممتنع دی لکه زید قائم کې زید قائم هو نه دی جائز او که مسندالیه او ماجری علیه د صفت غیر غیر وو نو هلته انفصال د ضمیر واجب دی مطلقاً یعنی که التباس راتلو په مخاطب باندې او که نه راتلو، لپاره د دې چې لازم نه شي التباس د مقصود د متکلم په سامع او مخاطب باندې په صورة د التباس کې او صورة د عدم

التباس محمول دی په صورة د التباس باندې مثال د التباس لکه زید عمرو ضاربه هو شو په دې کې لابدي ده د معرفت د امور ثلاثه و نه (١) ترکیب (٢) ترجمه (٣) تطبیق بالمثال.
**ترکیب:** **زید** مبتدا اول **عمرو** مبتدا ثاني **ضارب** صیغه د اسم فاعل ده **ه** ضمیر منصوب مفعول به چې راجع دی عمرو ته او **هو** فاعل د ضارب دی راجع دی زید ته اسم فاعل سره د فاعل او مفعول به نه شبه جمله خبر لپاره د مبتدا مبتدا سره د خبر نه جمله اسمیه خبریه خبر لپاره د مبتدا اول مبتدا سره د خبر نه جمله اسمیه خبریه.
**ترجمه:** **زید** زید **عمرو** او عمر **ضاربه** وهونکی دی دی عمرو لره **هو** دغه زید.
تطبیق بالمثال دلته د صفت لپاره چې ضارب دی ما جری علیه او مسند الیه غیر غیر دی په دې شان سره چې ما جری علیه د ضاربه لپاره عمرو دی ځکه دا مبتدا ده او ضاربه ورله خبره دی او مسند الیه ورله زید دی ځکه صادر شوی دی د زید نه او په دې ترکیب کې انفصال واجب دی او اتصال د ضمیر نه ذی جائز، داندي جائز چې زید عمرو وضاربه ووائي په استتار د ضمیر سره لپاره د دې چې لازم نه شي التباس د مقصد د متکلم په مخاطب باندې او لپاره د دې چې لازم نه شي انقلاب د مطلوب د متکلم په مخاطب باندې په دې شان سره چې زید عمر وضاربه چې وویلي شي نو د متکلم دا معنی مراد ده چې دا ضمیر مستتر راجع دی زید ته او دا **ه** ضمیر راجع دی عمرو ته او د سامع وهم ته دا راځي چې دا ضمیر مستتر راجع دی عمرو ته ځکه اصل په مرجع کې قرب دی او دا **ه** راجع دی زید ته نو معنی مراد د متکلم بالکل معکوسه شوه په سامع باندې او کله چې زید عمرو ضاربه هو ووائي په انفصال د ضمیر سره نو بیا التباس د مقصد د متکلم په مخاطب باندې نه راځي ځکه د متکلم په عقیده کې دا ضمیر منفصل راجع دی زید ته او متصل راجع دی عمرو ته او سامع هم دغسې کوی ځکه کله چې متکلم اتیان وکړو په ضمیر خلاف الاصل باندې چې ضمیر منفصل دی نو سامع ته به پته ولګي چې د دې لپاره مرجع هم خلاف الاصل دی چې مرجع بعید دی.
**سوال:** په زید عمرو ضاربه هو کې خو انفصال د ضمیر واجب دی منم، لپاره د دې چې لازم نه شي انقلاب د مقصد د متکلم په مخاطب باندې لیکن په هند زید ضاربته هی کې ولې انفصال واجب دی باوجود د دې نه چې دلته التباس د مقصد د متکلم نه راځي په سامع او مخاطب باندې ځکه هند مبتدا اول زید مبتدا ثاني اوس که ضاربته وائي په استتار د ضمیر سره او که ضاربته هی ووائي په انفصال د ضمیر سره خو دغه ضمیر د فاعل راجع دی هند ته ځکه **هغه** ضمیر د مؤنث دی زید ته نه راجع کیږي نو دلته ولي انفصال واجب دی؟ **جواب:** په هند زید ضاربته هی کې اګر چې التباس نه راځي په استتار د ضمیر سره باوجود د دې نه انفصال واجب دی طرداً للباب ځکه دا حمل دی په صورة د التباس باندې.
**سوال:** مصنف د دې صفة جرت الخ لپاره د التباس مثال ولي ذکر نه کړو چې د عدم التباس دائي ذکر کړو؟ **جواب:** په ذکر کولو د مثال د عدم التباس کې مصنف اشاره وکړه دی خبري ته چې

ماجری علیه او مسند الیه د صفت غیر غیر وی نو انفصال واجب دی مطلقاً که التباس راخي او که نه راخي نو دلته التباس نشته او ضمیر منفصل شوی دی نو په صورة د التباس کې به په طریق اولی سره انفصال واجب وی.

**سوال:** دا مثال مطابق نه دی د ممثل سره ځکه دلته دا انفصال راغلي دی د فصل د وجي نه نو کونه صفة جرت علی غیر من هی له د وجي نه ځکه دا هی فاعل د ضاربته نه دی بلکه تاکید دی د ضمیر مستتر ځکه عرب په خپله محاوره کې وائي نحن الزیدون ضاربوهم نحن دا نحن ثانی په دې ترکیب کې تاکید دی لپاره د نحن مستتر په ضاربوهم کې چې هغه فاعل دی او دا هم منصوب محلا مفعول به دی دارنګې دا هی ضمیر تاکید دی لپاره د هغه ضمیر مستتر په ضاربة کې، او دلیل په دې خبره چې دا نحن ثانی تاکید دی فاعل نه دی دا دی چې که چرې دا فاعل وی د ضاربون لپاره نو بیا دی صیغې د جمع ذکر کولو ته ضرورت نه وو بیا ضاربهم ویل پکار وو؟

**جواب:** دا ترکیب محتمل د احتمالین دی (۱): یو احتمال خو دا دی چې په ضاربة کې ضمیر مستتر دی او دا ذ هغې تاکید دی. (۲): او دویم احتمال دا دی چې په ضاربة کې ضمیر نشته بلکه دا فاعل دی د هغې لپاره ځکه جارالله زمخشري دغه ترکیب نقل کړي دی د عربو نه بی د واو نه یعنی نحن الزیدون ضاربهم نحن او نقل د هغه په مقابله کې ضعیف دی ځکه قول د هغه سند دی په علم نحوه کې نو معلومه شوه چې دا وروستو نحن ورله فاعل دی تاکید ندی، او که دغه بل نقل صحیح شي نو بیا په دې کې دوه احتما له دی په یو احتمال باندې دا مثال صحیح دی او دمثال لپاره فرض هم کافی کیږي.

**سوال:** مسند الیه او ماجری علیه د صفت چې غیر غیر وی خو حکم یې معلوم شو چې انفصال واجب دی مطلقاً، اوس مسند الیه او ماجری علیه دفعل چې غیر غیر وی نو حکم یې څه دی؟

**جواب:** مسند الیه او ماجری علیه د فعل چې غیر غیر وی نو یا به التباس راخي یا به نه راخي که التباس راتلو نو انفصال واجب دی، نحو زید عمرو یضربه هو او که نه راتلو نو انفصال نه دی واجب نحو هند زید تضربه.

**سوال:** په صفت کې خو انفصال واجب دی مطلقاً نو په فعل کې په صورة د عدم التباس کې انفصال ولې نه دی واجب؟ **جواب:** ځکه چې فعل ثقیل دی تقاضه د خفت کوی نو دا خفت ورته ورکړي شو په استتار د ضمیر سره (۲) فعل اصل دی صفة فرع دی په دې کې ابراز د ضمیر واجب دی دې لپاره چې امتیاز یې راشي د اصل خپل نه (۳) انحطاط د فرع راشي د اصل خپل نه ځکه دا قاعده ده الفرع احط رتبة من الاصل

**سوال:** ته وائي چې اتصال د ضمیر راخي په وقت د وجود د یو مانع کې د موانع مذکورونه دا خبره ستا منقوضه شوه په اراغب انت سره، دلته ضمیر منفصل راغلي دی او موانع مذکوره پکې یو هم نشته؟

**جواب:** د مصنف دا مطلب نه دی چې موانع لپاره د اتصال د ضمیر دغه مذکور دی او نور نشته بلکه دغه موانع یې ذکر کړی دی بطور مثال د وجې د شهرت نه او د دې نه علاوه نور موانع هم

شته لپاره د اتصال د ضمير (١) كون الضمير فاعلاً للصفة الواقعة بعد حرف النفي او الاستفهام كما في المثال المذكور (٢) لضرورة الشعر نحو:

بالباعث الوارث الاموات قد ضمنت ایاهم الارض في دهر الدهارير

(٣) كون الضمير مفعولاً للمصدر العامل المضاف الى الفاعل الظاهر كما في قول حسان رضي الله تعالى عنه كفى بنا فضلا على من غيرنا حب النبي محمد ايانا

(٤) كون الضمير فاعلا للمصدر لان الضمير لايستتر في المصدر

(٥) چې ماجرى عليه او مسند اليه دفعل غير غير وي نو انفصال د ضمير واجب دی په دې شرط چې التباس د مقصد د متكلم راتلو په سامع او مخاطب باندې نحو زيد عمرو يضربه هو.

**واذا اجتمع ضميران: ربط:** هر كله چې فارغ شو مصنف د بيان د حكم د ضمير واحد نه نو شروع يې وكړه په حكم د ضميرين كې په اعتبار د اتصال او انفصال سره چې دوه ضميره يو ځاى راشي نو دابه متصل وى كه منفصل به وى.

**ترجمه:** كله چې جمع شي دوه ضميرونه په يوه كلمه كې او حال دا دى چې نشته يو د دې ضميرونو نه مرفوع بلكه دواړه منصوب دى يا احدهما منصوب او بل مجرور وو **فان كان احدهما اعرف** پس كه چرې وو يو د دې ضميرين نه **اعرف** زيات وو په تعريف كې د ضمير اخر نه **وقدمته** او تا مقدم كړى وو دا ضمير اعرف په دې غير اعرف باندې **فلك الخيار في الثاني** نو ستا لپاره ثابت دى اختيار په ضمير ثاني كې په دې شان سره كه ته يې متصل كوې او كه منفصل كوې يې مثال لكه الدرهم اعطيتكه شو نو دې كې اعطيتك اياه ويل هم جائز دى ځكه دا اول ضمير ذوجهتين دى كه ديته ګورې چې دا متصل دى په عامل خپل پورې نو فصل په عامل او دې ضمير كې كلا فصل دى مانع نشته نو متصل يې كړه او كه د دې ضمير اول معنى ته وګورې چې دا مفعول به دى او فضله دى نو بيا مانع موجود دى منفصل يې مستعمل كړه بل مثال لكه ضربيك او ضربي اياك شو په دې كې اجتماع د ضميرين راغلي ده يو منصوب دى او بل مجرور دى او احدهما اعرف دى د اخر نه او دا اعرف مقدم كړى دى په غير اعرف باندې نو په ضمير ثاني كې جواز د وجهين دى نو ضربيك او ضربي اياك دواړه ويل جائز دى ځكه دا اول ضمير ذوجهتين دى چې لفظ ته وګورو نو متصل دى په ماقبل پورې او فصل په ضمير متصل سره كلا فصل دى نو متصل يې مستعمل كړه، او كه ديته ګورې چې دا ضمير مجرور دى او فضله دى نو فصل راغلي دى په مينځ د عامل او د دې ضمير ثاني كې نو منفصل يې مستعمل كړه او دوه مثالونه يې ذكر كړه دا تعدد د مثال بنا دى په تعدد د ممثل باندې اول مثال د هغې دى چې دواړه ضميرين منصوب وى او دويم مثال د هغې دى چې اول منصوب او ثاني مجرور وى **والا** او كه چرته احدهما اعرف نه وو په اخر باندې بلكه دواړه يو شان وو يا اعرف وو ليكن تا مقدم كړي نه وو په غير اعرف باندې **فهو منفصل** دا ضمير ثاني به منفصل وى وجوبا او اتصال په عامل پورې ممتنع دى مثال د هغه ضميرين چې احدهما اعرف نه دى لكه زيد الدرهم **اعطيته اياه** شو ديكښې اجتماع د ضميرين راغلي ده او احدهما مرفوع نه دى بلكه دواړه منصوب دى او احدهما اعرف نه دى د اخر نه بلكه دواړه ضمير

غايب دی نو په دې کې انفصال د ضمير ثاني واجب دی لپاره د دې چې لازم نه شي ترجيح بلا مرجح بې د عذر د انفصال نه او مثال د اجتماع د ضميرين چې احدهما اعرف دی د اخر نه او اعرف مقدم کړې نه دی په اخر باندې **نحو الدرهم اعطيته اياك** شو په دېکې اجتماع د ضميرين راغلي ده او احدهما مرفوع نه دی بلکه دواړه منصوب دی ځکه دواړه مفعولين د اعطيت دی او احدهما اعرف دی د اخر نه ځکه يو ضمير غائب دی او بل مخاطب دی او ضمير مخاطب اعرف دی د ضمير غائب نه او اعرف نه دی مقدم کړې په غير اعرف باندې نو دې کې انفصال د ضمير ثاني واجب دی لپاره د دې چې لازم نه شي ترجيح د مرجوح بې د عذر د انفصال نه.

**تشريح: سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟

**جواب:** ربط د ماقبل سره دا دی چې مخکې مصنف حکم د ضمير واحد بيان کړو په اعتبار د اتصال او انفصال سره اوس بيانوی حکم د ضميرينو په اعتبار اتصال او نفصال سره او غرض بيان د حکم د ضميرين دی بحسب الاتصال والانفصال **وليس** احدهما مرفوعا چې يې وويل نو په دې سره يې احتراز وکړو د ضربتك نه ځکه اجتماع د ضميرينو چې راشي په کلمه واحده کې او احدهما مرفوع او اخر منصوب وی نو انفصال د ثاني واجب دی نو ضربتك به وائي او ضربت اياك ويل نه دی جائز ځکه چې ضمير مرفوع متصل په منزله د جز دی د ماقبل نه نو فصل پده سره کلا فصل دی او ليس احدهما الخ جمله حال واقع شوې ده د فاعل د اجتمع نه چې ضميران دی او جمله چې حال واقع شي او فعل پکې ماضی منفی وی نو اول کې يې واو حاليه راخي نو دا واو پکې حاليه دی، اوس چې احدهما مرفوع نه وو دهغې صورتونه دوه دی.

(١): يو دا دی چې دواړه منصوب دی او بل دا دی چې احدهما منصوب او بل مجرور وی، نو بيا به خالي نه وي يا به احدهما اعرف وی د اخر نه او يا به نه وي که نه وو بلکه دواړه مساوی وو نو حکم يې وروستو راروان دی، **نو فان کان احدهما الخ** سره يې احتراز وکړو د هغې نه چې احدهما اعرف نه وي د هغې حکم هم وروستو راروان دی او که احدهما اعرف وو نو بيا به خالي نه وي يا به دا اعرف مقدم کړې وی او يا به نه وي نو **قدمته** سره يې احتراز وکړو د هغې نه چې اعرف نه وي مقدم کړې په غير اعرف باندې ځکه د هغې حکم هم وروستو راروان دی، اوس اجتماع د ضميرين راغلي ده احدهما مرفوع نه دی بلکه دواړه منصوب دی يا يو منصوب او بل مجرور دی او احدهما اعرف دی د اخر نه، او اعرف تا مقدم کړې دی په غير اعرف باندې نو دا فعل به خالي نه وي يا به فعل قلب وی او يا به نه وي که فعل قلب وو نو هغې کې دوه مذهبه دی.

(١): **ابن مالك وائي.** اتصال اولی دی نحو الصديق خلتنيه.

(٢): **او جمهور وائي.** انفصال اولی دی نحو الصديق خلتني اياه، او که فعل قلب نه وو نو فلك الخيار فی الثاني اتصال او انفصال دواړه جائز دی مثال لکه اعطيتکه او اعطيتك اياه دواړه ويل جائز دی، بل مثال لکه ﴿فَسَيَكْفِيكَهُمُ اللَّهُ﴾ نو اياهم الله ويل جائز دی.

**سوال:** اجتماع د ضميرين چې راشي او هغه مشروط په دې شروط ثلاثه ۇ سره نه وي نو په دې ضمير ثاني کې جواز ده وجهين ولې دی (٢) يا اجتماع د ضميرين چې راشي او مشروط وی په دې شروط ثلاثه ۇ سره نو يا به فصل منی په دې ضمير اول سره بين العامل والمعمول او يا به نه منی که فصل نه منی نو اتصال د ضمير ثاني واجب دی نو فلك الخيار څنګه وائي او که فصل معتبر کوی نو بيا انفصال اولی دی نو فلك الخيار څنګه وائي؟

**جواب:** اجتماع د ضميرينو چې راشي او مشروط وی په دې شروط ثلاثه ۇ سره نو دا ضميرين ذوجهتين دی يو جهت پکې د لفظ دی او بل جهت پکې د معنی دی، لفظ ته چې وګورو نو دا متصل دی په عامل پورې نو فصل بين العامل والضمير کلا فصل دی نو اتصال جائز دی، او معنی ته چې وګورو نو دا فضله دی او مفعول به دی نو فصل راغلو په فضله سره او دا مانع د اتصال دی نو منفصل کول يې جائز شو، نو حاصل دا چې دا ضمير اول محتمل د احتمالين دی يعنی ذوجهتين دی او اعمال اولی دی د اهمال نه نو ځکه جواز د وجهين راغلي دی.

**سوال:** مثال ذکر کولي شي لپاره د وضاحت د ممثل او وضاحت د ممثل راځي په مثال واحده سره نو اجتماع د ضميرين چې راشي او مشروط وی په شروط ثلاثه ۇ سره د دې لپاره يې دوه مثالونه ولې ذکر کړه؟ **جواب:** تعدد د مثال بنا دی په تعدد د ممثل باندې ځکه اجتماع د ضميرين چې راشي چې مشروط وی په شروط ثلاثه ۇ سره دا دوه قسمه دی (١) قسم هغه ده چې دواړه منصوب وی لکه مثال اول کې (٢) چې اول مجرور ثاني منصوب وی لکه مثال ثاني شو.

**سوال:** اجتماع د ضميرين چې راشي او احدهما مرفوع نه وي او اعرف هم نه وي د اخرنه يا احدهما اعرف وی خو غير اعرف مقدم وی په اعرف باندې نو انفصال د ثاني ولې واجب دی.

**جواب:** هر چې دی په صورة اول کې نو انفصال د ثاني واجب دی لپاره د دې چې لازم نه شي ترجيح بلا مرجح بی د تعذر د انفصال نه په دې شان سره چې دا دواړه ضميرين متصل ووائي نو معترض اعتراض کوی چې دا دواړه ضميرين دی متصل دی او احدهما اعرف نه دی د اخر نه دا يو دی ولې مقدم کړي دی په دې بل باندې او کله چې دا دويم منفصل کړي نو بيا ترجيح بلامرجح نه راځي او هر چې دی په صورة ثاني کې نو لپاره د دې چې لازم نه شي ترجيح د مرجوح ځکه چې که دا دويم ضمير منفصل ووائي نو ترجيح د مرجوح راځي په راجح باندې

**سوال:** اجتماع د ضميرين چې راشي او احدهما مرفوع نه وي او احدهما اعرف نه وي د اخر نه نو بيا به خالي نه وي يا به دا ضمير متحد وی افرادا تثنيه او جمعا يا به مختلف وی که متحد وی نو انفصال د ثاني واجب دی نحو زيد الدرهم اعطيته اياه، او که مختلف وو نو انفصال اولی دی او اتصال جائز دی نحو الزيدان الدرهم اعطيتهما اياه اولی، او الزيدان الدرهم اعطيتهماه جائز خلاف اولی دی، اوس معترض وائي چې دواړه ضميرين متحد وی نو په تقديم د دې يو سره په بل باندې په باب د اعطيت کې ترجيح بلا مرجح نه راځي ځکه مفعول اول د باب د اعطيت فاعل وی

معنی او ثانی مفعول دی لفظاً و معناً نو کون د مفعول اول فاعل معناً مرجح دی او د دې وجی نه سیبویه اعطیته کا جائز ویلی دی؟ **جواب:** ملحوظ بالنظر د نحویانو لفظ دی نه معنی لهذا په نظر سره لفظ ته قطع لحاظ د معنی نه لازم کیږي ترجیح د مرجوح او ترجیح بلا مرجح نو انفصال واجب دی لکه راغلي دی په دی حدیث د نبی ﷺ اشعر نها ایاه واغوندوی تاسو ای غسل کونکو زنانو هغ دی مړي ته ایاه دغه شعار لره **والمختار فی خبر باب کان الانفصال. ترجمه:** او لی او راجح په خبر د باب د کان کې یعنی په خبر د افعال ناقصو کې انفصال د ضمیر ثانی دی نو زید قائم وکنت ایاه اولی او راجح دی او زید قائم وکنته، جائز خلاف اولی دی عند المصنف او د ابن مالك صاحب په نزد اتصال د ثانی اولی دی د انفصال نه ځکه هغه ویلی دی!

کذاك خلتنیه واتصالا اختار غیری اختار الانفصالا

**سوال:** ضمیر چې خبر د افعال ناقصو راشي او بل ضمیر اسم د افعال ناقصو وی نو په دې ضمیر کې انفصال ولي اولی دی د اتصال نه؟

**جواب:** ځکه کوم ضمیر چې خبر د افعال ناقصو لپاره راشي دغه ضمیر ذوجهتین دی که دیته گورو چې مخکې د دخول د فعل ناقص نه خبر لپاره د مبتدا وو او ضمیر چې خبر وی لپاره د مبتدا نو انفصال واجب دی د وجی د کیدو د عامل د دې نه معنوی، نو دهغې تقاضه دا ده چې دا ضمیر منفصل ووایه او که دیته گورو چې پس د دخول د فعل ناقص نه دا ضمیر په منزله د مفعول به گرځیدلی دی او اجتماع د ضمیرین چې راشي او احدهما پکې مرفوع وی نو هلته اتصال واجب دی لکه ضربتك کې نو د هغې تقاضه دا ده چې دا متصل ووایه، نو دا ذوجهتین شو او چې عمل په جهتین ممکن وی نو اعمال اولی دی د اهمال نه نو دوی په دې ضمیر خبر د کان کې اتصال او انفصال دواړه جائز کړه لپاره د دې چې عمل راشي په جهتین باندې لیکن دومره فرق دی چې انفصال اولی دی د ابن حاجب په نیز باندې ځکه مقتضی د اصل ده او اتصال مقتضی د مشابهت ده او رعایت د اصل اولی دی د رعایت د مشابهت نه او ابن مالك وائي چې اتصال اولی دی د انفصال نه ځکه اصل په ضمیر کې اتصال دی او انفصال خلاف الاصل دی ﴿ وَلِكُلٍّ وِجْهَةٌ هُوَ مُوَلِّيهَا ﴾

**خلاصه د ماسبق.** اجتماع د ضمیرین چې راشي نو دا ضمیر به خالی نه وي یا به پکې احدهما مرفوع وی او یا به نوی، که احدهما پکې مرفوع وو نو بیا به دا فعل خالي نه وي یا به فعل تام وی او یا به ناقص وی، که فعل تام وو نو اتصال واجب دی نحو ضربتك، او که فعل ناقص وو نو بیا پکې اختلاف دی په نیزد د ابن مالك اتصال اولی دی او په نیزد د ابن حاجب صاحب باندې انفصال اولی دی، لکه زید قائم وکنته اولی عند ابن مالك او زید قائم وکنت ایاه اولی عند ابن حاجب، او که احدهما پکې مرفوع نه وو بلکه دواړه منصوب وو او یا یو منصوب او بل مجرور وو نو بیا به خالي نه وي یا به احدهما اعرف وی او یا به نه وي که احدهما اعرف نه وو بیا به خالي نه وي یا به متحد وی، افراداً وتثنیة وجمعاً او یا به مختلف وی که متحد وو نو انفصال د ثانی واجب دی نحو قوله ﷺ اشعرنها ایاه زید الدرهم اعطیته

اياه، او که مختلف وو نو انفصال اولي دی او اتصال جائز قدرې دی نحو الزيدان الدرهم اعطيتهما اياه اولی او الزيدان الدرهم اعطيتهماهٌ جائز خلاف اولی.
او که احدهما اعرف وو نو بيا به خالي نه وي يا به يې دا اعرف مقدم کړې وی په غير اعرف باندې او يا به يې نوي که تقديم د اعرف نه وو شوی نو انفصال د ثاني واجب دی، نحو اعطيته اياك. او که تقديم د اعرف راغلي وو په غير اعرف باندې نو دا فعل به خالي نه وي يا به فعل قلب وی او يا به نه وي که فعل قلب وو نو فلك الخيار في الثاني نحو اعطيتکه او اعطيتك اياه، ضربيك ضربي اياك ومنه قوله تعالى ﴿ فَسَيَكْفِيكَهُمُ ٱللَّهُ ﴾ او که فعل قلب وو نو په هغې کې دوه مذهبه دی
(١): **ابن مالك والي** چې اتصال اولی دی نحو الصديق خلتنيه.
(٢): **او عند الجمهور** انفصال اولی دی نحو الصديق خلتني اياه نو مجموعه وه صورتونه شو په يو صورت کې اتصال واجب دی په دوه صورتونو کې انفصال واجب دی او په دوه صورتونو کې اختلاف دی يو صورة کې انفصال اولی او اتصال جائز او يو کې جواز د وجهين دی.
**والاکثر لولا انت الخ.** اکثر په استعمال کې انفصال د ضمير دی چې دا ضمير کله واقع شي وروستو د لولا نه مثال لکه لولا انت شو، او د دې گردان به کوی تر اخره پورې چې هغه متکلم مع الغير دی، او صورت د گردان دا دی لولا انت لولا انتما الخ او اکثر په استعمال کې اتصال د ضمير دی چې دا ضمير واقع شي وروستو د عسی نه مثال لکه عسيت شو د دې گردان به کوی **الى اخرها** تر اخر د دې عسيت پورې چې هغه متکلم مع الغير دی او صورت د گردان دا دی عسيت عسيتما عسيتم الخ.
**تشريح: سوال:** ضمير چې واقع شي وروستو د لولا نه نو اکثر په استعمال کې انفصال د ضمير ولې دی؟
**جواب:** خکه چې کوم ضمير چې واقع شوی دی وروستو د لولا نه هغه مبتداء محذوف الخبر دی عندالجمهور، او ضمير چې مبتدا واقع شي نو انفصال يې واجب دی د وجی د کيدو د عامل نه په دې کې عامل معنوی (٢) او مذهب د بعض دا دی چې کوم ضمير چې واقع شوی دی وروستو د لولا نه هغه فاعل دی لپاره د فعل محذوف او عامل د ضمير چې حذف شي نو هم انفصال د ضمير واجب دی د وجی د عدم وجود د ما يتصل به نه.
(٣): يا ضمير چې واقع شي وروستو د لولا نه دا مرفوع دی په لولا سره په نز د بعض باندې او عامل په ضمير کې چې حرف راشي او ضمير مرفوع وی هلته انفصال د ضمير واجب دی خکه اتصال د ضمير مرفوع په فعل پورې راځي نه په حرف پورې.
**سوال:** ضمير چې واقع شي وروستو د عسی نه نو اتصال د ضمير اکثر ولې دی؟ **جواب:** کوم ضمير چې واقع شي وروستو د عسی نه هغه فاعل دی لپاره د عسی خکه عسی فعل دی او ضمير چې فاعل د فعل واقع شي نو اتصال يې واجب دی په فعل پورې په وقت د عدم وجود د مانع د اتصال کې.
**سوال:** صرفيان گردان د ضمير کوی د غائب نه او نحويان گردان شروع کوی د متکلم نه نو مصنف په دې مقام کې دا گردان د مخاطب نه ولې شروع کړو؟ **جواب:** مغائره وگرځوله مصنف په دې مقام

کې طريقه د گردان د ضمير په دې کې يې اشاره وکړه ديته چې دا تقليد د صرفيانو او نحويانو ضروري نه دی که گردان د غائب نه شروع کوی که د متکلم نه شروع کوی او که مخاطب نه يې شروع کوی درې واړه جائز دی.

**وجاز لولاك وعساك:** او راغلي دی په بعض لغاتو کې او په بعض استعمال د کلام د عرب کې لولاك په اتصال د کاف ضميری سره او عساك په اتصال د کاف ضميری سره او د دې دواړو گردان کوه د اخير د لولاك او عساك پورې چې هغه متکلم مع الغير دی او صورت د گردان د اول دا دی لولاك، لولاکما، لولاکم الخ، او صورت د گردان د ثانی دا دی عساك، عساکما، عساکم، الخ هر کله چې په دې اول دوه مثالونو کې ضميرين نو عين مختلفين وو په دې شان سره چې احدهما ضمير مرفوع منفصل وو او بل متصل وو نو ذکر يې کړي د هغې لپاره دوه غايې ځکه په دې اختلاف د غايه کې يې اشاره وکړه اختلاف د نوعين ته او هر کله چې په دې وروستو دوه مثالونو کې دا ضميرين مختلف نه وو په اعتبار د نوع سره نو ذکر يې کړه د دې لپاره يوه غايه لپاره د دې چې دلالت وکړي په عدم اختلاف د نوعين باندې او ذهاب کړی دی.

(۱): **ابو الحسن اخفش من البصريين** دې خبرې ته چې دا کاف چې واقع دی وروستو د لولا نه د اضمير مجرور دی واقع شوی دی په موضع د ضمير مرفوع کې ځکه ضمائر واقع کيږي بعض په موضع د بعض کې لکه ما انا کانت دلته دا انت ضمير مرفوع منفصل دی او واقع شوی دی په موضع د مجرور کې او ذهاب کړی دی.

(۲): **سيبويه يعنی جمهور و بصريانو** دی خبرې ته چې دا کوم ضمير چې واقع دی وروستو د لولا نه دا ضمير مجرور دی په خپل ځای راغلي دی ځکه لولا د حروف جاره غير مشهورو نه دی او ذهاب کړی دی.

(۳): **ابوالعباس المبرد** لولاك او لولای نه دی جائز بلکه لولا انت لولا انا به وائي کما فی قوله تعالی ﴿ لَوْلَآ أَنتُمْ لَكُنَّا مُؤْمِنِينَ ﴾ دا مذهب کمزوري دی ځکه لولاك باتصال الضمير راغلي دی. شعر!

اومت بعينيها من الهودج لولاك هذا العام لم احجج

او په عساك کې اخفش ذهاب کړی دی دې خبرې ته چې دا ضمير چې واقع دی وروستو د عسی نه دا ضمير منصوب دی واقع دی په موضع د مرفوع کې ځکه ضمائر احدهما واقع کيږي په مقام د اخر کې او سيبويه ذهاب کړی دی ديته چې دا ضمير منصوب دی واقع دی په خپل ځای کې ځکه عسی محمول دی په لعل باندې د وجې د اشتراك د دې دواړو نه په دلالت علی الترجی کې او مذهب د اخفش غوره دی د مذهب د سيبويه نه ځکه اخفش تصرف کوی په معمول کې او سيبويه تصرف کوی په عامل کې او تصرف په معمول کې اولی دی د تصرف نه په عامل کې.

**تشريح: سوال:** لولاك کې دا کوم ضمير چې راغلي دی دا ضمير مجرور دی که مرفوع دی؟

**جواب:** په دې کې دوه مذهبه دی (۱) اخفش (۲) سيبويه. اخفش وائي دا ضمير مجرور دی خو واقع دی په مقام د مرفوع کې او مرفوع دی محلا بنا بر ابتدائيت ځکه ضمائر احدهما واقع کيږي په

مقام د اخر باندې لکه ما انا کانت دلته ضمیر مرفوع راغلي دی په مقام د مجرور کې او سیبویه وائي دا کاف ضمیر مجرور واقع دی په خپل ځای باندې ځکه لولاد حروف جاره غیر مشهورو نه دی، کله کله داخلیږي په ضمیر او هغې لره جر ورکوی محلاً.

**سوال:** دا کوم ضمیر چې واقع دی وروستو د عسی نه په عسی کې دا ضمیر مرفوع دی که منصوب؟

**جواب:** په دې کې هم دوه مذهبه دی (۱) اخفش وائي دا ضمیر منصوب واقع دی، په موضع د مرفوع باندې دا فاعل د عسی دی (۲) سیبویه وائي چې دا ضمیر منصوب دی او راغلي دی په خپل ځای کې ځکه عسی محمول دی په لعل باندې.

**سوال:** په مابین د محمول او محمول علیه کې لابدي وی د مناسبت نه نو په عسی او لعل کې څه مناسبت دی؟ **جواب:** د وجی د دلالت کولو د دې دواړو نه په طمع او رجاء باندې.

**سوال:** هر کله چې په عسی او لولاك ضمیر کې دوه مذهبه شو یو د سیبویه او بل د اخفش نو په دې کې کوم یو غوره دی؟

**جواب:** مذهب د اخفش غوره دی د مذهب د سیبویه نه ځکه اخفش تصرف کوی په معمول کې او سیبویه تصرف کوی په عامل کې او تصرف په معمول کې اولی دی د تصرف نه په عامل کې.

**سوال:** اصل په عبارت کې عبارت دی په نمط واحده سره نو مخکې د لولاانت او عسیت سره یې خاتله خاتله غایه ذکر کړه او وروستو د لولاك او عساك لپاره یې یو غایه ذکر کړه دا ولې؟

**جواب:** هر کله چې په هغه دوه مثالونو کې ضمیرین نوعین مختلفین وو په دې شان سره چې دا یو ضمیر مرفوع منفصل وو او بل متصل وو نو ذکر کړو مصنف د هر یو لپاره جدا جدا غایه لپاره د دې چې دلالت وکړي په اختلاف د نوعین باندې او په دی وروستو مثالونو کې دا ضمیرین مختلف نه وو په اعتبار د نوع سره نو یوه غایه یې ذکر کړه لپاره د دې چې دلالت وکړي دا وحدت د غایه په عدم اختلاف د دې ضمیر باندې.

**ونون الوقاية الخ: ربط:** هر کله چې بعض د ضمائرو نه یا ضمیر د متکلم وو، او د دې یا ضمیر د متکلم لپاره احکام مختصه وو نو ذکر کړو مصنف یا ضمیر د متکلم لپاره د بیانولو د احکامو مختصو نو وی ویل ونون الوقاية الخ.

**ترجمه:** (۱) هغه نون چې دلالت کوی په حفاظت د حرف اخیر د دې فعل باندې د کسری نه چې هغه اخته د جر ده (۲) هغه نون چې هغه سبب دی لپاره د حفاظت د حرف اخیر د کلمی د کسری نه په حال کون د دې نون الوقاية کې **مع الياء** چې سره د یاء د متکلم نه یې واخلې یعنی یاء ضمیر د متکلم چې متصل شي په اخر د فعل پورې نو نون وقاية راوړل مخکې د یاء د متکلم نه لازم دی **فی الماضی** په فعل ماضی کې مطلقاً برابره خبره ده چې مفرد وی که تثنیه وی که جمع وی لپاره د دې چې لازم نه شي کسره په اخر د ماضی کې د وجی د یاء ضمیر د متکلم نه هغه کسره چې اخته د جر ده او جر په اخر د اسم کې راځي نه په اخر د فعل کې او هر چې ده کسره د تضربین دا په اخر د فعل

کې نده په مینځ کې ده او هر چې ده کسره ﴿ لَمْ يَكُنِ الَّذِينَ كَفَرُوا ﴾ دا کسره عارضی ده راغلي ده د وجې د التقاء دساکنین نه او کسره عارضی په حکم د سکون کې ده او هر چې دی دا قول د شاعر:

عددت قومی کعدید الطیس اذ ذهب القوم الکرام لیسی

یعنی دلته لیس پورې یاء متصل شوې ده او نون وقایه نه دی راغلي دا شاذ دی (۲) لضرورة الشعر.

**تشریح: سوال:** یا ضمیر د متکلم یو ضمیر دی د ضمائرو نه او د ضمائرو بیان مخکې وشو احکام یې بیان شو هغه شامل دي دی یاء ضمیر د متکلم لره هم نو دا یې جدا بیا ولې ذکر کړو.

**بالفاظ دیگر:** دا بحث د ضمائر دی او نون وقایه خو د قبیلې د ضمائرو نه ندی، نو د دې ذکر کول په دې مقام کې خروج عن البحث دی؟

**جواب:** هر کله چې بعض د ضمائرو نه یا ضمیر د متکلم وو او د دې لپاره احکام مختصه وو په دې شان سره چې خاص وو په دې پورې او باقي ضمائرو له نه دی ثابت نو ذکر یې کړو دا یاء ضمیر د متکلم لپاره د بیان د احکام مختصو او هغه حکم مختصه دا دی چې دا یاء چې متصل شي په اخر د فعل ماضی پورې نو د دې نه مخکې نون وقایه راوړل لازم دی مطلقا.

**سوال:** اضافت د نون - الوقایة ته کوم اضافت دی؟

**جواب:** دا اضافت د دال دی مدلول ته یا اضافت د سبب دی مسبب ته.

**سوال:** ته وائي چې نون الوقایة سره د یاء المتکلم نه لازم دی په فعل ماضی کې دا خبره ستا منقوضه شوه په ﴿ قَدْ سَمِعَ اللَّهُ قَوْلَ الَّتِي ﴾ الخ باندې دلته سمع ماضی دی او نون الوقایه سره د یاء المتکلم نه نه دی راغلي؟

**جواب:** د دې مطلب دا دی چې نون الوقایة مخکې د یاء ضمیر د متکلم نه لازم دی په فعل ماضی کې په دې شرط سره چې دا یاء ضمیر د متکلم متصل شي په فعل ماضی پورې او دلته نون وقایه نه دی راغلي ځکه چې یا ضمیر د متکلم په اخر د ماضی پورې نه دی متصل شوی.

**سوال:** یاء ضمیر د متکلم چې متصل شي په اخر د ماضی پورې نو د هغې نه مخکې نون الوقایه راوړل ولې لازم دی؟ **جواب:** لپاره د دې چې دا نون وساتی حرف اخیری د فعل ماضی د کسری نه چې اخته د جر ده ځکه جر او اخته د جر په اخر د اسم کې راځي نه فعل کې نو دا کسره به په دی نون باندې راشي نه په اخر د فعل نو فعل به بچ پاتې شي د کسری نه چې اخته د جر ده.

**سوال:** په دعا او رمی پورې چې اتصال د یاء ضمیری راشي نو دهغې نه مخکې دی نون وقایه ذکر کول لازم نه شي ځکه دلته د اتصال د ضمیر د وجی نه په اخر د فعل کې کسره نه راځي بلکه سکون راځي د عایَ او رمایَ ویلي کیږي؟ **جواب:** د اتصال د یاء ضمیر د متکلم د وجی نه په ماقبل د یاء ضمیر د متکلم کې کسره لازمه ده دا کسره عامه ده که لفظاً وی او که تقدیرا وی نو په دعایَ او رمایَ کې د اتصال د یاء ضمیری د متکلم د وجی نه کسره تقدیرا راځي.

(۲): اتصال د یاء ضمیر د متکلم چې راشي په دعا او رمی پورې د دې یاء نه مخکې نون وقایه راوړل لازم دی طرد اللباب اګر چې کسره په اخر د فعل کې نه راځي.

**سوال:** نه وائي چې کسره چې اخته د جر ده دا په اخر د اسم کې راځي اوپه اخر د فعل کې نه راځي نو دا خبره ستاسو منقوضه شوه په تضربین سره دلته دا کسره اخته د جر په اخر د فعل کې راغلي ده چې باء ده د وجی د اتصال د یاء ضمیر د فاعل مخاطبی نه؟ **جواب:** مونږه اویو چې کسره په اخر د فعل کې نه راځي او دلته په مینځ د فعل کې راغلي ده نه په اخرکې ځکه دا با د وجې د شدت اتصال د ضمیر د مخاطب نه په منزله د عین کلمه باندې ګرځیدلي ده او کسره چې په عین کلمه کې راشي هغه اخته د جر نه وي.

**سوال:** دا خبره ستا منقوضه شوه په ﴿ لَمْ يَكُنِ الَّذِينَ كَفَرُوا ﴾ سره دلته د مضارع په اخر کې کسره راغلي ده چې اخته د جر ده؟

**جواب:** دا کسره عارضی ده ځکه دا راغلي ده د وجی د امر ممتنع نه چې التقاء دساکنین ده او کسره عارضی په حکم د سکون کې وی د دې وجی نه نۀ دی معاد شوی هغه حرف محذوف په لم یکن کې او په قل الحق او بع الثوب کې ځکه دا کسره عارضی په حکم د سکون کې ده.

**سوال:** ﴿ لَمْ يَكُنِ الَّذِينَ كَفَرُوا ﴾ کې چې د فعل اخر کې کومه کسره ده ته وائي چې دا عارضی ده د التقاء د ساکنین د وجی نه راغلي ده نو په فعل پورې چې یاء د متکلم متصل شي نو د دې د وجی نه چې کومه کسره راځي داهم عارضی ده ځکه د یاء د وجی نه راغلي ده نو هغې ته ولې ممتنع وائي؟

**جواب:** دا کسره چې د غیر د وجی نه راځي دا دوه قسمه ده. (۱): قسم هغه ده چې راغلي ده د وجی د امر ممتنع نه لکه التقاء د ساکنینن شوه.(۲): قسم هغه ده چې راځي د وجی د امر ملائم نه لکه یاء المتکلم شوه کوم چې راغلي وی د امر ممتنع د وجې نه هغې ته کسره عارضی وائي او کوم چې راغلي وی د امر ملائم د وجی نه هغې ته کسره عارضی نه وائي.

**سوال:** کسره اخته د جر چې څنګه ممتنع ده په اخر د فعل کې دارنګې په اخر د حرف کې هم ممتنع ده نو بیا په دی نون وقایه کې څنګه راغلي ده دا خو حرف دی؟ **جواب:** کومه کسره چې د یاء ضمیر د متکلم د وجی نه راغلي ده په نون وقایه باندې دا کسره اخته د جر نده ځکه کسره اخته د جر راځي د کلمی په اخیر کې او د کومي کلمی لپاره چې اخیر وی د هغې لپاره لابدي ده د اول نه او دا په اخیر د کلمه کې نده ځکه د دې لپاره اول نشته لهذا دا کسره بنائي ده نه اعرابی.

**سوال:** ته وائي چې دا یاء ضمیر د متکلم چې متصل شي په اخیر د فعل ماضی پورې نو د هغې نه مخکې نون وقایه راوړل لازم دی او دا ماضی عامه ده که متصرف وی او که غیر متصرف وی نو دا قاعده ستاسو منقوضه شوه په دې قول د شاعر سره؛

عددت قومی کعدید الطیس اذ ذهب القوم الکرام لیسی

دلته ليس فعل ماضي ده او اخير پورې يې ياء المتكلم پيوست شوې ده او مخکې د ياء نه نون وقايه نه دی راغلي؟ **جواب:** دلته نون وقايه نه دی راغلي مخکې د ياء د وجی د ضرورت شعری نه

**سوال:** د ياء ضمير د متکلم نه مخکې چې کوم نون راځي ديته نون الوقايه ولې وائي؟

**جواب:** ځکه چې وقايه حفاظت ته وائي او دا نون هم حفاظت کوی د اخير د فعل د کسری نه چې اخته د جر ده او ديته په اصطلاح د نحويانو کې نون العماد هم وائي ځکه اعتماد راغلی دی د حرکت او سکون د اخير د کلمه په دې نون باندې.

**وفی المضارع عريا عن نون الاعراب:** او دارنګې نون وقايه مخکې د ياء ضمير د متکلم نه لازم دی چې دا ياء ضمير د متکلم متصل شي په اخير د مضارع پورې **عريا** په حال کون د دې مضارع کې چې دا خالي وی **عن نون الاعراب** د هغه نون نه چې هغه بعينه اعراب دی **وانت** او ته ای مخاطبه **مع النون فيه** سره د لحوق د نون اعرابی نه په دې مضارع کې **وللدن** او سره د لدن نه **وان** او سره د ان نه **واخواتها** او سره د اخوات د ان نه چې باقي حروف مشبه بالفعل دی ان، کان، ليت، لکن، لعل، **مخير** اختيار مند يې يعنی ستا خوخه ده چې نون وقايه راوړې مخکې د ياء نه او که يې نه راوړې په دې مواضع مذکورو کې.

**تشريح:** يا ضمير دمتکلم چې متصل شي په اخير د فعل مضارع پورې نو دا مضارع به خالي نه وي يا به خالي وی د نون اعرابی نه او يا به خالي نوی، که خالي وه د نون اعرابی نه نحو يضرب، تضرب، اضرب، تضرب، يضربن، تضربن، نو بيا نون وقايه راوړل مخکې د ياء د متکلم نه لازم دی لپاره د دې چې لازم نه شي کسره چې اخته د جر ده په اخر د فعل مضارع کې په يضرب تضرب اضرب او تضرب کې او لپاره د حفظ د حرکت بنائی (فتحه) په يضربن او تضربن کې او که خالي نه وو د نون اعرابی نه نو بيا د ياء المتکلم نه مخکې نون وقايه راوړل او نه راوړل دواړه جائز دی نحو يضربانني، او يضرباني، هر چې دی نه راوړل نو لپاره د دې چې لازم نه شي اجتماع د نونين وروستو د الف نه چې دا موجب د ثقل دی او هر چې دی راوړل نو لپاره د حفظ د حرکت بنائي د نون اعرابی په يضربون، تضربون کې او تشنيه محمول ده په جمع باندې.

**سوال:** ته وائي چې فعل مضارع خالي وی د نون د اعراب نه نو وقايه راوړل لازم دی نو د اعراب لپاره خو نون نشته بلکه دا نون بعينه اعراب دی؟ **جواب:** دا اعتراض به هله وارد يدو چې اضافت د نون اعرابی ته اضافت لامی وی ليکن دا اضافت بيانی دی په شان د خاتم فضة باندې.

**سوال:** ته وائي چې اضافت د نون الاعراب ته اضافت بيانی دی نو د اضافت بيانی علامه خو دا ده چې د مضاف او مضاف اليه په مينځ کې نسبت د عموم خصوص من وجه وی لکه خاتم فضة کې (۱): ما ده اجتماعی چې خاتم د فضة وی. (۲): ماده افتراقی ازجانب مضاف لکه خاتم د حديد. (۳): او ماده افتراقی از جانب مضاف اليه چې هسی فضه وی خاتم ترې جوړ شوی نه وي نو دلته په مينځ د نون او د اعراب کې نسبت د عموم خصوص من وجه څنګه جوړيږي؟

**جواب:** په دې نون او اعراب کې هم نسبت د عموم خصوص من وجه جوړيږي.

(۱): ماده اجتماعی لکه نون د یضربان. (۲): ماده افتراقی د جانب د مضاف نه لکه نون د یضربن شو. (۳): ماده افتراقی د جانب د مضاف الیه نه لکه رفع د یضرب شوه.

**پس زده کړه** دا خبره چې نون په استعمال د کلام دعرب کې نهه قسمه دی یعنې په نهه معانیو سره راځي. (۱): نون الاعراب نحو یضربان. (۲): نون الوقایه نحو جاء نی زید. (۳): نون الضمیر نحو یضربن. (۴): نون المثنی نحو ضاربان. (۵): نون الجمع نحو ضاربون. (۶): نو وصلیه نحو عاد ن الاولی. (۷): نون المتکلم نحو نضرب. (۸): نون تاکید ثقیله نحو لیضربنّ. (۹): نون تاکید خفیفه لیضربَن نو هر کله چې دا نون منقسم وو اقسام تسعو ته نو خکه یې دلته اولا اضافت وکړو الوقایة ته احتراز یې وکړو د نورو اقسامو نه او ثانیا یې اضافت وکړو اعراب ته احتراز یې وکړو د باقي اقسامو نه او په لدن کې د یاء ضمیر متکلم نه مخکې نون وقایه راوړل هم جائز دی لپاره د حفظ د سکون بنائی چې دا اصل دی په بنا کې نو مبني به په خپل اصل باقي پاتې شي او نه راوړل هم جائز دی خکه لدن اسم دی او یاء د متکلم متصل کیږي په اخیر د اسم پورې بې د نون وقایه نه او هر چې دی حروف مشبه بالفعل نو په دې کې نون وقایه راوړل هم جائز دی لپاره د حفظ د حرکت بنائي او نه راوړل هم جائز دی لپاره د دې چې لازم نه شي اجتماع د نوناتو حقیقتاً په ان، انّ کان، او لکن کې او حکماً په لعل کې خکه دا لام مشدد قریب دی نون مشدد ته په مخرج کې او هر چې دی لیت نو په دی کې نون وقایه نه راوړل جائز دی اګر که اجتماع د نوناتو نه راځي نه حقیقة او نه حکماً حملا علی اخواته **ویختار** او غوره دی لحوق د نون وقایه مخکې د یاء المتکلم نه **فی لیت** په لفظ دلیت کې د وجې د عدم وجود د مانع ذاتی نه او حمل د لیت په اخوات باندې خلاف الاصل دی **ومن وعن** او غوره دی لحوق د نون وقایه مخکې د یاء متکلم نه په من او عن جاره کې لپاره د مخافظت د سکون بنائي چې هغه اصل دی په بنا کې او سره د قلت د حروف نه **وقد وقط** او دارنګې اولی دی لحوق د نون وقایه مخکې د یاء د متکلم نه په قد او قط کې لپاره د حفظ د سکون بنائي چې دا اصل دی په بنا کې سره د قلت د حروفو نه او نون وقایه نه راوړل هم جائز دی خکه دا اسم دی او په اسم پورې یاء ضمیر د متکلم متصل کیږي بي د نون وقایه نه نحو غلامی **وعکسها لعل** او عکس د کلمه د لیت لعل دی په دې شان سره چې یاء ضمیر د متکلم چې متصل شي په لعل پورې نو نون وقایه مخکې د یاء د متکلم نه نه راوړل اولی دی د وجې د ثقل د تضعیف او د کثرة د حروفو نه او دا نون وقایه راوړل جائز خلاف اولی دی.

**تشریح**: من او عن جاره چې داخل شي په یاء ضمیر د متکلم باندې نو د یاء ضمیر د متکلم نه مخکې نون وقایه راوړل اولی دی لپاره د حفظ د سکون بنائي چې منی او عنی ووائي په تشدید د نون سره او نون وقایه نه راوړل هم جائز دی خکه دا حروف دی او په حروفو پورې یاء ضمیر د متکلم متصل کیږي بي د نون وقایه نه مثال لکه دا قول د شاعر شو!

ایها السائل عنهم وعنی لست من قیس ولا قیس منی

او قد درې قسيمه دی (١): قد فعلی دی هغه مشدد راځي په معنی د څیرولو سره.
(٢): قد حرفي دا کله په معنی د توقع سره راځي کله په معنی د تحقیق سره راځي او کله په معنی د تقریب سره راځي او کله په معنی د تقلیل سره راځي او کله په معنی د تکثیر سره راځي.
(٣): قد اسمی دی چې راځي په معنی د حسب سره او یاء ضمیر د متکلم پ. قد حرفي پورې نه متصل کیږي او یاء ضمیر د متکلم چې متصل شي په قد فعلی پورې نو هلته اتصال د نون وقایه لازم دی او یاء ضمیر د متکلم چې متصل شي په قد اسمی پورې چې بمعنی حسب دی نو لحوق د نون الوقایه مخکې د یاء نه نه راوړل جائز خلاف اولی دی او راوړل اولی دی مثال د دواړو لکه دا قول د شاعر شو! قدنی من نصر الخبیبین قدی لیس الامام بالشحیح الملحد
الخبیبین تثنیه تغلیباً ده والمراد منه عبد الله وابنه وهو خبیب.
او دلته هم مراد د قد نه قد اسمی دی په معنی د حسب سره او **قط** هم درې قسمه دی.
(١): اسم فعل بمعنی انته یا اکتف سره – قطك من ذلك اي اکتف بذلك.
(٢): ظرف چې دا راځي وروستو د ماضی منفی نه لپاره د استغراق د نفی نحو ما رأیت زیداً قط.
(٣): قط اسمی بمعنی حسب او یا ضمیر د متکلم په قط ظرفی پورې نه متصل کیږي او په قط اسم فعل پورې هم نه متصل کیږي او که متصل شي نو د یاء المتکلم نه مخکې نون وقایه راوړل لازم دی او یاء ضمیر د متکلم چې متصل شي په قط اسمی بمعنی حسب پورې نو د یاء د متکلم نه مخکې نون وقایه راوړل اولی او نه راوړل جائز خلاف اولی دی نحو قطنی درهم وقطی درهم ای حسبی درهم او دلته مراد د قط نه قط اسمی دی بمعنی حسب نه ظرفی او نه اسمی فعل، او اسم دلیت چې یاء ضمیر د متکلم راشي نو نون وقایه راوړل اولی دی او نه راوړل خلاف اولی دی لهذا لیت سره د نون وقایه نه په قرآن کې راغلي دی نحو قوله تعالی ﴿ يَٰلَيۡتَنِي كُنتُ تُرَٰبَۢا ﴾ ﴿ يَٰلَيۡتَنِي مِتُّ قَبۡلَ هَٰذَا ﴾ ﴿ يَٰلَيۡتَنِي لَمۡ أُوتَ كِتَٰبِيَهۡ ﴾ ﴿ يَٰوَيۡلَتَىٰ لَيۡتَنِي لَمۡ أَتَّخِذۡ فُلَانًا خَلِيلٗا ﴾ ﴿ يَٰلَيۡتَنِي كُنتُ مَعَهُمۡ فَأَفُوزَ فَوۡزًا عَظِيمٗا ﴾ او بی د نون وقایه نه په قران کې نه دی راغلي او د قران نه علاوه په کلام د عربو کې بی د نون نه راغلي دی کما فی قول الشاعر! کمنیة جابر اذقال لیتی اصادفه وافقد بعض مالی
او لعل بالعکس دی لهذا لعل بی د نون وقایه نه په قران کې راغلي دی نحو قوله تعالی ﴿ لَّعَلِّيٓ أَبۡلُغُ ٱلۡأَسۡبَٰبَ ﴾ او سره د نون وقایه په قران کې نه دی راغلي او دقران نه علاو په کلام د عربو کې راغلي دی په طریقه د قلت سره کما فی قول الشاعر!
فقلت اغیرونی القدوم لعلنی اخط بها قبر الابیض ماجدی

**ويتوسط بين المبتداء والخبر: ربط:** هر کله چې بعض د ضمائرو نه ضمیر فصل وو او د ضمیر فصل لپاره احکام مختصه وو چې ثابت دی ضمیر فصل لره نه باقي ضمائرو لره نو ذکر کړو مصنف ضمیر علیحدهً لپاره د بیان د احکامو د ضمیر فصل.

**ترجمه:** (۱): **ويتوسط** واقع كيږي **بين المبتداء والخبر** په مينځ د مبتداء او خبر كې (۲): يا واقع كيږي په مينځ د مسند اليه او دمسند كې (۳): واقع كيږي په مينځ د جز اول او جز ثاني د جملی كې **قبل العوامل** مخكې د دخول د جنس عامل لفظی نه په دې مبتداء او خبر باندې **وبعدها** او پس د دخول د عوامل لفظيو نه چې هغه افعال ناقصه افعال مقاربه او افعال قلوب حروف مشبه بالفعل او حروف مشبه بليس دی، **صيغة مرفوع منفصل** صيغه د مرفوع منفصل صيغه د مرفوع منفصل يې وويله او ضمير مرفوع منفصل ئې ونه ويلو د وجې د وجود د اختلاف نه په كون د دې كې ضمير لكه وروستو ئې ماتن بيانوی او نشته دی اختلاف د هيچا په كون د ده كې صيغه د مرفوع منفصل او مختار يې كړه صيغه د فصل په صورت د ضمير مرفوع منفصل كې لپاره د دې چې بعيد شي كون د مابعد صفت د ماقبل لان الضمير لا يوصف ولا يوصف به

**تشريح: سوال:** ضمير فصل يو ضمير دی د ضمائرو نه او د ضمائرو تعريف او احكام مخكې بيان شو نو دا جدا ولې بيانوی؟ **جواب:** هر كله چې د ضمير فصل لپاره احكام مختصه وو په دې شان سره چې دغه احكام خاص دی په دې ضمير فصل پورې او مجاوز نه دی نورو ضمائرو ته نو ذكرئې كړو ضمير فصل مستقل لپاره د بيان د احكام مختصو.

**سوال:** ذكر د بين وروستو د يتوسط نه لغوه او مستدرك دی ځكه يتوسط مشتق دی د توسط نه او توسط وقوع فی البين ته وائي نو دا لفظ دلالت كوی په بين باندې نو بين يې بيا ولې ذكر كړو؟

**جواب:** ذكر د بين وروستو د يتوسط نه بنا دی په تجريد باندې په دی شان سره چې دا په معنی د يقع دی پس شو دا عبارت د مصنف د قبيلې د دې قول د الله تعالى نه ﴿ سُبْحَانَ الَّذِي أَسْرَىٰ بِعَبْدِهِ لَيْلًا ﴾ (۲). يا ذكر د بين وروستو د يتوسط نه تصريح بما علم ضمناً ده او دا نه شي مسمى كولې په لغوه او استدراك سره او دا تصريح بما علم ضمناً ئې كړي ده لپاره د دفع د توهم ځكه د مبتدا او خبر په مينځ كې شدت اتصال دی فصل پكې نه دی جائز نو متوهم به دا توهم كوو چې ضمير فصل به نه راځي په مينځ دمبتدا او خبر كې نو مصنف دغه توهم دفع كړو.

**سوال:** اطلاق د مبتدا او خبر په دې مسند اليه او مسند باندې مخكې د دخول د عوامل نه حقيقة دی او وروستو د دخول د عوامل نه ورته مبتدا او خبر مجازاً وائي په اعتبار د ماكان سره نه حقيقة مثل قوله تعالى ﴿ وَآتُوا الْيَتَامَىٰ أَمْوَالَهُمْ ﴾ ځكه مبتدا او خبر حقيقة هغه وی چې مجرد وی د عواملو لفظيو نه نو دا خو جمع راغله بين الحقيقت والمجاز او دا نده جائز؟

**جواب:** (۱): دلته جمع بين الحقيقت والمجاز نشته بلكه عموم د مجاز دی عموم د مجاز ديته وائي چې تديو دريمه معنی واخلی چې د هغې اطلاق په معنی حقيقی موضوع له او معنی مجازی دواړو باندې كيږي حقيقة نو دلته ذكر د مبتدا او خبر دی او مراد ترينه مسند اليه او مسند دی او جز اول او جز ثانی د جملی دی او د دې اطلاق په مبتدا او خبر قبل العوامل او بعد العوامل كيږي حقيقةً.

(٢): جمع بين الحقيقة والمجاز ممتنع ده بدون القرينة او كه قرينه لپاره د تعيين د احدهما موجود وه بيا جائز ده كما في قوله تعالى ﴿ وَإِن كَانُوٓاْ إِخْوَةً رِّجَالًا وَنِسَآءً ﴾ ترجمه: كه چرې رو دا وارثان رونړه او خويندې دا اخوة حقيقت دى په وررونو كې او مجاز دى په خوېندو كې قرينه د حقيقت رجالاً دى او د مجاز نساء دى نو دلته هم قرينه د حقيقت قبل العوامل دى او قرينه د مجاز بعد العوامل دى (٣): جمع په مابين د حقيقت او مجاز كې ممتنع ده د لفظ واحده نه په آنِ واحده كې په جهت واحده سره او دلته په دې عبارت كې جمع په حيقيقت او مجاز كې د لفظ واحده نه په آن واحده كې او په جهت واحده سره نده بلكه په انين كې ده په اعتبار د جهات مختلفو سره چې حقيقت قبل دخول العوامل دى او مجاز بعد دخول عوامل دى (٤): جمع په مابين د حقيقت او مجاز كې ممتنع ده په نيزد د احنافو باندې او په نيز د مالكيو باندې جائز ده او مصنف مالكى المذهب دى (٥): دا اعتراض هله واردېږي چې قبل العوامل وبعدها صفة شي د المبتدا والخبر لپاره په اعتبار د متعلق محذوف سره ليكن دا صفة نه دى د المبتدا والخبر لپاره په اعتبار د متعلق محذوف سره بلكه دا متعلق دى په يتوسط پورې نو جمع نشته په مابين د حقيقت او مجاز كې يعنى واقع كيږي قبل العوامل او بعد العوامل، صيغه د مرفوع منفصل بين المبتدا والخبر.

**سوال:** ته وائې چې دا ضمير فصل واقع كيږي د مبتدا او خبر په مينځ كې قبل العوامل او بعد العوامل نو عوامل خو صيغه د جمع ده او ادنى مرتبه د جمع درې دى نو دا قاعده ستا منقوضه شوه په كنت انت الرقيب سره ځكه دلته عوامل نشته بلكه صرف يو عامل دى او ضمير فصل راغلي دى؟

**جواب:** په العوامل كې الف لام جنسي دى او الف لام جنسي چې داخل شي په جمع باندې نو معنى د جمعيت باطلوى نو مراد د دې نه جنس عامل لفظى دى، مثال د ضمير فصل چې راغلي وى بين المبتدا والخبر قبل العوامل لكه اولئك هم المفلحون شو، او مثال د هغې چې راغلي وى بعد العوامل نحو قوله تعالى ﴿ كُنتَ أَنتَ ٱلرَّقِيبَ ﴾ وقوله تعالى ﴿ وَلَا يَحْسَبَنَّ ٱلَّذِينَ يَبْخَلُونَ بِمَآ ءَاتَىٰهُمُ ٱللَّهُ مِن فَضْلِهِۦ هُوَ خَيْرًا لَّهُم ﴾ دا هو ضمير فصل دى چې د يحسبن لپاره مفعول اول مقدر واخلي چې بخلهم دى، وقوله تعالى ﴿ إِنَّهُۥ هُوَ ٱلْغَفُورُ ٱلرَّحِيمُ ﴾.

**سوال:** ته وائې چې اولئك هم المفلحون كې دا ضمير فصل واقع دى بين المبتدا والخبر قبل العوامل دا مثال مطابق نه شو د ممثل سره ځكه په مبتدا او خبر كې عامل معنوى شته دى؟

**جواب:** مراد د عوامل نه عوامل لفظيه دى نه مطلق عوامل او دلته عوامل لفظى نشته دى.

**سوال:** چې صيغه مرفوع منفصل بې وويل نو ضمير مرفوع منفصل بې ولې ونه ويل؟ **جواب:** د وجى د وجود د اختلاف نه په كون د دې كې ضمير اما په كون د دې كې صيغه د مرفوع منفصل د چا خلاف نه وو

**سوال:** صيغه د فصل د مبتدا او خبر په مينځ كې په صورت د ضمير مرفوع منفصل كې ولې ذكر كيږي؟ **جواب:** لپاره د دې چې لرې شي كون د مابعد صفت د ماقبل لپاره لان الضمير لا يوصف ولا يوصف به او دا صيغه د فعل چې واقع شي بين المبتدا والخبر دا به مرفوع وى لپاره د دې چې

موافقت یې راشي د طرفین سره او داسې مرفوع چې منفصل دی د وجې د عدم وجود د مایتصل به نه په دې شان سره چې دا ضمیر مرفوع منفصل مرفوع دی بنابر ابتدائیت او عامل یکې عامل معنوي دی او ضمیر کې چې عامل معنوی راشي نو دهغې انفصال واجب دی یا دا حرف دی په صورت د ضمیر مرفوع منفصل کې، **مطابق للمبتداء** او داسې ضمیر مرفوع چې مطابق به وی د مبتدا سره په افراد تثنیت جمعیت تذکیر او تانیث او تکلم خطاب او غیبت کې او د خبر سره که مطابق وی او که نه وی ځکه دا واقع شوی دی وروستو د مبتدا نه متصل بلا فصل او تعبیر دی د مبتدا نه او په مابین د معبر عنه او معبر کې مطابقت شرط دی.

**سوال:** نه وائې چې ضمیر مرفوع منفصل به مطابق وی د مبتدا سره دا قاعده ستا منقوضه شوه په ﴿كُنْتَ أَنْتَ الرَّقِيبَ﴾ سره په دې شان سره چې انت ضمیر مرفوع منفصل دی او دا نه دی مطابق د ماقبل سره چې (ت) ده ځکه هغه مرفوع متصل دی او دا منفصل دی دارنګې په دې قول د الله تعالی سره ﴿إِنَّهُ هُوَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ﴾ دلته دا هو مطابق نه دی د ماقبل سره ځکه هغه منصوب متصل دی او دا مرفوع منفصل دی؟ **جواب:** مراد د مطابقت نه مطابقت د ضمیر مرفوع منفصل دی د مبتدا سره په افراد، تثنیت، جمعیت الخ کې نه په اتصال او انفصال کې.

**سوال:** دا ضمیر فصل چې دمبتدا سره مطابق کوی نو د خبر سره یې ولې نه مطابق کوی باوجود ددې نه چې تعلق یې د خبر سره زیات دی ځکه غرض د ذکر د ضمیر فصل راجع دی خبر ته؟

**جواب:** دا ضمیر فصل واقع دی وروستو د مبتدا نه متصل بلا فصل او خبر لا نه وو ذکر شوی او بل دا چې دا تعبیر دی د مبتدا نه او معبر او معبر عنه کې مطابقت شرط دی.

**سوال:** ضمیر فصل چې مطابق وی د مبتدا سره نو د دې مطابقت خو د خبر سره هم راغلو ځکه په مینځ د مبتدا او خبر کې مطابقت شرط دی نو دا ضمیر مطابق شو د مبتدا سره او مبتدا مطابق وی د خبر سره نو دا هم مطابق شو د خبر سره ځکه مطابق د مطابق مطابق وی نو د دواړو سره یې مطابقت ولې شرط نه کړو؟ **جواب:** مطابقت د مبتدا سره شرط دی نه ده خبر سره په دې شان سره چې خبر د مبتدا صیغه د اسم تفضیل راشي مستعمل په من سره هلته عدم مطابقت د مبتدا سره واجب دی نو هلته به دا مطابق وی د مبتدا سره نه د خبر سره لکه الزیدان هما افضل من عمرو.

**ويسمى فصلاً:** **ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د تعریف د ضمیر فصل نه نو شروع یې وکړه په بیان د وجه د تسمیه د ضمیر فصل کې.

**ترجمه:** **ويسمى** او مسمی کولی شي دا صیغه د مرفوع منفصل فصلاً په ضمیر فصل سره عندالبصریین ویسمی الکوفیون عماداً، لیفصل ځکه جدائې راولې او امتیاز راولې دا صیغه د فصل یا دا ضمیر فصل **بين كونه** په مینځ د کون د دې مابعد کې په مینځ د کون د دې خبر کې **خبراً** خبر لپاره د ماقبل **ونعتاً** او نه نعت لپاره د ماقبل دا تسمیه د بصریان په نیز ده او کوفیان مسمی کوی دا ضمیر مرفوع منفصل په عماد سره **لانه يحفظ ما بعده عن السقوط عن الخبر مثل عماد البيت.**

**تشريح: سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟
**جواب:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د تعریف د ضمیر فصل نه نو شروع يې وکړه په بیان د وجه د تسمیه د ضمیر فصل کې چې دا کومه صیغه د مرفوع منفصل چې واقع شي بین المسند والمسند الیه نو دیته ضمیر فصل ځکه وائي چې فصل جدائي ته وائي او دا هم جدائي او امتیاز راولي د مابعد دکون د دې مابعد نه خبر - نه نعت په دې شان سره چې دا ضمیر فصل چې په مابین د مبتدا او خبر کې نه وو ذکر کړي لکه زید ن القائم نو دا ترکیب محتمل د احتمالین وو.
(۱): یو احتمال دا وو چې دا مبتدا او خبر دی. (۲): او بل احتمال دا وو چې دا موصوف او صفت دی او کله چې دا ضمیر فصل ذکر کړي شي په مینځ کې او زید هو القائم ووېلي شي نو دی ضمیر فصل جدائي راوسته چې دا مابعد خبر د مبتدا دی او صفت نه دی ځکه که دا موصوف صفت وی نو په مینځ کې به هو ضمیر مرفوع منفصل نه وو راغلي ځکه چې فصل بین الموصوف والصفة نه دی جائز او دا ترکیب هم نه دی جائز چې هو موصوف او مابعد يې صفت دی ځکه هو ضمیر دی او الضمیر لایوصف ولایوصف به پس متعینه شوه چې زید مبتدا ده او القائم ورله خبر دی.
**سوال:** ویسمی کې ضمیر راجع دی صیغة مرفوع منفصل ته او صیغة مؤنث دی او قاعده دا ده چې د فعل اسناد وشي ضمیر د مؤنث ته نو تانیث دفعل واجب دی مطلقاً مؤنث عام دی که لفظی وی او که حقیقی وی نو تسمی ویل پکار وو او دغسې اعتراض واردیږي په لیفصل باندې؟
**جواب:** (۱): دا ضمیر راجع دی مرفوع منفصل ته په تاویل د ضمیر سره.
(۲): دا ضمیر راجع دی صیغة ته او صیغة مضاف دی مرفوع ته او مرفوع مذکر دی نو دی مضاف د مضاف الیه نه تذکیر کسب کړی دی مثل قوله تعالی ﴿اِنَّ رَحْمَتَ اللّٰهِ قَرِيْبٌ﴾.
**سوال:** کونه ضمیر چاته راجع دی؟ **جواب:** دا ضمیر راجع دی خبر ته چې مذکور دی لفظاً (۲) یا راجع دی مابعد ته چې دا مذکور دی معناً چې معلومیږي د سیاق او سباق نه.
**وشرطه ان يكون الخبر معرفة: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د تعریف، او وجه د تسمیه د ضمیر فصل نه نو شروع يې وکړه په بیان د شرط د ضمیر فصل کې.
**ترجمه: وشرطه** شرط لپاره د وجود د ضمیر فصل په استعمال د کلام د عربو کې یا شرط لپاره د ایراد د ضمیر فصل بین المبتدا والخبر **ان يكون الخبر معرفة** کون د خبر دی معرفه نحو زید هو القائم، اولئك هم المفلحون، **اوافعل من كذا** یا کون د خبر دی صیغه د اسم تفضیل مستعمل په من سره ځکه دا معرفه ده حکما، په دې شان سره.
(۱): چې ځنګه چې معرفه دلالت کوی په مصداق معین باندې نو دا صیغه د اسم تفضیل مستعمل بمن هم دلالت کوی په مصداق معین باندې.
(۲): لکه ځنګه چې دخول د الف لام ممتنع دی په معرفه باندې نو دارنګې په دې باندې هم ممتنع دی (۳). لکه ځنګه چې اضافت د معرفه ممتنع دی غیر ته نو دارنګې د صیغې د اسم تفضیل

مستعمل بمن اضافت هم ممتنع دی غیر ته، او هر کله چې کون د خبر معرفه مستلزم وو کون د مبتدا معرفی لره ځکه مبتدا نکره او خبر معرفه مجرد احتمال عقلی دی په کلام د عربو کې وجود نه لري پس ذکر کړو مصنف شرط لپاره د وجود د ضمیر فصل کون د خبر معرفه فقط، او هر کله چې ایراد د ضمیر فصل بین المبتدا والخبر مسموع من العرب وو خلاف القیاس پس دا مختص شو په دې مورد د سمع پورې نو مبتدا او خبر چې نکره راشي نو هلته ضمیر فصل نه شي ذکر کولي او مثال د ضمیر فصل بین المبتدا والخبر بعد العوامل او خبر صیغه د اسم تفضیل مستعمل په من سره، لکه کان زید هو افضل من عمرو شو، هو ضمیر فصل دی واقع شوی دی بین المبتدا والخبر پس د دخول د عامل لفظی نه چې کان دی او خبر د دې صیغه د اسم تفضیل ده مستعمل په من سره او وقوع د ضمیر فصل بین المبتدا والخبر قبل العوامل چې خبر یې معرفه راغلي وی حقیقة کثیر او شائع دی په استعمال د کلام د عرب کې او د وجې د کثرت استعمال نه مصنف نه دی ذکر کړي.

**تشریح: سوال:** وشرطه کې ضمیر راجع دی صیغة مرفوع منفصل ته نو مطابقت نشته بین الراجع والمرجع؟ **جواب:** (۱): دا ضمیر صیغة مرفوع منفصل ته نه دی راجع بلکه وجود د صیغی د مرفوع منفصل ته راجع دی (۲) یا راجع دی ایراد د ضمیر مرفوع منفصل ته بین المبتدا والخبر.
(۳): یا راجع دی صیغة د مرفوع منفصل ته په تاویل د مذکور سره ای شرط المذکور من الصیغة (۴): یا راجع دی صیغة مرفوع منفصل ته ځکه صیغة تذکیر کسب کړی دی د مضاف الیه نه چې مرفوع دی.

**سوال:** د وجود د ضمیر فصل لپاره کون د خبر معرفه یا کون د خبر صیغه د اسم تفضیل مستعمل په من سره ولې شرط شو؟ **جواب:** ضمیر فصل ذکر کولي شي بین المبتدا والخبر لیفصل بین کونه خبرا او نعتا او فصل بین الخبر والنعت په ضمیر فصل سره هله راځي چې مبتدا او خبر دواړه معرفی وی او که مبتدا معرفه وی او خبر نکره وی بیا التباس نه راځي.

**سوال:** التباس بین الخبر والنعت لکه څنګه چې په مبتدا او خبر معرفه کې راځي نو دارنګې په مبتدا او خبر نکره کې هم راځي نو مبتدا او خبر چې کله نکره وی نو هلته ولې ضمیر فصل نه شي ذکر کولي؟ **جواب:** ایراد د ضمیر فصل بین المبتدا والخبر معرفه ثابت دی او مسموع دی د عرب نه خلاف القیاس ځکه د عقل تقاضه دا ده چې د مبتدا او خبر په مینځ کې شدت اتصال دی نو فصل دی رانه وستلی شي په ضمیر فصل سره، او قاعده دا ده چې کوم حکم چې ثابت وی خلاف القیاس هغه مختص دی په مورد د سمع پورې ولا یقاس علیه غیره.

**سوال:** ته وائي چې ضمیر فصل ذکر کولي شي بین المبتدا والخبر لیفصل بین کونه خبرا ونعتاً دا خبره په زید هو القائم کې خو صحیح شوه ځکه که هو ذکر نه کړو نو التباس راځي د خبر او نعت په مینځ کې لیکن کنت انت الرقیب کې خو التباس بین الخبر والنعت نه راځي ځکه اسم د کان ضمیر دی والضمیر لایوصف ولا یوصف به (۲) الرقیب منصوب دی دا دلالت کوی چې دا خبر د کان دی نه صفت ځکه که صفت وی نو مرفوع به وو نو دلته التباس نشته نو بیا ولې ضمیر فصل ذکر کړی دی؟

**جواب:** په کوم ځای کې چې التباس راځي نو هلته ضمير فصل ذکر کولی شي لپاره د دفع د التباس بين الخبر والنعت او صورت د عدم التباس محمول دی په صورت د التباس باندې طرداً للباب.

**سوال:** دايراد د ضمير فصل لپاره لکه څنګه چې کون د خبر معرفه شرط دی دارنګې کون د مبتدا معرفه هم شرط دی نو تا يواځې کون د خبر معرفه ولې ذکر کړو؟

**جواب:** کون د خبر معرفه مستلزم دی کون د مبتدا معرفه لره ځکه په مبتدا او خبر کې احتمالات عقليه څلور دی درې موجود فی الخارج دی او يو مجرد احتمال عقلي دی په خارج کې وجود نه لري.

(۱): چې دواړه معرفی وی نحو الله الهنا، محمد نبينا (۲): دواړه نکری نحو ولعبد مؤمن خير من مشرك (۳): مبتدا معرفه او خبر نکره نحو زيد قائم، دا درې موجود دی. (۴): او چې مبتدا نکره او خبر معرفه وی دا مجرد احتمال عقلي دی در خارج وجود ندارد، د دې وجې نه نحويانو دا فيصله کړې ده او قاعده يې بيان کړې ده چې هر کله دوه اسمونه وموندل شو په کلام د عرب کې چې يو معرفه وه او بل نکره وو نو د معرفی نه به مبتدا جوړه وو او د نکری نه به خبر جوړ وو اګر که معرفه وروستو وی او نکره مخکې وی ليکن سيبويه په دوه ځايونو کې د نکری نه مبتدا جوړوی او د معرفی نه خبر جوړ وی په خلاف د جمهورو نه.

(۱): چې اسم متضمن وی معنی د حرف استفهام لره نحو من ابوك جمهور وائي چې من خبر مقدم دی او ابوك مبتداء مؤخره ده بنا په قاعده مذکوره باندې او سيبويه وائي چې من مبتداء ده او ابوك خبر دی او تقديم د مبتداء راغلي دی په خبر باندې په تقديم وجوبی سره، او سيبويه وائي چې دا من اګر چې لفظاً نکره ده خو معنی معرفه ده او اصل په مبتدا کې تقديم دی تر څو پورې چې د مقدم نه مبتدا جوړيده نو دهغې نه به مبتدا جوړ وی او د مابعد نه به خبر جوړ وی.

(۲): مررت برجل افضل منه ابوه کې جمهور وائي چې افضل منه خبر مقدم دی او ابوه مبتداء مؤخره ده او جمله صفت د رجل دی او سيبويه وائي چې افضل منه مبتداء ده او ابوه يې خبر دی ځکه صيغه د اسم تفضيل چې مستعمل شي په من سره دا معرفه ده حکما کما مر.

**سوال:** ته وايې چې صيغه د اسم تفضيل چې مستعمل شې په من سره نو دا معرفه ده حکما لکه څنګه چې په معرفه الف لام نه داخليږی نو دارنګه په دی هم نه داخليږی دا قاعده ستا منقوضه شوه په دی قول د شاعر: ولست بالاکثر فهم حصي انما العزت للکاثر

دلته اکثر صيغه د اسم تفضيل مستعمل ده په من سره او الف لام پری داخل شوی دی؟

**جواب:** اول دا الف لام زائد دی نه تعريفی (۲) که تعريفی شی نو بيا به دا من په منهم کې تفضيلی ندی بلکې تبعيضی دی (۳) يا دا من بمعنی في دی مثال قوله تعالى: و اذا نودي للصلاة من يوم الجمعة ای في يوم الجمعة (۴) يا من تفضيلی دی داسم تفضيلی مقدر لپاره نه د مذکور لپاره ای ولست بالاکثر کثر منهم حصی يجوز في الشعر مالايجوز في غيره. فافهم

**سوال:** ته وائي چې کون د خبر معرفه او مبتدا نکره مجرد احتمال عقلي دی درخارج وجود نه لري دا قاعده ستا منقوضه شوه په دې قول د شاعر سره!

قبر حرب بمكان قفر
ليس قرب قبر حرب قبر

چې دلته قبر اسم د ليس مسند اليه نکره ده او قرب قبر حرب خبر دی او معرفه ده؟

**جواب:** (۱): دا قرب بمعنی قارب دی اضافت د دې مابعد ته اضافت لفظی دی دا مفيد د تعريف نه دی لهذا مسند او مسند اليه دواړه نکري دی (۲): يا قرب صفت مشبه دی او مضاف دی مابعد ته په اضافت لفظی سره بيا دواړه نکري دی (۳): يجوز فی الشعر مالا يجوز فی غيره.

(۴): لکه څنګه چې مسند معرفه ده نو مسند اليه هم معرفه ده ځکه دا نکره مخصصه ده واقع ده وروستو د نفی نه او نکره مخصصه په حکم د معرفه کې وی نو مونږ وايو چې خبر معرفه او مبتدا نکره محضه نه شي راتلي او خبر معرفه او مبتدا نکره مخصصه راتلي شي.

(۵): مونږ وايو چې دا نه شي راتلي په کلام د عربو انسانانو کې او دا کلام د جنات دی.

(۲): مونږ وايو چې خبر معرفه او مبتدا نکره په کلام فصيح کې نه راځي او دا خو کلام غير فصيح دی په دې شان سره چې دا خارج دی د دائرې د فصاحت نه د وجې د تنافر الکلمات نه.

**سوال:** ته وائي چې خبر معرفه او مبتدا نکره په کلام فصيح کې نه راځي دا قاعده ستا منقوضه شوه په دې قول د الله تعالى سره چې ﴿ إِنَّ أَوَّلَ بَيْتٍ وُضِعَ لِلنَّاسِ لَلَّذِي بِبَكَّةَ ﴾ مسند اليه نکره ده او للذی ببكة مسند معرفه ده؟ **جواب:** للذی ببكة موصول مع الصله خبر د ان نه دی بلکه خبر د مبتدا محذوف دی ای لهو الذی ببكة دا جمله بيا خبر د ان دی او جمله په حکم د نکره کې وی.

**سوال:** تاسو وائي چې مبتدا او خبر چې معرفی وی نو لابدي ده د ايراد د ضمير فصل نه دا قاعده ستاسو منقوضه شوه په الله الهنا او محمد نبينا سره دلته مبتدا او خبر دواړه معرفی دی او ضمير فصل نشته؟ **جواب:** ايراد د ضمير فصل بين المبتدا والخبر مشروط دی او کون د مبتدا او خبر معرفه ورله شرط دی او قاعده دا ده چې وجود د مشروط مستلزم دی وجود د شرط لره نو ضمير فصل چې راشي بين المبتدا والخبر نو کون د مبتدا او خبر معرفه ضروری دی او وجود د شرط مستلزم نه دی وجود د مشروط لره، لکه وضوء شرط دی د صلوة لپاره نو وجود د وضوء مستلزم نه دی وجود د صلوة لره، او وجود د صلوة مستلزم دی وجود د وضوء لره په دې شان سره چې بې د وضوء نه صلوة شرعی نه متحقق کيږي (بلاعذره) لهذا دا لازمه نده چې کوم ځای مبتدا او خبر معرفه رونو هلته به ضمير راغلي وی، د دې نظير په صرف کې لکه کون د ماضی او مضارع مفتوح العين مشروط او کون د عين يا لام کلمه حرف حلق ورله شرط دی، اوس چرته چې ماضی او مضارع دواړه مفتوح العين وی، نو عين يا لام کلمه به يې خامخا حرف حلق وی ځکه مشروط بې د شرط نه نه راځي او دا لازمه نده چې چرته عين يا لام کلمه مضارع او ماضی حرف حلق وی هغه به مفتوح العين وی بلکه داسې هم کيدی شي چې عين يا لام کلمه يې حرف حلق وی او ماضی مضارع دواړه مفتوح العين نه وي لکه وعد يعد، سمع يسمع، شغل يشغل، شو ځکه شرط بې د مشروط نه هم موجوديږي.

**سوال:** دا خبره ستا منقوضه شوه بقوله تعالى ﴿ وَمَكْرُ أُولَٰئِكَ هُوَ يَبُورُ ﴾ دلته ضمير فصل بين المبتدأ والخبر راغلي دى او خبر معرفه نده بلكه جمله ده نو وجود د مشروط راغى بى د شرط نه؟
**جواب:** (١): انه مبتداء و مابعده خبره (٢): او تاكيد لما قبله كما فى قوله تعالى ﴿ وَأَنَّهُ هُوَ أَضْحَكَ وَأَبْكَىٰ ﴿٤٣﴾ وَأَنَّهُ هُوَ أَمَاتَ وَأَحْيَا ﴾

**سوال:** كنت انت الرقيب او كان زيد هو افضل من عمرو كي التباس نشته ضمير فصل ولي راوړي دي؟
**جواب:** صورت د عدم التباس محمول دى په التباس باندې حملاً طرداً للباب او طرد الباب لپاره مثال مخكې تير شو ي وو صفة جرت على غير من هى له كي
(٢): بعض ضمائر مبني دى لشبهة بالحرف وصفاً او باقي محمول دى طرداً.
(٣): ضربن مبني على السكون چې لازم نشي توالى د اربع حركاتو او دحرجن محمول دى طرداً للباب (۴) حمراوات جمع مؤنث سالم كي همزه واو سره بدليږى چې لازم نشى اجتماع دعلامتينو د تانيث او په تثنيه كي هم په واو سره بدليږى طردا للباب، ومن الصرف: (١) نحو يعد په ديكي واو حذف شوي دى د قاعدى د وجې نه اعد نعد تعد كي حذف شوي طردا للباب، (٢) اكرم كې همزه حذف شوي ده د وجى د اجتماع د همزتينو نه او په يكرم، تكرم، نكرم، كې حذف شوي ده طردا للباب. ومن المشروع رمل فى الطواف مشروع دى په ابتداء كې لاظهار الجلد ثم زالت العلة وبقى الحكم طردا للباب (٢) العدة شرعت براءة الرحم ثم ثبتت فى مواضع ليس فيها شغل الرحم طردا لان النفوس تانس بثبوت الحكم فلاينبغى ان يزول ذلك الانس.

**سوال:** كان زيد هو افضل من عمرو مثال دى د هغه ضمير لپاره چې واقع دى بين المبتدا والخبر بعد العوامل او دا مثال دى د هغې لپاره چې خبر د مبتدا صيغه د اسم تفضيل ده مستعمل په من سره او ضمير فصل چې واقع شوى دى بين المبتدا والخبر قبل العوامل او واقع شوى وى د مبتدا او خبر معرفه په مينځ كې د هغې مثال يې ولې ذكر نه كړو؟ **جواب:** د هغې مثال يې ترك كړى دى د وجى د شهرت نه ځكه وقوع د ضمير فصل بين المبتدا والخبر معرفه قبل العوامل كثير او شائع دى په استعمال د كلام دعرب كې په خلاف د هغه ضمير فصل نه چې هغه واقع وى بين المبتدا والخبر بعد العوامل او د مبتدا لپاره خبر صيغه د اسم تفضيل وى مستعمل په من سره دا قليل دى.

**سوال:** كان زيد هو افضل من عمرو مثال دى د عدم التباس مثال د التباس يې ولې ذكر نه كړو؟ **جواب:** (١): مثال د عدم التباس يې ذكر كړو نه مثال د التباس ځكه په دې كې اشاره ده دى خبرى ته چې ضمير فصل بين المبتدا والخبر راځي سره د عدم التباس نه اما په صورت د التباس كې په طريق اولى سره راځي. (٢): دا نص دى او صريح دى په مثال كې زيد هو القائم نه دا محتمل د احتمالين دى.

**ولا موضع له عند الخليل:** **ربط:** دا جمله مستانفه واقع شوې ده جواب د سوال ځكه هر كله چې مصنف بيان د ضمير فصل وكړو نو معترض اعتراض وكړو په مصنف باندې چې دا كوم ضمير چې واقع ي بين المبتدا والخبر معرفه دا په تركيب كې څه واقع كيږي او د دې لپاره اعراب محلى شته

که نو مصنف جواب وکړو لاموضع له الخ سره خلاصه د جواب دا ده چې دا کوم ضمير چې واقع شي په مابين د مبتدا او خبر معرفه کې په دې کې مذاهب ثلاثه دي.

(١): **يو مذهب د خليل دى لاموضع** نشته دى محل ثابت د دې ضمير لپاره د اعراب نه **عند الخليل** د خليل په نزد باندې څکه خليل وائي چې دا حرف دى داخل کړې شوى دى بين المبتدا والخبر ليفصل بين کونه خبراً ونعتاً په شان د کاف د اولئك او په شان د تاء د انت يعني لکه څنګه چې کاف د اولئك او تاء د انت حرف دى محل من الاعراب ورله نشته نو دغه شان د دې صيغې د فصل لپاره هم محل من الاعراب نشته.

(٢): **دويم مذهب د بعض دى** هغوى وائي چې دا کومه صيغه د مرفوع منفصل چې واقع ده بين المبتدا والخبر دا اسم دى ليکن داسې اسم دى چې بالکل خالي دى او کنګال دى د اعراب نه څکه دا نه عامل دى او نه معمول او اعراب به اسم کې هله راځي چې مرکب شي د غير سره او عامل ورسره موجود وي لفظاً يا معناً او خليل ديته حرف وائي نه اسم څکه هغه وائي چې اول قول کول په اسميت د ده باندې او بيا د هغې نه بعد حکم کول په لامحل لها من الاعراب سره منافي دى د اسميت سره او مکروه دى عند النحات نو د دې کراهت نه ځان ساتلو لپاره هغه قول وکړو په حرفيت باندې. **ويعض العرب يجعله مبتداء وما بعده خبره: ترجمه: ويعض العرب** او بعض د عربو نه **يجعله** مستعملوي ضمير فصل لره پداسې استعمال سره چې حکم کوى نحويان په کون د ضمير فصل باندې مبتداء او حکم کوى په هغه شي باندې چې وروستو د دې نه دى خبر د مبتدا لکه وائي بعض عرب په کنت انت الرقيب کې کنت انت الرقيب او په علمت زيداً هو المنطلق کې علمت زيداً هو المنطلقُ وائي اوس کنت انت الرقيب کې الرقيبُ مرفوع دى څکه دا خبر دى او انت مبتدا ده او المنطلقُ خبر دى او هو مبتدا ده **ومابعده خبره** په دې مقام کې نُسخې د کافيه دوه قسم دى (١) يوه نسخه کې د مابعده نه مخکې واو راغلې دى او بله نسخه کې واو نشته، کومه نسخه کې چې واو راغلې دى په هغه نسخه کې په خبره کې دوه قسمه اعراب لوستل جائز دى (١) خبره منصوب هم جائز دى څکه دا ما موصوله او بعده ظرف صله د موصول دا عطف دى په مفعول اول د يجعل باندې او خبره عطف دى په مفعول ثاني باندې د يجعل نو عطف د اسمين راغي په معمولين د عامل واحد باندې او دا جائز دى بالاتفاق (٢) او خبره مرفوع لوستل هم جائز دى څکه ما موصوله بعده ظرف صله د موصول موصول مع صله مبتدا او خبره ورله خبر دى او دا جمله حال دى د مفعول اول د يجعل نه، او په کومه نسخه کې چې مابعده راغلې دى بدون الواو، نو په خبره کې رفع متعين ده بنا بر خبريت اونصب لوستل يکې نه دى جائز څکه نصب جائز وو دهوجې د عطف نه په ماقبل باندې او دلته واو عاطفه نشته.

**سوال:** زيد هو القائم کې هو په ترکيب کې څه واقع شوى دى؟ **جواب:** په دې کې درې مذاهب دى او درې ترکيبونه دى. (١): زيد مبتدا القائم ورله خبر دى او هو حرف فصل دى لامحل لها من

الاعراب (٢): زید مبتدا القائم ورله خبر دی هو ضمیر فصل اسم ملغی دی عن الاعراب ځکه دانه عامل دی او نه معمول دی (٣): زید مبتدا اول هو مبتدا ثانی القائم خبر د مبتدا ثانی مبتدا سره د خبر نه جمله خبر د مبتدا اول مبتدا سره د خبر نه جمله خبریه اسمیه شوه.

**ویتقدم قبل الجملة**: **ربط**: هر کله چې ضمیر شان او ضمیر قصه بعض د ضمائرونه وو، او وو د دې لپاره احکام مختصه په دې شان سره چې هغه جاري کیږي په ضمیر شان او ضمیر قصه کې او په باقي ضمائرو کې نه جاري کیږي نو ذکر کړو مصنف ضمیر شان لره جدا لپاره د بیان د احکام مختصه

**ترجمه**: **ویتقدم** واقع کیږي **قبل الجملة** مخکې د جنس جملې نه ذکر د قبل وروستو د یتقدم نه بنا دی په تجرد باندې یا دا تصریح بما علم ضمناً ده.

(٢): یا ترجمه دا ده چې واقع کیږي ضمیر غائب متقدم بې دسبقیت د مرجع نه او دغه معنی په اعتبار د مفهوم سره عامه ده چې مخکې د جملې نه وی او که نه وي نو ځکه مقید و ګرځوو مصنف یتقدم لره په قبل الجملة سره **ضمیر غائب** ضمیر غائب نو احتراز ئې وکړو په دې سره د ضمیر د متکلم او مخاطب نه ځکه ضمیر د متکلم او مخاطب ضمیر شان نه راځي **یسمی** او مسمی کولې شي دغه ضمیر غائب د نحویانو په اصطلاح کې **ضمیر الشان** په ضمیر شان سره که دا ضمیر مذکر وو نحو قوله تعالی قل هو الله احد، والقصة یا مسمی کولې شي په ضمیر قصی سره که ضمیر مؤنث وو نحو قوله تعالی فانها لاتعمی الابصار ﴿ أَوَلَمْ يَكُن لَّهُمْ آيَةً أَن يَعْلَمَهُ عُلَمَاءُ بَنِي إِسْرَائِيلَ ﴾ ای اولم تکن القصة (١) لپاره د رعایت په مینځ دضمیرشان او ضمیر قصه کې او په مینځ د هغه شئ کې چې عمده دی په جمله مفسره کې ځکه دا ضمیر راجع دی هغه عمده ته.

(٢): ځکه دا ضمیر شان او قصه راجع دی معهود فی الذهن ته چې هغه شان او قصه ده.

(٣): یا دی ضمیر غائب نه ضمیر شان او قصه ځکه وائي چې دا نه داخلیږي مګر په هغه جمله باندې چې د هغې شان او قصه عظیمه وی داسې ضمیر غائب **یفسر** چې د هغه بیان کولې شي ځکه په دې کې ابهام دی د وجې د عدم تعین د مرجع نه **بالجملة** په جمله خبریه سره **بعده** چې هغه ذکر شوی وی وروستو د ضمیر غائب نه (١) ځکه دغه ضمیر راجع دی شان ا وقصه ته او شان او قصه نه وي مګر په جمله کې وی (٢) ځکه مقصود په دې کې بیان د نسبت او حکم دی اولا اجمالا او بیان تفصیلا او حکم او نسبت په جمله کې وی نه په مفرد کې او جمله انشائیه د چا لپاره بیان نه واقع کیږي.

**تشریح**: **سوال**: دا ضمیر شان او ضمیر قصه یو فرد دی د افرادو مطلق د ضمیر نه او د مطلق ضمیر بیان وشو او دا داخل دی په هغې کې نو دا یې جدا ولې ذکر کړی دی؟ **جواب**: منم چې ضمیر شان یو فرد دی د افرادو د مطلق ضمیر نه لیکن د دې لپاره احکام مختصه دی په دې شان سره چې هغه احکام دی لره ثابت دی نه غیر لره نو دا یې ذکر کړو لپاره د بیان د احکامو مختصو.

**سوال**: ذکر د قبل وروستو د یتقدم نه لغوه دی ځکه چې تقدم دلالت کوی په قبلیت باندې؟

**جواب:** ذکر د قبل وروستو د یتقدم نه بنا دی په تجرید باندې مثل قوله تعالی ﴿ سُبْحَانَ الَّذِي أَسْرَىٰ بِعَبْدِهِ لَيْلًا ﴾ (۲) یایې دا قبل ذکر کړی دی وروستو د یتقدم نه لپاره د تصریح بما علم ضمناً. او مقصود په دې سره تاکید دی او مقصود په تاکید کې رفع د توهم ده څکه تقدم د ضمیر په مرجع باندې غیر معهود دی، نو لابدي شوه د تاکید نه لپاره د دفع د توهم او تاکید یې وکړو په تصریح بما علم ضمنا سره (۳) ذکر د قبل وروستو د یتقدم نه لغوه نه دی څکه چې معنی د یتقدم دا ده چې یقع مقدما من غیر سبق مرجع او دا باعتبار المفهوم عام دی که مخکې د جملې نه وی او که نه وي نو څکه مصنف دا مقید کړو په قبل الجملة سره.

**سوال:** ویسمی الخ په تعریف کې داخل دی کنه؟ **جواب:** په دې کې دوه مذهبه دی:

(۱): **شارح هندي وائي چې** دا په تعریف کې داخل دی په دې شان سره چې غائب موصوف دی او یسمی ضمیر الشان والقصة ورله صفت اولی دی او یفسر الخ ورله صفت ثانی دی.

(۲): **او شارح جامی صاحب وائي چې** دا په تعریف کې نه دی داخل په دې شان سره چې ضمیر غائب موصوف یفسر الخ ورله صفت دی او یسمی الخ جمله معترضه ده واقع شوې ده بین الموصوف والصفة لپاره د بیان د تسمیه د ضمیر غائب او د لائل د شارح جامی لپاره دوه دی:

(۱): څکه نشته دی دخله د تسمیه لپاره په دې حکم کې څکه دا حکم ثابت دی په واقع او نفس الامر کې برابره خبره ده که دا مسمی په دې نوم سره وی او که نه وي

(۲): که چرته یسمی الخ داخل شي په تعریف کې نو ذکر د یفسر الخ لغوه دي او مستدرك دی څکه په یفسر الخ سره چې کوم اشیاء مونږه خارج کوو نو هغه خارج شو په یسمی الخ سره نو یفسر ته څه ضرورت پاتې نشو.

**سوال:** جمله معترضه ذکر کولي شي په مابین د متلا زمینو د کلام کې د یو غرض لپاره نو دلته په مینځ د موصوف او صفت کې څه لپاره ذکر شوې ده؟ **جواب:** غرض د مصنف په دې کې بیان د نوم د دې ضمیر غائب دی چې په دې سره د دې امتیاز راشي د باقي افرادو د ضمیر نه.

**سوال:** بنا په مذهب ستا باندې دا تعریف د ضمیر شان مانع نه شو د دخول د غیر نه داخل شو پکې الشان هو زید قائم څکه هو ضمیر غائب دی واقع دی په سر د جمله کې او ما بعد جمله ورله مفسره ده څکه په ارجاع د دې ضمیر سره شان ته هغه ابهام نه پورته کیږي نو تعریف وربانديصادق دی او د افرادو د ضمیر شان نه نهٔ دی او د شارح هندي په مذهب باندې دا اعتراض نشته؟

**جواب:** دغه ترکیب خارج شوی دی د تعریف د ضمیر شان نه په لفظ د یتقدم سره څکه د یتقدم معنی دا ده چې یقع مقدما من غیر سبق مرجع او دلته سره د سبقیت د مرجع نه دی چې شان دی.

**سوال:** دی ضمیر غائب ته به شان کله وایو او قصه به ورته کله وایو **جواب:** دا ضمیر غائب به خالي نه وي یا به ضمیر د مذکر وی او یا به ضمیر د مؤنث وی که ضمیر د مذکر وو نو مسمی کولي شي په ضمیر شان سره او که ضمیر د مؤنث وو نو مسمی کولي شي په ضمیر قصه سره.

**سوال:** دی ضمیر شان ته ضمیر شان ولي وائي او ضمير قصه ته ضمير قصه ولي وائي؟
**جواب:** شارح هندي وائي چې دی ضمير شان ته ضمير شان ځکه وائي چې دا راجع دی شان ته او ضمير قصه ته ضمير قصه ځکه وائي چې دا راجع دی قصه ته، او شارح جامی وائي چې دی ضمير غائب مذکر ته ضمير شان وائي او مؤنث ته ضمير قصه وائي لپاره د رعايت د مطابقت په مينځ د ضمير او هغه شئ کې چې عمده دی په جمله مفسره کې ځکه دا هغې ته راجع دی او د دې وجې نه ورته نه وائي چې دا راجع دی شان او قصه ته ځکه چې که دا راجع شي شان او قصه ته نو بيا خو دا ضمير شان او ضمير قصه نه شو (٢) يا د دې وجې نه چې دا داخليږي په هغه جمله باندې چې شان او قصه د هغې عظيمه وی.
**سوال:** يفسر بها بعده يې ولي ونه ويل ځکه يو شي چې يو ځل اسم ظاهر ذکر شي نو ثانيا په ضمير سره ذکر کولي شي؟ **جواب:** يفسر بالجملة بعده يې وويل او يفسر بها بعده يې ونه ويل ځکه دا قاعده په هغه ځای کې ده چې د ثاني نه بعينه اول مراد وی او دلته د اول نه جنس جمله مراد ده او د ثانی نه جمله خبريه مراد ده (٢) يا يې وضع د اسم ظاهر کړي ده په مقام د ضمير کې لزيادة التمکن فی الذهن.
**سوال:** د ضمير شان او قصه تفسير په جملې سره ولي کولي شي؟
**جواب:** (١) ځکه چې دا ضمير راجع دی شان او قصی ته او شان او قصه نه وی مګر په جمله کې وی (٢) ځکه مقصود په دی کې بيان د نسبت او حکم دی اول اجمالاً او بيا تفصيلاً او نسبت او حکم په جمله کې وی په مفرد کې نه وي.
**سوال:** د دې بيان چې په جمله خبريه سره کوی نو په انشائيه سره يې ولي نه کوی؟
**جواب:** ځکه چې جمله انشائيه د چا لپاره بيان نه واقع کيږي نو د دې تعريف د ضمير شان نه معلومه شوه چې ايراد د ضمير شان په استعمال د کلام د عربو کې مشروط دی په شروط اربعو سره.
(١): ضمير غائب به وی دا معلوميږي د ضمير غائب نه.
(٢): واقع به وی مخکې د جملې نه دا معلوميږي د وی ويتقدم قبل الجملة نه.
(٣): دا جمله به بيان وی دی ضمير لپاره او دا معلوميږي د يفسر بالجملة بعده نه.
(۴): مضمون د جملې به عظيم الشان وی ځکه مقصود په ضمير شان کې بيان د حکم دی اول اجمالاً او بيا تفصيلاً ځکه تفصيل بعد الاجمال اوقع فی الذهن وی او دا هله کولي شي چې مضمون عظيم الشان وی فلايقال انه لقد طار الذباب ځکه طيران د ذباب عظيم الشان خبره نده ويقال قل هو الله احد ځکه دا مضمون د جمله چې وحدانيت د الله تعالى دی دا عظيم الشان مضمون دی
**سوال:** ته وائي چې ايراد د ضمير شان مشروط دی په شروط اربعو سره دا قاعده ستا منقوضه شوه په دې قول د الله تعالی سره ﴿وَهُوَ مُحَرَّمٌ عَلَيْكُمْ إِخْرَاجُهُمْ﴾ دا هو ضمير شان دی، واقع دی مخکې د محرم عليکم اخراجهم نه او دا جمله نده بلکه شبه جمله ده په دې شان سره چې محرم صيغه د اسم مفعول ده اخراجهم ورله نائب فاعل دی او عليکم متعلق دی په دی اسم مفعول پورې.

**جواب:** که هو ضمیر شان شي نو بیا ترکیب دغسې نه دی لکه چې تا وکړو بلکه ترکیب داسې دی چې محرم صیغه د اسم مفعول ده ضمیر پکې مستتر دی هغه ورله نائب فاعل دی او علیکم متعلق دی په دې اسم مفعول پورې اسم مفعول سره د نائب فاعل او سره د متعلق نه شبه جمله خبر مقدم دی او اخراجهم ورله مبتدا مؤخر ده مبتدا سره د خبر نه جمله اسمیه خبریه تفسیر واقع شوی دی د ضمیر شان لپاره.

**ویکون منفصلاً و متصلاً: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د تعریف د ضمیر شان او ضمیر قصه نه نو شروع یې وکړه په تقسیم د ضمیر شان او قصه کې لپاره د اتمام د تعریف د ضمیر الشان والقصه ځکه تقسیم د متمماتو او مکملاتو د تعریف نه دی ځکه په تعریف سره معلومیږي معنی او مفهوم د شئ او په تقسیم سره معلومیږي افراد او مصداق د شئ نو پس د تقسیم نه مونږ ته ضمیر شان معلوم شو مفهوما او مصداقاً.

**ترجمه: ویکون** او کیږي دغه ضمیر شان او قصه **منفصلا** منفصل د وجې د تعذر د اتصال نه **ومتصلاً** او متصل په عامل پورې د وجې د عدم تعذر د اتصال نه او بیا دا ضمیر متصل **مستترا** مستتر راځي په عامل کې **وبارزا** او غیر مستتر راځي **علی حسب العوامل** موافق د اقتضاء د عامل په دې شان سره چې دا عامل به خالي نه وي یا به عامل لفظی وی او یا به عامل معنوی وی که عامل پکې عامل معنوی وو نو بیا دا ضمیر شان منفصل راځي د وجې د تعذر د اتصال نه په امر معنوی پورې مثال لکه **هو زید قائم** شو اوکه عامل پکې عامل لفظی وو نو دا ضمیر شان به خالي نه وي یا به مرفوع وی یا به منصوب وی که مرفوع وو نو بیا دا ضمیر شان متصل مستتر راځي لکه مثال **کان زید قائم. ترکیب:** کان فعل دی د افعال ناقصو نه اسم مرفوع خبر منصوب غواړي، ضمیر شان پکې مستتر دی هغه اسم د کان زید مبتدا او قائم یې خبر دی مبتدا سره د خبر نه جمله خبریه اسمیه خبر د کان، کان سره د اسم او خبر نه جمله فعلیه خبریه شوه.

او که دا ضمیر شان منصوب وو نو بیا دا بارز متصل راځي اوس عامل ناصب عام دی که حرف وی لکه **انه زید قائم** ه ضمیر شان منصوب دی ځکه اسم د ان دی او متصل دی په حرف پورې د وجې د عدم تعذر د اتصال نه بل مثال نحو علمته زیدا فاضلا، ه ضمیر شان منصوب دی او متصل دی په فعل پورې د وجې د عدم تعذر د اتصال نه او بارز دی نه مستتر ځکه چې دا ضمیر منصوب دی او استتار خصوصیت د ضمیر مرفوع دی.

**تشریح، سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی یعنی دا په تعریف کې داخل دی، یا غرض بیان د حکم د ضمیر شان دی او که غرض د مصنف تقسیم دی په ضمیر شان کې؟.

**جواب:** ربط د ماقبل سره دا دی چې دا مخکې تعریف د ضمیر شان وو او دا تقسیم دی په ضمیر شان کې نو په معرفت د ربط سره غرض د مصنف هم معلوم شو چې تقسیم دی په ضمیر شان کې

نه بيان د حکم او دا په تعريف کې هم نه دی داخل، نو ضمير شان اولاً په دوه قسمه دی (۱) متصل (۲) منفصل، متصل بيا دوه قسمه دی (۱) مستتر (۲) بارز، ځکه ضمير مستتر او بارز نوعين د ضمير متصل دی په خلاف د منفصل نه هغه بارز راځي نه مستتر

**سوال:** مصنف دا تقسيم په دې ضمير شان کې ولې کوی؟ **جواب:** په دی تقسيم کې اشاره ده دی خبري ته چې لکه څنګه چې مطلق ضمير دوه قسمه دی (۱) متصل (۲) منفصل، او بيا مطلق ضمير متصل دوه قسمه دی (۱) بارز (۲) مستتر، نو دغسې ضمير شان هم اولا دوه قسمه دی (۱) متصل (۲) منفصل، او متصل بيا دوه قسمه دی، (۱) بارز (۲) مستتر

**وحذفه منصوبا ضعيف: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د تعريف او د تقسيم د ضمير شان او د ضمير قصه نه نو شروع يې وکړه په بيان د حکم د ضمير شان کې

**ترجمه: وحذفه** لري کول د متکلم ضمير شان لره د لفظ نه سره د بقاء نه په نيت کې **منصوبا** په حال کون د دې ضمير شان کې چې منصوب يې واخلي **ضعيف** ضعيف دی منصوبا سره يې احتراز وکړو د ضمير مرفوع نه ځکه ضمير شان مرفوع بناء بر فاعل راځي او حذف د فاعل نه دی جائز او يا مرفوع راځي بنا بر ابتدائيت او حذف د مبتدا هم نه دی جائز د وجې د عدم د دلالت د مابعد نه په حذف د مبتدا باندې ځکه چې مابعد جمله ده کور يې پوره دی دلالت نه کوي په حذف د مبتدا باندې، او ضمير شان مجرور نه دی راغلي په استعمال د کلام د عرب کې اصلا او حذف د ضمير شان منصوب جائز دی ځکه چې دا په صورت د فضله کې دی او حذف د فضله جائز دی ليکن حذف يې ضعيف دی ځکه حذف د مراد راځي بدون الدليل د وجې د استقلال د خبر نه ځکه دا خبر جمله ده او رابط په دې جمله کې نشته ضمير چې راجع شي مبتداء ته او دلالت وکړي په حذف د مبتداء باندې

**تشريح: سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟

**جواب:** ربط د ماقبل سره دا دی چې مخکې تقسيم د ضمير شان وو او دا بيان د حکم د ضمير شان دی او په معرفت د ربط سره غرض د مصنف هم معلوم شو چې بيان د حکم د ضمير شان دی، په دې شان سره چې دا ضمير شان به خالي نه وي يا به مرفوع وی يا به منصوب وی او مجرور خو نه راځي اصلاً که مرفوع وو د هغې حذف نه دی جائز ځکه دا به يا مرفوع وی بنا بر فاعليت او حذف د فاعل نه دی جائز بغير د سد مسد او قرينې نه، او يا به مرفوع وی بنا بر ابتدائيت او حذف د مبتدا هم نه دی جائز بغير د قرينې نه او دلته دا مبتدا چې مونږه حذف کړو نو دا مابعد دلالت نه کوي په حذف د مبتدا باندې ځکه د دې کور پوره دی او مشتمل نه دی په ضمير د مبتدا باندې چې دلالت وکړي په مبتدا محذوف باندې او که دا ضمير شان منصوب وو نو حذف د هغې جائز دی سره د ضعف نه

**سوال:** حذف د دې ولې جائز دی؟ **جواب:** ځکه دا په صورت د فضله کې دی او حذف د فضله جائز دی.

**سوال:** ضعيف ولې دی؟ **جواب:** د وجې د عدم وجود د دليل نه په حذف د دې ضمير شان باندې.

**سوال:** دا مابعد جمله خبر دی دليل شي په حذف د مبتدا باندې؟

**جواب:** دا مابعد جمله دليل نه شي گرځيدی په حذف د مبتدا باندې ځکه هغه مستقله جمله ده او کلام دی او نه دی مشتمل په ضمير رابط باندې چې هغه دلالت وکړي په حذفيت د مبتدا باندې
مثال (١) نحو قوله تعالى ﴿إِنْ هَٰذَانِ لَسَاحِرَانِ﴾ په دې کې څلور ترکيبونه دی (١) ان مخفف من المثقل ملغات العمل دی هذان مبتدا ده او لساحران ورله خبر دی.
(٢) ان مخفف من المثقل هذان اسم دان او لساحران ورله خبر دي من قبيل من احب کريمتاه.
(٣) ان نافيه هذان مبتدا لام بمعنى الاساحران خبر د مبتدا فيکون المعنى ما هذان الاساحران.
(٤) ان مخفف من المثقل اسم منصوب خبر غواړي هذان مبتدا ساحران ورله خبر دی دا جمله خبر د ان او اسم د ان ضمير شان منصوب حذف شوی دی.
او په يو قرأت کې راغلي دی ان هذ انّ لساحران په تشديد د نون سره په دې باندې ظاهر کې اعتراض دی چې ان حرف دی د حروف مشبه بالفعل نه اسم منصوب خبر مرفوع غواړي هذان اسم د ان او ساحران يې خبر دی، او اسم د ان منصوب وي او تثنيه منصوب بالياء راځي نه منصوب بالالف نو هذان په الف سره ولي راغلي دی د دې نه دري جوابونه دی.
(١) ان حرف د حروف مشبه بالفعل نه نهٔ دی بلکه دا حرف ايجاب دی په معنى د نعم سره او هذان مبتدا ده او ساحران يې خبر دی او لام لام التاکيد دی.
(٢) او که ومنم چې ان حرف دی د حروف مشبه بالفعل نه نو هذان ورله اسم دی او ساحران ورله خبر دی او تثنيه په الف سره راغلي ده په حالت نصبي کې بنا په لغت د بنو حارثه او بنو کنانه باندې.
(٣) يا ان حرف دی د حروف مشبه بالفعل نه هذان مبتداء ده او ساحران ورله خبر دی مبتدا سره د خبر نه جمله اسميه خبريه خبر د ان او اسم د ان ضمير شان منصوب حذف شوی دی فيکون التقدير انه لهذان ساحران کله چې ضمير شان منصوب حذف شو نو لام ابتدائيه تاکيديه داخل شو په خبر باندې لپاره د دې چې لازم نه شي اجتماع د التی د تاکيد نو د انه لهذان ساحران نه ان هذان لساحران جوړ شو
دويم مثال نحو قوله عليه السلام ان من اشد الناس عذابا يوم القيامة المصورون.
**سوال:** په دې حديث کې ظاهر يو ترکيبي اشکال دی چې د دې حديث ترکيب څه دی که ته وائي چې من اشد الناس خبر مقدم د ان او المصورون اسم د ان نو اسم د ان خو منصوب وی او جمع په حالت نصبي کې په ياء سره راځي او دلته واو سره ده يعنې مرفوع ده او که ته وائي چې من اشد الناس اسم د ان او المصورون يې خبر دی نو من اشد الناس خو جار مجرور دی او جار مجرور مسند اليه نه واقع کيږي؟ **جواب:** په دې حديث کې دوه ترکيبونه دی:(١) يو دا دی چې من اشد الناس جار مجرور اسم د ان دی ځکه دا من زائد دی بنا په مذهب د هغه چا چې د هغوی په نزد باندې من زائد راځي په کلام مثبت کې او جار مجرور په ترکيب کې مسند واقع کيږي نه مسند اليه خو هله چې حرف جر پکې اصلي وی او که حرف جر پکې زائد وو بيا مسند اليه هم واقع کيږي لکه بحسبك درهم:(٢) دويم ترکيب دا دی چې من اشد الناس خبر مقدم دی او المصورون مبتدا مؤخر

ده بناً په مذهب د هغه چا باندې چې زيادت د من په كلام موجب كې نه منې مبتدا سره د خبر نه خبر د ان دی او اسم د ان ضمير شان منصوب حذف شوی دی فيكون التقدير انه من اشد الناس الخ (۳) بل مثال كقول الشاعر!

ان من يدخل الكنيسة يوماً يلق فيها جازرا وظباء

ترجمه: په تحقيق سره كوم يو سړي چې داخل شي عبادت خانې د عيسايانو ته يو ورځ، (په كومه ورځ چې هغه عبادت كوی) نو ملاقې كيږي به دا سړي د هغه ښځو سره چې په شان د اولاد د بقرو حشی او په شان د هوسۍ دی په حسن او جمال كې.

تركيب: من شرطيه يدخل فعل ضمير پټې مستتر دی چې راجع دی من ته فاعل د يدخل الكنيسة مفعول فيه ظرف مكان يوما مفعول فيه ظرف زمان فعل سره د فاعل او مفعولين نه جمله شرطيه يلق فعل مضارع معلوم ضمير پټې مستتر دی راجع دی من ته هغه ورله فاعل فيها جار مجرور متعلق دی په يلق پورې او جازرا و ظباء معطوف معطوف عليه مفعول به د يلق لپاره فعل سره د فاعل او سره د متعلق او سره د مفعول به نه جمله فعليه جزاء شوه د شرط شرط سره د جزاء نه خبر د مبتدا چې من دی مبتدا سره د خبر نه جمله خبريه اسميه خبر واقع شوی دی د ان لپاره او اسم د ان ضمير شان حذف شوی دی فيكون المعنى انه من يدخل الكنيسة الخ، لهذا دا خبره د مصنف صحيح نده چې حذف د ضمير شان منصوب ضعيف دی، ځكه چې حذف د مراد راځي بي د دليل نه، ځكه حذف د مراد بی د دليل نه نه راځي بلكه حذف د مراد راځي سره د وجود د دليل نه چې هغه ما بعد خبر دی ځكه په دې مثالونو كې چې مبتدا مع الخبر جمله خبر دان شو نو ان تقاضه د اسم كوی لهذا دا جمله د لالت كوی چې اسم د ان دلته حذف شوی دی.

سوال: د كان زيد قائم څه تركيب دی كه ته وائي چې زيد اسم د كان او قائم خبر د كان دی نو اسم د كان مرفوع وی او خبر منصوب وی دلته خو دواړه مرفوع دی؟ جواب: زيد مبتدا ده قائم يې خبر دی دا جمله خبر د كان دی او اسم د كان ضمير شان مستتر شوی دی په كان كې او ديته كان شانيه وائي.

سوال: ان زيد قائم څه تركيب دی كه ته وائي چې زيد اسم د ان او قائم يې خبر دی نو اسم د ان منصوب وی او دا خو مرفوع دی؟ جواب: زيد مبتدا قائم يې خبر دا جمله خبر د ان دی او اسم د ان ضمير شان حذف شوی دی اصل كې انه زيد قائم وو، بل مثال د دې لپاره كقول المتنبي!

اليس عجيبا ان بين بنی اب لنجل يهودی تدب الاقارب

ای انه تدب الاقارب بين بنی النجل يهودی و اسم ان ضمير الشان محذوف وجملة تدب خبرها والا لايصح التركيب.

سوال: وحذفه منصوبا ضعيف په دې تركيب باندې يو اعتراض دی بنا په ضربی زيدا قائما باندې په دې شان سره چې مصنف دا قاعده بيان كړې ده په موضع حذف الخبر وجوبا كې چې (۱) مبتدا مصدر راشي (۲) او نسبت يې وشي فاعل ته يا مفعول ته يا دواړو ته (۳) او دهغې نه وروستو حال

راشي نو خبر د مبتدا حذف کولي شي په حذف وجوبي قياسي سره مثال لکه ضربي زيدا قائما شو نو دا قاعده د مصنف منقوضه شوه په دې قول د مصنف سره چې وحذفه منصوبا ضعيف ځکه دلته مبتدا راغلي دی مصدر چې حذف دی او نسبت يې شوی دی مفعول ته چې ضمير دی راجع دی ضمير شان ته او د هغې نه وروستو حال راغلي دی منصوبا او خبر د دې نه دی حذف شوی بلکه مذکور دی چې ضعيف دی؟ **جواب:** دا قاعده په هغه ځای کې ده چې خبر د دې مبتدا کذا يې فعل راشي د افعال عامونه ځکه هلته قرينه او سد مسد موجود وی او دلته خبر د مبتدا نه دی حذف کړي ځکه خبر د.دې د افعال عامونه نۀ دی او خبر چې د افعال خاصونه راشي بيا حذف جائز نه دی د عدم وجود د قرينې د الی نه په تعين د محذوف باندې ځکه دا مبتدا کذائي قرينه لپاره د افعال عامو ده نه لپاره د افعال خاصو.

**الا مع ان اذا خففت فانه لازم: ترجمه:** حذف د ضمير شان منصوب ضعيف دی سره دهر عامل نه **الا** مگر حذف د دې ضعيف نه دی چې دا ضمير شان مقرون وو د ان سره **اذا خففت** کله چې تخفيف وکړي شي د ان د مشدد نه **فانه** په تحقيق سره حذف د ضمير شان **لازم** واجب دی لپاره د دې چې لازم نه شي مزيت د فرع په اصل باندې ځکه په دې حروف مشبه بالفعل کې ان اصل دی او باقي فرع دی ځکه دا حروف عمل کوی د وجې د مشابهت نه د فعل سره او مشابهت د اَن د فعل سره زيات دی د اِن نه ځکه اَن په شان د مد دی او اِن چې مخفف شي نو پس د تخفيف نه عامل موندلي شوی دی په کلام د عرب کې نحو قوله تعالی ﴿ وَإِنَّ كُلًّا لَّمَّا لَيُوَفِّيَنَّهُمْ ﴾ او د اَن عمل لفظی پس د تخفيف نه نۀ دی موندلي شوی په استعمال د کلام د عرب کې نو مزيت د فرع راغلي په اصل باندې او دا نه دی جائز لهذا نحويانو دا حيله جوړه کړه چې ان پس د تخفيف نه عمل کوی د نصب په ضمير شان مقدر او محذوف کې لپاره د دې چې لازم نه شي مزيت د فرع په اصل باندې.

**سوال:** مزيت د فرع په اصل باندې خو اوس هم راغلي دی ځکه ان پس د تخفيف نه عمل کوی په لفظ کې او آن پس د تخفيف نه عمل کوی په مقدر کې او عمل لفظي اولی دی د عمل تقديري نه؟

**جواب:** عمل په مقدر کې دائما اولی دی د عمل لفظی احياناً نه.

او مثال د ضمير شان چې حذف شوی دی سره د اَن مخفف من المثقل نه وجوباً نحو قوله تعالی ﴿ وَآخِرُ دَعْوَاهُمْ أَنِ الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ﴾ ﴿ وَأَن لَّيْسَ لِلْإِنسَانِ إِلَّا مَا سَعَىٰ ﴾ ﴿ عَلِمَ أَن سَيَكُونُ ﴾

**قاعده** اَن چې داخل شوی وو په جمله اسميه باندې يا په جمله فعليه باندې چې فعل پکې غير متصرف وی نو دا به ان مخفف من المثقل وی او که داخل شوی وو په جمله فعليه متصرفه باندې نو بيا به خالي نه وي يا به د آن او د فعل په مينځ کې فصل راغلي وی په سين، سوف، لو، قد، حرف نفی سره او يا به نوي که فصل راغلي وو نو ان مخفف من المثقل او که نه وو راغلي نو ان ناصبه مصدريه.

## اسماء الاشارة

**ربط:** هر كله چې فارغ شو مصنف د بيان د نوع اول د مبنيات نه تفصيلاً چې هغه مضمرات وو نو شروع يې وكړه په بيان د نوع ثاني د اسم مبني كې تفصيلاً چې اسماء اشارات دي، او هر كله چې مضمرات كل د قبيلې د مبنيات نه وو بالاتفاق په خلاف د اسماء اشارات نه چې دا كل د قبيلې د مبنيات نه نه دي بالاتفاق بلكه كل د قبيلې د مبنيات نه دي عند الجمهور او اكثر د قبيلې د مبنيات نه دي او بعض د قبيلې د معربات نه دي عند البعض پس مقدم يې وګرځول مضمرات په اسماء اشارات باندې، او هر كله چې په اسماء موصولو كې اى او اية د قبيلې د معربات نه وو بالا تفاق او په دې اسماء اشاراتو كې داسې اسم نه دي موجود چې د قبيلې د معربات نه وي بالاتفاق نو دائې مقدم كړو په هغې باندې، يا هركله چې تعريف په اسماء اشارات كې زيات وو په نسبت سره اسماء موصولو ته ځكه اسماء موصوله دلالت كوي په تعين د مشاراليه باندې په اشارات عقلي او ذهني سره او تعريف په اشارات حسي كې زيات وي د اشارات ذهني نه پس مقدم يې كړه اسماء اشاره په اسماء موصولو باندې

**تركيب:** اسماء اشاره مضاف اليه مبتدا **ما** موصوله يا موصوفه **وضع** ماضي مجهول ضمير پكې مستتر دي چې راجع دي **ما** ته هغه ورله نائب فاعل **لام** جاره مشار صيغه د اسم مفعول ده **اليه** جار مجرور ورله نائب فاعل دي او ضمير د اليه راجع دي موصوف مقدر د مشار ته چې شئ دي اسم مفعول سره د نائب فاعل نه مجرور د جار، جار سره د مجرور نه ظرف لغوه متعلق دي په وضع پورې فعل سره د نائب فاعل او متعلق نه صله شوه د موصول يا صفت شو د موصوف، موصول سره د صلې نه يا موصوف سره د صفت نه خبر لپاره دمبتداء مبتدا سره د خبر نه جمله خبريه اسميه

**ترجمه:** **اسماء اشارة** اسماء اشاره معدوده من المبنيات په اصطلاح د نحويانو كې **ما** اسماء دي او افراد د ضمير د وضع په اعتبار د لفظ د ما سره دي.

(٢): يا جنس اسم اشاره معدوده من من المبنيات عند النحاة **ما** جنس اسم دي او اضافت د اسماء الاشارة ته اضافت جنسي دي داسې اسم **وضع** چې وضع كړې شوى دى لپاره د يو معنى او لپاره د يو شئ چې اشاره كولې شي هغه شئ ته په اشارت حسي سره چې هغه اشاره بالجوارح ده ځكه شئ سره كه تعين د يو شئ راغلي وو په معاونت د حواس سره ديته اشاره حسي وائي دا حقيقت دي او كه تعين د شئ راغلي وو په معاونت د عقل سره نو ديته اشاره عقلي وائي دا مجاز دي

**تشريح:** **سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دي او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دي؟

**جواب:** ربط دا دي چې مخكې بيان د نوع اول د اسم مبني وشو تفصيلاً چې مضمرات وو نو اوس بيان د نوع ثاني د اسم مبني كوي تفصيلاً چې اسماء اشارات دي او په دې معرفت د ربط سره غرض د مصنف هم معلوم شو چې غرض د مصنف بيان د نوع ثاني د اسم مبني دي تفصيلاً چې اسماء اشارات دي.

**سوال:** مضمرات يې ولې مقدم كړه په اسماء اشارات باندې؟ **جواب:** مضمرات كل د قبيلې د مبنيات نه وو بالاتفاق، په خلاف د اسماء اشارات نه چې دا كل دقبيلې د مبنيات نه دى عندالجمهور او اكثر د قبيلې د مبنيات نه دى عند البعض او بعض معرب دى.

**سوال:** اسماء اشارات يې په موصولات باندې ولې مقدم كړه باوجود د دې نه چې د اسماء موصولات زيات دى او اسماء اشارات كم دى او العزة للتكاثر؟ **جواب:** هر كله چې په اسماء موصولات كې اى او اية د قبيلې د معربات نه وو بالاتفاق په خلاف د اسماء اشارات نه په دې كې بالاتفاق معرب نشته نو دائې مقدم كړه په هغې باندې (۲) هر كله چې تعريف په اسم اشاره كې زيات وو د اسماء موصولات نه پس مقدم يې كړه اسماء اشاره په موصولات باندې ځكه دوى اعرف مقدم كوي په غير اعرف باندې.

**سوال:** اسماء اشاره كې تعريف د موصول نه زيات ولې دى؟ **جواب:** اسم اشاره دلالت كوى په تعين د مشار اليه باندې په اشارت حسى سره په خلاف د موصول هغه دلالت كوى په تعين د مشاراليه باندې په اشارت ذهنى سره او تعريف په اشارت حسى كې زيات دى د اشارت ذهنى نه (۲) اسم اشاره اكمل ده په تعريف كې د موصول نه ځكه اشاره واقع كيږي په ذات او معنى د شئ دواړو باندې ذات صورة د شئ دى او معنى وصف د شئ دى لكه جودت او رداءت شو.

**سوال:** تعريف د اسم اشاره جامع نه شو خپلو افرادو لره خارج شو د دې ده لفظ د اسم اشاره ځكه ته وائې چې اسم اشاره ماوضع لمشاراليه تلاوائي او دا خو ماوضع لمشاراليه نه دى؟

**جواب:** دلته مراد د اسماء الاشارة نه اسماء اشاره معدوده من المبنيات دى په اصطلاح د نحويانو كې او لفظ د اسماء اشاره د اسماء اشاره معدوده من المبنيات نه ده دى.

**سوال:** تعريف د اسماء الاشارة په ما وضع الخ سره باطل دى ځكه دا مستلزم دى دور لره په دې شان سره چې اسم اشاره په تعريف كې محتاج دى مشاراليه ته او مشاراليه محتاج دى اشارې ته ځكه مشاراليه اسم مفعول دى او وضاحت او خفاء د مشتقات په اعتبار د مبداء سره راځي او كوم تعريف چې مستلزم وى دور لره هغه باطل وى نو دا تعريف باطل شو؟

**جواب:** كومه اشاره چې ذكر ده په جانب د معرف كې د هغې نه مراد اشاره اصطلاحى ده هغه په تعريف كې محتاج ده مشاراليه ته او مشاراليه په تعريف كې محتاج دى اشارې لغوى ته نه اصطلاحى ته دور نشته.

**سوال:** په ما وضع كې دا ما به خالى نه وائې يا به يې عبارت وائې د اسم نه او يا به يې عبارت وائې د اسماء نه دواړه نه صحيح كيږي كه عبارت يې وائې د اسماء نه نو ماقبل ورسره ولگيدو ځكه حمل د جمع په جمع باندې راغلو ليكن ما بعد ورسره نه لگى ځكه په وضع كې ضمير مستتر دى مفرد مذكر نو مطابقت را نه غلو په راجع او مرجع كې

(۲) او كه دا عبارت وائې د اسم نه نو دا مابعد ورسره ولگيده ځكه مطابقت بين الراجع والمرجع راغلو ليكن د ماقبل سره نه لگى ځكه چې حمل د واحد راغى په جمع باندې؟

**جواب:** ما عبارت د اسماء نه وایم او ضمیر د وضع راجع دی ما ته په تاویل د کل واحد سره، نو ترجمه دا شوه چې اسماء اشاره په اصطلاح د نحویانو کې هغه اسماء دی چې وضع کړي شوی دي هر واحد د دغه اسماؤ نه د مشار الیه لپاره یا افراد د ضمیر د وضع په اعتبار د لفظ د ما سره دی خکه دا ما په اعتبار د معنی سره جمع ده او په اعتبار د لفظ سره مفرد مذکر دی لحاظ د لفظ یې کړی دی نه دمعنی.(۲) یا ما عبارت دی د اسم نه او که ته وائي چې حمل د مفرد راغي په جمع باندې نو جواب دا دی چې اضافت د اسماء الاشارة ته اضافت جنسي دی نو معنی دا چې جنس اسم اشاره په اصطلاح د نحویانو کې جنس اسم دی چې وضع کړي شوی دی لپاره د مشارالیه او دا جواب غوره دی د اول جواب نه خکه تعریف د جنس کولي شي په جنس سره او په هغه جواب کې لاز میږي تعریف د افرادو په افرادو سره.

**سوال:** په ما وضع کې دا ما موصوله دی که موصوفه دی؟ **جواب:** دا محتمل د احتمالین دی موصوله هم جوړیږي او موصوفه هم جوړیږي لیکن موصوفیت یې اولی دی د موصولیت نه خکه دا واقع دی په جانب د خبر کې او اصل په خبر کې تنکیر دی نو ما چې موصوفه شي نو عمل په اصالت باندې راځي او که موصوله شي نو عمل راځي په خلاف الاصل باندې.

**سوال:** مشار صیغه د اسم مفعول ده صفت دی تقاضه د موصوف کوی موصوف ورله څه شئ دی؟

**جواب:** موصوف د دې محذوف دی چې شئ دی یا معنی دی.

**سوال:** مشار صیغه د اسم مفعول ده نائب فاعل غواړي نائب فاعل ورله کوم دی؟

**جواب:** نائب فاعل د دې لپاره دا الیه جار مجرور دی.

**سوال:** ضمیر د الیه چاته راجع دی؟ **جواب:** دا راجع دی موصوف محذوف د مشار ته.

**سوال:** تعریف د اسم اشاره مانع نه شو د دخول د غیر نه داخل شو پکې ضمیر غائب او اسم موصول خکه دواړه وضع کړي شوی دی لپاره د یو معنی چې هغې ته اشاره کولي شي په ضمیر سره او په موصول سره؟ **جواب:** دلته مراد د اشاري نه اشاره حسی ده یعنی اسم اشاره په اصطلاح کې هغه اسم ته وائي چې وضع کړي شوی دی د یو معنی لپاره داسې معنی چې اشاره ورته کولي شي په اشارت حسی سره او ضمیر غائب او موصول سره اشاره کولي شي هغه معنی ته په اشاره ذهنی سره نو دا خارج شو.

**سوال:** ماتن په تعریف کې اشاره مطلقه ذکر کړي ده نو ته اشاره حسی کوم ځای نه اخلې؟

**جواب:** د اصولینو دا قاعده ده چې کله چې شئ ذکر شي مطلق نو راجع یې فرد کامل ته کیږي او کامل په اشاره کې اشارت حسی دی نه ذهنی نو خکه ما اشاره حسی مراد کړه.

**سوال:** تعریف د اسم اشاره جامع نه شو خپلو افرادو لره خارج شو د دې نه فذلکم الله ربکم خکه ته وائي چې اسم اشاره هغه اسم دی چې وضع کړي شوی دی لپاره د یو معنی چې اشاره ورته کولي شي په اشارت حسی سره او دلته په ذلك سره اشاره شوې ده الله ته.. او اشارت حسی الله تعالی ته ممتنع ده؟ **جواب:** اشارت حسی عامه ده که حقیقتاً وی او که حکماً وی او الله تعالی د وجې د کمال

ظهور د صفات كماليو نه گرځيدلي ده په منزله د محسوس باندې نو اشاره الله ته په اشارت حسي سره حكما شوه نه حقيقتاً

سوال: اصل په اسماؤ كې اعراب دى او بنا خلاف الاصل ده نو دا اسم اشاره د قبيلې د مبنيات نه ولي شوه؟ جواب: (۱). اسماء اشاره مشابه ده د حرف سره په احتياج كې په دې شان سره چې حرف محتاج دى په دلالت كې په معنى خپله باندې، انضمام د كلمه اخرى ته او اسم اشاره محتاج ده په دلالت د مشار اليه كې امر خارج ته چې اشارت حسى دى، او دا وجه غلطه ده چې بعض خلق يې وائي چې اسماء اشاره مبني ده ځكه چې دا مشابه ده د حرف سره په احتياج كې په دې شان سره چې حرف محتاج دى په دلالت كې په معنى خپله باندې انضمام د كلمې اخرى ته او اسم اشاره محتاج ده مشاراليه ته، ځكه چې مشاراليه خو معنى موضوع له ته وائي نو بيا خو ټول الفاظ د قبيلې د مبنيات نه گرځول پكار دى ځكه چې هر لفظ محتاج دى معنى موضوع له ته (۲). دويمه وجه د بناء په دې اسماء اشاره كې، تا، ذي، تى، ذه، ته، ذا، دا مشابه دى د حروف سره په وضع ثنائي كې او باقي اسماء اشارات محمول دى په دې باندې (۳). وجه د بناء يا اسماء اشاره ځكه مبني دى چې دا متضمن دى معنى د حرف اشارى لره ځكه اشاره معنى د حرف ده ليكن داسې معنى د حرف ده چې واضع د دې لپاره حرف نه دى وضع كړي، او په بناء د اسماء اشاره كې خلاف دى (۱) جمهور وائي چې ټول اسماء اشاره د قبيلې د مبنياتو نه دي (۲) او بعض وائي چې اسماء اشاره د قبيلې د مبنيات نه دى ما سواء د ذان، تان، ذين، تين، نه دا د قبيلې د معربات نه دى ځكه چې حكم د مبني دا دى چې ان لايختلف اخره باختلاف العوامل او په ذان، تان كې اختلاف راځي په اختلاف د عوامل سره په شان د ضاربان، او جمهور وائي چې دا اختلاف په ذان او تان كې د اختلاف د عوامل د وجې نه نه دى بلكه دا اختلاف وضعي دى په دې شان سره چې ذان او تان وضع شوى دى د تثنيه مرفوع لپاره او ذين او تين وضع شوى دى د تثنيه منصوب او مجرور لپاره او وقوع د دې په صورت د معرب باندې اتفاقى ده نه لپاره د قصد د اعراب او شئ معلوميږي د تعريف نه او مبني مناسب مبني الاصل ته وائي او علت د بناء په ذان او تان كې موجود دى چې دا مشابه دى او مناسب دى د حرف سره په احتياج كې.

په هر تعريف كې لابدي وى د جنس او فصل نه نو ما عبارت دى د اسم نه هغه جنس دى او **وضع لمشار اليه** فصل اول دى په دې سره خارج شو باقي انواع د اسم مبني ماسواء د ضمير غائب او د موصول نه او دا قيد چې ورسره مونږه ولگوو چې اشارةً حسية نو په دې سره ضمير غائب او موصول هم خارج شو پس شو تعريف د اسم اشاره جامع او مانع.

(۲): يا اسم اشاره په اصطلاح د نحويانو كې مايدل على شئ معين باشارة حسية ته وائي **وهى ذا للمذكر ولمثناه ذان و ذين. ربط.** هر كله چې فارغ شو مصنف د تعريف د اسماء اشارة نه نو شروع يې



وکړه په بیان د صیغو د اسماء اشاره کې لپاره د کمال وضاحت د اسماء اشاره نو وی ویل **وهی ذا للمذکر الخ: ترجمه**: (۱) دا اسماء اشاره ذا دی سره د معطوفات نه
(۲): **وهی** دا اسماء اشاره پنځه دی ذا دی د واحد مذکر مشارالیه لپاره **ولمثناه ذان و ذین** او د تثنیه مذکر مشارالیه لپاره ذان دی په حالت رفعی کې او ذین دی په حالت نصبی کې
**تشریح: سوال**: د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض دمصنف د دې عبارت نه څه دی؟
**جواب**: ربط د ماقبل سره دا دی چې هر کله چې فارغ شو مصنف د تعریف د اسماء اشاره نه نو شروع یې وکړه په بیان د صیغو د اسم اشاره کې او په بیان د ربط سره غرض د مصنف هم معلوم شو چې غرض د مصنف بیان د صیغو د اسم اشاره دی په دې شان سره چې دا نه داخل دی په تعریف د اسم اشاره کې او نه بیان د حکم د اسم اشاره دی.
**سوال**: په تعریف سره مونږ ه اسماء اشاره وپیژندل نو مصنف لپاره پکار وو چې اوس یې شروع کړې وی په احکامو کې نو دا صیغی د اسم اشاره ولې بیانوی؟
**جواب**: دا صیغی د اسم اشاره بیانوی لپاره د اتمام د تعریف او لپاره د کمال وضاحت د اسم اشاره ځکه په تعریف سره مونږ ته مفهوم د اسماء اشاره معلوم شو او په صیغو سره یې مصداقات معلومیږي نو پس د بیان د صیغو نه به اسماء اشاره مونږ ته معلوم شي مفهوماً او مصداقاً.
**سوال**: هی مبتدا ده، نو دا ذا په ترکیب کې څه واقع شوی دی که ته وائي چې دا خبر دی د مبتدا لپاره نو حمل د خاص راغي په عام او حمل د واحد راغي په متعدد باندې، او دا نه دی صحیح ځکه معنی دا شوه چې اسماء اشاره ذا دی او ذا خو اسماء اشاره نده بلکه اسم اشاره ده (۲) او دا **للمذکر** جار مجرور دی او د جار مجرور لپاره لابدې ده د اعراب محلی نه دا په ترکیب کې څه واقع شوی دی یعنی د دې اعراب محلی څه دی؟
**جواب**: (۱): هی مبتدا ده او خبر یې حذف شوی دی خمسة فیکون التقدیر وهی خمسة او ذا مبتدا ده او للمذکر جار مجرور ورله خبر دی باعتبار المتعلق او ذان و ذین مبتدا مؤخره ده او لمثناه خبر مقدم دی نو دا جمله اسمیه خبریه عطف ده په دی مخکې جمله باندې او دا مجموعه بیان واقع شوی دی و هی خمسة لپاره.(۲): هی مبتدا ده ذا یې خبر دی په اعتبار د حذف د معطوف سره فیکون التقدیر وهی ذا واخواته او للمذکر خبر د مبتدا محذوف دی ای هو للمذکر.
(۳): هی مبتدا اول **ذا** موصوف **للمذکر** جار مجرور په اعتبار د متعلق سره صفت د **ذا** موصوف سره د صفت نه مبتدا ثانی او خبر یې حذف دی چې منها دی مبتدا سره د خبر نه جمله خبریه اسمیه خبر د مبتدا اول او مبتدا سره د خبر نه جمله خبریه اسمیه شوه.(۴): **هی** مبتدا اول **ذا** مبتدا ثانی **للمذکر** په اعتبار د متعلق سره خبر د مبتدا ثانی؛ مبتدا ثانی سره د خبر نه جمله خبر دی د مبتدا اول لپاره او رابط محذوف دی چې منها دی. (۵): هی مبتدا ده او **ذا** معطوف علیه سره د معطوفات نه خبر

دی د هی لپاره او عطف مقدم دی په ربط باندې نو حمل د خاص په عام یا حمل د واحد په متعدد باندې راغلو او **للمذكر** جار مجرور منصوب دی محلاً بنا بر حالیت.
**سوال:** دا حال د چا نه واقع شوی دی؟ **جواب:** دا حال واقع شوی دی د ذا نه بنا په مذهب د هغه چا باندې چې هغه وقوع د حال د مبتدا او خبر نه جائز وائي یا دا للمذکر حال واقع شوی دی د نائب فاعل د ینسب فعل معنوی نه چې راجع دی ذاته بنا په مذهب د هغه چا باندې چې حال جائز نه وائي د مبتدا او خبر نه لکه ابن حاجب شو ځکه د ده په نزد باندې حال هغې ته وائي چې یبین هیئة الفاعل او المفعول به او د مبتدا او خبر نه حال نه واقع کیږي نو کوم ځائ چې حال واقع شي په استعمال د کلام د عرب کې وروستو د مبتدا یا د خبر نه او دا ترکیب ته بنا کول غواړي په مذهب د ابن حاجب باندې نو دا مبتدا او خبر په مینځ کې نسبت دی د هغې نه به ینسب جوړ کړي او په هغې کې به ضمیر مستتر راجع کړي مبتدا ته که حال د مبتدا نه وو یا یې راجع کړه خبر ته که حال د خبر نه واقع شوی وو نو بنا په دی کیږي تقدیر د عبارت دارنګې ینسب ذا حال کونه
**سوال:** **وثنتاه** ترکیب کې څه دی؟ **جواب:** دا منصوب واقع شوی دی بنا بر حالیت.
**سوال:** حال د چا نه واقع شوی دی؟ **جواب:** حال واقع شوی دی د ذان او ذین نه
**سوال:** دا چې حال دی د ذان او ذین نه نو ولې مقدم شوی دی په هغې باندې؟
**جواب:** تقدیم د حال راغلي دی په ذوالحال باندې لپاره د قرب د مرجع ځکه اصل په مرجع کې قرب دی ځکه د اضمیر راجع دی مذکر ته نو چې په ذان او ذین باندې مخکښې شو نو هغې ته قریب شو او که وروستو کړې یې وی نو بیا بُعد راتلو.
**سوال:** په تقدیم سره قرب د مرجع خو راغلو لیکن بل نقصان پکې راغلو چې تقدیم د حال راغلو په عامل معنوی باندې او دا نه دی جائز؟ **جواب:** ولاتتقدم على العامل المعنوي بخلاف الظرف
**سوال:** ته وائي چې دا وضع شوی دی د واحد مذکر مشارالیه لپاره نو دا قاعده ستا منقوضه شوه په دې قول د الله تعالى سره ﴿ فَلَمَّا رَءَا ٱلشَّمْسَ بَازِغَةً قَالَ هَٰذَا رَبِّى ﴾ دلته په ذا سره اشاره شوې ده شمس ته او دا مؤنث دی؟ **جواب:** دا قاعده ده چې کله اسم اشاره دائر شي په مابین مشارالیه او د خبر کې نو رعایت د خبر اولی دی د رعایت د مشارالیه نه او دلته هم واقع شوی دی په مینځ د مشارالیه کې چې شمس دی او په مینځ د خبر کې چې ربی دی نو رعایت د خبر شوی دی ځکه مذکر شوی دی.
**سوال:** ته وائي چې ذان راځي د تثنیه مذکر لپاره په حالت رفعی کې او ذین راځي په حالت نصبي جری کې نو دا قاعده ستا منقوضه شوه په دې قول د الله تعالى سره ﴿ قَالُوٓا۟ إِنْ هَٰذَٰنِ لَسَٰحِرَٰنِ ﴾ دلته هذان اسم دان دی او اسم دان منصوب وی او نصب د تثنیه په یا سره وی او دلته مرفوع راغلي دی؟
**جواب:** د دې نه درې جوابونه دی کما مر.
**وللمؤنث تا وذی وتی و ته الخ:** **ترجمه:** نسبت کولي شي د تا ذی تی ته ذه تهی ذهی اسماء اشاره ته په حال کون د دوی کې چې دا تول وضع کړي شوی دی د واحد مؤنث مشارالیه لپاره هغه الفاظ د

اسم اشاری چې په هغې سره اشاره کولی شي واحد مؤنث ته ټول یوولس دی او اووه دلته ذکر دی او
څلور یې نه دی ذکر کړي د وجې د عدم شهرت نه چې هغه (۱) ذه (۲) ته (۳) ذات او (۴) تات دی، د
دې نه معلومه شوه چې ذات درې قسمه راځي (۱) اشارتی بمعنی تا (۲) ذات موصولي بمعنی التی
درلغت بنی طی (۳) ذات صاحبی بمعنی صاحبه.

**سوال:** (۱): په دې اووه صیغو د اسماء اشاره د واحد مؤنث کې کوم یو اصل دی (۲) او په دې کې بې
دا ذی او تا ولې مقدم کړي دی په دې باقي باندې؟ **جواب:** په اصالت د دې کې اختلاف دی.
(۱): **بعض والي** چې تی اصل دی د دې نورونه ځکه د دې تثنیه راځي تان نه د نورو نه.
(۲): **او بعض والي** چې ذی اصل دی ځکه دا مقابل د مذکر دی چې ذا دی نه دا نور، او د وجې د قول
د علماؤ نه په اصالت د دې دواړو باندې یې دا دواړه مقدم کړي دی په دې نورو باندې ځکه دا
اصل دی او باقي فروع دی **ذی** اصل کې ذا وو الف بدل شو په یاء سره او فتحه د یاء بدله شوه په
کسری سره نو دی شو او **تی** اصل کې تاء وو الف بدل شو په یاء سره او فتحه په کسری سره **وذه وته**
بقلب الالف والیاء هاء بدون وصل الیاء **وتهی و ذهی** بوصل الیاء بها **والمثناه تان وتین** او وضع کړي شوی
دی د تثنیه مؤنث لپاره تان په حالت رفعی کې او تین په حالت نصبی جری کې، **ولجمعها اولاء مدا او
قصرا.** او د جمع مذکر لپاره او د مؤنث لپاره بیا برابره خبره ده که عاقل وي او که غیر عاقل وی
وضع کړي شوی دی لفظ د اولاء (۱) برابره خبره ده که ممدود وی او که مقصور وی (۲) یا په حال
کون د دې کې چې ممدود یا مقصور یې واخلی نو غالبا دا اولاء او اولی راځي د جمع مذکر عاقل
او جمع مؤنث عاقل لپاره نحو قوله تعالی ﴿ أُولَٰئِكَ عَلَىٰ هُدًى مِّن رَّبِّهِمْ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴾ او د جمع مذکر غیر
عاقل لپاره راځي په طریقه د قلت سره کما فی قوله تعالی ﴿ إِنَّ السَّمْعَ وَالْبَصَرَ وَالْفُؤَادَ كُلُّ أُولَٰئِكَ كَانَ عَنْهُ
مَسْئُولًا ﴾ وکما فی قول الشاعر!

ذم المنازل بعد منزلة اللوی والعیش بعد اولئك الایام

او غالبا د جمع مذکر عاقل لپاره تی راځي کما فی قوله تعالی ﴿ وَتِلْكَ الْأَيَّامُ نُدَاوِلُهَا بَيْنَ النَّاسِ ﴾
اوس په دې سره دفع د یو اعتراض وشوه اعتراض دا دی چې ته وائي چې تی راځي د واحد مؤنث
مشار الیه لپاره نو دا قاعده ستا منقوضه شوه په دې قول د الله تعالی سره چې وتلك الایام؟
**جواب:** په دې تی سره چې څنګه اشاره کیږي واحد مؤنث ته نو دارنګې په دې سره اشاره جمع مذکر
مکسر، جمع مؤنث سالم، جمع مؤنث مکسر، او اسم جمع ته هم کیدی شي په تاویل د جماعة سره.

**پس زده کړه** دا خبره چې یو اولی دی بروزن علی او دا واو د همزی نه وروستو لیکلی شوی دی
لپاره د فرق او امتیاز په مینځ د اولی اسم اشاره او الی حرف جر کې ځکه د دوی په مینځ کې
تجنیس خطی وو لابدي وه د امتیاز نه نو امتیاز پکې حاصل شو په کتابت د واو سره وروستو د
همزی نه په دې شان سره چې که وروستو د همزی نه واو لیکلی شوی وو نو دا به اولی وی او که نه
وو لیکلی شوی نو بیا به الی وی او یو اولی مجرد عن اللام دی او بل الالی دی متلبس باللام نو

اولی مجرد عن اللام راځي د جمع مذکر او مؤنث دواړو لپاره او الاولی متلبس باللام د اسماء موصولات نه دی غالبا د جمع مذکر لپاره راځي او کله کله د جمع مؤنث لپاره راځي.

**سوال:** مدا او قصرا په ترکیب کې څه واقع شوی دی؟ **جواب:** دا منصوب دی بنا پر حالیت د اولاء نه.

**سوال:** حال محمول وي په ذوالحال باندې او دلته حمل نه صحیح کیږي ځکه اولاء خو مد او قصر نه دی یعنی حمل د صرف وصف راځي په ذات باندې؟

**جواب:** دا مصدر مبني للمفعول دی ای ممدوداً و مقصوراً (۲) یا منصوب دی بنا بر خبر د کان محذوف لپاره فیکون التقدیر اولاء سواء کان ممدودا او مقصوراً او اولاء لغت د حجازینو دی ممدود او اولی مقصور لغت د بني تمیم دی او لغت د حجازین غوره دی د لغت د بنی تمیم نه د وجې د توارد او نزول د قران نه په لغت د حجازین باندې په دې شان سره چې په قران کې ممدود مستعمل دی نه مقصور.

**ویلحقها حرف التنبیه:** ربط: هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د تعریف او صیغو د اسماء اشاره نه نو شروع یې وکړه په بیان د احکامو د اسماء اشاره کې.

**ترجمه:** متصل کیږي او داخلیږي په اول د اسماء اشاره باندې په طریقه د عروض سره، نه په طریقه د جزئیت سره **حرف التنبیه** هغه حرف چې دلالت کوی په ایقاظ د مخاطب باندې لپاره د رفع د غفلت د سامع نه لپاره د دې چې لازم نه شي لغویت د اشاره د متکلم د وجی د غفلت د سامع نه، چې هغه هاء ده.

**تشریح: سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟

**جواب:** ربط د ماقبل سره دا دی چې مخکې بیان د صیغو د اسم اشاره وو اوس بیان د حکم د اسم اشاره کوی او په معرفت د ربط سره غرض د مصنف هم معلوم شو چې غرض د مصنف د دې عبارت نه بیان د حکم د اسم اشاره دی چې اتصال د هاء تنبهی دی په اول د اسم اشاره پورې.

**سوال:** دا هاء تنبهی ولې داخلیږي په اول د اسم اشاره باندې **جواب:** لپاره د ایقاظ دمخاطب.

**سوال:** متکلم په ها تنبهی سره ایقاظ د مخاطب ولې کوی؟ **جواب:** لپاره د رفع د غفلت د سامع نه.

**سوال:** رفع د غفلت د سامع نه ولې کوی؟ **جواب:** لپاره د دې چې لازم نه شي لغویت د اشاره د متکلم د وجی د غفلت د سامع نه.

**سوال:** لحوق وئیلی کیږي اتصال بعدی ته او دا حرف تنبیه خو متصل کیږي په اول د اسم اشاره پورې نه په اخیر پورې نو ویلحقها څنګه وائي؟

**جواب:** دلته یلحق په معنی د یدخل سره دی، یعنی لحوق نه مراد اتصال قبلی دی نه بعدی.

**سوال:** هر کله چې یلحق په معنی د یدخل سره دی نو یدخل یې ولې ونه ویل چې یلحق یې وویل؟

**جواب:** یلحق یې وویل نه یدخل په دې کې یې اشاره وکړه دیته چې دا هاء تنبهی داخلیږي په اول د اسم اشاره باندې په طریقه د عروض سره بی د جزئیت نه او که یدخل یې ویلی وی نو هغې په دې عروض باندې دلالت نه کوو.

**سوال:** په حرف التنبيه کې اضافت د دال راغلي دی مدلول ته یعنی هغه حرف چې دلالت کوی په ایقاظ د سامع او مخاطب باندې او حروف تنبیه درې دی (١) الا (٢) اما (٣) ها، نو دلته د حرف تنبیه نه کوم مراد دی؟ **جواب:** اضافت د حرف التنبيه ته، اضافت عهد خارجي دی مراد په دې سره هاء تنبهی ده څکه الا او اما داخلیږي په جمله باندې او هاء تنبهی په جمله باندې هم داخلیږي او په مفردات د اسماء اشاره باندې هم داخلیږي.

**ويتصل بها حرف الخطاب: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د حکم اول د اسماء اشاره نه چې لحوق د هاء تنبهی وو نو شروع یې وکړه په حکم ثانی د اسماء اشاره کې چې اتصال د حرف خطاب دی نو وی ویل چې و یتصل بها الخ.

**ترجمه:** متصل کیږي په اخیر د اسماء اشاره پورې **حرف الخطاب** هغه حرف چې دلالت کوی په حالت د مخاطب باندې په اعتبار د افراد تثنیت جمعیت تذکیر او تانیث سره

**تشریح: سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی.

**جواب:** ربط دا دی چې د دې خای پورې یو حکم بیان شو اوس بل حکم بیانوی. او غرض د مصنف هم معلوم شو چې بیان د حکم ثانی د اسم اشاره دی.

**سوال:** په اخیر د اسم اشاره پورې حرف خطاب ولې متصل کیږي؟

**جواب:** لپاره د دې چې دلالت وکړي په احوالو د مخاطب باندې افراداً تثنيةً الخ څکه اسم اشاره دلالت کوی په احوالو د مشار الیه باندې او په احوالو د مخاطب باندې دلالت نه کوي پس لابدي شوه د اتصال د یو حرف نه چې هغه دلالت کوی په احوالو د مخاطب باندې او هغه کاف حرفي خطابی دی.

**سوال:** دا کوم کاف چې متصل کیږي په اخیر د اسم اشاره پورې دیته کاف ضمیری خطابی ولې نه وائي چې کاف حرفي خطابی ورته وائي؟ **جواب:** (١) دا کاف حرفي خطابی دی نه کاف ضمیری د وجی د عدم وقوع د اسم ظاهر نه په موضع د ده باندې او د کاف ضمیری خطابی په خای باندې خای باندې بل اسم نه شي راوړي دادلیل د حرفیت دی او په ذلك کې د کاف حرفي خطابی په اسم واقع کیږي لکه ضربتك کې ضربت زیدا ویل جائز دی او په ذلك کې د کاف حرفي خطابی په خای باندې بل اسم نه شي راوړي دادلیل د حرفیت دی.

**سوال:** بیا خو ضمیر مستتر د اضرب او تضرب وغیره ته هم حرف ووایه د وجی د عدم وجود د اسم ظاهر نه په موضع د هغه باندې؟ **جواب:** عدم وقوع د اسم ظاهر په موضع د یو شئ باندې دلیل د حرفیت هله دی چې په هغه شئ کې بله علامه د اسم نه وي موجود او په ضمیر د اضرب او تضرب وغیره کې بله علامه د اسم شته دی چې هغه کون د دې دی مسند الیه (٢) یا دا کاف حرف خطابی دی نه ضمیری څکه که کاف ضمیری وی نو ذلك به مضاف او مضاف الیه وو او دا خو مضاف الیه نه دی څکه لا یضاف اسم الاشارة لانه معرفة، او اتصال د کاف ضمیری په اسم پورې بدون الاضافة نه راخي پس معلومه شوه چې دا کاف حرفي خطابی دی نه ضمیری.

**او كاف خلور قسمه دي** (۱): كاف اسمي بمعنى مثل نحو يضحكن عن كالبرد المنهم (۲): كاف اسمي ضميري نحو ضربتك (۳): كاف حرفي جاره نحو زيد كالاسد (۴): كاف حرفي خطابي

**وهي خمسة** دا حروف خطاب پنځه دي، ك، كما، كم، ك، كن، په اشتراك د تثنيه سره چې كما دي په مابين د تثنيه مذكر او تثنيه مؤنث كې، او دې پنځه حروف خطاب لره چې ضرب وركړي **فى خمسة** په پنځه نوعو د اسم اشاره كې چې ،ذا، ذان، تا، تان، او لاء دي **فيكون خمسة وعشرين** پس كيږي حاصل الضرب پنځه ويشت، **وهى** او هغه پنځه ويشت دا دي ذاك او ما سوا د ذاك تر ذاكن پورې او ذانك او ماسوا د ذانك تر ذانكن پورې نحو قوله تعالى ﴿فَذَٰنِكَ بُرْهَـٰنَانِ مِن رَّبِّكَ﴾ **وكذا البواقى** او دغسې گردان كوه د باقي اسماء اشارات د حرف خطاب سره.

**تشريح: سوال:** وهى خمسة كې دا هى ضمير چاته راجع دي؟ **جواب:** دا راجع دي حرف خطاب ته.

**سوال:** دا خو مطابقت رانغلو بين الراجع والمرجع ځكه هى ضمير مؤنث دي او حرف مذكر دي؟

**جواب:** ضمير چې دائر شي بين المرجع والخبر نو رعايت د خبر اولى دي او دلته هم رعايت د خبر شوى دي چې خمسة دي (۲) دا لفظ د حرف په شان د لفظ د حال او سبيل دي د ده سره معامله كولي شي معامله د مذكر او د مؤنث دواړو نو ځكه يې ورته ضمير د مؤنث راجع كړى دي.

**سوال:** د عقل تقاضه خو دا ده چې حروف خطاب شپږ شي د اولى پنځه شو؟

**جواب:** صحيح ده د عقل تقاضه خو دا وه چې شپږ دي راشي، واحد مذكر، تثنيه مذكر، جمع مذكر، واحده مؤنث، تثنيه مؤنث، جمع مؤنث، ليكن دا پنځه راځي ځكه دا يو، صيغه مشتركه ده په مينځ د تثنيه مذكر او تثنيه مؤنث كې.

**سوال:** دلته د دې اول خمسة نه پنځه حروف خطاب مراد دي، او د دويم خمسة نه پنځه اسماء اشاره مراد دي او اسماء اشاره خو پنځه نه دي بلكه زيات دي نو مصنف څنگه خمسة وائي؟

**جواب:** اسماء اشاره ته يې پنځه ويلى دي په اعتبار د انواع سره او انواع د اسماء اشاره پنځه دي، (۱) واحد مذكر (۲) تثنيه مذكر (۳) واحد مؤنث (۴) تثنيه مؤنث (۵) جمع مذكر او مؤنث، ضرب په دوه قسمه دي (۱) يو ضرب د اهل حساب دي (۲) او بل ضرب د فقهاؤ دي، نو ضرب په اصطلاح د اهل حساب كې ويلى كيږي تكثير د هر فرد د مضروب ته په قدر د عدد د مضروب فيه سره، او دا زياتى قبلوى لكه څلور چې په څلور كې اوهى نو شپاړس جوړيږي.

(۲): او ضرب په اصطلاح د فقهاؤ كې ويلى كيږي تكثير د اجزاؤ د مضروب ته په قدر د عدد د مضروب فيه سره او په دې كې زياتى نه راځي لهذا هغوى وائي چې يو سړي خپلى ښځى ته ووائي چې انت طالق اثنين فى اثنين نو نه مغلظه كيږي يعنى دوه طلاق واقع كيږي نه څلور ځكه ضرب عند الفقهاء زياتى نه قبلوى په مضروب كې او دلته مراد ضرب د اهل حساب دي نه ضرب د فقهاؤ نو ځكه چې پنځه حرف خطاب لره ضرب وركړي شي په پنځه انواع د اسم اشاره كې نو پنځه ويشت جوړيږي.

د اسم اشاره کې نو پنځو انواع په پنځه شي په وکړي ور ضرب چې لره خطاب حرف پنځه دی :**سوال**
ويشت څنګه جوړيږي؟ **جواب**: طريقه د ګردان يې دا ده چې د اسماء اشاره نه يو يو راواخله او
پنځه حرف خطاب ورسره لګوه لکه اول يې د **ذا** سره ولګوه. ذاك، ذاكما، ذاكم، ذاك، ذاكن، بيا يې
د **ذان** سره ولګوه ذانك، ذانكما، ذانكم، ذانك، ذانكن، الخ
**سوال**: **الى** په دوه قسمه دی، يو لپاره د مد د حکم. اويل لپاره د اسقاط دما و راء، **الى** چې راخي د
اسقاط د ما و راء لپاره نو هغه ثابتوی حکم ماقبل لره او مدخول محيل لره او ساقطوی يې د ما و راء نه
او دهغې علامه دا ده چې سر د کلام به متناول وی مدخول د الى لره نحو قوله تعالى ﴿فَاغْسِلُوا وُجُوهَكُمْ
وَأَيْدِيَكُمْ إِلَى الْمَرَافِقِ﴾ او الى چې راخي د مد د حکم لپاره نو هغه حکم راکاږي تر مدخول پورې او
مدخول لره حکم نه ثابتوی او د هغې علامه دا ده چې سر د کلام به متناول نه وی مدخول د الى لره نحو
قوله تعالى ﴿أَتِمُّوا الصِّيَامَ إِلَى اللَّيْلِ﴾ اوس دلته کوم الى مراد دی يو هم نه صحيح کيږي که اسقاطى يې
وائي نو مدخول د الى داخل شو په ماقبل کې ليکن د هغې علامه دا ده چې سر د کلام به متناول وی
مدخول د الى لره او دلته سر د کلام متناول نه دی مدخول د الى لره څکه د ذاك اطلاق په ذاكن باندې نه
کيږي او که الى مدی وائي نو بيا ذاكن داخل نه شو په ماقبل کې او دا باطل دی؟
**جواب**: دا الى اسقاطى دی او سر د کلام متناول دی مدخول د الى لره څکه چې دا عبارت په حذف د
معطوف سره دی فيكون التقدير وهي ذاك وماسواه الى ذاكن، او ماسواه متناول دی ذاكن لره.
**ويقال ذاللقريب وذلك للبعيد وذاك للمتوسط: ربط**: هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د احکامو د اسماء
اشاره نه نو شروع يې وکړه په بيان د فرق استعمالي د اسماء اشاره کې په طريقې د حوالې سره نو
وی ويل چې ويقال ذاللقريب الخ
**ترجمه**: ويلى کيږي چې **ذا** د اسماء اشاره نه راخي د مشاراليه قريب لپاره څکه په دې کښې حروف
کم دی او قلت د حروفو دلالت کوی په قلت دمسافت باندې **او ذلك** د اسماء اشاره نه راخي د
مشاراليه بعيد لپاره څکه په دې کې حروف زيات دی او کثرت د حروف دلالت کوی په کثرت د
مسافت باندې، **او ذاك** د اسماء اشاره نه راخي د هغه مشاراليه لپاره چې واقع شوی وی په مينځ د
قريب او د بعيد کې څکه په دې ذاك کې نه دا حروف بالکل کم دی په شان د **ذا** باندې او نه بالکل
زيات دی په شان د ذلك باندې بلکه دا حروف د دې درميانه دی او متوسط دی او توسط د حروف
دلالت کوی په توسط د مسافت باندې، او هر کله چې معرفت د متوسط موقوف وو په معرفت د
طرفين پورې چې قريب او بعيد دی نو مقدم يې کړو بعيد په متوسط باندې اګر که متوسط مخکې
دی د بعيد نه په وجود خارجي کې او هر کله چې دا اسماء اشاره احدهما مستعمل کيده په مقام د اخر
باندې پس و نه ګرځوو مصنف دا فرق په مينځ د اسماء اشاره کې مذهب خپل بلکه حواله يې کړه بل
چا ته په يقال سره په دې کې يې اشاره وکړه ضعف ته يا اختلاف ته.

**تشريح: سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟
**جواب:** ربط د دې د ماقبل سره دا دی چې مخکښې بيان د احکامو د اسم اشاره وو او دا بيان د فرق استعمالی اسماء اشاره دی او غرض د مصنف هم معلوم شو چې بيان د فرق استعمالی دی په دې شان سره چې ذا راځي د قريب لپاره ذاك د متوسط لپاره او ذا د بعيد لپاره
**سوال:** ذا د مشار اليه قريب لپاره ولې راځي ذاك د متوسط او ذانك د بعيد لپاره ولې راځي؟
**جواب:** ذا راځي د قريب لپاره ځکه چې په دې کښې حروف کم دی او قلت د حروفو دلالت کوی په قلت د مسافت باندې او ذانك راځي د بعيد لپاره ځکه په دې کښې حروف زيات دی او کثرت د حروفو دلالت کوی په کثرت د مسافت باندې او ذاك کښې حروف متوسط دی او توسط د حروفو دلالت کوی په توسط د مسافت باندې
**سوال:** دا فرق استعمالی مصنف په طريقه د جزم او يقين سره ولې ذکر نه کړو چې په يقال سره يې کړو؟ **جواب:** هر کله چې فرق کلی په مينځ د دې اسماء اشاراتو کښې نه وو ثابت په استعمال د کلام د عربو کښې په دې شان سره چې احدهما مستعمل کيږي په مقام د اخر باندې پس ونه گرځوو مصنف دا فرق استعمالی په مينځ د دې اسماء اشاراتو کښې مذهب خپل بلکه دا خبره يې وکړه په طريقې د حوالی سره خپل ځان يې د اعتراض نه بچ کړو او په يقال صيغه د مجهول کښې يې اشاره وکړه ضعف ته ځکه فرق کلی نه دی ثابت په مينځ د دې اسماء اشاراتو کښې په دې شان سره چې دا ذلك چې څنگه د مشار اليه بعيد لپاره راځي دارنگې د قريب لپاره هم راځي کما فی قوله تعالی ﴿ذٰلِكَ الْكِتٰبُ لَا رَيْبَ فِيْهِ﴾(۲) او بل يې په يقال کښې اشاره وکړه اختلاف ته په دې شان سره چې بعض وائي چې ذا د قريب لپاره راځي او ذاك د متوسط لپاره او ذلك د بعيد لپاره، او بعض وائي چې ذا لکه څنگه چې راځي د قريب لپاره نو دارنگې د بعيد او متوسط لپاره هم راځي وکذ البواقی
بهر حال په دې کښې دا فرق کلی نه دی بلکه اکثری دی ځکه بعض په ځای د بعض باندې مستعمليږي، او کوم چې دا فرق کلی دی نو بيا احدهما مستعمليږي په مقام د اخر باندې مجازاً
**سوال:** اول مرتبه د قريب ده بيا د متوسط ده او بيا د بعيد ده نو دا متوسط مقدم دی په بعيد باندې په وجود خارجي کښې نو تا دلته بعيد ولې مقدم کړو؟ **جواب:** هر کله چې معرفت د متوسط موقوف وو په معرفت د طرفين پورې چې قريب او بعيد دی په دې شان سره چې اول سړي قريب او بعيد او پيژني نو د هغې نه بعد متوسط پيژندې شي والافلا نو معرفت د قريب او بعيد موقوف عليه وو دی او موقوف عليه مقدم وی په موقوف باندې ځکه يې بعيد مقدم کړی
**وتلك وذانك وتانك مشددتين واولالك مثل ذلك: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د فرق استعمالی نه په واحد مذکر اسم اشاره کښې نو شروع يې وکړه په بيان د فرق استعمالی د واحد مؤنث، تثنيه مؤنث، تثنيه مذکر، او جمع، اسم اشاره کښې

**ترکیب:** **تلك** معطوف علیه او ذانك او تانك او اولالك عطف دی په تلك باندې معطوف علیه سره د معطوفات نه مبتدا او **مثل ذلك** مضاف مضاف الیه ورله خبر دی مبتدا سره د خبر نه جمله خبریه اسمیه
**ترجمه:** تلك صیغه د واحد مؤنث اسم اشاره او تانك او ذانك تثنیه مذکر او تثنیه مؤنث اسم اشاره په حال کون د دې دواړو کې **مشددتین** چې په تشدید د نون سره یې واخلي او **اولالك** صیغه جمع مذکر و مؤنث اسم اشاره په شان د لفظ د ذلك دی (۲) یاپه شان د دغه مذکور دی چې ذلك دی په دې شان سره لکه څنګه چې ذلك د مشارالیه بعید لپاره راځي نو دارنګې دا اسماء اشاره هم د مشارالیه بعید لپاره راځي.
**تشریح:** **سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟
**جواب:** ربط د ماقبل سره دا دی چې مخکې یې بیان د فرق استعمالی د واحد مذکر اسم اشاره وکړو اوس بیانوی فرق استعمالی د تثنیه مذکر تثنیه مؤنث او جمع اسم اشاره او په معرفت د ربط سره غرض د مصنف هم معلوم شو چې بیان د فرق استعمالی د واحد مؤنث تثنیه مؤنث تثنیه مذکر او جمع اسم اشاره دی، په دې شان سره چې تی، راځي د مشارالیه قریب لپاره او تاك راځي د مشارالیه متوسط لپاره او تلك راځي د مشارالیه بعید لپاره او تان راځي د مشارالیه قریب لپاره او تانك په تخفیف د نون سره راځي د مشارالیه متوسط لپاره او **تانك** په تشدید د نون سره راځي د مشارالیه بعید لپاره او **ذان** راځي د مشارالیه قریب لپاره **ذانك** بالتخفیف راځي د مشارالیه متوسط لپاره او **ذانك بالتشدید** راځي د مشارالیه بعید لپاره او **اولی** او **اولاء** راځي دمشارالیه قریب لپاره او **اولاك او اولاءك** راځي د مشارالیه متوسط لپاره او **اولالك** راځي د مشارالیه بعید لپاره.
**سوال:** په تانك، او ذانك کې دا تشدید د نون د کوم ځای نه راغلي دی؟
**جواب:** په دې کې دوه مذهبه دی (۱) یو مذهب د جمهورو دی (۲) او بل مذهب د مبرد دی.
**جمهور وائي** چې دا تشدید د نون راغلي د هغه نون د وجې نه چې هغه راغلي دی په عوض د الف مفرده محذوفه کې په دې شان سره چې ذانك، او تانك اصل کې ذا او تا وو کله چې علامات د تثنیه یعنی الف او نون په دې پورې متصل شو نو هغه الف د مفرد حذف شو د وجې د التقاء د ساکنین نه بیا د هغه په عوض کې نون راوړې شو او په دې نون د تثنیه کې مدغم شو نو ذانك او تانك شو.
**او مبرد وائي** چې دا تشدید د نون راغلي دی د هغه نون د وجې نه چې هغه راغلي دی بدل د لام نه څکه ذانك او تانك اصل کې ذان لك او تان لك وو بیا نون او لام قریب المخرج یو ځای راغلل لام بدل کړې شو په نون او نون په نون کې مدغم شو نو ذانك او تانك شو او نون مو بدل نه کړو په لام سره څکه دا علامه ده، خو دا مذهب د مبرد ضعیف دی بالوجوه الاربعة.
(۱): یو د اخلاف دی د قاعدې د ادغام نه څکه قاعده د ادغام دا ده چې اجتماع د حرفینو متقاربی المخرج چې راشي نو اول ثانی ته اړولي شي او دلته نې ثانی اول ته اړولې دی.
(۲): دویم د دې وجې نه چې لام البعد په تثنیه د اسماء اشاره کې نه راځي نو نون بدل د لام نه څنګه راغی.

(۳): کله کله د دې ذانك او تانك په اول سر کې ها تنبیهی راځي او قانون دا دی چې ها تنبیهی چې په کوم اسم اشاره باندې داخل شي په هغې کې لام البعد نه راځي نو دا بدل د لام نه څنګه راغي.
(۴): دغسې تشدید راځي په اللذان او اللتان تثنیه د الذی او التی کې او هلته کې خو دا نون عوض د محذوف د الذی او التی مفرد نه راغلي دی او دا حذف شوی دی التقاء د ساکنین د وجه نه نو د تثنیه سره دغسې ذان او تان کې دا تشدید د نون عوض د الف د مفرد نه راغلي دی او هغه الف حذف شوی دی التقاء د ساکنین د وجه نه کما قال ابن مالك.

والنون من ذين و تين شددا
ايضاً وتعويضٌ بذاك قصدا

**پس زده کړه** دا خبره چې لام البعد په تثنیه د اسماء اشاره کې نه راځي (۲) بلکه لام البعد راځي په مفرد د اسماء اشاره کې په دې شرط سره چې په اول کې یې ها تنبیهی نه وه راغلي او که ها تنبیهی پکې راغلي وه نو بیا په هغې کې هم نه شي راتلي (۱) ځکه ها تنبیهی دلالت کوی په قرب د مشار الیه باندې او لام دلالت کوی په بعد د مشار الیه باندې او په دې دواړو کې منافات دی.
(۲): السند علیه التتبع والاستقراء (۳) لپاره د دې چې کثرت د زوایدو رانه شي.
(۳): دا لام البعد په جمع د اسم اشاره کې راځي په دې شرط سره چې ممدود نه وی بلکه مقصور وی او په مقصور کې راځي په دې شرط سره چې په اول کې یې ها تنبیهی راغلي نه وي نحو اولالك.
**سوال:** مشددتین منصوب دی او منصوبات (۱۲) دی دا کوم یو دی؟ **جواب:** دا خبر دی د کان محذوفه لپاره فیکون التقدیر و ذانك و تانك ان کانتا مشددتین (۲) یا مفعول به واقع شوی دی لپاره د فعل مقدر ای اعنی مشددتین (۳) دا منصوب دی بنا بر حالیت دا حال دی د ذانك و تانك نه.
**سوال:** مثل ذلك کې ذلك اسم اشاره ده د دې مشار الیه کوم دی؟ **جواب:** (۱): ذلك په دې مقام کې اسم شاره نده بلکه دا مراد اللفظ علم دی د هغه ذلك لپاره چې واقع کیږي په تراکیب کې په شان د تلك تانك ذانك او اولالك باندې لهذا دا تقاضه د مشار الیه نه کوي. (۲): او که اومنم چې دا اسم اشاره ده نو مشار الیه د دې لپاره هغه ذلك مذکور دی په وذلك للبعید کې.
**ومن علم البیان:** (۱): تلك تانك الخ مشبه دی او ذلك مشبه به دی او دا تشبیه التسویه ده په شان د دې قول د شاعر باندې!

صدغ الحبيب وحالى كلاهما كالليالى
وثغره فى صفاء وادمعى كاللالى

(۲): او دا تشبیه مجمله ده نه مفصله ځکه وجه د شبه پکې نده مذکوره. (۳): او دا تشبیه مرسله ده نه مؤکده ځکه ادات د تشبیه ذکر دی چې مثل دی. (۴): دا تشبیه مقبوله ده نه مردوده ځکه دا تشبیه دلالت کوی په غرض او مقصد د متکلم باندې چې بیان د تلك تانك الخ د اسماء اشاره دی یعنی د دې حال مونږ ته معلوم شو د مشبه به نه چې ذلك دی په دې تشبیه سره په دې شان سره چې ذلك راځي د مشار الیه لپاره نو تلك تانك الخ هم راځي د مشار الیه بعید لپاره.

**واما ثم وهنا و هنا فللمكان خاصة: ربط:** هر كله چې فارغ شو مصنف د بيان د هغه اسماء اشاره نه چې په هغې سره اشاره كيږي زمان او مكان او غير هما ته نو شروع يې وكړه په بيان د هغه اسماء اشاره كې چې په هغې سره اشاره كولې شي مكان ته فقط نه بل شي ته نُو وى ويل واما ثم وهنا الخ

**ترجمه:** هر چې دى **ثم** په فتحې د ثاء او تشديد د ميم سره **وهنا** او لفظ د هنا په ضمې د هاء او تشديد د نون سره دا وضع كړي شوى دى د مشاراليه مكان لپاره **خاصة** زه خاص كوم دغه اسماء اشارات په مشاراليه مكان پورې په خاص كولو سره په دې شان سره چې په دې سره اشاره كيږي مشاراليه مكان ته حقيقتاً او اشاره پرې زمانى ته كيږي مجازاً

**تشريح: سوال:** دا ثم هنا الخ يې د باقي اسماء اشارات نه جدا ولې ذكر كړه دا يې د هغې سره يو ځاى ولې نه ذكر كولو؟ **جواب:** هر كله چې په ثم هنا الخ سره اشاره كيدله مكان ته فقط په خلاف د باقي اسماء اشارات نه چې په هغې سره اشاره كيږي مكان زمان وغير هما ته نو دا يې ذكر كړه په جدا عنوان سره لپاره د امتياز د باقي اسماء اشارات نه او **ثم** په فتح د ثاء او تشديد د ميم سره اسم دى د اسماء اشارات نه په دې سره اشاره كيږي مكان بعيد ته، مكان عام دى كه حقيقى وى او كه فرضي وى (۱) وهو ظرف مكان لايتصرف (۲) حرف تنبيه اول طرفه نه (۳) او حرف خطاب اخر طرف نه نه متصل كيږي، او ثم په ضمې د ثاء او تشديد د ميم سره حرف دى د حروف عاطفو نه د عطف لپاره راځي نه د اشارې لپاره

**سوال:** ته وائې چې هنا ههنا هنا د مكان لپاره راځي نو دا قاعده ستا منقوضه شوه په دې قول د الله تعالى سره چې ﴿ هُنَالِكَ الْوَلَايَةُ لِلَّهِ الْحَقِّ ﴾ دلته په هناك سره اشاره شوې ده زمان ته نه مكان ته؟

**جواب:** په دې هنا سره اشاره مكان ته كيږي حقيقتاً او زمان ته كيږي مجازاً نه حقيقتاً او دلته هم په دې سره اشاره زمان ته شوې ده مجازاً

**سوال:** خاصة ولې منصوب دى؟ **جواب:** دا منصوب دې بنا بر مفعول مطلق د فعل محذوف لپاره اى اخص خاصة او خاصة مصدر دى بروزن فاعلة بمعنى الخصوص او مصدر كله كله په وزن د فاعلة باندې راځي لكه عافية عاقبة باقية كاذبة، او فرق استعمالى په مينځ د اسماء اشارات كې چې وضع شوى دى د مكان لپاره دا دى چې (۱): هُنا او ههنا راځي د مشاراليه قريب لپاره (۲): او هناك راځي د مشاراليه متوسط لپاره (۳): او ثم هَنَا هنالك راځي د مشاراليه بعيد لپاره

## الموصول

**ربط:** هر كله چې فارغ شو مصنف د بيان د قسم ثاني د اسم مبني نه تفصيلاً چې اسماء اشاره وو نو شروع يې وكړه په بيان د قسم ثالث د اسم مبني كې تفصيلاً چې اسماء موصولات دى او هر كله چې موصولات زيات وو په نسبت سره اسماء افعال ته پس مقدم يې كړه موصولات په اسماء افعال باندې لان العزة للتكاثر يا هر كله چې موصولات بمنزلة المفرد وو خكه دا اسماء دى لفظاً او

معنىٰ او اسماء افعال بمنزلة المركب وو ځکه هغه په لفظ کې اسماء دي او په معنىٰ کې افعال دي او ځکه چې عين مفرد مقدم وي په مرکب نو بمنزلة المفرد هم مقدم وي په بمنزلة المرکب باندې په ترتيب خارجي کې نو مصنف مقدم کړو په ذکر کې لپاره د دې چې ترتيب ذکري مطابق شي د ترتيب خارجي سره او تفصيل يې مخالف وګرځوو د اجمال نه په دې شان سره چې په اجمال کې يې الموصولات جمع ذکر کړي وه لپاره د دې چې دلالت وکړي په کثرت د افراد باندې او په تفصيل کې يې مفرد ذکر کړو ځکه دا مقام مقام د تعريف دی او تعريف د جنس کيږي په جنس سره او جمع دلالت کوي په افرادو باندې نو بيا لازميږي تعريف د افرادو. او موصول په لغت کې وصل کړده شده ته وائي او موصول معدوده من المبنيات په اصطلاح د نحويانو کې ما اسم دی دا سې اسم لايتم جزء (۱) چې نه تاميږي جزئيت د دې اسم په هيڅ شئ سره الا مګر تاميږي جزئيت د ده بصلة وعائد په صله او عائد سره (۲) اي لايصير جزأ تاماً. يعني موصول په اصطلاح د نحويانو کې هغه اسم ته وائي چې نه ګرځي جز تام چې هغه جز اول د کلام دی چې انحلال د کلام ورته کيږي اولاً الابصلة مګر جز تام واقع کيږي په صله او عائد سره او مراد د صلى نه صله لغوی ده چې جملة مذکورة بعد الاسم لايتم الابها ته وائي نه صله اصطلاحی چې جملة خبريه مذکورة بعد الموصول و مشتملة على ضمير عائد اليه ته وائي، او قرينه په دې خبره چې دلته مراد صله لغوی ده نه اصطلاحي، ذکر د عائد دی وروستو د صلة نه ځکه که مراد دصلى نه صله اصطلاحي شي نو بيا ذکر د عائد وروستو د صلى نه لغوه او مستدرک کيږي ځکه مفهوم د صله اصطلاحي مشتمل دی په عائد باندې، يا مراد د صلى نه صله اصطلاحي ده او تعريف د صله اصطلاحي دا دی چې جملة متصلة باسم لايتم جزء الامع هذه الجملة مشتملة على عائد اليه، او ذکر د عائد وروستو د صلى نه تصريح بما علم ضمنا ده لپاره د مبالغة في الاحتراز د مثل د اذا او د حيث نه.

**تشريح: سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟

**جواب:** ربط دا دی چې مخکې بيان د نوع ثانی د اسم مبني وو تفصيلاً او اوس بيان د نوع ثالث د اسم مبني دی تفصيلاً وېدې سره غرض د مصنف هم معلوم شو چې بيان د نوع ثالث د اسم مبني دی تفصيلاً.

**سوال:** موصولات يې ولې مقدم کړه په اسماء افعال باندې؟ **جواب:** هر کله چې موصولات زيات وو په نسبت سره اسماء افعال ته نو دائى مقدم کړه په هغې باندې اجمالاً وتفصيلاً لان العزة للمتكاثر

(۲): هر کله چې موصولات بمنزلة المفرد وو په دې شان سره چې دا اسماء دي لفظاً او معنىٰ په خلاف د اسماء افعال نه چې هغه بمنزلة المرکب وو په دې شان سره چې لفظاً اسماء دي او معنىٰ افعال دي او مفرد مقدم وي په مرکب باندې په وجود خارجي کې د دارنګې بمنزلة المفرد هم مقدم وي په بمنزلة المرکب باندې په وجود خارجي کې نو ده مقدم کړو په ذکر کې لپاره د دې چې ترتيب ذکري موافق شي د ترتيب خارجي سره

**سوال:** په جانب د اجمال کې موصولات جمع ذکر وه نو دلته یې الموصول مفرد ولې ذکر کړو یعنی دا تفصیل یې مخالف د اجمال نه ولې ګرځولې دی؟ **جواب:** تفصیل یې مخالف ګرځولې دی د اجمال نه د وجې د یو نکتې نه هغه نکته دا ده چې په جانب د اجمال کې یې جمع ذکر کړې وه اشاره وه کثرت د افرادو ته او دلته یې مفرد ذکر کړو ځکه چې دا مقام مقام د تعریف دی او تعریف د جنس په جنس سره کیږی که جمع ئې ذکر کړې وی نو تعریف د افرادو راتلو او داندې جائز.

په موصول کې لابدې ده د معرفت د امور ستهٔ نه (۱) مفهوم لغوی (۲) معرفت د اقسامو (۳) معرفت د تعریف د اقسامو (۴) معرفت د مصداق د اقسامو (۵) معرفت د احکامو (۲) معرفت د تعریف د وجه د بناء، نو موصول صیغه د اسم مفعول ده په لغت کې وصل کرده شده راګویند.

او په اصطلاح کې موصول په دوه قسمه دی (۱) موصول حرفي (۲) موصول اسمی

موصول حرفي په اصطلاح دنحویانو کې ویلې کیږي کل حرف أول مع صلته بالمصدر ته او مصداقونه د هغې اوه دی، ما، وأنّ، و ان، ولو، کی، والذی، وهمزه، الستویة او دیته مصدریه هم ویلې کیږي، او په دې کې دا اولنې درې مشهور دی په حروف مصدریو کې او دا وروستو څلور غیر مشهور دی، او موصول اسمی د نحو یانو په اصطلاح کې

(۱) ما یدل علی معین بواسطة جملة تذکر بعده ته وائي. (۲) یا موصول په اصطلاح د نحویانو کې مالایتم جزء الابصلة وعائد ته وائي، او احکام مصنف ذکر کوی او مصداقونه د موصول اسمی هم مذکور فی المتن دی، او وجه د بناء یې دا ده چې موصولات مبني دی ځکه دا مشابه دی د مبني اصل سره چې حرف دی په احتیاج کې په دې شان سره چې حرف محتاج دی په دلالت علی المعنی کې امر خارج ته چې انضمام د کلمه اخری دی او موصول هم محتاج دی په تعین د شئ کې امر خارج ته چې صله ده.

**سوال:** ته وائي چې موصول په اصطلاح کې مالایتم جزء الابصلة وعائد ته ویلی شي دا تعریف جامع نه شو خپلو افرادو لره خارج شو د دې نه لفظ د موصول ځکه لفظ د موصول بې دصلی او د عائد نه جز تام واقع کیږي لکه ته وائي چې الموصول اسم؟ **جواب:** دا اعتراض به تا هله کولې چې په الموصول کې الف لام جنسي وی او مراد په دې سره مایطلق علیه لفظ الموصول وی لیکن دلته الف لام جنسي نه دی بلکه الف لام عهد خارجي دی او مراد په دې سره موصولات معدوده من المبنیات دی او لفظ د موصول د موصولات معدوده من المبنیات نه ندی، یعنی دا د افرادو د معرف نه نهٔ دی نو که تعریف پرې صادق نه شي نو څیز دی.

**سوال:** جزء منصوب دی او په دې کې درې احتما له دی (۱) یو دا دی چې منصوب شي بنابر مفعول مطلق (۲) چې منصوب شي بنابر حالیت (۳) چې منصوب شي بنابر تمیز، او دا درې واړه نه دی صحیح مفعول مطلق ځکه نه دی صحیح چې مفعول مطلق مصدر فعل مذکور ته وائي او جزء مصدر د یتم نه دی او که منصوب یې وائي بنابر تمیز نو بیا لازمیږي فساد د معنی ځکه تمیز

چې واقع شي دنسبت د فعل نه فاعل ته نو دا تميز محول عن الفاعل وی يعنی دغه تميز فاعل د فعل وی په معنی کې نو بيا کيږي معنی دارنګې چې موصول هغه اسم دی چې نه تاميږي جز د دې اسم په هيڅ شي سره مګر په صله او په عائد سره او دا معنی باطله ده ځکه مقصود دلته دا دی چې دا موصول په خپله جز تام نه واقع کيږي الابصلة وعائد او که منصوب يې وائي بنابر حاليت نو بيا دا ترکيب مؤدی د مراد د مصنف نه دی ځکه معنی به يې داسې چې موصول په اصطلاح کې يو اسم دی چې نه تاميږي په حال کون د دې کې چې جزی واخلې نو معنی دا شوه چې دا تام دی خو جز نه دی او معنی مراده دا ده چې جز دی خو تام نه دی او دا معنی بنا ده په يو قاعده باندې قاعده دا ده چې نفی چې داخل شي په يو کلام باندې او دغه کلام مقيد وی په يو قيد سره نو دا نفی متوجه کيږي دغه قيد ته او مقيد باقي پاتې. کوی نو دلته دالاي نفی داخل شوی دی په کلام باندې چې بنم دی او دا تقيد دی په يو قيد سره چې جزء دی نو د لامتوجه شوه دی قيد ته چې جزء دی نو نفی د جزء يې وکړه او باقی کلام مثبت پاتې شو. **جواب:** (١): دا جزءً زه منصوب وايم بنابر تميزاو جزء په معنی د جزئيت سره دی نو کيږي معنی دارنګې چې لايتم جزئية الابصلة وعائد او دا معنی صحيح ده (٢): يا دا جزء منصوب دی بنابر خبريت د لايتم لپاره ځکه لايتم فعل دی د افعال ناقصه غير مشهورو نه بمعنی لايقع ولايصير فيکون المعنی لايصير جزءً تاماً الابصلة وعائد نو دا نفی متوجه ده قيد ته چې تاماً دی نو نفی د قيد يې وکړه او جزء يې باقي پاتې کړو.

**سوال:** جزء منصوب واقع شوی دی بنابر حاليت او که ته وائي نفی متوجی ده قيد ته نو فساد دمعنی راځي **جواب:** نفی چې داخل شي په کلام باندې چې هغه مقيد وی په يو قيد سره نو په هغی کې درې صورتونه دی (١) غالباً نفی د قيد کوی (٢) کله کله نفی د مقيد کوی نحو قوله تعالی: ولم يصروا علی ما فعلوا و هم يعلمون (٣) کله نفی د قيد او د مقيد دواړو کوی او دا ترکيب د مصنفؒ د قبيلې د دی قول د الله تعالی نه دی ولم يصروا الخ فافهم.

**سوال:** جزء تام څه وائي؟ **جواب:** شيخ رضی وائي چې جز تام عمده د کلام ته وائي نو معنی دا شوه چې دا موصول بی د صلی نه عمده د کلام نه واقع کيږي يعنی دا مبتدا فاعل خبر وغيره نه واقع کيږي، او جامي صاحب وائي چې جز تام جز اولی د کلام ته وائي نو په دې کې جامی صاحب رد وکړو په شيخ رضی باندې لکه موصول بی د صلې او عائد نه لکه څنګه چې عمده د کلام نه واقع کيږي دارنګې فضله هم نه واقع کيږي لکه مفعول به شو لهذا مذهب د جامی. صاحب غوره دی د مذهب د شيخ رضی نه.

**سوال:** جز اولی د کلام څه ته وائي؟ **جواب:** جز د کلام په دوه قسمه دی، يو جز اولی دی او بل جز ثانوی دی جز اولی د کلام هغې ته وائي چې انحلال د کلام ورته کيږي اولاً او جزثانوی هغې ته وائي چې انحلال د کلام ورته کيږي ثانياً مثال د دواړو لکه جاءنی الذی ضربك دا موصول سره د صلې

نه جز اولی د کلام دی ځکه چې انحلال د کلام ورته کیږي اولاً او دا الذی بدون الصلة جز ثانی د کلام دی ځکه چې انحلال د کلام ورته کیږي ثانیاً

**سوال:** موصول صیغه داسم مفعول ده او قانون دا دی چې د هر مشتقي په خیته کې مصدر پروت وی او وروستو په تعریف کې صله ذکر ده نو دا خو اخذ د محدود راغي په حد کې او تعریف د صله راغي په صلی سره او دا باطل دی؟ **جواب:** (۱) دا موصول د صفتیت نه نقل شوی دی او علم ګرځیدلې دی د یو نوع داسم لپاره نو دا اسم جامد دی لهذا د دې په خیته کې صله نشته

(۲) اوکه اومنم چې دا صیغه د مشتقي ده او صله پکې شته نو بیا هم اخذ د محدود په حد کې او تعریف د شئ بنفسه نه راځي ځکه کومه صله چې مذکوره ده په ضمن د موصول کې هغه صله اصطلاحی ده او په تعریف کې چې صله ذکر ده دا صله لغوی ده نه اصطلاحی، او په دې سره یو بل اعتراض هم دفع شو اعتراض دا دی چې دا تعریف د موصول باطل دی ځکه چې دا مستلزم دی دورلره او کوم تعریف چې مستلزم وی دورلره هغه باطل وی نو دا باطل شو کبری ظاهره ده او دلیل د صغری دا دی چې دا تعریف مستلزم دورلره ځکه دی چې موصول په تعریف کې محتاج دی صلې ته او صله په تعریف کې محتاج ده موصول ته ځکه چې صله په اصطلاح کې ویلی کیږي جملة خبرية مذكورة بعد الموصول مشتملة بعائد له نو جواب (۱) وشو چې دا اعتراض په هله وارد کیده چې مراد د صلی نه صله اصطلاحی وی لیکن دلته په تعریف د موصول کې د صلې نه مراد صله لغوی ده نه اصطلاحی او صله په لغت کې جملة مذكورة بعد الاسم لايتم الابها ته وائي نو موصول محتاج دی په تعریف کې صله لغوی ته او صله لغوی متحاج نده موصول ته نو دور نشته.

**سوال:** مصنف خو صله مطلقه ذکر کړې ده نو ته ترې صله لغوی څنګه مراد کوې؟

**جواب:** قرینه په دې خبره باندې چې دلته د صلې نه مراد صله لغوی ده نه اصطلاحی ذکر د عائد دی وروستو د صلی نه ځکه که صله اصطلاحی مراد شي نو ذکر د عائد وروستو د دې نه لغوه کیږي ځکه چې عائد ماخوذ دی په مفهوم د صله اصطلاحی کې

(۲) یا جواب دا دی چې مراد د صلی نه صله اصطلاحی ده خو صله په اصطلاح کې جملة مذكورة بعد الموصول مشتملة بعائد لهٔ ته نه وائي بلکه صله په اصطلاح کې ویلی کیږي جملة متصلة باسم لايتم جزء الامع هذه الجملة مشتملة على عائد اليه ته وائي نو صله اصطلاحی محتاج نه شوه موصول ته په تعریف کې نو دور نشته

**سوال:** بیا خو ذکر د عائد وروستو د صلی نه لغوه دی ځکه چې صله اصطلاحی په دغه تعریف باندې هم مشتمله ده په عائد باندې؟ **جواب:** ذکر د عائد وروستو د صلی نه تصریح بما علم ضمناً ده لپاره د مبالغه فی الاحتراز د مثل د اذ او د حیث نه، لیکن هغه اول جواب غوره دی د دې جواب نه ځکه په دې کې لازمیږي لغویت د عائد، او بل دا تعریف خلاف دی د مشهور نه ځکه چې د صله اصطلاحی تعریف عند النحات هغه بل دی او دا تعریف غیر مشهور دی

په هر تعریف کې لابدي وی د جنس او فصل نه، ما عبارت دی د اسم نه دا جنس دی ټول اسماء پکې داخل شو لایتم جزء الابصلة. فصل اول دی په دې سره خارج شو ټول اسماء د تعریف نه ماسواء د اذ، اذا، او حیث نه، ځکه دا هم اسماء دی او لایتم جزء الابصلة دی او عائد فصل ثاني دی په دې سره احتراز راغې د اذ، اذا، او حیث نه ځکه صله د هغې مشتمله نه وي په عائد باندې نو تعریف د موصول جامع او مانع شو.

**وصلته جملة خبرية والعائد ضميرله: ربط:** هر کله چې ماخوذ وو په تعریف د موصول کې صله او عائد او وضاحت د معرف موقوف وی په معرفت د جمیع اجزاؤ د تعریف پورې او صله په اعتبار د مفهوم سره عامه وه که جمله خبریه وی او که انشائیه وی او عائد هم عام وو که ضمیر وی او که غیر ضمیری وی او ضمیر عام دی چې راجع وی موصول ته او که نه وي وی راجع پس لاندې شوه د معرفت د صلې او د عائد نه نو ځکه مصنف د صلې او د عائد تعریف وکړو په وصلته جملة خبرية والعائد ضميرله سره لپاره د وضاحت د معرف.

**ترجمه: وصلته** صله د موصول **جملة** جمله راځي یا هغه شئ چې په معنی د جملې سره وی لکه اسم فاعل او اسم مفعول شو او مفرد صله د موصول نه راځي ځکه موصول واضع وضع کړي دی ذریعه لپاره د توصیف د معرفه په جملې سره نو مدخول د دې به نه وي مگر جمله به وی.

(۲): یا د دې وجې نه چې موصول مبهم دی او د دې بیان کیږي په نسبت معلومه سره او نسبت نه وي مگر په جمله کې وی **خبرية** او دا جمله به خبریه وی نه انشائیه ځکه چې په دې صلې سره بیان د دغه موصول کیږي او جمله انشائیه د چا لپاره بیان نه واقع کیږي **والعائد** او رابط په صله کې **ضمير** ضمیر به وی نه بل شئ لانه اشهر **له** او راجع به وی دی موصول ته ځکه دا رابط راځي په صله د موصول کې لپاره د ربط د دې جملې د موصول سره او ربط د جملې د موصول سره به هله راشي چې ضمیر راجع شي موصول ته او که ضمیر راجع نه شي موصول ته نو بیا ربط د موصول سره نه راځي.

**تشريح: سوال:** د موصول تعریف وشو اوس مصنف لپاره پکار وه چې د اسماء موصولات صیغې یې ذکر کړې وې لکه څنګه چې یې د تعریف د اسماء اشارات نه بعد صیغې د اسماء اشاره بیان کړې نو دا وصلته الخ د څه لپاره وائي؟ **جواب:** هر کله چې په تعریف د موصول کې ماخوذ وو صله او عائد او صله او عائد په اعتبار مفهوم سره عام وو پس لابدي شوه د تعین د صلې او عائد نه نو وصلته الخ سره تعین د صله کوی او تعین د عائد کوی اوس په دې سره یو بل اعتراض هم دفع شو اعتراض دا دی چې معرفت د معرف موقوف دی په معرفت د جمیع اجزاء د تعریف پورې او یو جز د تعریف د موصول نه صله ده او بل جز عائد دی او صله او عائد مونږ ته نه دی معلوم نو دا تعریف بالمجهول راغې او دا باطل دی؟

**جواب:** منم چې معرفت د معرف موقوف دی په معرفت د جميع اجزاؤ د تعريف پورې نو مصنف چې د صلی تعريف وکړو وصلته جملة خبرية سره او د عائد تعريف يې وکړه والعائد ضمير له سره نو په دې تعريف سره موږ ته صله او عائد معلوم شو نو د هغې نه بعد موږ ته موصول معلوم شو.

**سوال:** فرض منصبی د مصنف اختصار بما هو اختصار دی نو پکار دا وه چې تعريف د موصول يې داسې کړې وی چې والموصول ما لايتم جزءً الابجملة خبرية وعائد ضمير له نو اختصار به راغلې وی په عبارت کې او تعريف به بې پاتې شوی وی د جهالت نه؟ **جواب:** مصنف دغه تعريف ونه کړو بلکه دا بل تعريف يې وکړو لپاره د تفصيل بعد الاجمال ځکه تفصيل بعد الاجمال اوقع فی الذهن وی.

**سوال:** ته وائې چې صله د موصول جمله خبريه راځي دا قاعده ستا منقوضه شوه په الضارب او المضروب سره دلته صله د موصول جمله خبريه نده بلکه اسم فاعل او اسم مفعول دی؟

**جواب:** موږ وايو چې صله د موصول جمله خبريه راځي يا هغه شئ راځي چې په معنی د جملی خبري سره وی لکه اسم فاعل او اسم مفعول شو (۲) يا صله د موصول جمله خبريه راځي ماسواء د الف لام موصولي نه چې دا مستثنی دی د هغه نه ځکه د دې صله اسم فاعل او اسم مفعول راځي ځکه مصنف دا قانون دی چې کله يو حکم کلی ذکر کړي او د هغې نه بعد يو جزی ذکر کړي نو دا جزی په منزله د مستثنی وی د دغه کلی نه.

**سوال:** ته وائې چې صله د موصول جملة خبريه راځي دا خبره ستا منقوضه شو په الذی فی الدار فله درهم سره او الذی عندك فله درهم سره چې دلته په دې مثال اول کې صله د موصول جار مجرور راغلې دی او په دې مثال ثانی کې صله د موصول ظرف راغلې دی نه جمله خبريه؟

**جواب:** جار مجرور او ظرف چې په ترکيب کې د چا لپاره څه واقع کيږي نو په اعتبار د متعلق سره واقع کيږي بی د متعلق نه څه نه واقع کيږي او دا جار مجرور او ظرف چې کله صله د موصول واقع شي نو متعلق د دې بالاتفاق فعل مقدر او محذوف وی نو دلته فعل سره د فاعل او سره د متعلق نه جمله فعليه خبريه صله د موصول واقع شوې ده.

**سوال:** دا صله د موصول به جمله ولې وی؟ **جواب:** (۱): ځکه چې موصول واضع وضع کړی دی ذريعه لپاره د توصيف د معرفه په جملی سره نحو جاءنی زيد الذی ضربك نو مدخول د دې به نه وي مگر جمله به وی (۲): يا د دې وجې نه چې موصول مبهم دی او بيان يې کولې شي په نسبت معلومه سره او نسبت نه وی مگر په جمله کې وی

**سوال:** جمله خبريه به ولې وی؟ **جواب:** ځکه چې په صلی سره بيان د موصول کولې شي او جمله انشائيه د چا لپاره بيان نه واقع کيږي، واما قول الشاعر:

وانی لرام نظرة قبل التی لعلی وان شطت نواها ازورها

فبتقدير اقول ای التی اقول لعلی ازورها وقد تقع القسمية صلة نحو ﴿ وَإِنَّ مِنكُمْ لَمَن لَّيُبَطِّئَنَّ ﴾ ای لمن والله ليبطئن

**سوال:** د عائد او رابط نه ولې لابدي ده په دې صله د موصول کې؟ **جواب:** ځکه چې جمله مستقله ده د چا سره ربط او تعلق نه قبلوی بالذات او په مینځ د موصول او صله کې لابدي وی د ربط او تعلق نه لهذا په دې صله کې لابدي ده د رابط نه چې هغه دا جمله مربوطه وګرځوی د موصول سره.

**سوال:** هر کله چې په صله کې لابدي شوه د رابط نه نو دا رابط به فقط ضمير ولې وی؟ **جواب:** لانه اشهر

**سوال:** ارجاع د ضمير موصول ته ولې شرط دی؟ **جواب:** ځکه چې په دې صله کې لابدي ده د رابط ضمير نه د دې لپاره چې دا صله مربوطه وګرځوی د موصول سره او دا ضمير به صله هله د موصول سره مربوطه وګرځوی چې راجع وی موصول ته والافلا.

**وصلة الالف واللام اسم الفاعل والمفعول:** **ترجمه:** صله د الف لام موصولي اسم فاعل او اسم مفعول راځي هغه اسم فاعل او اسم مفعول چې دلالت کوی په معنی مصدري باندې په طريقه د تجدد او حدوث سره ځکه دا الف لام موصولي ذوجهتين دی (۱) صورتا مشابه دی د الف لام حرفي سره د هغې تقاضه دا ده چې مدخول د دې مفرد راشي او معنیٰ اسم موصول دی ځکه راځي په معنی د الذی او التی سره د هغې تقاضه دا ده چې مدخول د دې جمله راشي ځکه چې صله د موصول نه وی مګر جمله وی، او کله چې عمل ممکن وی په جهتين باندې نو اعمال اولی دی د اهمال نه، اوس د دې لپاره داسې مدخول پکار دی چې صورتاً مفرد وی او معنیٰ جمله وی او داسې مدخول خو نشته په استعمال د کلام د عربو کې ماسوی د اسم فاعل او اسم مفعول نه په دې شان سره چې دا صورتاً مفرد دی ځکه چې مشابه دی د اسم جامد سره په عدم تغير او تبديل کې په حالت د تکلم خطاب او غيبويت کې لکه انا قائم انت قائم هو قائم، چې دا په شان د انازيد، انت زيد، هو زيد باندې دی، او معنیٰ جمله ده ځکه د اسم فاعل نه تعبير کولې شي په ماضی معلوم يا مضارع معلوم سره او د اسم مفعول نه تعبير کولې شي په ماضی مجهول يا مضارع مجهول سره او اسم تفضيل صله الف لام موصولي نه واقع کيږي بالاتفاق ځکه چې اسم تفضيل په معنی د فعل سره نه دی بلکه زيادت پکې راغلي دی په معنی مصدري کې او نه مشابه دی د فعل سره په عمل کې او صفت مشبه صله د الف لام موصولي نه واقع کيږي بالاتفاق عند الجمهور ځکه دا په معنی د فعل سره نه دی او صله د الف لام موصولي هغه شئ واقع کيږي چې په معنی د فعل سره وی او بعض شرزمه قليله د نحويانو نه ذهاب کړيدې دی خبري ته چې صفت مشبه صله د الف لام موصولي واقع کيږي ځکه د اپه شان د فعل دی په عمل کې او دا مذهب په مقابل د مذهب د جمهور کې کالعدم دی (۲) او صله د الف لام موصولي کله کله په طريقه د قلت سره د وجی د ضرورت شعری نه فعل مضارع هم راځي کما فی قول الشاعر!

ما انت بالحكم الترضى حكومته ● ولا الاصيل ولا ذى الراى والجدل

(۳) او کله کله په طريقه د قلت سره صله د الف لام موصولي جمله اسميه راځي کما فی قول الشاعر!

من القوم الرسول الله منهم ● لهم دانت رقاب بنی معد

(۴): او کله کله په طریقه د قلت سره د وجې د ضرورت شعری نه صله د الف لام موصولي ظرف راځي کما فی قول الشاعر؛

فهو حر بعیشة ذات سعه
من لایزال شاکرا علی المعه

او اسم فاعل او اسم مفعول صله د الف لام موصولي هله واقع کیږي چې دا دلالت کوی په معنی مصدري باندې په طریقه د تجدد او حدوث سره او که دلالت یې نه کولو په معنی مصدري باندې په طریقه د تجدد او حدوث سرة نو بیا صله د الف لام موصولي نه واقع کیږي، او دا اختصاص د جانبین نه نه دی بلکه د جانب واحد نه دی په دې شان سره چې الف لام موصولي داخلیږي په اسم فاعل او اسم مفعول باندې نه په بل شئ باندې قیاساً اطراداً او اسم فاعل اسم مفعول مختص نه دی په الف لام پورې بلکه دا چې ځنګه مدخول د الف لام موصولي واقع کیږي نو مدخول د الف لام حرفي هم واقع کیږي

قاعده: (۱): اسم فاعل او اسم مفعول صله د الف لام موصولي چې واقع شي نو دا اسم فاعل او اسم مفعول معرب کولی شي په اعراب د موصول سره په شان د اعراب د هغه اسم چې هغه واقع کیږي وروستو د الاصفتی نه ځکه الف لام موصولي صورتا حرف دی صالح لپاره دا جراء د اعراب نه دی نو اعراب یې منتقل کیږي صلی ته نحو جاءنی الضارب رایت الضارب مررت بالضارب لکه چې الاصفتی حرف دی قابل د اعراب نه دی نو اعراب یې نقل کیږي مدخول ته

(۲): اسم فاعل سره د فاعل نه او اسم مفعول سره د نائب فاعل نه مرکب ناقص وی په هر ځای کې ما سواء د دوه ځایونو نه چې هلته مرکب تام وی (۱) چې اسم فاعل سره د فاعل نه او اسم مفعول سره د نائب فاعل نه مبتدا قسم ثانی واقع شي نحوا قائم زید

(۲) چې اسم فاعل او اسم مفعول صله د الف لام موصولي واقع شي نحو الضارب، والمضروب نو دا مرکب تام دی ځکه دا په معنی د فعل سره دی، او هم دغه وجه ده چې کله په اسم فاعل او اسم مفعول باندې الف لام موصولي داخل شي نو هغه عمل کوی بې د اشتراط د زمانی نه ځکه دا اسم فاعل او اسم مفعول فعل دی په حقیقت کې او عدول شوی دی د صیغې د فعل نه اسم فاعل او اسم مفعول نه د وجې د کراهیت د دخول د الف لام نه په فعل باندې

**وهی الذی والتی الخ: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د تعریف د موصول او صلی نه نو شروع یې وکړه په بیان دصیغو د اسماء موصولو کې لپاره د کمال وضاحت د موصولات نو ویې ویل وهی الذی الخ

**ترجمه: وهی** دا موصولات یا صیغه د موصول **الذی** الذی دی سره د معطوفاتو نه الذی راځي د مفرد مذکر لپاره او دا الذی دوه قسمه دی (۱) موصول اسمی کما فی قوله تعالی ﴿ وَهُوَ الَّذِي خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ ﴾ (۲) موصول حرفي نحو قوله تعالی ﴿ وَخُضْتُمْ كَالَّذِي خَاضُوْا ﴾ ای خضتم کخوضهم په الذی کې ځلور لغات دی (۱) الذی افصح اللغات دی (۲) الذی بیاء مشدده

(۳) الذي بكسر الذال من غير ياء، (۴) الذ بسكون الذال **والتى** او بل د موصولات نه التي دى دا راخي د مفرد لپاره كما فى قوله تعالى ﴿قَدْ سَمِعَ ٱللَّهُ قَوْلَ ٱلَّتِى تُجَٰدِلُكَ فِى زَوْجِهَا﴾ **والذان** بل د موصولات نه الذان دى دا راخي د تثنيه مذكر لپاره او **اللتان** راخي د تثنيه مؤنث لپاره او دا الذان او اللتان كيږي **بالالف** سره په حالت رفعى كې **والياء** او په ياء سره په حالت نصبى جرى كې او دا الذان او اللتان د قبيلي د مبنيات نه دى عند الجمهور د وجى د وجود دعلت د بنا نه په دې كې چې هغه مشابهت دى د حرف سره په احتياج الى الامر الخارج كې او دا اختلاف چې په دې كې راغلى دى دا وضعى دى نه د وجې د **عامل** نه (۲) او په نزد د بعض باندې د قبيلي د معرباتو نه دى ځكه معرب هغې ته وائي چې ان يختلف اخره باختلاف العوامل او دا هم مختلف كيږي په دې شان سره چې په حالت رفعى كې په الف سره راخي او په حالت نصبى او جرى كې په ياء سره راخي په شان د رجلان او رجلين باندې او **هغه** خو معرب دى لهذا دا هم معرب شو. **والاولى** بل د موصولات نه الاولى دى په وزن د العلى باندې او دا راخي د جمع مذكر او مؤنث دواړو لپاره ليكن چې جمع مذكر كې اشهر دى او جمع مؤنث لپاره راخي په طريقه د قلت سره مثال د دواړو لپاره كما فى قول الشاعر شعر!

تبلى الاولى يستلئمون على الاولى تراهن يوم الروع كالحدا القبل

دا اول الاولى په معنى د الذين دى ځكه د دې نه مراد رجال دى او دا مذكر دى، او دا دويم الاولى په معنى د اللاتى سره دى ځكه د دې نه مراد اسونه دى او دا مؤنث دى په قرينې د ارجاع د ضمير مؤنث د تراهن سره ديته، او لاولى متلبس باللام د قبيلي د موصولات نه دى او **اولى** مجرد عن اللام د اسماء اشارات نه دى او اولى اسم اشاره مشترك دى بين المذكر والمؤنث على التسوية او الاولى اسم موصول هم مشترك دى بين المذكر والمؤنث ليكن دومره فرق دى چې مذكر كې زيات مستعمليږي او په مؤنث كې كم مستعمليږي **والذين** بل د موصولات نه الذين دى دا راخي د جمع مذكر لپاره فقط او دا الذين په ياء سره راخي د جمع مذكر لپاره په احوال ثلاثه ژ كې يعنى په حالت نصبى جرى او رفعى ټولو كې په ياء سره راخي، او په لغت د هزيل قبيله كې الذين راخي په ياء سره په حالت نصبى او جرى كې او په حالت رفعى كې الذون راخي په واو سره كما فى قول الشاعر!

نحن الذون صبحو الصباحا يوم النخيل غارة ملحاحا

او دا رنګې د جمع مذكر لپاره لفظ د اللائين هم راخي خو هغه ماتن نه دى ذكر كړې د وجى د قلت او دندرت نه **واللالى** بل د موصولات نه اللائي دى بالهمزة والياء، او دا راخي غالباً د جمع مؤنث لپاره او په طريقه د قلت سره د جمع مذكر لپاره هم راخي كما فى قول الشاعر!

هم اللائي أصيب يوم فلج بداهية تميد لها الجبال

**واللا** بل د موصولات نه اللاء دى بالهمزة المكسورة فقط **واللاى** او بل د موصولات نه اللاى دى بالياء فقط په كسرى د ياء سره او په سكون د ياء سره اجراءً للوصل هجرى الوقف، او په حالت د وقف كې التقاء د ساكنين جائز ده نحو واياك نستعين ځركه دا مبتدا د صوت بمنزلة الحركت دى **واللاتى** بل

د موصولات نه اللاتی دی بالیاء الساکنة او دا راځي د جمع مؤنث لپاره او په اللاتی کې راغلي دی
اللات بحذف الیاء وابقاء الکسرة علی التاء په طریقه د قلت سره کما فی قول ابن مالك!
وقد تزاد لازما کاللات والان والذین ثم اللات
دلته دا اول اللات اسم فاعل دي او علم گرځیدلي دی د یو صنم لپاره او دا دویم اللات جمع د التی
ده اسماء موصولات نه او الف لام داخل شوی دی په دې باندې حرفي زائده لازمی غیر عوضی
واللواتی بل د موصولات نه لفظ د اللواتی دی دا راځي د جمع مؤنث لپاره اولې لږ راغلي دی اللوا
بحذف التاء والیاء معاً ومن وما بل د موصولات نه من دی چې راځي په معنی د الذي سره او بل ما
دی چې راځي په معنی د الذی سره او فرق په مینځ د من موصوله او ما موصوله کې دا دی چې ما
راځي د غیر ذوی العقول لپاره نحو عرفت ماعرفته او من راځي د ذوی العقول لپاره لیکن احدهما
مستعملیږي په مقام د اخر باندې په دې شان سره چې ما کله راځي د ذی علم لپاره کمافی قوله
تعالی ﴿ وَالسَّمَاءِ وَمَا بَنَاهَا ﴾ او من کله راځي د غیر ذوی العقول لپاره کمافی قوله تعالی ﴿ فَمِنْهُم مَّن يَمْشِي
عَلَىٰ بَطْنِهِ ﴾ او من او ما موصولي مشترك دی په مینځ د مذکر او د مؤنث مفرد مثنی او مجموع کې
وای وایة او بل د موصولات نه ای دی او بل اية دی ای راځي په معنی د الذی سره نحو اضرب ایهم
فی الدار ای الذی فی الدار وقوله تعالی ﴿ ثُمَّ لَنَنزِعَنَّ مِن كُلِّ شِيعَةٍ أَيُّهُمْ أَشَدُّ عَلَى الرَّحْمَٰنِ عِتِيًّا ﴾ ای الذی هو
اشد او کلمه د ای په دې دوارو ځایونو کې مبني علی الضمه دی ځکه مضاف الیه یې مذکور دی
او صدر د صله یې حذف دی اوایة راځي بمعنی التی نحو اضرب ایتهن فی الدار ای اضرب التی
فی الدار او دا دواړه مشترك دی په مابین د واحد مثنی او مجموع کې نه په تذکیر او تانیث کې
ځکه مذکر لپاره ای راځي او د مؤنث لپاره اية راځي وذوالطائیة بل د موصولات نه کلمه د ذو ده
داسې ذو چې منسوب دی بنی طی ته نسبت د ملفوظ راغلي دی لفظ ته ځکه دا ذو په معنی د
الذی یا التی سره مستعمل کوی بنی طی فقط نه نور عرب مثال د ذو چې راغلي وی په معنی د
الذی سره په لغت د بنی طی کې کما فی قول الشاعر. شعر!
فان الماء ماء ابی وجدی وبئري ذو حفرت و ذو طویت
ای التی حفرتها والتی طویتها دا ذو بمعنی التی دی او حفرت او طویت صله د دې موصول ده او
په صله د موصول کې لابدې ده د عائد نه او عائد او رابط دلته محذوف دی ځکه حذف د رابط
منصوب جائز دی
**سوال:** دا نور اسماء موصوله یې مطلق ذکر کړه او ذو یې مقید کړو په الطائیة سره دا ولې پکار وه
چې دا یې ټول مطلق ذکر کړي وی ځکه اصل په عبارت کې عبارت دی په نمط واحده سره؟
**جواب:** ذو یې مقید ذکر کړو نه مطلق ځکه ذو مطلقا د قبیلې د موصولات نه نه دی بلکه دا راځي په
معنی دالذی یا التی سره په لغت د بنی طی کې فقط نو دی سره یې احتراز وکړو د لغت د نورو
نه ځکه په لغت د نورو عربو کې ذو راځي په معنی د صاحب سره فقط چې هغه اسم دی د

اسماء سته ؤ مکبرونه، پس د دې ځای نه معلومه شوه چې ذو دوه قسمه دی (۱) یو ذو صاحبی دی او بل (۲) ذو موصولي دی.

**الفرق بين ذو الموصولي و ذوالصاحبی علی خمسة وجوه:** (۱): ذو موصولي په معنی د الذی سره دی او ذو صاحبی په معنی د صاحب سره وی او د دې نه وجه د تسمیه هم معلومه شوه چې ذو صاحبی ته صاحبی ځکه وائي چې دا په معنی د صاحب سره راځي او موصولي ته موصولي ځکه وائي چې دا په معنی د الذی سره راځي. (۲): ذوصاحبی من المعربات دی او ذو موصولي من المبنیات دی. (۳): د ذوصاحبی اخیر مختلفیږي په اختلاف د عوامل سره نحو جاء نی رجل ذومال رایت رجلا ذا مال مررت برجل ذی مال وقوله تعالی ﴿ وَإِنَّ رَبَّكَ لَذُو مَغْفِرَةٍ ﴾ ﴿ أَن كَانَ ذَا مَالٍ ﴾ ﴿ إِلَىٰ ظِلٍّ ذِي ثَلَاثِ شُعَبٍ ﴾ او ذو موصولي اخیر نه مختلفیږي په اختلاف د عوامل سره نحو جاء نی ذو ضربك رأيت ذو ضربك مررت بذو ضربتك. (۴) مدخول د ذوصاحبی مفرد وی او مدخول د ذو موصولي جمله وی. (۵): ذو موصولي مشترك دی بین الواحد والمثني والمجموع والمذكر والمؤنث بخلاف ذو الصاحبی فانه للواحد المذكر وللمثنی ذوا، وللجمع ذَوُوْ وللواحد المؤنث ذات وللمثنی ذواتا وللجمع المؤنث ذوات او بعض بنی طی ذات په معنی دالذی سره وائي او ذوات بمعنی اللاتی وائي، د دې ځای نه معلومه شوه چې ذات درې قسمه دی.

(۱): صاحبی بمعنی صاحبة (۲) اشارتی بمعنی تا (۳) موصولي بمعنی التی عند بعض بنی طی.

**وذا بعد ما للاستفهام:** بل د موصولات نه ذا دی داسې ذا چې واقع شي وروستو د مانه داسې ما چې دا ستفهام لپاره وو یعنی ذا چې واقع شي وروستو د ما استفهامیه نه یا د من استفهامیه نه دا دواړه په معنی دالذی او التی سره راځي په دې شرط سره چې د دې نه قصد د اشاری نه وو شوی او ملغانه وو نو مجئیت د ذا من الموصولات مشروط دی په شروط ثلاثه ؤ سره. (۱): یو دا چې دا به واقع وی وروستو د ما او من استفهامیتین نه. (۲): قصد د اشاری به نه وي شوی د دې نه. (۳): دا به ملغا نه وی او د ملغاء صورتونه دوه دی (۱) یو دا دی چې ما ذا مجموعه په معنی د ای شئ سره شي (۲) چې ما په معنی د ای شئ سره شي او ذا زائد شي مثال د ذا موصولي نحو ماذا انفقت ادرهم ام دینار بل مثال لکه ماذا صنعتَ چې دا ما استفهامیه بمعنی ای شئ سره شي او ذا موصوله شي په معنی د الذی سره او صنعت صله د موصول ده په حذف د رابط سره فیکون المعنی ای شئ الذی صنعته.

**پس زده کړه** دا خبره چې ذا څلور قسمه دی (۱) ذا اشارتی (۲) ذا صاحبی (۳) ذا موصولي (۴) ذا زائده.

**وجه د حصر:** دا ذا به خالی نه وي یا به وروستو د ما او من استفهامیه نه واقع شوی وی او یا به نه وی واقع شوی که نه وو واقع شوی نو بیا به خالی نه وي یا به مضاف وی او یا به نه وي که مضاف وو نو ذا صاحبي نحو قوله تعالی ﴿ أَن كَانَ ذَا مَالٍ ﴾ او که مضاف نه وو نو ذا اشارتی نحو قوله تعالی ﴿ ذَٰلِكَ الْكِتَابُ لَا رَيْبَ فِيهِ ﴾ او که وروستو د ما او من استفهامیه نه واقع شوی نو بیا به خالی نه وي یا به

د دې نه قصد د اشاره شوی وی او یا به نه وي شوی که قصد د اشارې شوی وو نو بيا ذا اشارتي دی نحو ماذا او من ذا چې په دې ذا سره اشاره وکړي يو مشار اليه ته او که اشاره نه وه قصد کړې نو بيا به خالي نه وي يا به ملغا، وی او يا به نه وي که ملغا، نه وو نو ذا موصولي دی نحو ماذا صنعت بمعنی ای شئ الذی صنعته او که ملغا، وو نو زائده دی نحو ماذا صنعت بمعنی ای شئ صنعته چې ذا ما ذا مجموعه بمعنی ای شئ مفعول به دی او صنعت فعل فاعل دی يا ما يواځې بمعنی ای شئ دی او ذا زائد دی. **والالف واللام**: بل د موصولات نه الف او لام دی په دې شان سره چې الف لام مجموعه راځي په معنی د الذی يا په معنی د التی سره په دې شرط سره چې دا داخل شوی وو په اسم فاعل او اسم مفعول باندې **هغه** اسم فاعل او اسم مفعول چې دلالت کوی په معنی مصدري باندې په طريقه د تجدد او حدوث سره. بيا که مدخول د دې الف لام واحد مذکر وو نو تعبير به کولي شي د دې نه په الذی سره نحو الضارب بمعنی الذی ضرب او که مدخول د دې تثنيه مذکر وو نو تعبير به کولي شي د دې نه په معنی د الذان سره نحو الضاربان بمعنی الذان ضربا، او که مدخول د دې جمع وو نو تعبير به کولي شي د دې نه په الذين سره نحو الضاربون بمعنی الذين ضربو. او که مدخول يې واحد مؤنث وو نو تعبير به کولي شي د دې نه په التی سره نحو الضاربة بمعنی التی ضربت، او که مدخول يې تثنيه مؤنث وو نو تعبير به کولي شي د دې نه په اللتان سره نحو الضاربتان بمعنی اللتان ضربتا او که مدخول د دې جمع مؤنث وو نو تعبير به کولي شي د دې نه په اللاتی سره نحو الضاربات بمعنی اللاتی ضربن او باقي تحيقق په الف لام کې تير شوی دی په بحث د معرب کې فلا نعيده

**والعائد المفعول يجوز حذفه**: **ربط**: هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د صيغو د موصولات نه نو شروع يې وکړه په بيان د احکامو د موصولات کې اول حکم د احکام د موصولات نه حذف د عائد د صلې دی نو وی ويل والعائد المفعول الخ

**ترکيب**: واو استنافيه **العائد** موصوف المفعول صفت موصوف سره د صفت نه مبتدا **يجوز** فعل حذفه مضاف مضاف اليه ورله فاعل. فعل سره د فاعل نه جمله فعليه خبريه، خبر د مبتدا، مبتداء سره د خبر نه جمله اسميه خبريه مستانفه واقع شوې ده جواب د سوال څخه کله چې مصنف وويل چې الموصول مالايتم جزء الا بصلة وعائد نو سايل سوال وکړو چې حذف د دې عائد جائز دی کنه نو مصنف جواب وکړو والعائد المفعول الخ سره

**ترجمه**: **والعائد** عائد د صلې چې هغه ضمير دی د اسې ضمير **المفعول** چې هغه په ترکيب کې مفعول به واقع شوی وی او راجع وی موصول ته **يجوز حذفه** جائز دی حذف کول د متکلم د غه عائد ضمير مفعول لره چې راجع دی موصول ته په وخت د عدم وجود د مانع کې حکه د متصله دی او حذف د فصله جائز دی او موصول قرينه ده دلالت کوی په حذف د ضمير رابط باندې

**تشريح: سوال:** ته وائي چې عائد د صلې ضمير مفعول وو نو د هغې حذف جائز دى هذا منقوض بقوله عليه السلام سمع الله لمن حمده دلته من موصوله دى حمده جمله ورله صله واقع شوى ده او ه ضمير منصوب مفعول به دى او د دې حذف خو نه دى جائز؟ **جواب:** عائد د صلې چې ضمير منصوب وو نو حذف يې هله جائز دى چې راجع وو موصول ته او دلته دا ضمير موصول ته نه دى راجع چې من دى بلكه دا راجع دى الله ته او من ته هغه ضمير مستتر راجع دى چې حمد كې دى

**سوال:** ته وائي چې عائد د موصول چې ضمير منصوب وو او راجع وو موصول ته نو حذف يې جائز دى دا قاعده ستا منقوضه شوه په جاء ني الذى ما ضربت الا اياه سره چې ما ضربت الا اياه صله د موصول واقع شوې ده او رابط په دې كې ضمير منصوب دى چې اياه دى او دا ضمير راجع دى موصول ته او حذف د دې ممتنع دى؟ **جواب:** حذف د عائد د صله ضمير منصوب هله جائز دى چې متصل وى په عامل پورې نه منفصل او چې منفصل وو نو حذف يې نه دى جائز د وجې د عدم وجود د قرينې د الى نه په حذف د ضمير منفصل باندې

**سوال:** ته وائي چې عائد د صلې ضمير منصوب متصل وى او راجع وى موصول ته نو حذف يې جائز دى دا قاعده ستا منقرضه شوه په جاء ني الذى ضربته فى داره سره چې ضربته فى داره صله د موصول ده او ه ضمير منصوب متصل عائد د صلې دى راجع دى موصول ته او حذف د دې نه دى جائز؟

**جواب:** حذف د عائد د صله ضمير منصوب متصل چې راجع وى موصول ته هله جائز دى چې بل ضمير رابط نكې نه وي موجود او كه بل ضمير رابط موجود وو بيا حذف د دې نه دى جائز حكه بيا حذف د مراد راخي بلا دليل او دا نه دى جائز حكه موصول قرينه ده د يو عائد لپاره په صله كې نه د دوو لپاره او يو عائد په صله كې شته لهذا دا موصول دلالت نه كوى په حذف د عائد د ضمير د صله باندې. پس د دې تحقيق مذكوره نه معلومه شوه چې حذف د عائد د صله چې ضمير مفعول وى دا مشروط دى په شروط ثلاثه و سره (۱): دا ضمير به راجع وى موصول ته (۲): متصل به وى (۳) بل رابط به نه وي په صله كې كه دا درې شرطونه موجود وو نو حذف د رابط جائز دى والافلا.

مثال د حذف نحو قوله تعالى ﴿ وَيَغْفِرُ لِمَن يَشَآءُ ﴾ دا من موصوله دى او يشاء جمله صله ده او ضمير مستتر د يشاء راجع دى الله ته او رابط د موصول ضمير منصوب حذف شوى دى نو تقدير به شي التقدير ويغفر لمن يشاءه وكقول الشاعر

فان الماء ماء ابى وجدى وبئرى ذو حفرت و ذو طويت

اى حفرتها وطويتها و توصيف د عائد يې چې وكړو المفعول سره په دې سره يې خبر كړو چې ضمير مرفوع او مجرور نه حكه عائد د موصول چې ضمير مرفوع يا مجرور وى د هغې نه هر حذف كې نه دى جائز هر چې دى ضمير مرفوع فلكونه عمدة فى الكلام و هر چې دى ضمير مجرور نو د وجې د كثرت د حذف نه چې حذف د جار او مجرور دواړو دى

**پس زده کړه** دا خبره چې په صله د موصول کې لابدي ده د عائد او رابط نه او دا عائد به فقط ضمير وی نه بل شي اوس دا ضمير به خالی نه وي يا به ضمير مرفوع وی يا به منصوب وی او يا به مجرور وی که منصوب وو نو حذف جائز دی په شروط ثلاثه ؤ سره کما مر او که ضمير مرفوع وو نو حذف يې جائز دی (۱) په دی شرط سره چې صدر د صله ای موصولي واقع شوی وی کما فی قوله تعالی ﴿ ثُمَّ لَنَنزِعَنَّ مِن كُلِّ شِيعَةٍ أَيُّهُمْ أَشَدُّ عَلَى الرَّحْمَٰنِ عِتِيًّا ﴾ ای هو اشد (۲) او کله حذف کولي شي د وجی د طول د صلی نه په طريقی د کثرت سره نحو قوله تعالی ﴿ وَهُوَ الَّذِي فِي السَّمَاءِ إِلَٰهٌ وَفِي الْأَرْضِ إِلَٰهٌ ﴾ ای هو معبود فی السماء، ومعبود فی الارض (۳) او کله حذف کولي شي بې د طول د صلی نه په طريقی د ندرة سره خلاف القياس نحو قوله تعالی ﴿ تَمَامًا عَلَى الَّذِي أَحْسَنَ ﴾ بالرفع علی قراة ای هو احسن ﴿ إِنَّ اللَّهَ لَا يَسْتَحْيِي أَن يَضْرِبَ مَثَلًا مَّا بَعُوضَةً ﴾ بالرفع علی قراة ای هی بعوضة وکقولك لاسيما الولد ای هو الولد او که رابط ضمير مجرور وو نو دا به خالی نه وي يا به مجرور وی اضافت سره او يا به مجرور وی په حرف جر سره که مجرور وو په اضافت سره نو دا مضاف به خالی نه وي يا به صفت وی او يا به غير صفت وی که صفت وو نو بيا به خالی نه وي يا به اسم فاعل وی يا به اسم مفعول وی يا به صفت مشبه وی او يا با اسم تفضيل وی که اسم فاعل وو نو بيا به خالي نه وي يا به په معنی د حال او استقبال سره وی او يا به په معنی د ماضی او دوام سره وی که مضاف اسم فاعل وو په معنی د حال او استقبال سره نو بيا حذف د ضمير مجرور رابط جائز دی کمافی قوله تعالی ﴿ فَاقْضِ مَا أَنتَ قَاضٍ ﴾ ای الذی انت قاضيه والا فلا يجوز فی جميع الصور المذکورة او که رابط ضمير مجرور وو په حرف جر سره نو دهغه حذف جائز دی قياساً او اطراداً په دې شرط سره (۱) چې دا ضمير مجرور به متحد وی د موصول سره په عامل کې (۲) متحد به وی د موصول سره په متعلق کې (۳) او بل ضمير به پکې نه وی موجود نحو قوله تعالی ﴿ وَيَشْرَبُ مِمَّا تَشْرَبُونَ ﴾ ای من الذی تشربون منه والا فلا يجوز الحذف قياساً واطراداً د وجه د عدم د وجود د قرينی نه په تعين د حرف محذوف باندې

**واذا اخبرت بالذی صدرتها الخ: ربط:** هر کله چې مجتهدين د علم نحو وضع کړي وو بو باب چې هغې ته د دوی په اصطلاح کې باب د اخبار بالذی وائي چې دا تسميه د کل ده په اسم د جز اشهر سره لکه چې سيبويه په الکتاب کې يو باب وضع کړی دی چې هغه ته باب د واسرو النجوی الذين ظلموا وائي او مقصود د نحويانو د وضع د دې باب د اخبار بالذي نه تمرين د متعلم دی په مسائلو د علم نحوه کې او تذکير د متعلم دی مسائلو د علم نحوه لره ځکه کله چې ووائي يو نحوی يو طالب ته اخبر عن الاسم الفلانی فی الجملة الفلانية بالذی پس د بيان د طريقه د اخبار نه نو لابدي ده د طالب العلم لپاره تذکر کثيره او د تدقيق نظر نه په مسائلو د علم نحوه کې د دې لپاره چې پته ولګی طالب ته چې اخبار بالذی د کوم يو اسم نه صحيح دی او د کوم نه ممتنع دی پس اراده وکړه مصنف د بيان د باب د اخبار بالذی نو وئي ويل چې واذ اخبرت بالذی ځکه اخبار د جز د يو جملې

نه کولې شي په الذي يا په الف لام موصولي سره او دا د قبيلې د موصولاتو نه دی نو ځکه دا اخبار بالذي ذکر کړې شو په بحث د موصولات کې فاندفع ما قيل.

**سوال:** چې دا بحث د موصولاتو دی په دې کې بيانولې شي موصولات لاغير لهذا بيان د اخبار بالذي په موصولاتو کې اشتغال بمالا يعنی دی او خروج عن البحث دی؟

**جواب:** اخبار د جز د جملې نه کولې شي په الذي يا التي يا الف لام موصولي سره او دا د قبيلې د موصولات نه دی لهذا دا اشتغال بمالا يعنی نه دی بلکه اشتغال بما يعنی دی.

**ترجمه:** **واذا اخبرت** کله چې ته اراده وکړې د بيان او نقل او حکايت د جز د يو جملې نه **بالذي** په استعانت د کلمه د الذي سره يا التي سر يا الف لام سره **صدرتها** واقع کوه ته دا کلمه د الذي يا قائم مقام د کلمه د الذي په اول سره د جمله ثانيه کې د وجې د کيدو د کلمه د الذي نه مخبر عنهٔ او مبتدا، ځکه اصل په مبتدا کې تقديم دی **وجعلت موضع المخبر عنه** او ته ګرځوه په جمله ثانيه کې په موضع د هغه جز باندې چې قصد کړې شوی دی اخبار او حکايت **عنه** د جز دهغه جملې نه **ضميرا** ضمير لره لپاره د حصول د ربط **لها** چې دا ضمير راجع دی کلمه د الذي ته **واخرته** او وروستو کوه ته دغه مخبر عنه لره د ضمير نه **خبرا** په حال کون د دې مخبر عنه کې چې دا خبر دی **عنه** د لفظ د الذي نه (۲) **واخرته الخ** ګرځوه ته دغه مخبر عنه لره خبر د الذي نه.

**تشريح: سوال:** واذ اخبرت بالذي شرط دی او صدرتها يې جزاء ده او جزاء مرتبه وی په شرط باندې يعنی وجود د مضمون د جزاء موقوف وی په وجود د مضمون د شرط پورې په دې شان سره چې اول مضمون د شرط موجود شي بيا مضمون د جزاء موجوديږي او دلته دا جزاء مرتبه نده په شرط باندې ځکه د دې معنی دا ده چې کله چې ته حکايت وکړې د جز د جملې نه په کلمه د الذي سره نو د حکايت نه وروستو تصدير د کلمه د الذي کوه او دا معنی باطله ده ځکه تصدير د الذي اولاً دی او حکايت ثانياً دی؟ **جواب:** دا اعتراض به هله وارکيدو چې واذا اخبرت په خپله معنی سره وی ليکن دلته اخبرت په خپله معنی سره نه دی بلکه په معنی د اردت سره دی فيکون المعنی واذا اردت الاخبار بالذي عن جزء جملة صدرتها نو اراده د اخبار د جز د جملې نه په کلمه د الذي سره اولاً دی او تصدير د کلمه د الذي ثانياً دی نو جزاء مرتبه شوه په شرط باندې او د دې قبيلې نه دی دا قول د الله تعالى ﴿ فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ فَاسْتَعِذْ بِاللَّهِ ﴾ ای اذا اردت قرأة القرآن فاستعذ بالله، وقوله تعالى ﴿ إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلَوٰةِ فَاغْسِلُوا وُجُوهَكُمْ ﴾ ای اذا اردتم قيام الصلوة.

**سوال:** مخبر عنه په اصطلاح د نحويانو کې مبتدا ته وائي او مخبر به خبر ته وائي او د دوی په مينځ کې هغه نسبت ته اخبار وائي لکه مثلاً په زيد قائم کې ويلې کيږي اخبر عن زيد بالقيام يعنی باء او عن چې په صله د اخبار کې راشي نو مدخول د باء خبروی او مدخول د عن مبتداء لکه په دې مقام کې شو، اوس بنا په دې قاعده باندې ستا د دې عبارت نه معلومه شوه چې جز د جملې مبتدا ده او الذي خبر دی ځکه ستا د دې عبارت معنی دا ده چې اذا اردت ان تخبر عن جزء جملة بالذي

او بالذی کې باء صله د اخبار راغلې ده او با چې صله د اخبار راشي نو مدخول د باء خبر وي نو معلومه شوه چې موصول سره دصلې نه خبر دی والامر لیس کذلك بلکه الذی موصول سره د صلې نه مبتداء ده او جز د جملې ورله خبر دی؟

**جواب:** یو مخبر عنه او مخبر به دی په اصطلاح د نحویانو کې او بل مخبر عنه او مخبر به دی په اصطلاح د اهل لغت کې دا غیر غیر دی. اخبار په لغت کې بیان او حکایت ته ویلې شي او مخبر عنه محکی عنه ته وائي، او کوم شي سره چې حکایت کړی شي هغه ته مخبر به وائي او په دې عبارت د مصنف کې د اخبار نه مراد اخبار لغوی دی نه اخبار نحوی، او دا باء صله د اخبار نده بلکه دا د استعانت لپاره راغلې ده نو کیږي معنی ... وکې واذا اخبرت کله چې ته اراده وکړې د حکایت او بیان او نقل د جز د یو جملې نه په استعانت د کلمه د الذی سره الخ

**سوال:** حکایت د جز د یو جملې نه یکه څنګه چې په کلمه د الذی سره کولې شي نو التی او الف لام سره هم کولې شي نو تا صرف الذی ولې ذکر کړو؟ **جواب:** دا عبارت د مصنف په حذف د معطوف سره دی ای واذا اخبرت بالذی او التی او الف واللام.

**سوال:** اکتفاء یې په الذی باندې ولې کړې ده. **جواب:** لکونه اشهر او مو... یې ترك کړي دي مقایسةً

**سوال:** وضع د ضمیر په موضع د مخبر عنه کې څه معنی ده؟

**جواب:** وضع د ضمیر په موضع د مخبر عنه کې دا معنی چې دا مخبر عنه په جمله اولی کې په ترکیب کې څه واقع شوی وو نو دا ضمیر به په ترکیب کې هغه شي واقع کیږي په جمله ثانیه کې.

**سوال:** لها په ترکیب کې څه واقع شوی دی؟ **جواب:** دا مفعول ثاني دی د جعلت لپاره او ضمیراً مفعول اول دی (۱) که دا جعلت په معنی د صیرت سره وو (۲) که جعل په معنی د وضع سره وو بیا لها صفت واقع شوی دی ضمیراً لپاره ځکه جعل بمعنی الوضع یو مفعول غواړي

**سوال:** لها ضمیر چاته راجع دی؟ **جواب:** دا راجع دی الذی ته.

**سوال:** مطابقت رانغلی بین الراجع والمرجع ځکه الذی مذکر دی او ها ضمیر د مؤنث دی؟

**جواب:** دالذی سره معامله د مذکر او د مؤنث داوړو کولې شي په دې شان سره چې تاویل وکړې شي د دې الذی نه په کلمة سره نو دا مؤنث دی او که تاویل ترې وکړې شي په لفظ سره نو دا مذکر دی ضمیر د مذکر ورته راجع کولې شي ځکه ورته په عنه کې ضمیر د مذکر راجع شوی دی

**سوال:** خبرا په ترکیب کې څه واقع شوی دی؟ **جواب:** په دې کې دوه ترکیبه دی (۱) که اخبر ته په خپله معنی سره واخلې نو دا خبراً منصوب دی بنابر حالیت ځکه اخبرتَ په خپله معنی سره متعدي دی مفعول واحد ته نه مفعولین ته او که اخبر ته متضمن وګرځوی معنی د جعلته لره بیا خبراً مفعول ثاني دی د اخبرتُ لپاره ځکه اخبر په معنی د جعل سره فعل دی د افعال التحویل والتصییر نه متعدي دی مفعولین ته. پس د بیان د اخبار بالذي نه موږ ته معلومه شوه چې اخبار بالذی

مشروط دی په شروط ثلاثه و سره (۱) تصدیر دالذی (۲) وضع د ضمیر موضع المخبر عنه او ضمیر به راجع وی الذی ته (۳) تاخیر د مخبر عنه د خبر د مبتدا، نه چې هغه الذی دی

**سوال:** تصدیر د الذی ولې شرط دی؟ جواب لکونه مبتداء او اصل المبتداء التقدیم

**سوال:** وضع الضمیر موضع المخبر عنه ولې شرط ده؟ **جواب:** لپاره د حصول د ربط بین الموصول والصلة ځکه صله د موصول کې لابدی ده د عائد نه او عائد به ضمیر وی

**سوال:** تاخیر د مخبر عنه ولې شرط دی؟ جواب لکونه مخبرا به والاصل فی الخبر التاخیر

**فاذا اخبرت عن زید من ضربت زیدا:** غرض د مصنف د دې عبارت نه تصویر د کلی دی په ضمن د یو جزئی کې

**ترجمه:** کله چې ته اراده وکړې د حکایت د لفظ د زید نه په کلمه د الذی سره بطور مثال چې دا زید یو جز دی د جملې د ضربت زیدا نه **قلت** نو وائې به ته الذی ضربته زید

(۱) په تصدیر د الذی سره په جمله ثانیه کې (۲) او وضع د ضمیر واغلې ده په موضع د مخبرعنه کې چې دا ضمیر منصوب متصل مفعول به دی (۳) او دا مخبرعنه چې زید دی وروستو کړې دی او خبر واقع کړې دی د مبتداء لپاره چې الذی دی ځکه چې الذی موصول او ضربته جمله ورله صله ده موصول سره د صلې نه مبتدا او زید ورله خبر دی مبتدا سره د خبر نه جمله خبریه اسمیه دا اخبار بالذی دی د جز د جمله فعلیه زیدا مفعول به نه: او س که ته یو نحوی ووائې چې ضربت زیدا کې د دې (ت) ضمیر مرفوع متصل فاعل نه چې جز د جمله فعلیه دی اخبار راکړه په الذی سره نو وائې به ته الذی ضرب زیدا انا . هغه سړې چې هغه وهلې دی زید نو هغه زه یم او که نحوی ستاسنه زید فی الدار کې د دې دار نه اخبار بالذی وکړه نو وائې به ته الذی زید فیها دار او که یو سړې درته ووائې چې هو زید قائم کې د دې زید نه اخبار بالذی وکړه نو وائې به ته الذی هو هو قائم زید

**ترکیب:** الذی موصول **هو** ضمیر شان مبتدا اول، هو ضمیر مرفوع منفصل راجع شو الذی مبتدا ثانی، قائم خبر د مبتدا ثانی، مبتدا ثانی سره د خبر نه جمله اسمیه خبر د مبتدا اول چې ضمیر شان دی، مبتدا سره د خبر نه صله د موصول، موصول سره د صلې نه مبتدا او زید ورله خبر دی.

**ترجمه: الذی هغه سړې هو** شان د خبرې دا دی **هو** چې دغه سړې **قائم** ولاړ دی **زید** زید دی.

**وکذلك الالف واللام الخ: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د اخبار بالذی نه نو شروع یې وکړه په بیان د اخبار بالالف واللام کې په طریقه د تشبیه سره نو وی ویل وکذلك الالف واللام

ترجمه په شان د الذی دی الف لام موصولي په اخبار کې د جز د یو جملې نه لیکن دومره فرق دی چې اخبار بالالف واللام خاص کړې شوې دی په خاص کولو سره په جمله فعلیه پورې په دې شان سره چې اخبار کولې شي په الذی سره د جز د جملې اسمیه او د جز د جملې فعلیه دواړو نه او الف لام سره اخبار کولې شي د جز د جملې فعلیې نه فقط نه د جز د جمله اسمیه نه. **لیصح بناء اسم الفاعل او المفعول** لپاره د دې چې صحیح شي بنا د صله د الف لام موصولي د جملې فعلی نه چې هغه اسم فاعل او اسم مفعول دی ځکه صله د الف لام موصولي نه راځي مګر اسم فاعل او اسم مفعول راځي

او اسم فاعل او اسم مفعول جوړيږي د جملې فعليه نه نه د جملې اسميه نه په دې شان سره چې د فعل مبني للفاعل نه جوړ ولې شي اسم فاعل او د مبني للمفعول نه جوړ ولې شي اسم مفعول په دې شرط شره (١) چې دا فعل به متصرف وی (٢) او د دې فعل په اول سر کې به نه وي راغلي داسې يو حرف چې د هغه حرف د معنى استفاده نه شي کولې اسم فاعل او اسم مفعول نه لکه سين سوف حرف نفی او حرف استفهام شو مثال د اخبار بالالف واللام د جز د جملې فعليه نه لکه القائم زيد شو په قام زيداً کې او الضاربه انا زيد شو په ضربت زيداً کې

**تشريح: سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟

**جواب:** ربط د ماقبل سره دا دی چې مخکې بيان د اخبار بالذی وو او دا بيان د اخبار بالالف واللام دی او په دې سره غرض د مصنف هم معلوم شو.

**سوال:** وكذلك الالف واللام څه ترکيب دی؟ **جواب:** دا كذلك جار مجرور خبر مقدم دی او الالف واللام مبتدا مؤخره ده او د كذلك په اخير کې چې کوم کاف راغلي دی دا کاف حرفي خطابی دی او د دې نه مخکې چې کوم لام راغلي دی دا لام البعد دی او اذا اشارتی دی او مشار اليه د دې لپاره الذی دی او دا اول کاف تشبيهی دی نو مصنف د الف لام موصولي تشبيه ورکړې ده د الذی سره او وجه د شبه يکې اخبار دی د جز د يو جملې نه ليکن دومره فرق دی چې اخبار بالذی عام دی ځکه په الذی سره اخبار کيږي د جز د جملې اسميې او فعليې دواړو نه.

**سوال:** اخبار بالالف واللام ولې مختص دی په جمله فعليه پورې؟

**جواب:** ليصح بناء اسم الفاعل اوالمفعول ځکه چې صله د الف لام موصولي نه راځي مګر اسم فاعل او اسم مفعول راځي او اسم فاعل او اسم مفعول جوړيږي د جملې فعليه نه، نه د جملې اسميه نه.

**سوال:** اسم فاعل او اسم مفعول سره د مرفوع خپل نه کله کله کيږي جمله اسميه نحو الضارب الذيدان، ما مضروب البكران نو د دې جملې اسميه نه اخبار بالالف واللام ولې نه دی جائز باوجود د دې نه چې جز اول د جمله اسميه اسم فاعل او اسم مفعول دی او دا داواړه واقع کيږي صله د الف لام موصولي؟

**جواب:** په دې دواړو مثالونو کې اسم فاعل او اسم مفعول عمل کړی دی په مابعد اسم ظاهر کې د رفع بنابر فاعليت د وجی د اعتماد نه په حرف نفی او حرف استفهام باندې او دغه حرف نفی او حرف استفهام انكار کوی د وقوع د اسم فاعل او اسم مفعول نه صله لپاره د الف لام موصولي.

**سوال:** نه وائي چې اخبار بالالف واللام مختص دی په جمله فعليه پورې دا قاعده ستا منقوضه شوه په نعم الرجل زيد سره دا جمله فعليه ده او د دې نه اخبار بالالف واللام نه دی جائز؟

**جواب:** الجملة الفعلية کې الف لام عهد خارجي دی او مراد په دې سره جمله فعليه متصرفه ده نه مطلق جمله فعليه او نعم الرجل جمله فعليه غير متصرفه ده.

**سوال:** قرينه په دې خبره باندې څه ده چې الف لام عهد خارجي دی او مراد جمله فعليه متصرفه ده؟

**جواب:** قرینه په دې خبره باندې دا قول د مصنف دی چې لیصح بنا اسم الفاعل الخ ځکه چې اسم فاعل او اسم مفعول د جمله فعلیه متصرفه نه جوړیږي نه د غیر نه.

**سوال:** نه وائي چې د لته الف لام عهدی دی او مراد جمله فعلیه متصرفه ده دا قاعده ستا منقوضه شوه په سیضرب زید عمرا، سوف یضرب زید عمرا ما ضرب زید عمرا او هل قام زید سره ځکه چې دا ټولې جملې فعلیې متصرفې دی او حال دا دی چې د دې نه اخبار بالالف واللام نه دی جائز؟

**جواب:** مراد د جملې فعلیې نه هغه جمله ده چې د هغې په اول سر کې داسې یو حرف نه وي راغلي چې د هغه حرف په معنی باندې اسم فاعل او اسم مفعول دلالت نه کوي مثال لکه سیضرب زید عمرا کې شو اوس که ته اخبار بالالف واللام جوړ وې د دې جز د جملې فعلیې نه نو د دې یضرب نه به ضارب جوړ کړې او په هغې باندې به الف لام داخل کړې اوس دا سین به خالی نه وي یا به یې ذکر کوې او یا به یې نه ذکر کوې که سین ورسره ذکر کوې نو دخول د سین راغې په اسم فاعل باندې او دا باطل دی او که نه یې ذکر کوې نو بیا فوت د معنی د سین راغې ځکه اسم فاعل دلالت نه کوي په معنی د سین باندې

**سوال:** خاصة منصوب دی او منصوبات دولس دی دا کوم یو قسم دی د هغې نه؟

**جواب:** دا منصوب دی بنابر مفعول مطلق لپاره د فعل مقدر ای خُص هذا الحکم خاصة.

**سوال:** د اخبار بالالف واللام مثال راته وښایه؟ **جواب:** مثال د اخبار بالالف واللام لکه القائم زید شو په قام زید کې په دې شان سره چې د قام نه قائم اسم فاعل جوړ کړې شو او په هغې باندې الف لام داخل کړې شو بیا وضع د مضمر وکړې شوه په موضع د مخبر عنه کې چې زید دی او هغه ضمیر مستتر دی په قائم کې او راجع دی الف لام موصولي ته او زید وروستو کړې شو خبر واقع کړې شو د الف لام موصولي لپاره.

**ترکیب:** الف لام موصولي **قائم** صیغه د اسم فاعل ده ضمیر پکې مستتر دی هغه ورله فاعل دی اسم فاعل سره د فاعل نه صله د الف لام موصولي، **موصول** سره د صلې نه مبتداء، او زید ورله خبر دی مبتدا سره د خبر نه جمله خبریه اسمیه شوه، بل مثال لکه الضاربه انا زید شو په ضربت زیدا کې په دې شان سره چې د فعل نه اسم فاعل جوړ کړې شو او په هغې باندې الف لام موصولي داخل کړې شو او ضمیر مرفوع متصل بدل شو په ضمیر مرفوع منفصل باندې د وجې د تعذر د اتصال نه ځکه چې ضمیر بارز مرفوع متصل کیږي په فعل پورې نه په اسم پورې او د زید په ځای باندې ضمیر متصل شو په اسم فاعل کې لعدم تعذر الاتصال او دا زید وروستو کړې شو خبر واقع کړې شو د موصول لپاره.

**ترکیب:** الف لام موصولي **ضارب** اسم فاعل ه ضمیر منصوب متصل مفعول به: ضارب لپاره او انا ضمیر مرفوع منفصل فاعل د ضارب دی اسم فاعل سره د فاعل او سره د مفعول به نه صله شوه د موصول، موصول سره د صلې نه مبتدا او زید ورله خبر دی مبتدا سره د خبر نه جمله خبریه اسمیه

**فان تعذر امر منها تعذر الاخبار:** **ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د شرائط د اخبار بالالف واللام نه نو شروع یې وکړه په بیان د هغه مواضع کې چې د هغې اخبار بالذی ممتنع دی د وجې د عدم وجود د شرط نه نو وی ویل فان تعذر امر منها الخ.

**ترجمه** کېږي ممتنع وو يو شرط **منها** د دې امور ثلاثه ؤ نه او د دې شروط ثلاثه ؤ نه چې هغه تصدير د موصول دی او وضع د ضمير ده موضع المخبر عنه او تاخير د مخبر عنه دی خبر لپاره د **موصول تعذر الاخبار** ممتنع دی اخبار په الذی سره د جز د جملې نه د وجې د انتفاء د شرط نه ځکه انتفاء د شرط مستلزم ده انتفاء د مشروط لره او س په دې قاعده باندې تفريعات کوی **ومن ثم امتنع فی ضمير الشان** او دی وجې نه چې کله يو شرط د دې شروط ثلاثه ؤ نه نه وو موجود نو اخبار بالذی نه دی جائز. ممتنع دی اخبار په الذی سره د ضمير شان نه د وجې د انتفاء د شرط ثالث نه چې هغه تاخير د مخبر عنه دی خبر لپاره د مبتداء. يعني نه چې اخبار بالذی کړی د ضمير شان نه نو دا ضمير شان به نه لري کوی د خپل ځای نه او د ده په ځای باندې به ضمير کيږدی او ضمير شان به وروستو کړي او خبر به بې واقع کړي د الذی لپاره او ضمير شان د خپل ځای نه نه وروستو کيږي ځکه دا تقاضه د صدارت د کلام کوی او بل لازميږي تقديم د مفسر په مفسر باندې او دا نه دی جائز

**سوال** ضمير شان مخبر عنه دی نه مخبر فيه لهذا د مصنف لپاره پکار وه چې ومن ثم امتنع عن ضمير الشان يې وئيلی دی نه فی ضمير الشان؟

**جواب** دا اعتراض به هله وارديدو چې دلته دا فی په خپله معنی سره وی يعنی د ظرفيت لپاره وی ليکن دلته دا فی په خپله معنی سره نه دی بلکه په معنی د عن سره دی

**سوال** مصنف شروع د تفريع د شرط اول نه ولې اونکړه چې د شرط اخير نه يې شروع وکړه؟

**جواب** شروع د تفريع يې وکړه د انتفاء د شرط اخير نه لقربته. **والموصوف والصفة** او دارنګې ممتنع دی اخبار بالذی د موصوف نه بدون الصفة او د صفت نه بدون الموصوف د وجې د انتفاء د شرط ثاني نه چې هغه وضع د ضمير ده په موضع د مخبر عنه کې ځکه د وضع د ضمير موضع المخبر عنه مطلب دا دی چې دا مخبر عنه به ترکيب کې چه واقع شوی وو نو دا ضمير به هم په ترکيب کې هغه شی واقع کيږي او والضمير لايوصف ولايوصف به لهذا په ضربت زيدن العاقل کې ممتنع دی اخبار بالذی د زيد نه بدون العاقل او د عاقل نه بدون زيد ځکه بيا لازميږي وقوع د ضمير موصوف يا صفة او ضمير نه موصوف واقع کيږي او نه صفت واقع کيږي خلافا لابن کسان والاخفش چې د هغوی په نزد باندې اخبار بالذی د موصوف نه جائز دی بدون الصفة ځکه هغوی توصيف د ضمير غائب په يو صفت سره جائز ګڼي. او اخبار بالذی د موصوف او صفت مجموعه نه جائز دی بالاتفاق نحو الذی ضربته زيدن العاقل فی ضربت زيدن العاقل. ځکه چې دلته دا موصوف مع الصفة په ترکيب کې مفعول به واقع شوی دی دا چې موټر لری کړو او د دې په ځای باندې ضمير کيږدو نو هغه مفعول به واقع کيدی شي **والمصدر العامل** او دارنګې ممتنع دی اخبار بالذی د مصدر عامل نه بدون المعمول مثال لکه عجبت من دق القصار الثوب کې جائز نه دی ستا لپاره اخبار بالذی د دق القصار نه بدون المعمول چې الثوب دی د وجې د انتفاء د شرط ثاني نه چې وضع د ضمير ده په

موضع د مخبر عنه کې څکه دا مصدر چې مونږ لرې کړو او د دې په ځای باندې ضمیر کېږدو هغه ضمیر عمل نه شي کولې په مابعد اسم کې د نصب بنابر مفعول به

(۲) او اخبار بالذی د مصدر غیر عامل نه جائز دی لکه په الحمد لله کې جائز دی الذی هو لله الحمد او په الضرب واقع کې جائز دی الذی هو واقع الضرب (۳) او دارنګې اخبار بالذی جائز دی د مصدر عامل نه چې سره د معمول نه یې واخلې مثال لکه الذی عجبت منه دق القصار الثوب شو په عجبت من دق القصار الثوب کې د وجې د عدم انتفاء د شرط ثاني نه چې وضع د ضمیر ده په موضع د مخبر عنه کې څکه مصدر عامل سره د معمول نه په ترکیب کې مجرور واقع شوی دی د من جاره لپاره او دا چې ته لرې کړې او د دې په ځای باندې ضمیر کېږدی هغه هم مجرور واقع کېږي د من جاره لپاره **والحال** او دارنګې ممتنع دی اخبار بالذی د حال نه د وجې د انتفاء د شرط ثاني نه چې وضع د ضمیر ده په موضع د مخبر عنه کې څکه حال کې نکارت شرط دی په نزد د بصریانو باندې او ضمیر معرفه ده وضع د دې نه شي کولې په موضع حال کې او هر چې دی بنا په مذهب د کوفیانو باندې نو اګر چې تنکیر شرط نه دی په حال کې بلکه معرفه هم حال واقع کیدی شي لیکن اخبار بالذی ممتنع دی د حال نه د وجې د انتفاء د شرط ثاني نه چې وضع د ضمیر ده موضع المخبر عنه څکه حال بیانوی هیئت د فاعل او مفعول به او ضمیر دلالت کوی په ذات باندې نه په هیئت باندې **والضمیر المستحق لغیرها** او دارنګې اخبار بالذی ممتنع دی د هغه ضمیر نه چې هغه واجب الارجاع دی غیر د کلمې د الذی ته د وجې د انتفاء د شرط اول نه چې هغه تصدیر د الذی دی، مثال لکه زید ضربته کې اخبار بالذی ممتنع دی د ضمیر منصوب مفعول به نه څکه دا ضمیر راجع دی مبتدا ته چې زید دی اوس که مونږ اخبار بالذی وکړو نو الذی زید ضربته هو به شي نو دا ضمیر د ضربته به خالي نه وائي یا به یې راجع وائي مبتدا ته چې زید دی نو موصول بلا عائده پاتې کېږي او یا به یې راجع وائي موصول ته چې الذی دی نو مبتدا بلا عائده پاتې کېږي او دا دواړه نه دی جائز لهذا ممتنع دی اخبار بالذی د دغه ضمیر منصوب مفعول به نه

**والاسم المشتمل علیه:** او دارنګې ممتنع دی اخبار بالذی د هغه اسم نه چې هغه مشتمل دی په دغه ضمیر باندې چې واجب الارجاع دی غیر د کلمه د الذی ته لکه زید ضربت غلامه شو چې په دې کې اخبار بالذی د غلام نه نه دی جائز د وجې د انتفاء د شرط اول نه چې تصدیر د الذی دی څکه دا غلام اسم دی او مشتمل دی په ضمیر باندې او دا ضمیر راجع دی مبتدا ته اوس که ته اخبار بالذی جوړ کړې نو الذی ضربته غلامه به وائې نو دا ضمیر د ضربته به خالي نه وي یا به یې راجع کوی مبتدا ته نو موصول بلاعائده پاتې کېږي او یا به یې راجع کوی موصول ته نو مبتدا بلاعائده پاتې کېږي او دا دواړه ممتنع دی

**سوال:** په الذی زید ضربته هو کې دوه ضمیر دی دا یو راجع کړه موصول ته نو موصول بلاعائده پاتې نه شو او دا بل راجع کړه مبتدا ته نو مبتدا بلاعائده پاتې نه شوه او دغسې کار وکړه په الذی

ضربته غلامه زید کې؟ **جواب**: دغسې کار زه نه شم کولې ځکه چې مبتدا رابط ضمیر غواړي په خپله جمله کې او موصول ضمیر رابط غواړي په خپله جمله کې او دا هو ضمیر مرفوع منفصل خارج دی د جملې نه او دغسې اخبار بالذی ممتنع دی د تمیز نه د وجې د انتفاء د شرط ثاني نه چې وضع د ضمیر ده په موضع د مخبر عنه کې ځکه په تمیز کې نکارت شرط دی او ضمیر معرفه ده او دارنګې اخبار بالذی ممتنع دی د عطف بیان نه د وجې د انتفاء د شرط ثاني نه چې هغه وضع د ضمیر ده په موضع د مخبر عنه باندې ځکه په دې کې شرط دا دی چې دا ضمیر به دلالت کوی په هغه معنی باندې چې مخبر عنه دلالت کوو په هغه معنی باندې او عطف بیان چې په کومه معنی دلالت کوی ضمیر په هغه معنی باندې دلالت نکوي، اوس اخبار بالذی د بدل یا مبدل منه احدهما نه جائز دی کنه نو په دې کې خلاف دی څوك وائي چې احدهما نه جائز نه دی ځکه دا بدل مبین د مبدل منه دی په شان د صفت باندې او دا ضمیر مبین د مبدل منه نه واقع کیږي او بعض وائي چې اخبار بالذی جائز دی د هر واحد نه.

**وما الاسمیة موصولة واستفهامیة الخ. ربط**: هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د اخبار بالذی نه نو شروع یې وکړه په بیان د اقسامو د ما او من او ای او اية کې ځکه ما او من او ای او اية د قبیلې د موصولات نه دی نو دا مناسب دی د دې مقام سره او دا نور اقسام بیانوی طرداً للباب.

**ترجمه**: لفظ د ما داسې ما چې منسوب دی اسم ته د قبیلې د نسبت د جزی نه کلي ته په دې شان سره چې اسم کلي دی او دا لفظ دما جزی دی نو معنی د دې دا شوه چې کلمه دا یو جزی دی د جزیاتو د اسم نه مشهور اقسام ذ دې شپږ دی او اسمیه سره یې احتراز وکړو د حرفیه نه ځکه ما حرفي اولاً دوه قسمه دی (۱) زائده (۲) غیر زائده، او ما غیر زائده دوه قسمه دی:

(۱) مصدریه نحو قوله تعالی ﴿ وَضَاقَتْ عَلَيْكُمُ الْأَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ ﴾ ای برحبتها او همدارنګې انما صنعوا کیدُ ساحرٍ ای ان صنعهم کید ساحرٍ (۲) نافیه نحو قوله تعالی ﴿ وَمَا اللَّهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ ﴾ صدق الله (۳) شرطیه بمعنی ان نحو قوله تعالی ﴿ مَا لَمْ تَمَسُّوهُنَّ ﴾ ای ان لم تمسوهن (۴) استفهامیه نحو ما اعظم شانه صاحب د کندیا ویلی دی چې اعظم بمعنی هل اعظم دی او ما حرفیة استفهامیة د هغې مطلب دا دی چې دا ما په معنی د هل سره استفهامیه دی فیکون المعنی هل عظم شانه او استفهام د تعجب لپاره دی نحو قوله تعالی ﴿ كَيْفَ تَكْفُرُونَ بِاللَّهِ ﴾ او زائده هم څلور قسمه دی (۱) کافه کما فی قوله تعالی ﴿ أَنَّمَا إِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ ﴾ ﴿ إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ مِثْلُكُمْ ﴾ وقوله علیه السلام انما الاعمال بالنیات (۲) زائده عوضی نحو اما انت منطلقا انطلقت (۳) زائده تاکیدی نحو قوله تعالی اماترین من البشر احداً (۴) زائده غیر عوضی تاکیدی غیر کافه کما فی قوله تعالی ﴿ فَبِمَا رَحْمَةٍ مِنَ اللَّهِ لِنْتَ لَهُمْ ﴾ نو ټول صورتونه د ما حرفیه اته شو.

**ترکیب:** ما موصوفه **الاسمیة** ورله صفت دی موصوف سره د صفت نه مبتدا ده او موصولة معطوف علیه سره د معطوفات نه خبر دی او عطف مقدم وی په ربط باندې او اعراب یې جاری کړي دی په هر واحد باندې د وجې د صلاحیت لفظی د هر واحد نه په نز د جامی صاحب باندې یا ما الاسمیة مبتدا ده او خبر د دې محذوف دی چې ستة انواع دی او موصولة الخ هر واحد خبر د مبتدا محذوف دی، یا عطف بیان دی دخبر محذوفه نه او یا بدل دی د خبر محذوفه نه یا مفعول به لپاره د فعل مقدر دی بناپه مذهب د شارح هندي صاحب باندې.

**سوال:** (۱): کون د شئ موصوف دا خاصه د اسم ده او ما حرف دی نو ما څنګه موصوف واقع شوی دی (۲): کون دشئ مسند الیه خاصه د اسم ده نو کلمه د ما څنګه مسند الیه واقع شوی ده.

(۳): ما مذکر دی ځکه علامه د تانیث پکې نشته نو څنګه د دې توصیف شوی دی الاسمیة مؤنث سره.

(۴): ما نکره ده نه معرفه ځکه چې اقسام د معرفه اوه دی او دا د هغې نه یو هم نه دی نو څنګه د دې توصیف شوی دی په مر فی سره؟ **جواب:** دا منم چې کون دشئ مسند الیه یا موصوف خاصه د اسم ده نه د حرف لیکن کلمه ما په دې مقام کې مراد اللفظ علم دی د هغه ما لپاره چې واقع کیږي په تراکیب کې لهذا دا اسم دی ځکه موصوف او مسند الیه واقع شوی دی په ترکیب کې او معرفه دی د علمیت د وجې نه ځکه د دې توصیف شوی دی په معرفی سره او په تاویل د کلمه سره مؤنث دی ځکه یې توصیف شوی دی په صفت مؤنث سره.

**سوال:** د الاسمیة په اخیر کې یا نسبتی راغلي ده دا ګرځوی مدخول خپل منسوب الیه لپاره د غیر فیکون المعنی وما المنسوبة الی الاسم او په مابین د منسوب او منسوب الیه کې لابدي ده د علاقې نه نو دلته د ما او د اسم په مینځ کې څه علاقه ده؟ **جواب:** د دې په مینځ کې علاقه د کلیت او د جزئیت ده په دې شان سره چې ما جزی دی او اسم کلی دی او نسبت د جزی راغلي دی کلی ته.

**سوال:** ته وائي چې ما اسمیه شپږ قسمه دی حالانکه ما اسمیه خو لس قسمه دی:

(۱): ممیزه کما فی قوله تعالی ﴿فَنِعِمَّا هِيَ﴾ په دی نعم کې ضمیر مستتر دی په هغه کې ابهام دی دا ما په معنی د شیئًا سره د هغه لپاره تمیز واقع شوی دی په نز د ابوعلی باندې

(۲): ما په معنی د مادام سره چې دیته ظرفیة مصدریه او مصدریه حینیه هم وائي نحو اجلس ما جلس الامیر ای ما دام الامیر جالسا (۳): ظرفیة فقط کما فی الحدیث یحضر مالا یحضرون

(۴): تعجبی نحو ما احسن زیداً، او شپږ دا مذکور فی المتن شو نو ته څنګه وائي چې ما اسمیه شپږ قسمه دی؟

**جواب:** زه وایم چې مشهور اقسام د ما شپږ دی چې هغه مذکور فی المتن دی او دغه باقي څلور اقسام غیر مشهور دی او د وجې د عدم شهرت نه مصنف ترك کړي دی ځکه د مصنف د اب او طریقه دا ده چې غالب او مشهور ذکر کوی او قلیل ترك کوی د وجې د ندارة نه، هغه شپږ مشهور اقسام دا دی (۱) **موصولة** ما اسمیه موصوله راځي نحو قوله تعالی ﴿وَالسَّمَاءِ وَمَا بَنٰهَا﴾ ﴿إِنَّمَا صَنَعُوا كَيْدُ

﴿ ... مَكِيدٍ ﴾ علی ترکیب ځکه په دواړو ایتونو کې کلمه د ما محتمل د احتمالین دی یو احتمال دا دی
چې دا ما مصدري ده (۲) دویم احتمال دا دی چې ما موصوله ده، بل مثال دا مقوله ستاسو
اعجبنی ما صنعته. اقراء من الکتب ما یفیدك **واستفهامیة** بل ما اسمیه استفهامیه راځي نحو قوله
تعالی ﴿ وَمَا تِلْكَ بِيَمِينِكَ يَـٰمُوسَىٰ ﴾ وکقولك ما اسمك **وشرطیة** بل ما اسمیه شرطیه راځي نحو قوله
تعالی ﴿ مَّا يَفْتَحِ ٱللَّهُ لِلنَّاسِ مِن رَّحْمَةٍ فَلَا مُمْسِكَ لَهَا ﴾ وکقولك ما تصنع اصنع **وموصوفة** بل ما صوفه راځي او
ما اسمیه موصوفه دوه قسمه دی (۱) موصوفه بالمفرد نحو مررت بما معجب لك ای بشئ
﴿ ثُمَّ لَا يَجِدُوا۟ فِىٓ أَنفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ ﴾
یعجبك (۲) موصوفه بالجملة نحو قوله تعالی
**تنبیه**: دا کلمه په دې ایت کې محتمل د احتمالات ثلاثه ده یا موصوله. یا موصوفه ده. یا
مصدریه ده بل مثال د ما موصوفه بالجملة کما فی قول الشاعر؛

ربما تکره النفوس من الامر له فرجة کحل العقال

او دا کلمه د ما په دې شعر کې محتمل د احتمالین ده (۱) دا احتمال هم لري چې دا ما کافه دی او
دا رب مکفوف عن العمل دی داخل شوی دی په مضارع باندې مثل قوله تعالی ﴿ رُّبَمَا يَوَدُّ ٱلَّذِينَ
كَفَرُوا۟ ﴾ (۲) او دا احتمال هم لري چې دا ما موصوفه دی په معنی د شئ سره او دا ما بعد جمله
صفت واقع شوی دی دی د کلمه د ما لپاره او رابط ضمیر منصوب حذف شوی دی فیکون التقدیر
رب شئ تکرهه النفوس او دا مثال بنا دی په دې یو ترکیب باندې
**وتامة** او بل ما تامه راځي بمعنی شئ په معنی د شئ مجرد عن اللام سره د ابو علی په نزد باندې او
په معنی د الشئ متلبس باللام سره راځي د سیبویه په نزد [illegible] نحو قوله تعالی ﴿ فَنِعِمَّا هِىَ ﴾
ابوعلی وائي چې ضمیر په نعم کې مستتر دی هغه فاعل دی او دا کلمه د ما په معنی د شیئاً سره
د هغې لپاره تمیز واقع شوی دی. او تمیز نه راځي مگر نکره نو ځکه مونږه د دې نه تعبیر کوو په
شیئاً مجرد عن اللام سره، او سیبویه وائي چې دا کلمه د ما فاعل دی د نعم لپاره او ضمیر پکې نه
دی مستتر او فاعل د نعم معرف باللام راځي نو ځکه مونږه د دې ما نه تعبیر کوو په الشئ سره او
دیته ما تامه ځکه وائي چې د [illegible] چې د موصوله نه دی چې
محتاج شي صلې ته او استفهامیه نه دی چې [illegible]
شي حرا نه موصوفه نه دی چې [illegible]
**وصفة** او بل ما صفتي راځي نحو قوله تعالی [illegible] ﴾ ونحو قوله [illegible]
اضرب ضرباً مطلقاً عظیم کار او حقیرا په دې کلمه [illegible] دوه مذهبه دی
(۱) یو مذهب د بعض دی او (۲) بل مذهب د جمهورو دی
**مذهب د بعض** دا دی چې دا کلمه [illegible] لپاره د [illegible] د ابهام او د تنکیر
**او جمهور وائي** چې دا کلمه د ما صفت واقع شوی دی د نکرې لپاره

**سوال:** صفت مشتق وی دلالت کوی علی معنی فی متبوعه او دا ما خو مشتق نه دی نو نه ورته څنګه صفتي وائي؟ **جواب:** مشتق عام دی حقیقة وی او که تاویلاً وی او دا مشتق دی تاویلا چې کلمه د ما نه موئوِّل کوو په مطلقاً سره او مطلق دلالت کوی په یو معنی باندې چې هغه اطلاق دی او دغه معنی موجوده ده په متبوع کې چې دا نکره ده پس د دې ما سبق تحقیق نه معلومه شوه چې ما اولا دوه قسمه دی (۱) حرفي (۲) اسمی، او ما حرفي اته قسمه دی او ما اسمي لس قسمه دی نو شو مجموعه اقسام د ما اتلس

**ومن كذلك الا فى التامة والصفة: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د اقسامو د ما اسمیه نه نو شروع یې وکړه په اقسامو د من کې په طریقه د تشبیه سره نو وی ویل چې ومن کذلك

**ترجمه:** لفظ د من په شان د ما اسمیه دی په اقسامو کې **الا فى التامة والصفة** مګر په شان د ما اسمیه نه دی په تامه او صفتي کې په دې شان سره چې ما اسمیه تامه او صفتي راځي او من تامه او صفتي نه راځي والسند علیه التتبع والاستقراء.

**تشریح: سوال:** مصنف ما مقید ګرځولي وو په قید د الاسمیة سره نو من یې ولې مطلق ذکر کړو یکار وه چې دا یې هم مقید کړي وی په الاسمیة سره؟ **جواب:** ما دوه قسمه دی (۱) حرفي (۲) اسمی. نو په تقید د الاسمیة سره یې احتراز وکړو د ما حرفي نه په خلاف د من نه چې دا اسمي راځي نه حرفي نو تقید د دې نه په الاسمیة سره ضرورت نه نو.

**سوال:** من صفتي او تامه ولې نه راځي؟ **جواب:** دلیل په دې باندې عدم سماع ده په دې شان سره چې دوی تتبع او استقراء د کلام د عربو کړی دی من صفتي او تامه یې نه دی موندلي لهذا من څلور قسمه راغلي دی په استعمال د کلام د عربو کې (۱) موصوله نحو اکرم من جاءك اى الذى جاءك، نجح من اجتهد، خذا العلم عمن تثق به (۲) استفهامیه نحو من ابوك، من ضربت، من ضرب هؤلا دا اول مثال د هغه من استفهامیه دی چې راغلي وی په جمله اسمیه کې او دا دویم مثال د هغې دی چې راغلي وی په جمله فعلیه کې. او دا دریم مثال د هغې محتمل د احتمالین دی

(۱) دا احتمال هم شته چې دا من استفهامیه راغلي په جمله اسمیه کې په دې شان سره چې من استفهامیه بمعنی ای شی مبتدا، ضرب کې ضمیر مستتر دی چې راجع دی من ته هغه فاعل د ضرب او هؤلاء مفعول به دی فعل سره د فاعل او مفعول نه جمله فعلیه خبر د مبتدا دی. مبتدا سره د خبر نه جمله خبریه اسمیه

(۲) او دا احتمال هم لری چې دا من استفهامیه راغلي دی په جمله فعلیه کې نه دې شان سره چې من استفهامیه بمعنی ای شی مفعول به مقدم دی او ضرب فعل دی او هؤلاء ورله فاعل دی (۳) من شرطیه ... چې نحو قوله علیه السلام من یهده الله فلا مضل له ... قول الشاعر

من یک ... الكسیه یوما ... ردا وطباء
من لایزال شاکر على المعه فهو حر بعشیه ذات سعة

وقولك من تضرب اضرب (۴) څلورم من موصوفه راځي او دا من موصوفه دوه قسمه دی.
(۱): موصوفه بالمفرد كقولك حسان بن ثابت.

كفى بنا فضلا على من غيرنا حب النبي محمد ايانا

على من غيرنا كې من موصوفه دی بمعنی شخص او غيرنا صفت واقع شوی دی د من لپاره.
**سوال:** من بمعنى شخص نكره ده او **غيرنا** معرفه ده ځكه غير مضاف دی، **نا** ضمير دمتكلم اعرف المعارف ته او قاعده دا ده چې هر هغه اسم نكره چې مضاف شي معرفی ته په اضافت معنوی سره هغه معرفه كيږي نو دا معرفه څنګه صفت واقع شوې ده د نكرې لپاره؟
**جواب:** د دې قاعده كليې نه يو څو اسماء مستثنی دی چې لفظ د مثل شبه نحو سوا او غير وغيره دی ځكه دا اسماء د وجې د كمال توغل نه په ابهام كې نه معرفه كيږي په اضافت سره معرفی ته پس اعتراض وارد نه شو په دې قول د الله تعالى باندې چې ﴿ قُلْ إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ ﴾.
(۲): دويم موصوفه بالجمله ده نحو رب من جاءك قد اكرمته ای رب شخص جاءك قد اكرمته.
**سوال:** من او ما موصوله خو ځكه مبني دی چې دا مشابه دی د حرف سره په افتقار كې او استفهاميه او شرطيه ځكه مبني دی چې دا متضمن دی معنی د حرف لره نو دا موصوفه او تامه او صفتی ولې مبني دی؟ **جواب:** (۱): دا مبني دی د وجې د مشابهت د دې نه د شرطيه او استفهاميه سره صورتاً او لفظاً (۲): يا مبني دی ځكه مشابه دی د حرف سره په وضع ثنائي كې.
**وای واية كمن: ربط:** هر كله چې فارغ شو مصنف د بيان د اقسام د من نه په طريقه د تشبيه سره نو شروع يې وكړه په اقسامو د ای او اية كې هم په طريقه د تشبيه سره نو وئي ويل وای و اية كمن.
**ترجمه:** ای د موصولات نه د مذكر لپاره دا مذكر عام دی كه واحد وی كه مثنی وی او كه مجموع وی او اية د موصولات نه د مؤنث لپاره دا مؤنث عام دی كه واحد وی كه مثنی وی كه مجموع وی **كمن** په شان د من دی، په ثبوت د امور اربعه او په انتفاء د تامه او صفتی كې په دې شان سره چې لكه څنګه چې من څلور قسمه دی او تامه او صفتی نه راځي دارنګې ای او اية هم څلور قسمه دی او تامه او صفتی نه راځي او هر چې دی دا تركيب چې مررت برجل ای رحل دا اصل كې ای استفهاميه دی د استفهاميت نه نقل شوی دی صفتيت ته.
**تشريح: سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟
**جواب:** ربط د ماقبل سره دا دی چې مخكې مصنف بيان د اقسامو د من وكړو په طريقه د تشبيه سره د من تشبيه يې وركړې وه د ما سره په ثبوت د امور اربعو كې ما سوا د تامه او صفتی نه نو او س يې بيان د اقسامو د ای او اية وكړو په دې شان سره چې د ای او اية تشبيه يې وركړه د من سره په ثبوت د امور اربعو او انتفاء د تامه او صفتی كې، او غرض د مصنف هم معلوم شو، اوس په دې سره يو بل اعتراض هم دفع شوه.

**سوال**: ته وائي چې ای او اية په شان د من دی دا تشبیه نده صحیح ځکه ای او اية د قبیلې د معرباتو نه دی او من د قبیلې د مبنیات نه دی مطلقاً؟ **جواب**: دا اعتراض به هله وارد یدو چې وجه د شبه دلته بناء وی، لیکن وجه د شبه دلته بناء نده بلکه وجه د شبه دلته ثبوت د اقسام اربعو اوانتفاء د تامه او صفتی ده. هغه اقسام اربعه دا دی (۱): **ای موصولی** راځي عند الجمهور خلافاً للخلیل ویونس ځکه هغه دواړه وایي چې اي موصوله نه راځي نحو اضرب ایهم لقیت ای الذی لقیته، وقوله تعالی ﴿ ثُمَّ لَنَنزِعَنَّ مِن كُلِّ شِيعَةٍ أَيُّهُمْ أَشَدُّ عَلَى الرَّحْمَٰنِ عِتِيًّا ﴾ اضرب ایتهن فی الدار ای التی فی الدار

(۲) **استفهامیه** نحو ایهم اخوك وایتهن اختك وقوله تعالی ایهم زادته ایمانا

(۳) **شرطیه** نحو قوله تعالی ﴿ أَيًّا مَّا تَدْعُوا فَلَهُ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنَىٰ ﴾ وقولك ای رجل یستقم ینجح وایة طریق سلکتَ سلکتُ

(۴) **موصوفة** نحو قوله تعالی ﴿ يَا أَيُّهَا الرَّسُولُ ﴾ ﴿ يَا أَيُّهَا الْمُزَّمِّلُ ﴾ ﴿ يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ ﴾ ﴿ يَا أَيَّتُهَا النَّفْسُ الْمُطْمَئِنَّةُ ﴾ بیا شیخ رضی ویلی دی چې ای معرفه موصوفه راځي په مناده کې نه په بل ځای کې او خفش جائز کړي دی کون د ای نکره موصوفه په غیر د منادی کې هم.

**سوال**: ته وائي چې ای او اية په شان د من دی په اقسام اربعه او په انتفاء د تامه او صفتی کې دا خبره ستا منقوضه شوه په مررت برجل ای رجل سره چې دلته ای رجل مضاف، مضاف الیه صفت واقع شوی دی د رجل لپاره او ته وائي چې اي او اية صفتی نه راځي؟ **جواب**: دا اصل کې ای استفهامیه وو بیا د استفهامیه نه نقل شوی دی او په نعتیت کې مستعمل شوی دی. لهذا دا تقسیم د مصنف بنا دی په اصل وضع باندې او ای صفتی راغلي دی په استعمال کې نه په اصل وضع کې، او ای په اعتبار د استعمال سره اولاً په دوه قسمه دی (۱) کمالی (۲) غیر کمالی.

**وجه حصر**: دا ای به خالی نه وی یا به دلالت کوی په کمال باندې او یا به نه کوي که دلالت کوو په کمال باندې هغې ته ای کمالی وائي او که دلالت یې نه کوو په کمال باندې هغې ته غیر کمالی وائي او ای غیر کمالی ځلور قسمه دی کما مر او ای کمالی درې قسمه دی (۱) کمالی صفتی نحو مررت برجل ای رجل، وکما فی قول الشاعر: شعر؛

ان الشباب والفراغ والجدة مفسدة للمرء ای مفسدة

(۲) ای کمالي حالي نحو مررت بزید ای فارس (۳) ای کمالی مفعول به کما فی قول الشاعر

اضاعونی وای فتی اضاعوا علی انی سانشد عند بیعی

نو مجموعه اقسام د ای اوه شو نه ځلور.

**سوال**: اية په دې مقام کې مراد اللفظ علم دی د هغه اية لپاره چې واقع کیږي په تراکیبو کې نو دا غیر منصرف شو د وجې د علمیت او د تانیث لفظی نه او حکم د غیر منصرف دا دی چې ان لا کسرة ولاتنوین فیه او په دې کې خو تنوین راغلي دی؟

**جواب:** (۱): هذا من قبيل سلا سلا واغلالا يعني تنوين پکې راغلي دی لپاره د حصول د تناسب بين الكلمتين (۲) په غير منصرف کې مطلق تنوين نه دی ممتنع بلکه تنوين تمکن ممتنع دی او دا تنوين تمکن نه دی بلکه دا تنوين په دې کې راغلي دی مشاکلة د مسمی خپل سره يعنی تنوين مشاکلة دی **وهی معربة وحدها: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د اقسامو د ای او اية نه په طريقه د تشبيه سره نو شروع يې وکړه په بيان د حکم د ای او اية کې نو وئي ويل چې وهی معربة وحدها.

**ترجمه:** هر واحد د ای او اية نه معرب دی په اتفاق د نحويانو سره په حال کون د دې ای او اية کې چې دواړه منفرد دی او متوحد دی په اعراب کې په دې شان سره چې نه دی شريك د دوی سره باقي اسماء موصولات په اعراب کې ځکه چې دا د اسماء لازمة الاضافت الی المفرد نه دی، او اضافت الی المفرد په طريقه د لزوم سره د خواص معظمه مکبره د اسم نه دی په دې شان سره قوی کيږي جهت د اسميت او اصل په اسماؤ کې اعراب دی.

**الا اذا حذف صدر صلتها:** مگر دا ای او اية معرب نه دی کله چې حذف کړي شي جز اول د صلی د دې او مضاف اليه د دې مذکور وی نو بيا دا مبني علی الضمه دی د وجې د کمال مشابهت نه په احتياج کې يو امر ته چې هغه غير دی د صلی نه چې هغه جز د صلی دی او مبني علی الضمه وګرځيدل ځکه چې دا مشابه دی د غايات سره په حذف د موضح او جز مبين کې او مستثنی يې نه کړو ای موصوفه بنائيه ځکه چې هغه ذکر شوی دی په بحث د منادی کې.

**تشريح: سوال:** دا هی ضمير راجع دی ای او اية ته نو مطابقت رانغی بين الراجع والمرجع ځکه هی ضمير د مفرد مؤنث دی او ای او اية دوه دی؟

**جواب:** دا هی ضمير راجع دی ای او اية ته په تاويل د کل واحد سره.

**سوال:** بيا هم مطابقت رانغلو بين الراجع والمرجع ځکه کل واحد مذکر دی او هی ضمير مؤنث دی؟

**جواب:** تانيث د ضمير په اعتبار د خبر سره دی ځکه ضمير چې دائر شي بين المرجع والخبر نو رعايت د خبر اولی دی.

**سوال:** وحدها په ترکيب کې څه واقع شوی دی؟ **جواب:** دا منصوب دی بنابر حاليت.

**سوال:** په حال کې خولابدي ده د نکارت نه او دا خو معرفه ده؟ **جواب:** د کوفيانو په نز باندې په حال کې نکارت شرط نه دی بلکه معرفه هم حال واقع کيږي نحو وارسلها العراك وغيره، او د بصريانو په نز باندې دا مؤول دی په متوحدا سره.

**سوال:** لکه څنګه چې ای او اية موصولي معرب دی دارنګې باقي اقسام د ای او اية هم معرب دی نو ته وهی معربة وحدها څنګه وائي؟ **جواب:** وحدها يې ويلی دی په نسبت سره باقي موصولات ته نه په نسبت سره باقي اقسامو د ای او اية ته په دې شان سره چې په دې موصولات کې فقط ای او اية معرب دی نه باقي موصولات.

**سوال:** دا وحدها په نسبت سره باقي موصولات ته هم نه صحيح كيږي ځكه لكه څنګه چې اى او اية معرب دي نو الذان واللتان هم معرب دى؟ **جواب:** زه وايم چې په دې موصولات كې معرب بالاتفاق اى او اية دى نه باقي موصولات او الذان او اللتان معرب بالاتفاق نه دى بلكه په هغې كې اختلاف دى كما مر. پس د دې نه معلومه شوه چې موصولات په اعتبار د اعراب او د بناء سره درې قسمه دى (۱) معرب بالاتفاق لكه اى او اية شو (۲) معرب بالاختلاف لكه الذان او اللتان شو (۳) مبني بالاتفاق لكه باقي موصولات شو.

**سوال:** اى او اية د قبيلې د معربات نه ولې دى باوجود دعلت د بنا نه په دې كې چې هغه مشابهت د دې دى د حروف سره په احتياج كې امر خارج ته؟

**جواب:** اى او اية د اسماء لازمة الاضافت الى المفرد نه دى او اضافت الى المفرد په طريقه د لزوم سره د خواص معظمه مكبره د اسم نه دى قوى كيږي په دې سره جهت د اسم او ضعيف كيږي جهت د مشابهت د مبني الاصل او اصل په اسماؤ كې اعراب دى نو دا قوت د جهت د اسميت ولګيدو دا اى او اية يې وويستل د خلاف الاصل نه چې بنا ده خپل اصل ته چې هغه اعراب دى، او لازمة الاضافة چې يې وويل نو اعتراض وارد نه شو په كم باندې ځكه د كم سره اضافت لازم ندى، او الى المفرد چې يې وويل نو اعتراض وارد نه شو په حيث، اذ، او اذا، باندې ځكه دا هم د اسماء لازمة لاضافة نه دى خو اضافت يې كيږي جملې ته نه مفرد ته بيا دا اى او اية په نز د بعض باندې مطلقا د قبيلې د معربات نه دى او په نز د بعض باندې مطلقا د قبيلې د معربات نه نه دى بلكه د دې لپاره احوال اربعه دى په درې حالاتو كې د قبيلې د معربات نه دى او په يو حال كې د قبيلې د مبنيات نه دى.

هغه احوال اربعه دا دى چې دا اى او اية به خالي نه وي يا به مضاف اليه د دې مذكور وى او يا به محذوف وى كه محذوف وو نو بيا به خالي نه وي يا به صدر د صلى د دې مذكور وى او يا به محذوف وى: (۱): كه مذكور وو نو معرب دى نحو اى هو قائم (۲): او كه محذوف وو نو هم معرب دى نحو اى قائم، او كه مضاف اليه يې مذكور وو نو بيا به خالي نه وي يا به صدر د صلى مذكور وى او يا به محذوف وى (۳): كه مذكور وو نو بيا هم معرب دى نحو ايهم هو قائم.

(۴): او كه صدر د صلى حذف شوى وو نو بيا مبني على الضمه دى كمافى قول الشاعر:

اذا لقيت بني مالك فسلم على ايهم افضل

كمافى قوله تعالى ﴿ ثُمَّ لَنَنزِعَنَّ مِن كُلِّ شِيعَةٍ أَيُّهُمْ أَشَدُّ عَلَى الرَّحْمَٰنِ عِتِيًّا ﴾ بنا په قرات د هغه چا باندې چې هغه ايهم په ضمى سره وائي، اى الذى هو اشد.

**سوال:** ظاهرا د تركيب په لحاظ سره يو اعتراض دى چې ايهم مفعول به دى د لننزعن لپاره او مفعول به دقبيلې د منصوبات نه وى او دا خو مرفوع دى نه منصوب؟ **جواب:** دلته دا اى مبني على الضمه دى او منصوب محلا دى ځكه چې د دې اى مضاف اليه مذكور دى او صدر د صلى يې حذف شوى دى.

**سوال**: دا مبني ولې دی په دې حال کې؟ **جواب**: د وجې د کمال مشابهت نه د حرف سره په احتياج کې يو امر ته غير د صلى نه چې هغه ضمير محذوف دی.

**سوال**: مبنيِ على الضمه ولې دی؟ **جواب**: د وجې د مشابهت د دې نه د غايات سره په حذف د مبين او موضع کې ځکه چې د دې ای او اية نه حذف کړي شوی دی جز دهغه لفظ چې هغه مبين د ای او اية دی لکه څنګه چې حذف کړي شوی دی د مبين د غايات نهچې هغه مضاف اليه دی.

**سوال**: لکه څنګه چې دا قسم ای دقبيلې د مبنيات نه دی على الضمه نو ای موصوفه چې منادی واقع شي نو هغه هم مبني على الضمه وی نحو يايها الرجل نو تا دايو قسم مستثنى کړو د ماقبل نه دا بل دی ولې مستثنى نه کړو؟ **جواب**: د ای بنائيه موصوفه استثناء ته دلته ضرورت نشته ځکه هغه ذکر شوی دی په بحث د منادی کې.

**وفی ماذا صنعت وجهان**: او په دې قول د عربو کې چې ماذا صنعت دی دوه ترکيبونه دی او دوه معانی دی **احدهما** يو د دغه وجهين نه ما الذی دی بنا په دې چې دا ما استفهاميه دی په معنی د ای شئ سره مبتداء ده او ذا په معنی د الذی سره موصول دی او صنعت جمله فعليه صله د موصول ده او رابط ضمير منصوب مفعول به حذف شوی دی فيکون التقدير ای شئ الذی صنعته، (۱) بيا موصول سره د صلى نه خبر لپاره د مبتداء شو (عند السيبويه).

(۲): او بالعکس دی عند الجمهور **وجوابه رفع** او جواب د دې به اسم مرفوع راځي بنا په دې چې دا خبر د مبتدا محذوف دی مثال لکه الاکرامُ ای الذی صنعته الاکرامُ لپاره د دې چې دا جواب مطابق شي د سوال سره په کون د دې کې جمله اسميه **والاخر** او دويمه وجه د هغه وجهين نه دا ده چې معنی د ماذا، ای شئ ده، په دې شان سره چې ماذا مجموعه په معنی د ای شئ سره دی (۲) يا ما بمعنی ای شئ دی او ذا زائد دی **وجوابه نصب** او جواب د دې به راځي اسم منصوب بنا په دې چې دا مفعول به دی لپاره د فعل محذوف لکه الاکرامَ شو ای صنعت الاکرامَ لپاره د دې چې دا جواب مطابق شي د سوال سره په کون دهر واحد د دې دواړو کې جمله فعليه، او دا ماذا مجموعه چې په معنی د ای شئ سره شي يا ما بمعنی ای شئ شي او ذا زائد شي نو بيا په دې کې يو خو دا ترکيب شو چې ای شئ مفعول به مقدم شوی دی او صنعت فعل فاعل دی او دويم ترکيب پکې دا هم جائز دی چې ای شئ مبتدا شي او دا ما بعد جمله ورله خبر شي او عائد د مبتدا محذوف شي ای ایّ شئ صنعته، خو دغه ترکيب دلته مصنف نه دی ذکر کړي، بيا دا رفع لوستل بنا په وجه اوله باندې او نصب لوستل بنا په وجه ثانی باندې لازم نه دی بلکه په دې اوله وجه کې نصب لوستل او په ثانی کې رفع لوستل هم جائز دی ځکه چې مطابقت په مينځ د سوال او جواب کې لازم نه دی بلکه اولی او مستحب دی.

**سوال**: فی حرف جر دی داخليږي په اسم باندې او په ماذا صنعت کې خو داخل شوی دی په جمله باندې دا ولې؟ **جواب**: اسم عام دی که حقيقة وی او که تاويلا وی او دا ماذا صنعت اسم دی تاويلاً ځکه د دې نه مونږه تاويل کوو په قولهم سره.

**سوال:** جوابه مبتدا ده او رفع ورله خبر دی او خبر محمول وی په مبتدا باندې او دلته حمل نه صحيح کيږي ځکه چې حمل د صرف وصف راغي په ذات باندې؟

**جواب:** (۱): دا رفع مصدر نه دی بلکه رُفِعَ ماضی مجهول دی (۲) او که اومنم چې صيغه د مصدر ده نو بيا مصدر په خپله معنی نه دی بلکه مصدر مبني للمفعول دی ای مرفوع

(۳): او که اومنم چې صيغه د مصدر ده او مصدر په خپله معنی سره دی نو بيا دا محمول په اعتبار د حذف د مضاف سره په جانب د خبر کې فيکون التقدير وجوابه ذو رفع

(۴): يا دا محمول دی په اعتبار د حذف د مضاف سره په جانب د مبتدا کې ای حال جوابه رفع، او دا رنګې اعتراض او جواب په وجوابه نصب کې دی.

## اسماء الافعال

هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د نوع ثالث د اسم مبني نه تفصيلاً پس شروع يې وکړه په بيان د نوع رابع د اسم مبني کې تفصيلاً چې هغه اسماء افعال دی.

(۱): او هر کله چې اسماء افعال اسماء وو حقيقةً او اصوات جار مجرى د اسماء وو نه اسماء حقيقةً پس مقدم يې کړل اسماء افعال په اصوات باندې (۲) يا هر کله چې بعض د اصوات نه داخل وو په اسماء افعال کې پس مقدم وګرځول مصنف اسماء افعال په اصوات باندې ځکه چې معرفت د هغې موقوف دی په معرفت د اسماء افعال باندې او موقوف عليه مقدم وی په موقوف باندې نو وی ويل چې اسماء الافعال

**ترجمه:** اسماء افعال په اصطلاح د نحويانو کې **ما** اسماء دی او افراد د ضمير د کان په اعتبار د لفظ د ما سره دی (۲) يا جنس اسم فعل په اصطلاح د نحويانو **ما** اسم دی او اضافت د اسماء افعال ته اضافت جنسي دی، داسې اسم چې کائن دی **بمعنی الامر** په معنی د امر سره **او الماضی** يا په معنی د ماضی سره او کلمه د او لپاره د تنويع او تقسيم ده نه لپاره د شك او تردد او أُفِّ په معنی د تَضَجَّرتُ سره دی او اوه په معنی د توجعت سره دی ليکن مراد د دې نه انشاء ده او مناسب د انشاء سره صيغه د مضارع حالی ده ځکه د أُف نه تعبير کولې شي أتضجّرُ او د اوه نه تعبير کولي شي أتوجّعُ سره، يا اسم فعل بمعنی المضارع نادر دی نو د وجی د ندرت نه مصنف ترك کړي دی او اسم فعل بمعنی الامر کثير دی د اسم فعل بمعنی الماضی نه نو د دې وجی نه يې مقدم کړي دی په اسم فعل بمعنی الماضی باندې مثال د اول لکه رويد زيداً شو رويد اسم فعل دی بمعنی الامر چې امهل دی او مثال د ثاني لکه هيهات ذلك (۲) شو چې هيهات اسم فعل دی په معنی د ماضی سره چې هغه بَعُدَ دی او تعدد د مثال بنا دی په تعدد د ممثل باندې (۱) رويد مثال د اسم فعل بمعنی الامر دی او هيهات مثال د اسم فعل بمعنی الماضی دی (۲) رويد مثال د اسم فعل متعدي دی او هيهات مثال د اسم فعل لازم دی (۳) رويد مثال د هغه اسم فعل دی چې منقول عنه د هغه مستعمل وی په دې شان سره

چې په روید زیدا کې امهل زیداً وئیلې شي د دې منقول عنه مستعمل دی فی قوله تعالی ﴿فَمَهِّلِ الْكَافِرِينَ أَمْهِلْهُمْ رُوَيْدًا﴾ ځکه دا روید منقول دی د مصدر نه او هغه مستعمل دی او د هیهات منقول عنه مصدر نه دی مستعمل امهل زیدا ویلې شي او هیهات مثال د هغه اسم فعل دی چې منقول عنه هغه نه وي مستعمل په دې شان سره چې په هیهات ذلك کې بَعُدَ ذلك نه شي ویلې.

**تشریح: سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟

**جواب:** ربط د ماقبل سره دا دی چې مخکې بیان د قسم ثالث د اسم مبني وو تفصیلاً چې موصولات وو او دا بیان د قسم رابع د اسم مبني دی تفصیلاً چې اسماء الافعال دی او په معرفت د ربط سره غرض د مصنف هم معلوم شو.

**سوال:** اسماء الافعال یې ولې مقدم کړه په اصوات باندې؟

**جواب:** (۱): هر کله چې اسماء الافعال اسماء وو حقیقة او اصوات جار مجری د اسماء وو پس مقدم یې کړه اسماء الافعال په اصوات باندې (۲) یا هرکله چې بعض انواع د اصوات د قبیلې د اسماء الافعال نه وو مقدم یې کړه اسماء الافعال په اصوات باندې ځکه معرفت د هغې موقوف دی په معرفت د اسماء الافعال پورې او موقوف علیه مقدم وی په موقوف باندې، په اسماء الافعال کې لابدي ده د معرفت د امور اربعونه (۱) مفهوم اصطلاحی (۲) معرفت د اقسام (۳) معرفت د وجه د تسمیه (۴) معرفت د وجه د بناء. نو اسماء افعال په اصطلاح د نحویانو کې هغه اسم ته وائي چې هغه راغلې وی بمعنی الامر او الماضی. والسوال والجواب ههنا مثل ما مر فی اسماء الاشارة.

**سوال:** کلمه د ما به خالي نه وی یا به یې عبارت وائي د اسم نه او یا به یې عبارت وائي د اسماء نه که عبارت یې د اسم نه وائي نو ما بعد ورسره ولګیدو خو ما قبل ورسره نه لګی ځکه حمل د مفرد راځي په جمع باندې او که عبارت اخلی د اسماء نه نو ماقبل ورسره ولګیدو خو ما بعد ورسره نه لګي ځکه په کان کې ضمیر مستتر دی مفرد مذکر هغه نه راجع کیږي ما ته ځکه ما عبارت دی د اسماء نه نو مطابقت نه راځي بین الراجع والمرجع؟ **جواب:** (۱): دلته دا کان زائد دی په دې کې د سره ضمیر نشته او ما عبارت دی د اسماء نه. (۲): یا کان زائد نه دی او ما عبارت دی د اسماء نه او ضمیر د مفرد مذکر ورته راجع دی په اعتبار د لفظ د ما سره. (۳): یا دا ما عبارت د اسماء نه نهٔ دی بلکه عبارت دی د اسم نه او حمل یې په ما قبل باندې صحیح دی ځکه چې اضافت په اسماء الافعال کې اضافت جنسي دی مراد جنس اسم دی او دا جواب غوره دی د دې، مخکې نه ځکه په هغې کې لازمیږي تعریف د افرادو او دا نه دی صحیح. او کان په دې مقام کې محتمل د امور اربعه وو دی. (۱): یا کان زائده دی ای ما بمعنی الامر والماضی (۲): یا کان تامه دی ای ما وجد بمعنی الامر والماضی (۳): کان ناقصه بمعنی صار ای ما صار بمعنی الامر والماضی. (۴): یا کان ناقصه بمعنی ثبت دی ای ما ثبت بمعنی الامر والماضی.

**سوال:** دا تعریف د اسماء الافعال باطل دی ځکه چې مقصود په تعریف کې وضاحت د معرف وی او وضاحت د معرف هله راځي چې دا تعریف بنا وی په قطع او یقین باندې او دا تعریف بنا دی په شك او تردد باندې ځکه چې په دې کې کلمه د او ذکر ده او دا راځي لپاره د شك او تردد نو معترض وائي چې ته په خپله شکی او متردد یې په تعریف د اسم فعل کې نو مونږ ته د څه شي وضاحت کوی؟

**جواب:** دا کلمه د او لپاره د تنویع او د تقسیم ده نه لپاره د شك او تردد، په دې کلمه د او سره مصنف اشاره وکړه دیته چې اسم فعل دوه قسمه دی (۱) یو هغه دی چې راځي بمعنی الامر (۲) او بل هغه دی چې راځي بمعنی الماضی.

**سوال:** حصر د اسم فعل په دې نوعین کې باطل دی د وجې د وجود د قسم ثالث نه چې هغه اسم فعل بمعنی المضارع دی لکه اوه بمعنی اتوجع او اف بمعنی اتضجر؟

**جواب:** اسم فعل منحصر دی په دې نوعین پورې او هر چې دی اف او اوه دا په معنی د ماضی سره دی لیکن معنی د دې انشاء ده او دا نشاء سره مناسب مضارع وه نو ځکه یې په مضارع سره تعبیر وکړو (۲) یا اسم فعل بمعنی المضارع قلیل دی او نادر دی نو د وجې د ندرت نه مصنف ترك کړي دی.

پس د دې نه معلومه شوه چې اسم فعل درې قسمه دی (۱) بمعنی الامر او دا اکثر دی (۲) بمعنی الماضی او دا کثیر دی (۳) بمعنی المضارع دا قلیل او نادر دی.

**سوال:** مثال ذکر کولي شي لپاره د وضاحت د ممثل او وضاحت د ممثل راځي په مثال واحد سره نو مصنف د اسم فعل لپاره دوه مثالونه ولې ذکر کړی دی؟

**جواب:** تعدد د مثال بنا دی په تعدد د ممثل باندې (۱) اسم فعل دوه قسمه دی (۱) متعدي لکه روید (۲) لازم لکه هیهات شو (۲) یا اسم فعل دوه قسمه دی (۱) یو هغه دی چې منقول عنه د هغه مستعمل وی لکه روید (۲) او بل هغه دی چې منقول عنه یې مستعمل نو لکه هیهات شو (۳) او دارنګې اسماء الافعال دوه قسمه دی (۱) بمعنی الماضی لکه هیهات (۲) بمعنی الامر لکه روید بله دونك ها حیهل علیك او امین شو چې په معنی د استجب دعاءنا سره دی، او په امین کې درې لغات دی (۱): امین بروزن فاعیل دا اکثر استعمالا دی لیکن بعید من القیاس دی ځکه لغت عربی چر ته په وزن د فاعیل باندې نه دی راغلي البته اسماء عجمیه په دې وزن باندې راغلي دی لکه هابیل او قابیل د دې وجې نه زعم کړی دی بعض علماؤ چې آمین لفظ عجمی دی نه عربی بیا څوك په دې الف د امین کې اما له کوی او څوك یې پکې نه کوي (۲): دویم لغت امین دی بروزن فعیل دا موافق القیاس او اقل استعمالا دی د دې وجې نه بعض علماؤ د دې نه انکار کړي دی (۳): دریم لغت پکې آمین دی بالمد وتشدید المیم بیا دا اسم فعل نه دی بلکه جمع مذکر اسم فاعل صیغه ده بمعنی قاصدین کما فی قوله تعالی ﴿وَلَآ ءَآمِّينَ ٱلۡبَيۡتَ ٱلۡحَرَامَ﴾.

**سوال:** اسم فعل بمعنی الامر والماضی سواسی دی په قسمیت کې نو تا اسم فعل بمعنی الامر ولې مقدم کړو په اسم فعل بمعنی الماضی باندې؟ **جواب:** اسم فعل بمعنی الامر اکثر دی ځکه یې مقدم کړی دی.

**سوال:** اسماء الإفعال ته اسماء الافعال ولي وائي؟ **جواب:** بعض نحويانو ويلي دي چې اسماء الافعال ته اسماء الافعال ځکه وائي چې دا اسماء نومونه دي او اعلام دي د الفاظو اوصيغو د فعل لپاره په دې شان سره چې دغه افعال په اعتبار د صيغې سره معنی موضوع له ده او دا اسماء وضع کړې شوي دي د هغې لپاره مثلاً رويدٌ لفظ واضع وضع کړې دي لپاره د اَمْهِل او دا امهل د دې معنی موضوع له ده او هيهات لفظ واضع وضع کړيدې لپاره د بُعد او دا بَعُد د هغې معنی موضوع له ده ليکن دا وجه کمزوري ده او شيخ رضي دي قول د بعض ته ليس بشئ ويلي دي ځکه ډير کرته ير عرب قح تلفظ وکړي په لفظ د روید باندې او په لفظ د صه باندې او د هغه ذهن ته لفظ د امهل يا اسکت نه راځي او سره د دې نه چې شرط په وضع کې استحضار د معنی موضوع له دی د دې وجې نه مصنف ماکان بمعنی الامر والماضي وويل او ماکان معناه الامر والماضي يې ونه ويل او جمهور وائي چې اسماء الافعال ته اسماء الافعال ځکه وائي چې دا ذوجهتين دي په دې شان سره چې لفظ او صيغې ته يې وګوري نو صيغه د اسم ده او معنی ته چې يې وګورو نو معنی يې د فعل ده ځکه چې معنی يې مقترن نه ده په يو د ازمنه ثلاثه ؤ پورې نو نه ورته علی التعين اسم ويلي شو او نه ورته علی التعين فعل ويلي شو پس مسمی کړي شو په دې مجموعی نوم سره.

**سوال:** اسماء الافعال يې وويل نو افعال الاسماء يې ولي ونه ويل؟

**جواب:** افعال الاسماء يې ورته ونه ويل ځکه چې اسميت پکې اصل دی او فعليت پکې عارضي دی نو اسم نه يې مضاف جوړ کړو د وجې د اصالت نه او د فعل نه يې مضاف اليه جوړ کړو د وجې د عروض نه ځکه مضاف اليه امر عارض وي او خارج وي د حکم نه.

**سوال:** هر کله چې دا اسماء په معنی د فعل سره دي نو بعينه فعل ورته ولي نه وائي؟

**جواب:** (١): بعينه فعل ورته نه شو ويلي لانها لاتقبل علامة الفعل (٢) په دې وزن باندې نه دي راغلي په استعمال د کلام د عربو کې.

**سوال:** تعريف د اسم فعل مانع نه شو د دخول د غير نه داخل شو پکې الضارب امس ځکه دا اسم دی او بمعنی الماضي دي نو تعريف د اسم فعل په دې باندې صادقيږي او اسم فعل نه دی.

**جواب:** اسم فعل په اصطلاح د نحويانو کې ماکان بمعنی الامر والماضي وضعاً ته وائي او الضارب امس په معنی د ماضي سره وضعاً نه دی بلکه دا په معنی د ماضي سره راغلي دي په اعتبار د امر خارج سره چې امس دی.

**سوال:** تعريف د فعل مانع نه شو د دخول د غير نه داخل شو پکې اسماء الافعال ځکه فعل په اصطلاح کې هغه کلمې ته وائي چې دلالت کوي علی معنی في نفسه او دا معنی مقترن نه وي په يو د ازمنه ثلاثه ؤ پورې وضعاً او معنې د اسم فعل هم مقترن نه ده په يو د ازمنه ثلاثه ؤ پورې وضعًا او تعريف د اسم جامع نه شو خپلو افرادو لره خارج شو د دې نه اسماء بمعنی الافعال ځکه فعل هغه کلمې ته وائي چې مقترن وي باحد الازمنة الثلاثة وضعا او دا مقترن دي باحد الازمنة الثلاثة وضعاً؟

**جواب:** په دې مقام کې مراد د وضع نه وضع ثاني ده چې هغه استعمال او اعتبار دی نه وضع اولی.
**سوال:** اصل په اسماء کې اعراب دی نو اسماء الافعال ولې مبني شو؟
**جواب:** (۱): لوقوعها موقع المبني (۲) لکونه بمعناه (۳) د وجې د مشابهت د اسماء الافعال نه د حروف عاملو سره په کون د دې کې عامل غير معمول.
**سوال:** اسماء الافعال د قبيلې د مبنيات نه دی او په مبني کې لابدې وی د اعراب محلی نه نو د دې اعراب محلی څه دی؟ **جواب:** بعض وائي چې دا اسم فعل مرفوع محلا دی بنابر ابتدائيت او دا مابعد ورله فاعل سد مسد خبر دی په شان د أقائم الذيدان باندې (۲) غوره مذهب دا دی چې لا محل لها من الاعراب لصيرورتها بمعنى الفعل واخذها حکمه.
**سوال:** تقديم د معمول د فعل په اسم فعل باندې جائز دی او که نه؟
**جواب:** (۱): په دې کې دوه مذهبه دی (۱) **کوفيان وائي چې** جائز دی دليل دا قول د الله تعالی چې کتابَ الله عليکم وقول الشاعر!

أيها المائح دلوی دونکا الى الناس يحمدونکا

مائح هغه چاته وايې چې د کوهی د مينځ نه اوبه راوباسی او د کوهی دغاړی نه چې اوبه راوباسی هغی ته ماتح وايې
(۲) **بصريان وائي** لايجوز لانحطاط الفرع عن الاصل او کتاب الله مفعول مطلق د فعل محذوفه دی اصل کې کَتَبَ کتابَ الله عايکم دې بيا اضافت د مصدر راغلې دی فاعل ته اودلوی خبر د مبتدا محذوف ای هذا دلوی (۲) يادا مبتدا ده او مابعد جمله خبر دی رابط ضمير ئې محذوف دی او دونکه.
(۳) مفعول به دی د فعل محذوف لپاره او د دې دواړو تفسير دی ای خذ دلوی.
**وفعال بمعنى الامر من الثلاثي قياس: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د اسم فعل سماعی نه نو شروع يې وکړه په بيان د اسم فعل قياسی کې نو وی ويل چې وفعال بمعنى الامر الخ.
**ترجمه:** هر هغه اسم چې راځي په وزن د فعال باندې داسې فعال چې کائن دی په معنی د امر سره او داسې امر چې مشتق دی د ثلاثي مجردونه **قياس** او دا قياسی دی مثال لکه نزال شو چې دا يو اسم دی په وزن د فعال باندې په معنی د امر سره دی چې انزل دی او دا نزل مشتق دی د ثلاثي مجردو نه
**تشريح: سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی؟ **جواب:** ربط د ماقبل سره دا دی چې مخکې بيان د اسم فعل سماعی وو او دا بيان د اسم فعل قياسی دی.
**سوال:** غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟ **جواب:** غرض د مصنف د دې عبارت نه دوه خبرې دی (۱) تقسيم د اسم فعل نوعين ته چې اسم فعل دوه قسمه دی يو سماعی دی او بل قياسی دی په دې شان سره چې کوم اسم فعل چې راځي په وزن د فعال باندې هغه قياسی دی او د هغې نه علاوه نور سماعی دی لکه رويد اسم فعل دی په معنی د امهل سره دا مسموع من العرب دی او نور موثره نه شو قياس کولې په دې باندې، او نزال اسم فعل دی مسموع من العرب دی او نور هم قياس کولې

شو په دې باندې لکه ضراب قطام وغيره دا مذهب د سيبويه او د اخفش دی او مبرد وائي چې اسم فعل بروزن فعال سماعي دی نه قياسي لهذا په ده باندې اعتراض نه وارد يږي، او په سيبويه او اخفش باندې اعتراض وارديږي چې قوام او قعاد خو په معنى د قم او اقعد سره نه دی راغلي نو ځنګه وائي چې دا قياسي دی. **جواب:** مراد د اخفش او سيبويه په قياس سره کثرت دی يعنی قياس او مطرد يې ورته ويلي دی د وجې د کثرت نه.

دويم غرض د مصنف په دې عبارت سره بيان د اقسامو د وزن د فعال دی چې وزن د فعال پنځه قسمه دی (۱) فعال امري نحو نزال (۲) فعال مصدري نحو فجار (۳) فعال صفتي نحو فساق (۴) فعال علمي د غير ذوات الراء نه نحو قطام و غلاب (۵) فعال علمی د ذوات الراء نه نحو حضار تمار او دا فعال امری مناسب دی د دې مقام سره او دا باقي څلور اقسام يې بيان کړي دی په دې مقام کې طرداً للباب فاندفع ماقيل.

**سوال:** چې فعال امري ذکر کول مناسب دی د دې باب سره ځکه چې دا اسم فعل بمعنى الامر دی او دا نور څلور اقسام د وزن د فعال خو د قبيلې د اسماء الافعال نه نه دی نو دائې دلته ولې ذکر کړی دی؟

**جواب:** دائې ذکر کړی دی طرداً اللباب.

**سوال:** بمعنى الامر او من الثلاثی په ترکيب کې څه واقع شوی دی؟ **جواب:** بمعنى الامر جار مجرور ظرف مستقر په اعتبار د متعلق محذوف سره چې الکائن دی صفت واقع شوی دی د فعال لپاره او من الثلاثي جار مجرور هم ظرف مستقر په اعتبار د متعلق مخذوف سره چې المشتق دی صفت واقع شوی دی د الامر لپاره.

**سوال:** توصيف د فعال په بمعنى الامر سره نه دی صحيح ځکه دا وزن د فعال خو په معنى د امر سره نه دی (۲) او د فعال بمعنى الامر لپاره يې مثال ذکر کړی دی نزال دا مثال مطابق نه دی ممثل سره ځکه چې نزال خو فعال نه دی؟

**جواب:** دا اعتراض به ستا هله وارديدو چې دلته مراد د فعال نه وزن د فعال وی ليکن دلته وزن د فعال نه دی مراد بلکه ذکر د وزن دی او مراد ترينه موزون دی نو معنى دا شوه چې هر هغه اسم چې هغه راځي په وزن د فعال باندې داسې اسم چې کائن دی په معنى د امر سره او مشتق دی د ثلاثی مجردو نه نو مثال هم مطابق شو د ممثل سره او توصيف د فعال هم صحيح شو بمعنى الامر سره.

**سوال:** دا فعال موصوف سره دصفت نه مبتداء ده او قياس ورله خبر دی او خبر محمول وی په مبتدا باندې او دلته حمل نه دی صحيح ځکه حمل د صرف وصف راځي په ذات باندې؟

**جواب:** دا مجمول دی په الحاق د ياء نسبتي سره ای قياسی. (۲): يا محمول دی په حذف د مضاف سره ای ذو قياس (۳): يا مصدر مبني للمفعول دی ای مقيس. (۴): يا دا محمول دی په فعال باندې په حذف دمضاف سره په جانب د مبتدا کې ای مجئ فعال قياس، ځکه حمل د صرف وصف چې په ذات باندې راشي نو صحت د حمل کولي شي په يو د طرق خمسه ؤ سره. (۱) حمل مبالغة نحو زيد

عدل (۲) مصدر مبني للفاعل لکه زید عادل یعنی چې عدل په معنی د عادل سره ووائي (۳) مصدر مبني للمفعول (۴) په حذف د مضاف سره (۵) په الحاق د یاء نسبتی سره او دلته حمل صحیح دی په یو د طرق ثلاثه ؤ مذکورو سره.

ثلاثي سره یې احتراز وکړو د رباعی نه ځکه چې د رباعی نه اسم فعل بمعنی الامر بروزن فعال نه دی راغلي او الثلاثي کې الف لام عهد خارجي دی مراد د ثلاثي نه ثلاثي مجرد دی نو دی سره یې احتراز وکړو د ثلاثي مزیدو نه ځکه اسم فعل بمعنی الامر بروزن فعال د ثلاثي مزید نه هم نه دی راغلي

**وفعال مصدراً معرفة کفجار الخ: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د فعال امری نه نو شروع یې وکړه په بیان د باقي انواع د وزن د فعال کې طرد اللباب نو وی ویل وفعال مصدر الخ

**ترجمه:** هغه اسم چې راځي په وزن د فعال باندې په حال کون د ده کې **مصدرا** چې مصدر دی **معرفة** او معرفه دی د وجې د کیدو د ده نه علم د معنی لپاره مثال لکه فجار شو چې دا اسم دی په وزن د فعال باندې او مصدر دی او علم دی د الفجرة یا الفجور لپاره او دا دواړه د معانیو نه دی.

**سوال:** ته وائي چې فجار مصدر معرفه دی او مؤنث دی او شیخ رضی ویلي دی چې په کون د فجار مصدر معرفه او مؤنث باندې دلیل قطعی تر اوسه پورې ما ته نه دی معلوم شوی؟

**جواب:** (۱) عدم وجدان د شیخ رضی دلیل قطعی لره په کون د فجار مصدر معرفه مؤنث باندې مستلزم نه دی عدم وجود د دلیل لره، او دلیل په کون د فجار مصدر باندې کون د فجار دی بمعنی الفجرة یا بمعنی الفجور او دلیل په کون د فجار معرفه باندې توصیف د فجار دی په معرفی سره نحو نحو فجار القبیحة او دلیل په کون د فجار مؤنث باندې تانیث د باقي اقسامو د وزن د فعال دی، **وصفة** یا اسم بروزن فعال په حال کون د دې کې چې صفت یې واخلي د مؤنث لپاره مثال لکه **یا فساق** شو په معنی د فاسقة سره **مبني** مبني دی هر واحد د دې قسمین اخرین نه چې هغه فعال مصدري او فعال صفتی دی.

**مشابهته له عدلا وزنة:** د وجې د مشابهت د هر واحد د فعال مصدري او فعال صفتی نه د فعال امری سره د جهت د عدل او وزن نه، یا په حال کون د دې کې چې دا معدول دی او صاحب د وزن دی، هر چې دی مشابهت فی الوزن نو هغه ظاهر دی، او هر چې دی مشابهت په عدل کې نو لکه څنګه چې نزال معدول دی د انزل نه نو دارنګې فجار معدول دی د مصدر معرفه نه چې الفجرة دی او فساق معدول دی د فاسقة نه، او اسم مبني دیته وائي چې دا مناسب وی د مبني اصل سره په یو د مناسبات سته ؤ سره چې هغه کون د اسم دی واقع په موضع د مبني اصل کې لکه نزال شو یا کون د اسم دی مشابه د هغه اسم سره چې هغه واقع وی په موضع د مبني اصل باندې لکه فجار او فساق شو

**تشریح: سوال:** په مبني کې ضمیر د مفرد مذکر مستتر دی او په لمشابهته کې هم ضمیر د مفرد مذکر دی او دا راجع دی فعال مصدري او صفتی ته نو مطابقت رانغلو بین الراجع والمرجع؟

**جواب:** دا ضمیر راجع دی فعال مصدري او صفتی ته په تاویل د کل واحد سره.

**سوال:** مصدراً او صفة ولې منصوب دی؟ **جواب:** دا منصوب دی بنابر حالیت.
**سوال:** حال خو ذوالحال غواړی دلته ذوالحال کوم دی؟
**جواب:** (۱) ذوالحال دلته هغه ضمير دی چې مستتر دی په مبني کې او دا فعال ذوالحال نه دی ځکه چې حال واقع کيږي د فاعل يا د مفعول به نه او فعال نه فاعل دی او نه مفعول دی او مبني عامل لفظی دی او حال مقدم کيږي په عامل لفظی باندې (۲) يا دا مصدر او صفة حال واقع شوی دی د ضمير فاعل د فعل معنوی نه چې هغه مستفاد دی د دغه نسبت بين المبتدا والخبر نه.
**سوال:** په دې جواب اول باندې اعتراض دی چې دا چې حال شي د ضمير د مبني نه نو تقديم د حال په ذوالحال باندې اگر چې جائز دی ليکن اولی خو نه دی بلکه خلاف اولی دی نو دا ولې مقدم شوی دی باعث په دې باندې څه دی؟
**جواب:** لاخار بابا ويلي دي چې دا ترکيب د هذا بسرا طيب منه رطباً د قبيلې نه دی يعنی حال مقدم شوی دی په عامل لفظی باندې لپاره د تعين د ذوالحال ځکه که داسې يې ويلي وی وفعال کفجار ومثل فساق مبني مصدرا معرفة وصفة نو دا پته نه لگيده چې دا مصدرا معرفة د کوم فعال نه حال واقع شوی دی او صفة د کوم فعال نه حال واقع شوی دی او کله چې يې مقدم کړو حال په عامل لفظی باندې نو تعين د ذوالحال راغي په دې شان سره چې دا مصدراً حال دی د فعال نه د دې جهت نه چې فعال مصدري واخلي او صفة حال دی د فعال نه د دې جهت نه چې مشتقی يې واخلي.
**سوال:** فعال مصدري او صفتی ولې مبني دی؟
**جواب:** لمشابهته له عدلا وزنة، او اسم مبني هغې ته وائي چې مناسب وی د مبني اصل سره په يو د مناسبات ستة ؤ سره او يو مناسبت د هغې نه وقوع د اسم دی په موضع د مبني اصل کې او بل مناسبت د هغه مناسبات ستة ؤ نه کون د اسم دی مشابه د هغه اسم سره چې هغه واقع شوی دی په موضع د مبني الاصل کې لکه فجار او فساق شو ځکه دا فجار او فساق مناسب دی د نزال سره عدلا وزنة مناسبت وزنا خو ظاهر دی او عدلا مناسبت داسې دی چې لکه څنگه چې نزال معدول دی د انزل نه نو دارنگې فجار معدول دی د الفجرة نه او فساق معدول دی د يا فاسقة نه.
**سوال:** شيخ رضی ويلي دی چې دا نه منم چې نزال معدول دی د انزل نه ځکه چې په عدل کې اتحاد فی النوع شرط دی په معدول او معدول عنه کې لکه عُمَر معدول دی د عامر نه دا دواړه د يوی نوع نه دی چې اسم دی او ته وائي چې نزال معدول دی د انزل نه نو انزل فعل دی او نزال اسم دی نو اتحاد فی النوع نشته؟
**جواب:** عدل دوه قسمه دی (۱) يو عدل سبب دی لپاره د منع صرف هغې ته عدل لفظی وائي (۲) دويم عدل سبب دی لپاره د بنا ديته عدل لفظی او معنوی دواړه وائي نو کوم عدل چې سبب د منع صرف دی په هغې کې اتحاد فی النوع شرط دی په معدول او معدول عنه کې او کوم عدل چې سبب د بنا دی په هغې کې اتحاد فی النوع شرط نه دی په مينځ د معدول او معدول عنه کې.

**سوال:** په دې عدل باندې دليل څه دی چې نزال معدول دی د انزل نه الخ؟
**جواب:** دليل په دې باندې دا دی چې دوه لفظه چې شريك وی په يو معنی كې نو د دې صورتونه دوه دی (۱) يو دا چې مترادفين وی (۲) او بل دا چې معدول معدول عنه وی، اوس مونږه چې اوكتله نو نزال او انزل مترادفين خو نه دی ځكه په نزال كې مبالغه ده او په انزل كې مبالغه نشته نو پس معلومه شوه چې دا معدول او معدول عنه دی ځكه چې بل صورت يې نشته.
**سوال:** عدلا او زنة ولې منصوب دی؟ **جواب:** (۱): دا منصوب دی بنابر تميز (۲) يا منصوب دی بنابر حاليت او مصدر مبني للمفعول دی **وفعال علما للاعيان مؤنثا** او اسم بروزن فعال په حال كون د دې كې چې علم يې واخلې لپاره د جنس عين.
**سوال:** نه وائې چې اسم بروزن فعال چې علم وی د اعيان لپاره او مثال ذكر كوی قطام او غلاب دا مطابق نه شو د ممثل سره ځكه قطام او غلاب علم د اعيان لپاره نه دی بلكه علم دی د يو عين لپاره؟
**جواب:** الاعيان كې الف لام جنسي دی معنی د جمعيت يې باطل كړې ده او مراد په دې سره جنس عين دی نو مثال مطابق شو د ممثل سره، **مؤنثا** او داسې علم چې مؤنث دی علماً سره يې احتراز وكړو د باب د فساق نه او **للاعيان** سره يې احتراز وكړو د باب د فجار نه ځكه د هغې دواړو حكم مخكې بيان شوی دی او مؤنثا قيد احترازي نه دی بلكه دا يې ذكر كړی دی لپاره د بيان د واقع مثل قوله تعالى ﴿وَرَبَآئِبُكُمُ الَّتِي فِي حُجُورِكُم﴾ په دې شان سره چې اسم بروزن فعال علم لپاره د يو عين نه راځي په استعمال د كلام د عربو كې مگر د مؤنث لپاره مثال لكه قطام شو چې دا علم د ښځې لپاره او غلاب شو دا هم علم دی د يو مؤنث لپاره، **مبني فی الحجاز** دا قسم فعال مبني دی استعمال د اهل حجاز كې د وجې د مشابهة د د نه د فعال امری سره عدلا وزنة، **ومعرب فی تميم** او معرب دی دغه فعال علم په استعمال دا بنو تميم او لغت د بنی تميم كې د وجې د فوت د كمال مشابهت د فعال علمی نه د فعال امری سره ځكه هغه دلالت كوی په معنی مصدري باندې او دا دلالت كوی په معنی مصدري باندې نه كوي بلكه دلالت كوی په ذات باندې او اصل په اسماؤ كې اعراب دی، **الا** مگر معرب نه دی **ما** هغه فعال علمی كان فی اخره راء چې وی په اخير د دې فعال علمی كې راء مثال لكه حضار شو چې دا علم دی د يو ستوری لپاره او ظفار شو چې دا علم دی د يو مكان مرتفع لپاره او كرار شو چې دا علم دی د هغې كپړې لپاره چې په هغې سره جادو كوی ښځې په خاوندانو باندې دا فعال علمی د ذوات الراء نه په نزد د اكثر د بنی تميم باندې د قبيلې د مبنيات نه دی ځكه چې د دې په اخير كې راء راغلې ده او راء حرف متثقل دی د وجې د كيدو د دې نه په خپل مخرج كې كالمكرر پس مختاره كړې شوه په دې كې بناء ځكه بنا اخف ده د اعراب نه ځكه سلوك په طريقه واحده باندې اسهل دی د سلوك نه په طرائق مختلفو باندې خلافا لبعض بنی تميم چې هغه فرق نه كوي په مابين د ذوات الراء او غير ذوات الراء كې بلكه ټولو ته معرب وائې په اعراب د غير منصرف سره ځكه چې په دې كې يو علميت دی او بل پكې تانيث معنوی دی او عدل پكې شته

ليكن سبب نه دی لپاره د منع صرف ځکه عدل د اسبابو ضروريو اعتباريو نه دی معتبر کولي شي د وجې د ضرورت نه او دلته ضرورت نشته د وجې د وجود د سببين د اسباب د منع صرف نه چې تانيث او علميت دی او عدل يې معتبر دی حملاً على النظائر

## الاصــوات

**ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د نوع رابع د انواع د اسم مبني نه تفصيلاً چې اسماء الافعال وو نو شروع يې وکړه په نوع خامس د اسم مبني کې تفصيلاً چې اصوات دی او هر کله چې بعض اصوات په معنى د اسماء الافعال سره وو نو د دې وجې نه يې په دی اسماء الافعال پسې متصل ذکر کړه **اصوات** جمع د صوت ده او صوت په لغت کې تصويت ته وائي او په اصطلاح کې كيفية تحدث من تحرك الهواء للقرع والقلع، او صوت دوه قسمه دی يو منقولي دی او بل غير منقولي دی او صوت منقولي په دوه قسم دی (۱) يو هغه دی چې نقل شوی دی د صوتيت نه مصدريت ته مثال لکه واهاً شو چې راغلي دی په دې قول د ابن قيم کې

واهاً لمنطق اليونان ‏ ‏ ‏ ‏ كم فيه من افك ومن بهتان

واهاً په معنى د تعجباً سره منصوب دی بنابر مفعول مطلق لپاره د فعل مقدر ای اتعجب تعجبا دويم قسم صوت منقولي هغه دی چې اول نقل شوی وی د صوتيت نه مصدريت ته او بيا دمصدريت نه نقل شوی وی اسم فعل ته مثال لکه صَهْ او مَهْ شو چې دا دواړه اصل کې صوت وو بيا د صوتيت نه نقل شو مصدر ته چې په معنى د سکوت او انکفاف سره وو او بيا د مصدر نه نقل شو اسم فعل بمعنى الامر ته صَهْ بمعنى اسكت سكوت الان او مَهْ بمعنى انكفف انكفاف الان او مَهْ په معنى د انكفف سره دی نه په معنى د امنع سره ځکه مَهْ لازم ده ترجمه يې دا ده چې ته منع شه او امنع فعل متعدي دی معنى يې دا ده چې ته منع کوه بل څالره اوس که مونږه ذمه ترجمه وکړو په امنع سره نو لازميږي تفسير د لازم په متعدي سره او دا تفسير بالمبائن دی ځکه لازم او متعدي متبائين دی او صوت غير منقولي دري قسمه دی (۱) **كل لفظ** جنس لفظ دی **حكى** چې حکايت کولي شي او بيښى کولي شي **به** په دی لفظ سره **صوت** د يو اواز د اصواتو د حيواناتو يا جماداتو نه (۲) **اوصوت به البهائم** يا صوت غير منقولي په اصطلاح کې هغه لفظ ته وائي چې اواز کولي شي په دې لفظ سره چارپايانو ته بطور مثال دا هله چې بهائم په معنى د قوايم الاربعة سره شي، او که بهائم په معنى د مايدب فى الارض سره شي نو بيا مجانين او صبيان او طيور داخل دی په دې کې مثال د اول لکه غاق شو چې حکايت کولي شي په دې سره د اواز د کارغه نه بل مثال لکه قب شو چې حکايت کولي شي په دې سره د اواز د توری نه بل مثال لکه ويه شو چې حکايت کولي شي په دې سره د صوت د مصوت على الميت نه د دې وجې نه سيبويه نفطويه لاه ويه ته مرکب صوتي وائي ځکه د دې په اخير کې صوت راغلي دی چې ويه دی.

**والثاني كنخ** او مثال لكه نخ شو په تشديد سره يا په تخفيف سره چې په دې سره اواز كولې شي اوښانو ته لپاره د كينولو بل مثال لكه هالا شو چې اواز كولي شي په دې سره خرس ته او بل مثال لكه عدس شو چې اواز كولي شي په دې سره بغل ته.

(۳): دريم قسم كل لفظ صوت به ابتداء من غير تعلق الى الغير لكه وَيْ او وَخْ شو چې دا خارجيږي د لسان د انسان نه په وقت د عروض د تعجب او ندامت كې.

**تشريح: سوال:** اصوات يې ولې مقدم كړه په مركبات باندې؟ **جواب:** بعض د اصوات نه په معنى د اسماء الافعال باندې دى نو د دې مناسبت د وجې نه يې ذكر كړه د وروستو د اسماء الافعال نه متصل بلا فصل.

**سوال:** نه وائي چې اصوات په اصطلاح كې كل لفظ الخ ته وائي دا تعريف د صوت جامع نه شو خپلو افرادو لره خارج شو د دې نه واهاً او صَهْ او مَهْ ځكه دا كل لفظ حكى به صوت او صوت به البهائم نه دى بلكه واهاً بمعنى تعجباً دى او صَهْ بمعنى اسكت او مه بمعنى انكفف دى

**جواب:** صوت په دوه قسمه دى (۱) يو منقولې دى (۲) او بل غير منقولې دى. دا تعريف د صوت غير منقولې دى او صه مه او واها صوت منقولې دى دا اعتراض به هله وارديدو چې دا تعريف د مطلق صوت وى.

**سوال:** هر كله چې صوت په دوه قسمه دى (۱) يو منقولې دى او بل غير منقولې دى، نو مصنف چې دا صوت غير منقولې ذكر كړې دى نو صوت منقولې يې ولې نه دى ذكر كړې؟

**جواب:** صوت منقولې په دوه قسمه دى (۱) يو قسم هغه دى چې نقل شوى دى د صوتيت نه مصدريت ته (۲) او دريم هغه دى چې نقل شوى دى د صوتيت نه مصدريت ته او د مصدريت نه اسم فعل ته نو دا قسم اول داخل دى په مصدر كې او قسم ثانى داخل دى په اسم فعل كې نو ځكه يې دلته نه دى ذكر كړې

**سوال:** هر كله چې صوت غير منقولې درې قسمه دى نو مصنف دلته دا دوه ذكر كړې دى او دا يو يې ترك كړى دى دا ولې؟ **جواب:** هر كله چې دا قسم اول او قسم ثانى د قبيلې د مبنيات نه وو سره د دې نه چې د دې تعلق شته دى د غير سره، او هغه صوت چې جارى كيږي په لسان د انسان باندې په وقت د عروض د تعجب او ندامت كې هغه تعلق د چا سره نه لري نو هغه په طريقه اولى سره مبني دې ځكه يې هغه نه دى ذكر كړې.

**سوال:** اصوات د قبيلې د مبنيات نه ولې نه دى؟ **جواب:** (۱): لعدم موجب الاعراب وهو التركيب (۲)، يا اصوات د قبيلې د مبنيات نه دى ځكه دا مشابه دى د حروفو غير عاملو سره په كون د دې كې مستعمل غير عامل غير معمول فيه، او هر چې دى قال زيد عند التعجب ويه، وقال زيد عند اناحة البعير نخ، وقال زيد غاق عند حكاية صوت الغراب نو بنا په دې كې حكايةً ده اګر چې دا په

ترکيب کې واقع شوی دی او معمول واقع شوی دی د فعل لپاره خو بنا په دې کې حکايةً کړ محکی په حکم د محکی عنه کې وی.

**سوال:** اصوات جمع ده او جمع دلالت کوی په افرادو باندې او کل راځي د احاطی د افرادو د مضاف اليه لپاره نو دا خو تعريف د افرادو په افرادو راغي او دا باطل دی ځکه تعريف د جنس کيږي په جنس سره؟ **جواب:** الاصوات کې الف لام جنسي دی او الف لام جنسي چې داخل شي په جمع باندې نو جمعيت باطلوی، او کلمه د کل مقحم او زائده ده په تعريف کې تعريف مدخول د کل دی نه کل.

**سوال:** بيا خو پکار وه چې داسې يې ويلي وی چې الصوت لفظ حکی به صوت الخ، نو دا الاصوات يې جمع ولې ذکر کړه او دا کل يې ولې ذکر کړو؟ **جواب:** اصوات يې جمع ذکر کړې ده په دې کې يې اشاره وکړه کثرت د انواع ته او کل يې زائد ذکر کړی دی لپاره د تصريح په جامعيت او مانعيت د تعريف باندې، پس د دې نه معلوم شوه چې کل څلور قسمه دی.

(۱): کل کلی نحو کل انسان نوع (۲): کل افرادی نحو کل انسان حيوان وقوله تعالى کل نفس ذائقة الموت (۳): کل مجموعی نحو کل الرمان لايؤکل يعنی مجموعه انار نه شي خوړې.

**سوال:** کل الرمان ما کول دا ترکيب صحيح دی که نه دی صحيح؟

**جواب:** دا ترکيب نه دی صحيح ځکه چې دا مستلزم دی کذب لره ځکه دا کل مجموعی دی د دې معنی دا ده چې مجموعه انار خوړلي شي او دا معنی نده صحيح ځکه د انار پوستکی څوك نه خوری.

(۴): کل زائد لکه په دې مقام کې شو.

**سوال:** کل لفظ حکی به صوت يې وويل نو کل اسم يې ولې ونه ويل؟

**جواب:** کل لفظ يې وويل او کل اسم يې ونه ويل ځکه چې دا اصوات اسماء نه دی ځکه اسم هغه لفظ ته وائي چې موضوع للمعنی وی او اصوات موضوع للمعنی نه دی.

**سوال:** هر کله چې اصوات اسماء نه دي نو ګرځول د دې د قبيلې د اسم مبني نه نهٔ دی صحيح نو دا يې دلته ولې ذکر کړی دی؟ **جواب:** دا عين اسماء نه دی ليکن جار مجری د اسم مبني دی نو ځکه يې ذکر کړی دی په بحث د اسم مبني کې او د هغې نه ئې يو قسم ګرځولي دی.

**سوال:** دا تعريف د اصوات باطل دی ځکه چې مقصود په تعريف کې وضاحت د معرَف دی او وضاحت د معرف راځي په جزم او قطع سره او دا تعريف بنا دی په شك او تردد سره ځکه ده ذکر کړې ده، کلمه د أو په تعريف کې او دا راځي د شك او تردد لپاره؟ **جواب:** کلمه د أو د تنويع او د تقسيم لپاره ده په دې سره يې اشاره وکړه دېته چې صوت منقولې دوه قسمه دی (۱) حُکَی به صوت (۲) صُوَت به البهائم.

**سوال:** دا تعريف د صوت جامع نه دی خپلو افرادو لره خارج شو د دې نه هغه صوت چې په هغې سره اواز کولي شي مجانين يا صبيان يا طيورو ته ځکه بهائم جمع د بهيمة ده او بهيمة د څلور پښو والا حيوان ته وائي؟

جواب: (۱) په دې کې مجاز مرسل دی ذکر د خاص او مراد ترینه عام دی چې ما یدب فی الارض دی نو شامل شو ټولو لره (۲) او که اومنم چې بهائم په خپله معنی سره دی نو بیائې دا ذکر کړی دی بطور مثال نه لپاره د احتراز د غیر نه.

## المـــرکـبـــات

ربط: هرکله چې فارغ شو مصنف د بیان د نوع خامس د اسم مبني نه تفصیلاً چې اصوات وو نو شروع یې وکړه په بیان د نوع سادسه د اسم مبني کې تفصیلاً چې مرکبات دی او هر کله چې بعض د مرکبات نه مرکب صوتی وو نو دائې متصل ذکر کړه په اصوات پسې نو وې ویل چې المرکبات

ترجمه: جنس مرکب په ضمن د مرکب بنائې کې چې واخلې چې هغه معدود من المبنیات دی په اصطلاح د نحویانو کې **کل اسم** جنس اسم دی، کل زائد دی او مقحم دی په تعریف کې او تعریف مدخول د کل دی نه کل او دائې ذکر کړی دی مخص لپاره د جامعیت او مانعیت په تعریف باندې اسم ورته وایم په اعتبار د آن سره او مرکب ورته وایم په اعتبار د کان سره او اجتماع د متنافیین په آن واحده کې په جهت واحده سره ممتنع ده **من کلمتین** هسی اسم چې جوړ شوی دی او حاصل شوی دی د ترکیب د کلمتین نه کلمتین عام دی که حقیقتاً وی او که حکماً وی یا ذکر د خاص دی چې کلمتین دی او مراد ترینه عام دی چې لفظین دی او کلمتین یې وویل نه اسمین لپاره د دې چې داخل شي په دې کې بخت نصر او معدیکرب داسې کلمتین **لیس بینهما نسبة** چې نه وي موجود په مینځ د دې کلمتین کې پس د علمیت نه علامه د آله په وجود د نسبت باندې قبل العلمیت.

تشریح سوال: المرکبات جمع ده دا به خالي نه وائې یا به یې جمع د مرکب نه وائې او یا به یې جمع د مرکبة وائې دواړه نه دی صحیح ځکه که جمع د مرکب یې وائې نو مطابقت بین الموصوف والصفة خو راغلو لیکن مطابقت بین المفرد والجمع نشته ځکه مرکب مذکر دی دا جمع کیږي په واو نون سره نه په الف او تاء سره، او که جمع د مرکبة یې وائې نو بیا مطابقت په مینځ د مفرد او جمع کې راغي لیکن مطابقت نه راځي د موصوف سره ځکه موصوف د دې مذکر دی چې اسم دی او مرکبة مؤنث دی؟

جواب: مرکبات جمع د مرکب ده او مرکب صفت د مذکر لایعقل دی او صفت د مذکر لایعقل جمع کولی شي په الف او تاء سره قیاساً او اطراداً کالایام الخالیات، والصافنات الجیاد، وجمال سجلات

سوال: المرکبات جمع ده او جمع دلالت کوی په افرادو باندې او کل راځي د احاطې د افرادو د مضاف الیه لپاره نو دا خو تعریف د افرادو راغي په افرادو باندې او دا نه دی جائز ځکه په تعریف کې لابدې ده د جامعیت او مانعیت نه او تعریف جامع او مانع هله ګرځي چې تعریف د جنس په جنس سره وشي او که تعریف د افرادو بالافراد وشي نو دا تعریف جامع کیږي نه ځکه اف اد بعض موجود دی او بعض معدوم دی او په دې موجودات کې بعض غائب وی او بعض حاضر وی نو دا تعریف صادقیږي په هغه افرادو چې موجود وی او حاضر وی او کوم چې معدوم وی او غائب وی په هغې باندې نه صادقیږي. جواب: المرکبات کې الف لام جنسي دی او الف لام جنسي چې داخل

شي په جمع باندې نو جمعيت باطلوى ځکه په جمع کې لحاظ د افرادو وى او ـه الف لام جنسي کړ
لحاظ د ماهيت او د مفهوم وى او په مينځ د دې دواړو کې منافات دى او کلمه د کل مقحم دى او
زائد دى په تعريف کې تعريف مدخول د کل دى نه کل
سوال: هر کله چې د مرکبات نه جنس مرکب مراد دى او کلمه د کل زائد دى، نو بيا يې دا صيغه د
کل ولې ذکر کړې دى؟ **جواب:** په دې جمع کې يې اشاره وکړه کثرت د انواع ته او کل يې ذکر کړې
دى محض لپاره د تصريح په جامعيت او مانعيت د تعريف باندې
**سوال:** ته وائې چې المرکبات کې الف لام جنسي دى او جنس مرکب مراد دى نو معنى دا شوه چې
جنس مرکب په اصطلاح د نحويانو کې کل اسم الخ ته وائي دا تعريف د مرکب جامع نه شو خپلو
افرادو لره خارج شو د دې نه لفظ د مرکب او خارج شو د دې نه مرکب اضافي مرکب توصيفي،
مرکب اسنادى دا د افرادو د جنس مرکب نه دى او تعريف د مرکب وربانديې نه صادقيږي؟
**جواب:** جنس مرکب په ضمن د مرکبات بنائيه ؤ کې چې واخلي چې هغه مرکبات معدوده من
المبنيات دى کل اسم الخ ته وائي د دې نظير لکه حيوان چې په ضمن د انسان کې واخلي نو حيوان
ناطق ته وائي او قرينه په دې باندې چې مراد د مرکبات نه مرکبات معدوده من المبنيات دى دا
قاعده ده معرفه چې معاد شي معرفه نو ثاني نه به عين اول مراد وى.
**سوال:** تعريف د مرکبات په کل اسم الخ سره تعريف بالمبائن دى ځکه اسم قسم دى د کلمې نه او کلمه
او مرکب متبائنين دى ځکه د کلمه په مفهوم کې افراد معتبر دى او هغه منافي دى د ترکيب سره؟
**جواب:** ديته زه مرکب وايم قبل العلميت او اسم ورته وايم بعد العلميت.
**سوال:** اسم موصوف دى او من کلمتين جار مجرور ورله په اعتبار د متعلق سره صفت واقع شوى
دى او من تبعيضى دى ځکه دا داخل شوى دى په تثنيه باندې او علامه د من تبعيضى دا ده چې
داخليږي په متعدد باندې دا متعدد عام دى که تثنيه وى او که جمع وى نو معنى دا شوه چې
مرکبات معدوده من المبنيات په اصطلاح د نحويانو کې جنس اسم دى دا سې اسم چې بعض دى د
کلمتين نه او بعض د کلمتين نه کلمه واحده ده او دا مرکب معدوده خو کلمه نده بلکه دا خو
کلمتين دى؟ **جواب:** دا من تبعيضى نه دى بلکه من ابتدائيه دى او مدخول د من حذف شوى دى
فيکون التقدير کل اسم حاصل من ترکيب کلمتين
**سوال:** چې من کلمتين يې وويل نو من اسمين يې ولې ونه ويل؟ **جواب:** من اسمين يې ونه ويل
ليدخل فيه بخت نصر و معديکرب.
**سوال:** تعريف د مرکبات بنائيه ؤ جامع نه شو افرادو خپلو لره خارج شو د دې نه سيبويه او نفطويه ځکه
دا اسم مرکب نه دى د کلمتين نه بلکه دا مرکب دى د اسم او د صوت نه او صوت کلمه نده کما مر؟
**جواب:** (۱): دا اعتراض به هله وارديدو چې دا عبارت د مصنف بنا وى په حقيقت باندې ليکن دا په
حقيقت نه دى بنا بلکه بنا دى په مجاز باندې په دې شان سره چې ذکر د خاص دى چې کلمتين دى
او مراد ترينه عام دى چې لفظين دى.

(۲) یا جواب دا دی چې کلمتین عام دی که حقیقتاً وی او که حکماً او صوت حقیقتاً نه دی لیکن حکماً دی، **ولیس بینهما نسبة** دا جمله یې صفت واقع کړه د کلمتین لپاره لیخرج عنه مثل تابط شرا و غلام زید و رجل عالم لوجود النسبة بین کلمتیها

**سوال:** مرکب اسنادی خو د قبیلې د مبنیات نه دی دا ولې خارج کوی د مرکبات بنائیه ؤ نه؟

**جواب:** (۱) دلته موږ اسم مبني ذکر کوو او هغه دقبیلې د مبني اصل نه دی. (۲) دلته موږ هغه مرکبات ذکر کوو چې سبب د بنا د هغه لپاره ترکیب وی او مرکب اسنادی اګر چې د قبیلې د مبنیات نه دی خو دا ترکیب پکې سبب د بناء نه دی بلکه بناء پکې راغلي ده حکایةً ځکه یې خارج کوو د دې مرکبات بنائیه ؤ نه

**سوال:** **لیس بینها نسبة** به خالی نه وائي یا به یې قبل العلمیت وائي او یا به یې بعدالعلمیت وائي که بعد العلمیت یې وائي نو بیا خو مرکب اضافی، توصیفی، اسنادی، کې شته لکه تابط شرا او عبدالله شو ځکه مراد په دې سره حیوان ناطق مع هذا التشخص دی، او که قبل العلمیت یې وائي نو قبل العلمیت چې نسبت څنګه، په مرکب اسنادی اضافي او توصیفی کې موجود دی نو دارنګې په مرکب بنائې تعدادی کې هم موجود دی چې هغه نسبت عطفی دی.

**جواب:** (۱) بعض شارحینو د دې نه دا جواب کړی دی چې دلته مراد نسبت قبل العلمیت دی خو ماسوی د نسبت عطفی نه نو مرکب بنائې تعدادی ترې خارج نه شو لیکن جامی صاحب وائي چې دا جواب نه دی صحیح ځکه چې دلته نسبة نکره ده او واقع ده په سیاق د نفی کې دا عموم او استغراق فائده کوی او استغراق به په دې کې هله راشي چې نسبت عطفی ترې مستثنی نه شي او چې دا ترې مستثنی شي نو استغراق نه راځي لهذا جامی صاحب وائي چې دلته د لیس بینهما نسبة معنی دا ده چې نه به وی په مینځ د دې کلمتین کې علامه د اله پس د علمیت نه په نسبت بینهما باندې قبل العلمیت نو مرکب تعدادی پکې داخل شو ځکه په هغې کې پس د علمیت نه علامه داله په نسبت باندې قبل العلمیت نشته او تابط شرا، عبدالله وغیر خارج شو ځکه چې په هغې کې علامه داله په نسبت بین الکلمتین باندې قبل العلمیت شته چې هغه جر او نصب دی، او مرکبات ټول نهه دی (۱) مرکب اسنادی (۲) اضافی (۳) توصیفی (۴) عطفی (۵) شبه جمله (۶) مرکب بنائې تعدادی (۷) بنائې غیر تعدادی (۸) مرکب منع صرف (۹) مرکب صوتی

**وجه د حصر** پکې دا ده چې دا کلمتین د دې مرکب به خالی نه وي یا به د دې په مینځ کې نسبت وی او یا به نه وي که نسبت پکې وو نو بیا به خالي نه وي یا به تام وی او یا به ناقص وی که تام وو نو مرکب تام، او که ناقص وو نو بیا به خالي نه وي یا به د دې کلمتین په مینځ کې اتصال وی او یا به انفصال وی که انفصال وو نو مرکب عطفي لکه احد وعشرون، او که اتصال وو نو بیا به خالي نه وي یا به لفظي وی او یا به معنوی وی که لفظی وو نو مرکب اضافي نحو غلام زید او که معنوی وو نو بیا به خالي نه وي یا به عامل او معمول وی او یا به نوی، که عامل او معمول وو نو شبه جمله

او که نه وو نو مرکب توصیفی لکه رجل عالم، او که نسبت پکې نه وو نو بیا به خالي نه وي یا به جز ثاني متضمن وی معنی د حرف لره یا به نه وي که جز ثاني متضمن وو حرف لره نو بیا به خالي نه وي یابه دلالت کوی په کمیت د افرادو د معدودات باندې او یا به یې نه کوي که دلالت یې کوو نو مرکب بنائي تعدادي، او که دلالت یې نه کوو نو بنائي غیر تعدادي لکه بین بین او بیت بیت شو، او که جزثاني متضمن معنی د حرف لره نه وو نو بیا به خالي نه وي یا به جز ثاني صوت وی او یا به نه وي کهٔ صوت وو نو مرکب صوتي لکهٔ سیبویه او نفطویه او که جز ثاني صوت نه وو نو مرکب منع صرف لکه بعلبك او معدیکرب شو.

په هر تعریف کې لابدې وی د جنس او فصل نه کل اسم جنس دی داخل شو په دې کې مفردات او مرکبات تسعة من کلمتین فصل اول دی په دې سره یې احتراز وکړو د اسماء مفرده نه او **لیس بینها نسبة** فصل ثاني دی په دې سره یې احتراز وکړو د مرکب اسنادي، اضافي، توصیفي عطفي او شبه جمله نه نو باقي پاتې شو څلور قسم مرکبات دا د قبیلې د مبنیات نه دی او دا بنا پکې راغلي دهٔ د ترکیب د وجی نه

**فان تضمن الثاني حرفا**: **ربط**: هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان دتعریف د مرکبات بنائیه ؤ نه نو شروع یې وکړه په بیان د احکامو د مرکبات کې نو وی ویل فان تضمن الثاني الخ

**ترجمه**: که چرې مشتمل وو جز ثاني د مرکب **حرفا** معنی د حرف لره بالذات یا بالواسطه **بنیا** دا دواړه جزئین مبني کولې شي په فتحی سره هر چې جز اول نو دا مبني دی د وجی د وقوع د اخیر د دې نه په وسط د کلمه کې او په وسط د کلمه کې اجراء د اعراب نده جائز او هر چې دی جز ثاني نو دا مبني دی د وجی د تضمن د دې نه معنی د حرف لره او دا حرف عام دی که حرف جر وی لکه بیت بیت او بین بین شو چې د دې دا جز اول مبني علی الفتحة دی د وجی د وقوع نه په وسط کې او جز ثاني یې مبني دی ځکه متضمن دی معنی د حرف لره چې الصاق دی ځکه د دې معنی دا ده چې بیتي ملاصق لبیتك وبیتی ملاحق لبیتك یا دا حرف حرف عطف وی مثال لکه **خمسة عشر** او حادی عشر شو **واخوتها** او دارنگې امثال د حادی عشر چې هغه ثاني عشر دی تر تاسع عشر پورې دارنگې د احد عشر نه واخله تر تسعة عشر پورې جز اول او جز ثاني پکې دواړه مبني **علی الفتحة** دی **الا اثنی عشر** ماسوی د اثني عشر نه چې د دې جز اول او جز ثاني دواړه مبني **علی الفتحة** نه دی بلکه جز اول معرب په اعراب د تثنیه سره او جز ثاني یې مبني علی الفتحة دی.

**سوال**: د احد عشر نه تر تسعة عشر پورې جز اول او ثاني ولې مبني دی؟

**جواب**: جز اول مبني دی لوقوع حرف اخیره في الوسط او اجراء د اعراب په وسط کې نده جائزاو جز ثاني مبني دی ځکه چې دا متضمن دی معنی د حرف عطف لره ځکه احد عشر اصل کې واحد و عشر وو او معنی د واو جمع ده یعني یو او لس مجموعه او دا احد عشر هم متضمن دی دغه معنی لره.

**سوال**: په اثناعشر کې جز اول معرب او ثاني مبني ولې دی؟

**جواب:** جز ثاني ځکه مبني دی چې متضمن دی معنی د حرف عطف لره او جز اول معرب دی ځکه د دې نه نون غورځيدلي دی د اتصال د وجې نه نه د اضافت د وجې نه کما قال صاحب الشمة نو په دې حذف د نون کې دی مشابه شو د مضاف سره او اضافت د خواص معظمه مکبرو د اسم نه دی قوي کيږي په دې سره جهت د اسميت او اصل په اسماؤ کې اعراب دی نو دا ځکه معرب شو په حالت رفعي کې په الف سره راځي او په حالت نصبي او جري کې په ياء سره راځي. او پدې مقام کې اثنی عشر منصوب بالياء دی ځکه مستثني واقع شوی دی د ضمير د بنيا نه او مستثني چې واقع شي د إلانه وروستو په کلام موجب کې او مستثني منه مذکور وی نو منصوب وی وجوباً

**سوال:** مثال ذکر کولي شي لپاره د وضاحت د ممثل او وضاحت د ممثل راځي په مثال واحد سره نو تا دلته دوه مثالونه ولې ذکر کړو؟ **جواب:** په دې تعدد د مثال کې مصنف اشاره وکړه چې دا بناء ثابته ده په دې مرکب کې برابره خبره ده چې يو د جزئين د دې مرکب نه عدد زائد على العشرة وی او که صيغه د اسم فاعل وی چې مشتق وی د عدد زائد نه

**سوال:** احد عشر کې جز ثاني مبني دی ځکه متضمن دی معنی د حرف عطف لره ځکه مجموعه يوولس مراد دی او حادی عشر کې خو جز ثاني متضمن نه دی معنی د حرف عطف لره ځکه چې د دې نه مجموعه يوولس نه دی مراد بلکه د دې نه مراد دی يو ديوولسو نه چې هغه يوولسم دی؟

**جواب:** تضمن د جز ثاني معنی د حرف لره عام دی که بالذات وی لکه احد عشر کې شو يا بالواسطه وی لکه حادی عشر کې شو په دې شان سره چې په حادی عشر کې دا جز ثاني متضمن دی معنی د حرف لره په اعتبار د منقول عنه او مشتق منه د حادي سره او حادی عشر کې بناء على الفتحة او بنا على السكون دواړه جائز دی او حادی بروزن عالف مقلوب د واحد دی بروزن فاعل بيا دا حاء مخکې کړې شوه او واو وروستو شو د کلمه په اخير کې ذکر شو نو د واحد نه حادو جوړ شو بيا په قاعده د دعي باندې واو بدل شو په ياء سره نو حادو نه حادي جوړ شو بيا ضمه بر ياء ثقيل بوداند افتن حادي شد. **والا أعراب الثاني** او که چرې نه وو جز ثاني متضمن معنی د حرف لره او نه وو قبل التركيب مبني نو معرب کولي شي جز ثاني د دې مرکب په اعراب د غير منصرف سره لکه بعلبك شو **وبنى الاول** او مبني کولي شي جز اول د دې مرکب **على الاصح** بنا په مذهب اصح باندې

**سوال:** ته وائي چې که دا جز ثاني د مرکب متضمن نه وو معنی د حرف لره أعرب الثاني. نو دا خبره ستا منقوضه شوه په سيبويه او نفطويه سره ځکه جز ثاني د دې متضمن نه دی معنی د حرف لره او معرب نه دی بلکه مبني دی؟ **جواب:** د والامعنی دا ده چې که نه وو جز ثاني متضمن معنی د حرف لره او نه وو مبني قبل التركيب أعرب الثاني كبعلبك. او على الاصح يې وويل ځکه په دې بعلبك کې لغات ثلاثه دی (۱) يو دا چې جز اول مبني على الفتحه دی او جز ثاني معرب دی په اعراب د غير منصرف سره نحو جاءني بعلبك رايت بعلبك مررت بعلبك (۲) دويم لغت پکې دا دی چې جز اول معرب دی په اعراب د منصرف سره او جز ثاني معرب دی په اعراب د غير منصرف سره نحو

جا ئی بعلبك رايت بعلبك مررت ببعلبك (۳) دريم لغت يكي دا دي چي جز اول مضاف دی او جز ثانی مضاف اليه دی نحو جا ئی بعلبك رايت بعلبك مررت ببعلبك او بعلبك ته عند النحات مركب امتزاجی هم وائي مركب امتزاجي هغې ته وائي كه دو اسم رايكی كرده شد او دا دويم اسم پې كرخولي وی په منزله د تاء التانيث باندي په دې شان سره لكه څنكه چي تاء التانيث متصل شي په اسم پورې نو ماقبل مبني على الفتحه كرځي او اعراب جاری کيږي په تاء باندې درانكي دلته اول اسم مبني على الفتحه كرځی او اعراب جاری کيږي په دې ثانی اسم کی، او مركب امتزاجی څلور قسمه دی (۱) مركب بنائي تعدادی نحو احد عشر (۲) مركب بنائي غير تعدادی نحو بين و بيت بيت (۳) مركب صوتی نحو سيبويه (۴) مركب منع صرف نحو بعلبك

## الكنايات

**ربط**: هركله چي فارغ شو مصنف د بيان د نوع سادس د اسم مبني نه تفصيلاً چې مركبات وو نو شروع يې وكړه په نوع سابع د اسم مبني كې تفصيلاً چې هغه كنايات دی، يا هر كله چې كنايات اكثر د قبيلي د مبنيات نه وو په خلاف د ظروف نه چي دا بعض د مبنيات نه وو پس مقدم او كرځول كنايات منبه په ظروف مبنيه باندې فافهم -

**ترجمه**: **الكنايات** هغه الفاظ چي كنايه كولي شي په هغې سره په اصطلاح نحويانو كې كم او كذا دی داسې كم او كذا **للعدد** چي كائن دی د عدد مبهم لپاره او عدد مبهم دیته وائي چې د هغې كميت معلوم نه وي **وكيت وذيت** او كيت او ذيت دی **للحديث** داسې كيت او ذيت چي كائن دی د قصه او جمله لپاره او په كيت او زيت سره كنايه نه شي كولي د جملي نه مگر په طريقه د تكرار سره لكه مثلاً وائي به ته كان بيني و بين زيد كيت و كيت ذيت و ذيت چي دا كنايه ده د هغه خبري نه چي هغه جاری شوې ده په مينځ د متكلم او زيد كې

**تشريح**: **سوال**: (۱) شميرل د كنايات د قبيلي د اقسامو د اسم مبني نه نه دی صحيح ځكه اقسام د اسم مبني اقسام د الفاظو دی او كنايات جمع د كناية ده او كنايه صيغه د مصدر ده معنی ده نه لفظ ځكه دا صفت د متكلم دی (۲) الكنايات مبتدا ده او كم او كذا ورله خبر دی او خبر محمول وی په مبتدا باندې او دلته حمل نه صحيح كيږي ځكه حمل د ذات راځي په صرف وصف باندې؟

**جواب**: كنايات جمع د كناية ده خو ذكر د مصدر دی او مراد ترينه مايكنی به دی نو معنی دا شوه چي هغه الفاظ چي كنايه كولي شي په هغې سره په اصطلاح د نحويانو كې كم او كذا او كيت او زيت دی نو شميرل د كنايات د اقسام د اسم مبني نه هم صحيح شو او حمل د خبر په مبتدا باندې هم صحيح شو

**سوال**: دا كنايات نه خالي نه وي يا به ټول كنايات وائي او يا به بعض مطلق وائي او يا نه بعض معين وائي كه ټول كنايات وائي نو داخل شو يكي فلان، او فلانة او هغه دقبيلې د مبنيات نه نهٔ دی او كه بعض مبهم وائي نو بيا هم شامليږي فلان او فلانة نه او كه بعض معين وائي نو د هغې لپاره لاندې ده د قرينې نه دلته قرينه څه ده؟ **جواب**: زه د كنايات نه بعض كنايات اخلم على التعين او قرينه په دې باندې اصطلاح د

نحویانو د، څکه کنایات چې ذکر شي مطلق په بحث د مبنیات کې نو دوی اراده کوی د هغې نه بعض معین چې دغه الفاظ اربعه دی د دې وجې نه مصنف بعض الکنایات ونه ویل لکه چې ویلي یې دی بعض الظروف څکه الکنایات کې الف لام عهد خارجي دی مراد د دې نه بعض معین دی نو اصطلاح د دوی په باب د مبنیات کې قائمه شوې ده په مقام د بعض باندې نو په دې سره بل اعتراض هم دفع شو

**سوال:** هر کله چې کل کنایات د قبیلې د مبنیات نه نهٔ دی بلکه بعض د قبیلې د مبنیات نه دی نو بعض الکنایات یې ولې ونه ویل لکه چې بعض الظروف یې ویلی دی؟

**جواب:** (۱) هر کله چې اکثر کنایات د قبیلې د مبنیات نه وو او بعض د قبیلې د معربات نه وو نو کنایات یې مطلق وګرځول د قبیلې د مبنیات نه مجازاً لان للاکثر حکم الکل په خلاف د ظروف نه چې هغه اکثر دقبیلې د معربات نه وو او بعض د قبیلې د مبنیات نه دی نو هغه یې مطلقاً د قبیلې د مبنیات نه نهٔ شو ګرځولې نه حقیقتاً او نه مجازاً

(۲) کنایات چې مطلق ذکر شي په بحث د مبنیات کې نو مراد ترې بعض معین وی چې دغه الفاظ اربعه دی نو دا اصطلاح د دوی قائمه شوې ده په مقام د بعض باندې

**سوال:** مصنف د کنایات تعریف ولې ونه کړو؟ **جواب:** هر کله چې د کنایات نه بعض کنایات مراد وو نه کل او د دې بعض کنایات لپاره تعریف جامعه مشتر که نه وو موجود چې هغه شامل شوی وی فقط دغه الفاظ اربعه لره نه نورو لره نو مصنف تعریف ونه کړو

کنایات جمع د کنایه ده او کنایة په اصطلاح د اصولینو کې ما استتر مراده ته وائي یعنی کنایه عند الاصولین نوم دی د لفظ لپاره چې د هغه معنی مراده واضح نه وی دا راځي متقابل د صریح (۲) او کنایه په اصطلاح د علماؤ د علم بلاغة کې (۱) ذکر د لازم او مراد ترینه ملزوم دی، عند السکاکی (۲) یا ذکر د ملزوم او مراد ترینه لازم دی عند صاحب تلخیص المفتاح. دا راځي مقابل د حقیقت او مجاز کې (۳) او کنایه په لغت کې او په اصطلاح د نحویانو کې تعبیر کول د متکلم دی د یو مسمی معین نه په داسې لفظ سره چې هغه نه وي صریح الدلالة په دغه مسمی معین باندې لکه نه جاني فلان ووائي او مراد ستا د فلان نه زید وی نو دی متکلم تعبیر وکړو د مسمی معین نه چې زید دی په داسې لفظ سره چې هغه نه وی صریح الدلالت په دې مسمی معین باندې. دا راځي مقابل د تصریح کې

**سوال:** للعدد جار مجرور په ترکیب کې څه واقع شوی دی؟ **جواب:** دا په اعتبار د متعلق محذوف سره صفت دی د کم او کذا لپاره فیکون التقدیر کم وکذا الکائنتان للعدد، او عدد دوه قسمه دی (۱) یو عدد مبهم دی (۲) بل عدد صریح دی څکه دا عدد به خالي نه وي یا به معلوم الکمیت وی او یا به نه وي که معلوم الکمیت وو نو هغې ته عدد صریح وائي د هغې لپاره اسماء عدد وضع شوی دی لکه واحد اثنان الخ شو او که معلوم الکمیت نه وو نو هغه ته عدد مبهم وائي او د هغه لپاره وضع شوی دی کم او کذا. او دا کم او کذا عبارتا راځي کنایه د عدد نه او کله کله راځي کنایه د غیر عدد نه هم نحو څخ حت یوم کذا. دا کنایه ده د یوم. انسبت نه یا د بلې ورځې نه

**سوال:** اصل په اسماؤ کي اعراب دی نو کم او کذا او کیت او ذیت ولي مبني شو؟
**جواب:** (۱) کم دوه قسمه دی (۱) خبریه (۲) استفهامیه. کم استفهامیه مبني دی ځکه دا متضمن دی معنی د حرف استفهام لره او کم خبری محمول دی په کم استفهامی باندې (۲) کم مطلقا مبني دی ځکه چې مشابه دی د حرف سره په وضع ثنائي کې (۳) کم خبری محمول دی په رب باندې حمل النقیض علی النقیض ځکه رب راځي د انشاء د تقلیل لپاره او کم راځي د انشاء د تکثیر لپاره نو ځکه مبني دی او **کذا** مرکب دی د ذا اسم شاره او کاف تشبیهی نه او ګرځیدلي دی مجموعه په منزله د کلمه واحده باندې په معنی د کم سره او باقي باتي شوی دی په بنا اصلی خپله باندې او کیت او ذیت ځکه مبني دی چې هر واحد د دې دواړو نه واقع شوی دی په مقام د جمله کې او جمله من حیث انها جمله نه مستحق د اعراب ده او نه مستحق د بناء ده هر کله چې واقع شو مفرد په موضع د جمله کې او مفرد خالي نه وی د اعراب او بناء نه پس ترجیح ورکړې شوه بناء لره په اعراب باندې ځکه چې بناء اصل ده په کلمات کې قبل الترکیب
**سوال:** بعض د کنایات مبنیو نه کأین دی هغه یې ولې ذکر نه کړو؟
**جواب:** هر کله چې مرتبه د کأین ښکته وه په بناء کې د خپلو اخوات نه ځکه دا مرکب دی د کاف تشبیهي او د ای موصوله معربه نه لیکن پس د ترکیب نه دا مجموعه ګرځیدلې ده په منزله د کلمه واحده باندې په معنی د کم خبری سره نو دا معرب دی په اعتبار د اصل سره او مبني دی فی الحال او کذا مبني دی هم په اعتبار د اصل سره او هم فی الحال نو مرتبه د کأین ښکته شوه په بناء کې مرتبه د کذا نه ځکه مصنف ذکر نه کړو کاین لره په دې باب کې او کذا په معنی د کم خبری سره راځي دائما او کأین غالبا په معنی د کم خبری سره راځي او کله کله په معنی د کم استفهامی سره راځي کما فی قول ابی بن کعب لابن مسعود کأین تقرأ سورة الاحزاب ایة فقال ثلاثا وسبعین.
**فکم الاستفهامیة ممیزها منصوب مفرد: ربط:** هر کله چې فارغ شو د بیان د کنایات مبنیو نه نو شروع یې وکړه په بیان د احکامو د کنایات مبنیو کې نو وی ویل چې **فکم الاستفهامیة الخ.**
**ترجمه:** پس کلمه د کم داسې کم چې متضمن دی معنی د استفهام لره، یا دلالت کوی په معنی د استفهام باندې **ممیزها** تمیز د دې کم چې هغه رفع د ابهام کوی د جنس مسئول عنه نه **منصوب** منصوب راځي په اعتبار د اعراب سره **مفرد** او مفرد به وی په اعتبار د صیغی سره ځکه کم استفهامیه کنایه ده د مطلق عدد نه پس ورکړې شو دا لره تمیز د عدد اوسط (۱) ځکه خیر الامور اوسطها (۲) او بل لپاره د دې چې لازم نه شي ترجیح بلامرجح مثال لکه کم رجلا ضربت شو.
**ترکیب:** **کم** موصوف **الاستفهامیة** صفت، موصوف سره د صفت نه مبتدا اول، **ممیزها** مبتدا ثانی، **منصوب** خبر اول د مبتدا ثانی او **مفرد** خبر ثانی د مبتدا ثانی، مبتدا سره د خبر ینو نه جمله اسمیه خبر دمبتدا اول، مبتدا سره د خبر نه جمله اسمیه خبریه.

تشریح: سوال: کم موصوف دی الاستفهامیة ورله صفت دی نو مطابقت راتغلو په مینځ د موصوف او صفت کې ځکه چې کم مذکر دی او الاستفهامیة مؤنث دی او بل دا چې کم نکره ده ځکه اقسام د معرفه اوه دی او دا یو د هغې نه نهٔ دی او صفت یې معرفه ده؟

جواب: دا کم په دې مقام کې مراد اللفظ علم دی د هغه کم لپاره چې هغه واقع کیږي په تراکیب کې نو معرفه بالعلم شوه ځکه یې ورله توصیف کړی دی په معرفه سره او دا په تاویل د کلمة سره مؤنث دی ځکه یې صفت مؤنث واقع شوی دی.

سوال: الاستفهامیة منسوب بسوی استفهام دی او په مینځ د منسوب او منسوب الیه کې لابدي وی د علاقې نه دلته علامه څه ده؟ جواب: دلته علاقه د تضمن ده په دې شان سره چې دا کم متضمن دی معنی د استفهام لره یا علاقه د دلالت ده چې دا کم دلالت کوی په استفهام باندې نو یا نسبت د متضمن راغلي دی متضمن ته، یا نسبت د دال راغلي دی مدلول ته

سوال: ممیزها ضمیر راجع دی کم او کم تمیز نه غواړي ځکه تمیز راځي د رفع د ابهام لپاره او په کم کې ابهام نشته نه په اعتبار د مادې سره او نه په اعتبار د معنی سره ځکه معنی د کم عدد دی او هغې کې ابهام نشته؟ جواب: اضافت د ممیز دی کم ته شوی دی د ادنی مناسبت د وجې نه په دې شان سره چې دا تمیز رفع د ابهام د جنس مسئول عنه دکم دی.

سوال: تمیز د کم استفهامیه مفرد منصوب ولې راځي؟ جواب: ځکه چې کم استفهامیه کنایه ده د مطلق عدد نه او مطلق عدد درې قسمه دی (۱) عدد اقل (۲) اوسط (۳) اکثر، نو موږ دی کم لره تمیز د عدد اوسط ورکړو ځکه چې خیر الامور اوسطها (۲) او بل لپاره د دې چې لازم نه شي ترجیح بلامرجیح ځکه که موږه تمیز دعدد اقل ورکړي وی نو عدد اکثر به ویل چې زما تمیز مو ورله ولې ورنکړو وکذا بالعکس نو د هغو په مینځ کې جګړه راتله نو د جګړې د ختمولو لپاره دوی تمیز د عدد اوسط ورکړو ځکه چې دا د عدد اوسط سره جګړه نه کوی ځکه هغه دی دواړو ته یو شان دی والخبریة او تمیز د کم خبریه چې په هغه سره اخبار کوی متکلم مخاطب ته مجرور مجرور راځي په اعتبار د اعراب سره د وجې د اضافت نه مفرد او مفرد راځي په اعتبار د صیغې سره نحو کم رجل عندي ومجموع او کله کله جمع راځي په اعتبار د صیغې سره لکه کم رجالٍ عندي ځکه کم خبری کنایه راځي د عدد اکثر نه او تمیز د عدد اکثر مفرد مجرور راځي نو تمیز د کم هم مفرد مجرور راځي او هر چې دی جمع نو لپاره د دې چې دا جبیره وګرځي د مافات چې هغه تصریح ده په جمعیت د عدد باندې

سوال: نه وائي چې والخبریة یعنی کم خبریه مجرور مفرد راځي او جمع راځي نو کم رجل عندي کې خو دا کم مجرور نه دی بلکه مرفوع دی بنابر ابتدائیت او کم خبریه جمع هم نه راځي؟

جواب: دا عبارت په حذف د مضاف سره دی تقدیر دعبارت دا رنګې دی ای وممیز کم الخبریة مجرور الخ، او تمیز د کذا مفرد منصوب راځي دائماً، او تمیز د کائن مجرور راځي په دخول د من سره غالبا نحو قوله تعالی ﴿ وَكَأَيِّن مِّن نَّبِيٍّ قَاتَلَ مَعَهُ رِبِّيُّونَ ﴾، او کله کله مفرد منصوب راځي نحو

کاين رجلا لقيت، وتدخل من فيها او دا خليږي من بيانيه په تميز د کم خبريه او د استفهاميه دواړو
باندې نحو کم من رجل ضربت ﴿ وَكَم مِّن قَرْيَةٍ أَهْلَكْنَاهَا ﴾
سوال: شارح رضي ويلي دي چې دخول د من په تميز د کم خبري کې کثير دی خکه دا مناسب دی
جر د مميز مضاف اليه د کم خبری سره او تميز د کم استفهاميه محرور په من سره زه نه يم عالم
سري نه په نظم کې او نه په نثر کې او نه دلالت کوي په جواز د ده باندې يو کتاب د کتابونو د علم
نحوی نه؟ جواب: جار الله زمخشري ويلي دي چې کم په دې قول د الله تعالى کې چې ﴿ سَلْ بَنِي إِسْرَائِيلَ
كَمْ آتَيْنَاهُم مِّنْ آيَةٍ بَيِّنَةٍ ﴾ محتمل د احتمالين دی (۱) دا احتمال هم لري کم استفهاميه دی او دا احتمال
هم لري چې دا کم خبری شي او دا من داخل شوی دی په تميز د دې باندې او قول د جار الله زمخشري
سند دی په علم نحوه کې نو خکه مصنف وويل چې وتدخل من فيهما، او که فصل نه وو راغلي په
مينځ د کم او تميز د دې کم کې په فعل متعدي سره نو دخول د من په تميز د دې کې جائز دی او که
فصل راغلي وو په فعل متعدي سره نو بيا دخول د من واجب دی په تميز د کم باندې لپاره د دې چې
لازم نه شي التباس په مينځ د تميز د کم او د مفعول نه د فعل متعدي کې نحو قوله تعالى ﴿ سَلْ بَنِي
إِسْرَائِيلَ كَمْ آتَيْنَاهُم مِّنْ آيَةٍ بَيِّنَةٍ ﴾

**ترکيب**: کم خبريه يا استفهاميه بنا په قول د جار الله زمخشری باندې مِّنْ آيَةٍ بَيِّنَةٍ تميز دی د کم
لپاره زيادة من. مبهم مميز سره د تميز نه مفعول ثاني دی د اتينا لپاره او هم مفعول اول دی.
فعل سره د فاعل او سره د مفعولين نه جمله فعليه انشائيه
(۱) منصوب محلا بنا بر مفعول مطلق د سل لپاره په تاويل د هذا السوال سره
(۲) يا منصوب محلا بنابر مفعول به د سل لپاره په تاويل د جواب هذا السوال سره اى سل بنی
اسرائيل جواب هذا السوال
(۳) يا منصوب دی بنابر حاليت په تاويل د قائلا هذا السوال سره
سوال: (۱) تدخل فعل دی من ورله فاعل دی او په فاعل کې خو لاندې ده د اسميت نه او من خو
حرف دی او حرف په ترکيب کې فاعل نه واقع کيږي (۲) من مذکر دی خکه علامه د تانيث پکې
نشته او د فعل اسناد چې وشي مذکر ته نو تذکير د فعل واجب دی نو دلته دا فعل ولې مؤنث
شوی دی؟ جواب: من په دې مقام کې مراد اللفظ علم دی د هغه من لپاره چې واقع کيږي په تراکيبو
کې نو دا معرفه بالعلم دی خکه په ترکيب کې فاعل واقع شوی دی او په تاويل د کلمة سره مؤنث
دی خکه دا فعل مؤنث شوی دی

**بس زده کړه** دا خبره چې من درې قسمه دی (۱) حرفي نحو سرت من البصر الى الکوفة.
(۲) فعلي چې دا صيغه د واحد مذکر امر حاضر معلوم ده د مان يمين ميناته په معنی د کذب سره
(۳) اسمی نحو من حرف جر او بل مثال د من اسمی لکه وتدخل من فيهما شو

سوال: نه وائي چې داخليږي من په كم خبرى او استفهامى باندې او د دې لپاره مثال ذكر كوى چې كم من رجل ضرب دا مثال مطابق نه شو د ممثل سره څكه كم من رجل كې دا من په كم باندې نه دى داخل شوى بلكه په تميز د كم باندې داخل شوى دى؟

جواب: دا عبارت په حذف د مضاف سره دى اى تدخل من فى مميزهما ، **ولهماصدر الكلام** او ثابت دى خاص د كم استفهاميه او كم خبريه لپاره اوليت د كلام نه د كذا او كيت او ذيت لپاره د دې لپاره چې دلالت وكړي په نوعيت د كلام باندې د اول وهلت نه څكه كم استفهاميه متضمن دى معنى د استفهام لره او كم خبريه متضمن دى معنى د انشاء لره په تكثير كې او دا دواړه د نوع د انشاء نه دى اوس كله چې متكلم دا ذكر كړي د كلام په اول سر كې نو سامع او مخاطب ته پته ولګي د اول وهلت نه چې دا كلام انشائي دى نه خبري

سوال: نه وائي چې كم خبريه د انشاء د تكثير لپاره راځي والحال ان الخبر والانشاء متبائنان نو دا خو اجتماع د متبائينن راغله؟ **جواب:** خبريه ورته هم وايو او انشاء ورته هم وايو په اعتبار د جهتين مختلفين سره مثلاً كم رجل ضربت اخبار دى په ضرب كثير سره د رجال نه او انشاء ده استكثار د ضرب لپاره ولهذا يقال له كذبت ماضربت كثيرا من الرجال ولايقال له كذبت استكثرت الضرب او دارنګې ثابت دى صدارت د كلام كاين لره هم، نو د كم خبريه او استفهاميه او كاين لپاره صدارت د كلام ثابت دى بخلاف كذا او كيت و ذيت. **وكلاهما يقع مرفوعا و منصوبا و مجرورا** دا جواب د سوال دى

سوال: دا دى چې دا كم خو د قبيلې د مبنيات نه دى اوس اعراب محلى د دې څه شي دى نو مصنف

جواب: وكړو چې **وكلاهما** دا دواړه نوعين چې كم خبريه او استفهاميه دى **يقع** واقع كيږي هر واحد د دې خبريه او استفهاميه نه مرفوع او منصوب او مجرور په طريقه د بدليت سره

سوال: هما ضمير راجع دى كم خبريه او استفهاميه ته او هغه دواړه مؤنث دى لهذا كلتاهما وئيل پكار وو نو مصنف كلاهما ولې ووئيل؟ **جواب:** دا كلا يې اوى څكه چې دا په تاويل د نوعين سره مذكر دى اى وكلا النوعين مرفوعا ومنصوبا و مجروراً

سوال: يقع كې ضمير مستتر دى چې تعبير ترې كولې شي په هو سره هغه راجع دى دى نوعين ته نو مطابقت رانغي بين الراجع والمرجع؟

جواب: ضمير د يقع راجع دى كم استفهاميه او خبريه ته په تاويل د كل واحد سره.

سوال: جمع په حرف جمع سره په شان د د جمع ده په لفظ د جمع سره نو د دې معنى دا شوه چې كم استفهاميه او خبريه مرفوع منصوب او مجرور درې واړه واقع كيږي په يوځل او دا باطله ده څكه چې درې واړه اعراب په يوه كلمه كې نه شي راتلې؟ **جواب:** دا اعتراض به هله وارديدو چې دلته د واو په خپله معنى وى ليكن دلته دا واو په معنى د او سره دى

سوال: بل ځاى ماته مثال وښايه چې واو په معنى د او سره راغلې وى؟

جواب: واو بمعنى او راغلې دى فى قوله تعالى فانكحوا ماطاب لكم من النساء مثنى وثلث ورباع

**سوال**: یقع فعل لازم دی عمل د نصب بنابر مفعول به نه کوي نو په مرفوعا کې یې عمل د نصب بنابر مفعول به څنګه کړی دی؟

**جواب**: (۱) مرفوعا منصوب بنابر مفعول به نه دی بلکه منصوب دی بنا بر حالیت (۲) یا منصوب دی بنابر خبریت د یقع لپاره ځکه یقع فعل دی د افعال ناقصه غیر مشهورو نه ضمیر مستتر اسم دی او مرفوعا یې خبر دی (۳) یا مرفوعاً منصوب دی بنابر مفعول به لیکن یقع دوه قسمه (۱) یو هغه دی چې مشتق دی د وقوعا نه هغه لازم دی او بل هغه دی چې مشتق دی د وقعا نه متعدي دی او دلته دا یقع مشتق دی د وقعا نه

**سوال**: یقع مضارع د وقع ده مثال واوی دی او دا واو فاء کلمه به دي مضارع کې هله حذف کیږي چې واقع شي په مینځ د یا مفتوحه او کسره کې لکه یعد شو او دلته نده واقع بین الیاء والکسرة ولې حذف شویده؟ **جواب**: یقع اصل کې یوقع وو واو حذف شو بین الیاء والکسر واو حذف شو بیا کسره د قاف بدله شوه په فتحې باندي نو یقع شو

**فکل ما بعده فعل غیر مشتغل عنه بضمیره**: **ربط**: هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د اعراب محلی کم خبری او استفهامیه نه اجمالاً نو شروع یې وکړه په مواضع د رفع نصب جر کې نو وی ویل فکل ما بعده او فاء په فکل ما بعده کې تفصیلیه ده

**ترجمه**: **فکل ما** هر هغه کم **بعده فعل** چې وروستو د دي کم نه فعل راغلی وو یا شبه فعل راغلي وو داسي فعل او شبه فعل **غیرمشتغل** چې نه وو فارغ او اعراض کوونکی **عنه** د عمل کولو نه په کم کې **بضمیره** په سبب د عمل کولو د دي فعل په ضمیر د کم یا متعلق د ضمیر کم کې **کان منصوبا** کیږي دغه کم منصوب وجوباً **معمولا علی حسبه** معمول موافق د عمل د دي فعل سره په دي شان سره که فعل عمل د نصب کول بنابر مفعول به نو دا به منصوب وی بنابر مفعول به نحو کم رجلا ضربت وکم رجل ضربت او که فعل عمل د نصب کولو بنابر مفعول فیه نو دا به منصوب محلا وی بنابر مفعول فیه نحو کم یوما صمت وکم یوم صمتُ، او که فعل عمل د نصب کولو بنابر مفعول مطلق نو دا به منصوب محلا وی بنابر مفعول مطلق نحو کم ضربة ضربت او کون د کم مفعول به یا مفعول فیه یا مفعول مطلق دا به معلوموی د تمیز نه په دي شان سره چې که تمیز صالح وو لپاره د مفعول به نو دیته به مفعول به وائي او که تمیز صالح وو د مفعول فیه نو دیته به مفعول به وائي، او که تمیز صالح وو د مفعول فیه نو دیته به مفعول فیه وائي او که تمیز صالح وو د مفعول مطلق نو دیته به مفعول مطلق وائي

شیخ رضی د علی حسبه داسې ترجمه کوی چې موافق د اقتضاء د فعل. او جامی صاحب داسې ترجمه کوی چې موافق د عمل د فعل په دې کې یې رد وکړو په شیخ رضی باندې ځکه اقتضاء عبارت دی د صلاحیت نه او د عمل بالقوه د فعل نه او عمل عبارت دی د عمل بالفعل نه او د شیخ رضی په ترجمه باندې دا اعتراض دی چې کم رجلا ضربت کې دا امکان شته دی چې ضربت نصب ورکړي کم لره بنابر مفعول به یا بنابر مفعول فیه یا بنابر مفعول مطلق ځکه فعل صالح دی چې عمل د دري وارو اقسامو د نصب وکړي حالانکه دغه دري واړه دلته نه جوړیږي او د جامی صاحب به

ترجمه باندې اعتراض نه واردیږي، او د کم نه وروستو فعل چې راشي غیر مشتغل بالضمیر نو کم منصوب محلاً راځي او د نصب صورتونه دري دی مفعول به، مفعول فیه، مفعول مطلق، او دا به معلومیږي د تمیز نه په دې شان سره چې تمیز د کم به خالي نه وي یا به ظرف زمان او مکان وي او یا به نه وي که ظرف زمان یا مکان وو نو دا به منصوب محلا وي بنابر مفعول فیه نحو کم یوما سفرت او که دا تمیز ظرف زمان یا مکان نه وو نو بیا به خالي نه وي یا به مصدر د فعل مذکور وي او یا به نه وي که مصدر د فعل مذکور وو نو دا به منصوب محلا وي بنابر مفعول مطلق نحو کم ضربة ضربت او که دا تمیز مصدر نه وو نو منصوب محلا به وي بنابر مفعول به نحو کم رجلا ضربت.

**وكل ما قبله حرف جر او مضاف:** او هر هغه کم چې مخکې د دې نه حرف جر راغلي وي نحو بکم درهما اشتریت، **او مضاف** یا مضاف راغلي وو نحو غلام کم رجل اشتریت **فمجرور** نو دغه کم به مجرور راځي محلاً ځکه حرف جر چې داخل شي په اسم باندې نو اسم لره جر روکوي لفظاً یا تقدیرا یا محلا او دلته دا مجرور دی محلاً، او مضاف الیه هم مجرور راځي لفظاً یا تقدیرا یا محلاً او دلته مجرور محلا دی

**سوال:** وکل ما قبله حرف جر مبتدا ده او فمجرور ورله خبر دی او دا فاء جزائیه ده او فاء جزائیه راځي په جزاء د شرط کې دلته په خبر کې ولې راغلي ده؟ **جواب:** مبتدا چې متضمن شي معنی د حرف شرط لره د هغې په خبر کې فاء جزائیه راځي ځکه دلته فاء جزائیه راغلي ده.

**سوال:** مبتداء چې متضمن کیږي معنی د حرف شرط لره د هغې صورتونه دوه دي چې هغه ذکر کړی دی مصنف په دې عبارت سره وذلك الاسم الموصول بفعل او ظرف اوالنكرة الموصوفة بهما او دلته دا مبتدا نه اسم موصول دی او نه نکره موصوفه بهما ده؟ **جواب:** مبتدا دلته نکره موصوفه بظرف ده په شان د کل رجل فی الدار فله درهم باندې. سوال. لکه څنګه چې دلته دا مبتدا متضمنه ده معنی د حرف شرط لره نو دارنګې په فکل مابعده فعل الخ کې هم متضمن ده معنی د حرف شرط لره او د هغې په خبر کې خو فاء نده راغلي چې کان منصوبا الخ دی؟

**جواب:** مبتدا چې متضمن شي معنی د حرف شرط لره نو د هغې په خبر کې فاء جزائیه راوړل لازم دی په دې شرط سره چې خبر د دې مبتدا فعل ماضي متصرف خالي د قد نه لفظا یا معنا الخ نه وي او که خبر د دې ماضي متصرف وي خالي وي د قد نه لفظاً او معناً او په مقام د دعا کې نه وي مستعمل شوی نو هلته فاء راوړل نه دی جائز.

**سوال:** ته وائي چې د کم نه مخکې چې حرف جر یا مضاف راشي نو دا به مجرور وي محلا حالانکه د کم نه مخکې چې حرف جر یا مضاف راشي نو بیا صدارت د کم فوت شو او تا خو مخکې ویلي وو چې ولهما صدر الکلام؟ **جواب:** تسلیمی منم چې صدارت د کم فوت شوی دی لیکن دا د وجې د ضرورت نه ځکه چې تقدیم د مجرور رانه شي په جار باندې ځکه چې تقدیم د مجرور په جار باندې نه دی جائز. (٢): منعي نه منم چې صدرات د کم فوت شوی دی په تقدیم د جار سره ځکه چې دا د وجې د شدت اتصال نه مجموعه ګرځیدلي دی په حکم د کلمه واحده کې په تقدیم د یو سره صدارت نه

فوت کیږي، **والا** او که چرې د دې کم نه مخکې حرف جر او مضاف نه وو او نه وو وروستو د کم عامل ناصبه متوجه الى الكم، صورتونه د هغې دوه دي، یا د سره ناصب نشته، یا ناصب متوجه الى الكم ندی، **فمرفوع مبتداء الخ** نو دغه کم به مرفوع وی او مبتداء به وی په دې شرط نه وي تمیز د دې ظرف زمان یا مکان نحو کم رجلا اخوتك، کم مبهم ممیز او رجلا ورله تمیز ممیز سره د تمیز نه مرفوع محلا مبتدا او اخوتك ورله خبر دی عند السیبویه او دا مذهب عند المصنف دی (۲) بالعکس دی عند الجمهور دا مثال د هغه کم دی چې د دې نه وروستو ناصب نشته او مثال د هغه کم چې مخکې د هغې نه حرف جر یا مضاف نه وی او وروستو د هغه ناصب وی خو متوجه الى الكم نه وی لکه کم رجلا ضربته شو په دې کې دوه ترکیبونه دی (۱) کم مبهم ممیز او رجلا ورله تمیز دی ممیز سره د تمیز نه مبتداء ده او ضربته جمله ورله خبر دی (۲) کم مبهم ممیز او رجلاً ورله تمیز دی ممیز سره د تمیز نه منصوب محلاً مفعول به د فعل مقدر وجوبا چې ضربت دی او دا مابعد فعل د هغې لپاره مفسر دی، **وخبران كان ظرفا** او دا کم به مرفوع محلا وی بنابر خبریت که تمیز د دې ظرف زمان یا ظرف مکان وو نحو کم یوماً سفرك کم مبهم ممیز او یوماً ورله تمیز دی ممیز سره د تمیز نه خبر مقدم او سفرك مبتدا مؤخره ده.

**سوال:** ته وائي چې کم مرفوع محلا راځي بنابر ابتدائیت په دې شرط چې تمیز یې ظرف نه وو او که تمیز یې ظرف وو نو مرفوع محلا راځي بنابر خبریت دا قاعده ستا منقوضه شوه په کم یوماً مدة سفرك سره چې دلته کم مبهم ممیز دی او یوما ورله تمیز دې دا مبتداء او مدة سفرك ورله خبر دی باوجود د دینه چې تمیز د کم ظرف زمان راغلي دی؟

**جواب:** دا قاعده په هغه ځای کې ده چې د دې تمیز د کم ظرف زمان یا مکان نه وروستو بل یو اسم موجود وو چې هغه صالح لپاره د ابتدائیت وو او دلته د تمیز د کم نه وروستو چې دا کوم اسم راغلي دی دا صالح لپاره د ابتدائیت نه دی ځکه دا ظرف دی.

**سوال:** د ظرف او جار مجرور نه مبتدا ولې نه جوړیږي؟ **جواب:** ځکه چې ظرف او جار مجرور متعلق غواړي او متعلق د دې مقدر دی او مقدر کالمذکور وی او مبتدا مجرد دی د عامل لفظی نه او دا مجرد نه شو ځکه مبتدا نه جوړیږي لیکن دا جواب کمزور دی ځکه لکه ځنګه چې مبتدا مجرد وی د عامل لفظی نه دارنګې خبر هم مجرد وی د عامل لفظی نه بنا په دې خو بیا ظرف او جار مجرور ته خبر هم مه وائي (۲) لهذا اصلی جواب دا دی چې ظرف او جار مجرور په ترکیب کې چې د چا لپاره چې څه واقع کیږي نو په اعتبار د متعلق سره واقع کیږي او متعلق به یا فعل را اوباسي او یا به شبه فعل را اوباسي هر یو چې راوباسي خو د هغې نه خبر جوړیږي مطلقاً، نه مبتداء، ځکه مبتدا اسم وی او معرفه وی، که متعلق فعل راوباسي نو دا جمله ده اسم نه دی او که شبه فعل راوباسي نو دا نکره ده معرفه نده، او کذا په شان د کم دی په صور مذکورو کې لیکن دومره فرق دی چې کذا مرفوع محلاً بنابر

راخي نحو جاءني كذا وكذا رجل دارنګي مرفوع محلاً بنابر نائب فاعل هم راخي نحو اكرم
فاعليت هم راخي نحو جاءني كذا وكذا رجل دارنګي مرفوع محلاً بنابر نائب فاعل هم راخي نحو اكرم كذا وكذا مجتهد، او كائن مرفوع محلاً راخي بنابر ابتدائيت او خبر د دې جمله راخي نه مفرد

**الفرق بين كم وكاين:** (۱). هى مركبة وكم غير مركبة (۲) ضمير ها مجرور بمن نه لنا بخلاف كم (۳) تقع خبرية غالباً وقد يجيئ استفهاميه كما فى قول ابى بن كعب لابن مسعود الخ (۴) لاتقع مجرورة بخلاف كم (۵) خبر ها لايقع مفردا بل جملة بخلاف كم (۲) كاين مرفوع محلاً راخي بنابر ابتدائيت فقط او كم كله منصوب كله مجرور او كله مرفوع راخي

**الفرق بين كم وكذا:** (۱): د كم لپاره ثابت دى صدرات د كلام بخلاف كذا (۲) كم كنايه ده د عدد مبهم نه فقط او په كذا سره كنايه د غير عدد مبهم نه هم كولي شي (۳) كذا كله مرفوع واقع كيږي بنابر فاعليت ونائب فاعليت بخلاف كم (۴) كذا مكرر ذكر كولي شي بخلاف كم (۵) تميز د كذا منصوب راخي او تميز د كم كله مجرور هم راخي (۲) تميز د كذا هميشه مفرد راخي او تميز د كم كله جمله هم راخي

**وكذلك اسماء الاستفهام والشرط:** په شان د كم دى باقي اسماء استفهام او شرط په جريان د وجوه اربعو كې په شرائط مذكورو سره په اعتبار د مجموعي سره په دې شان سره چې مجموعه د دغه وجوه اربعه موجود يږي په دې ټولو اسماء استفهام او شرط كې اګر كه په هر واحد كې نه راځي تشبيه په اعتبار د مجموعي سره ده نه په اعتبار د هر واحد سره.

**تشريح:** كذلك جار مجرور خبر مقدم دى او مشار اليه د ذلك لپاره كم دى اسماء الاستفهام والشرط مبتدا مؤخره ده او كاف د تشبيه لپاره دى ګرځوى مدخول خپل مشبه به لپاره د غير نو كم مشبه به شو اسماء الاستفهام والشرط مشبه شو، ديته تشبيه التسوية وائي په اصطلاح د علماؤ د علم بيان كې څكه دى متكلم برابر كړى دى ډير اشيا په يو مشبه به كې فيكون هذا التشبيه من قبيل قول الشاعر:

صدغ الحبيب وحالي كلاهما كالليالي وثغره في صفاء وأدْمُعي كاللآلي

او وجه د شبه د جريان د وجوه اربعو دى په شرائط مذكورو سره په دې شان سره چې اسماء الاستفهام او اسماء شرط به خالي نه وي يا به د دې نه وروستو فعل راغلي وي او يا به نه وي راغلى كه د دې نه وروستو فعل نه وو راغلي نو بيا به خالي نو يا به د دې نه مخكې حرف جر يا مضاف راغلي وي او يا به نه وي راغلي كه حرف جر راغلي وو يا مضاف راغلي وو نو دا به مجرور محلاً وي او كه د دې نه مخكې حرف جر يا مضاف نه وو راغلي نو بيا دا مرفوع دى بنابر ابتدائيت يا مرفوع راخي بنابر خبريت او كه د دې نه وروستو فعل راغلي وو نو بيا به خالي نه وي يا به مشتغل بالضمير وي او يا به نه وي كه مشتغل بالضمير نه وو دا منصوب محلاً دى على حسب العوامل

**سوال:** نه وائي چې اسماء الاستفهام او شرط په شان د كم دى نو دا كم خو هم استفهامي راخي نو تشبيه د شي لنفسه راغله؟ **جواب:** دلته مراد د اسماء استفهام نه باقي اسماء استفهام دى د كم نه علاوه.

**سوال:** نه وائي چې باقي اسماء استفهام او اسماء شرط په شان د كم دى او كم شرطى نه راخي نو ته څنګه وائي چې اسماء شرط په شان د كم دى او كم خبرى او استفهامي دواړه راخي او باقي اسماء استفهام خبرى نه راخي نو ته څنګه وائي چې باقي اسماء د استفهام په شان د كم دى؟

**جواب:** دا اعتراض به ستا هله وارديدو چې وجه د شبه په دې مقام کې خبريت او استفهاميت
ليکن وجه د شبه په دې مقام کې خبريت او استفهاميت نه دی بلکه وجه د شبه په دې مقام کې
وجوه اربعه اعرابيه دی په دې شان سره چې اسماء شرط او باقي اسماء استفهام په شان د کم دی په
جريان د وجوه اربعو کې په شرائط مذکورو سره؟
**سوال:** تشبيه د اسماء شرط او باقي اسماء استفهام د کم سره په وجوه اربعو کې هم نده صحيح ځکه
چې دا وجوه اربعه په اسماء شرط او باقي اسماء استفهام کې فقط په لفظ د ای کې راځي نه په
نورو کې؟ **جواب:** نسبت د يو حکم چې وشي مجموعی ته نو دا لازمه نده چې دا حکم دی ثابت شي
هر واحده لره، او دلته دا تشبيه په اعتبار د مجموعی سره ده نه په اعتبار د هر واحد سره
**سوال:** اسماء استفهام او اسماء شرط څومره دی او کوم کوم دی؟ **جواب:** يو حروف استفهام دی او بل
اسماء استفهام دی حروف استفهام دوه دی (۱) همزه (۲) هل. او اسماء استفهام نهه دی.

کم ما ای من متی
این انی ایان کیف

او دارنګې يو حروف شرط دی او بل اسماء شرط دی حروف شرط مشهور درې دی (۱) ان (۲) لو
(۳) اما. او اسماء شرط مشهور نهه دی کما فی قول الشاعر!

من وما مهما وای حیثما اذ ما متی
اینما انی نه اسم جازمند مرفعل را

او غير مشهور درې دی، اذاما، کيفما، لما
بيا دا اسماء شرط او اسماء استفهام باعتبار الذات درې قسمه دی (۱) يو هغه دی چې مشترک
دی بين الاستفهام والشرط دا شپږ دی، من، وما، وای، واين، وانی، ومتی
(۲): دويم قسم هغه دی چې مختص دی په شرط پورې او دا صرف يو دی چې اذا دی
(۳): دريم قسمه هغه دی چې مختص دی په استفهام پورې او دا دوه دی چې کيف، او ايان دی.
**وجه د حصر:** دا ده چې دا اسماء استفهام او شرط به خالي نه وي يا به ظرف وی او يا به نه وي که
ظرف وو نو بيا به خالي نه وي يا به متضمن وی معنی د استفهام او شرط لره او يا به نه وي که
متضمن وو معنی د استفهام او شرط لره نو جاری کيږي په دې کې وجو ثلاثه
(۱): جر د وجی د دخول د حرف جر نه نحو من اين انت (۲): نصب بنابر مفعول فيه نحو اين جلست
(۳): رفع بنابر خبريت نحو اين زيد او رفع بنابر ابتدائيت پکې نه راځي ځکه رفع بنابر ابتدائيت
مختص ده په غير ظرف پورې او دا ظرف دی او ظرف مبتداء نه واقع کيږي او که متضمن وو معنی
د حرف شرط لره نو په دې کې دوه وجی روا دی (۱) جر (۲) نصب. اما رفع بنابر ابتدائيت نه راځي
او که ظرف نه وو نو بيا جاری کيږي وجوه اربعه په دې لفظ د ای کې او په نورو کې جاري کيږي
وجوه ثلاثه، رفع بنابر خبريت نه راځي ځکه دا مختص ده په ظرف پورې
**وفی مثل کم عمة لك يا جرير و خالة ثلاثة اوجه: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د کم نه چې هغه
محتمل د احتمال واحد وو چې کم خبريه دی يا کم استفهاميه دی نو شروع يې وکړه په بيان د هغه کم

کې چې محتمل د احتمالين دی په دې شان سره چې دا احتمال يکې هم شته دی چې دا کم استفهاميه دی او دا احتمال هم شته دی چې دا کم خبريه دی او نسخې د کافيه دوه قسمه دی (۱) يو مشهوره ده او (۲) دويم غير مشهوره ده، مشهوره نسخه د کافيه دا ده چې وفی مثل کم عمة لك يا جرير و خالة ثلاثة اوجه، يعنی په مثل د کم عمة کې درې وجی روا دی، په کم کې يا په تميز د کم کې او غير مشهوره نسخه د کافيه دا ده چې چه وفی مثل تميز کم عمة لك يا جريرو خالة ثلاثة اوجه، په مثل د تميز د کم کې درې وجی روا دی په مشهور نسخه کې ثلاثة اوجه محتمل د احتمالين دی (۱) يو احتمال يکې دا دی چې درې وجی روا دی په دې کم کې (۱) رفع بنابر ابتدائيت (۲) نصب بنابر مفعول مطلق (۳) نصب بنابر مفعول فيه (۲): او دا احتمال هم شته چې دا درې وجوه ته معتبر کړي په تميز د کم کې چې هغه عمة دی (۱) رفع بنابر ابتدائيت (۲) نصب بنا په دې چې تميز شي د کم استفهامی لپاره (۳) جر بنابر تميز د کم خبريه لپاره ځکه چې دا کم په دې شعر کې محتمل د احتمالين دی دا احتمال هم لري چې دا کم استفهاميه دی او عمة ورله تميز دی او دا احتمال هم لري چې دا کم خبريه دی او عمة ورله تميز واقع شوی دی (۳): او دا احتمال هم لري چې کم استفهاميه يا خبريه دی او تميز د دې حذف شوی دی چې مرةً يا حلبةً دی او دا عمة مرفوع دی بنابر ابتدائيت او دا شعر د فرزدق دی او مقصد د فرزدق په دې شعر کې هجوه د جرير ده او دا مذکور فی المتن اول نيم بيتی دی او دويم نيم بيتی دا دی چې فدعاء حلبت علي عشاری، فدعاء ويلي کيږي منقلبه الکفين او الرجلين ته.

**ترکيب:** کم استفهاميه عمة تميز دی يا کم خبريه او عمة تميز مضاف اليه موصوف لك جار مجرور صفت دی د عمة لپاره که عمة منصوب شي نو خالةً منصوب دی بنابر عطف او که عمة مجرور شي نو خالة هم مجرور وو بنابر عطف، فدعاء صفت د عمة او خالة لپاره دی، نو که عمة او خالة منصوب شي نو فدعاء منصوب بالفتحه دی او که عمة و خالة مجرور شي نو فدعاء مجرور بالفتحه دی ځکه غير منصرف دی د وجی د وجود د الف علامه د تانيث نه، يا جرير جمله معترضه ده، موصوف سره د صفتين نه تميز دی لپاره د کم، مبهم مميز سره د تميز نه مرفوع محلاً بنابر ابتدائيت قد حلبت علي عشاری جمله فعليه خبر لپاره د مبتداء مبتدا مع الخبر جمله اسميه انشائيه.

(۲): کم استفهاميه يا خبريه مبهم مميز او تميز د دې حذف شوی دی مرة يا مرة مبهم مميز سره د تميز نه منصوب محلاً بنابر مفعول فيه وروستو د حلبت لپاره او دا جمله فعليه خبر واقع شوی دی د مبتداء لپاره چې عمة لك دی ځکه بيا دا عمة مرفوع دی بنابر ابتدائيت او نکره مخصص ده تخصيص يې راغلي دی په صفت سره چې هغه لك او فدعاء دی.

(۳): کم استفهاميه يا خبريه او تميز د دې حذف شوی دی چې حلبة يا حلبة دی مبهم مميز سره د تميز نه منصوب محلاً بنابر مفعول مطلق د وروستو حلبت لپاره بيا د جمله فعليه خبر د مبتداء چې عمة لك دی مبتداء سره د خبر خپل نه جمله خبريه اسميه.

**ترجمه:** چې كم خبريه شي نو بيا ترجمه دا ده چې ډيرې د تروړانو ستا نه اې جريره او ډيرې د ماسيګانو ستانه داسې تروړاني او ماسيګانې چې لاسونه او خپې د هغوى كږې شوى وى (١) خلقة (٢) يا د وجې د خدمت زمونږ نه په تحقيق سره لشلي يې دى زما لپاره د لسو مياشتو زاړې اوښانو لره دا بنا دى په حقيقت باندې.

(٢): او كه كم استفهاميه شي نو بيا معنى دا ده چې څومره تروړانى وى ستا اې جريره او ماسيګانى ستا كوږ لاسي او كوږ ښپې چې درونډ شوى وو په ما باندې لشل د هغوى د لسو مياشتو زاړې اوښانو لره، نو دا بنا دى په استهزاء او سخريه باندې، او مقصد د فرزدق په دې كې تحكم او سخريه ده په جرير باندې چې ګويا كه هغه كميت د عدد د عمات او خالات د جرير هير شوى دى د فرزدق نه او دى د هغې نه تپوس كوى په دې كم استفهاميه سره او په دى شعر كې فرزدق كمال هجوه د جرير وكړه (١) يو خو يې د خالات او عمات د جرير لپاره فدعاء وويل منقلبة الكف اوالقدم د وجى د خدمت نه دا يوه قبحه شوه، يا خلقة، نو په دې كې يې اشاره وكړه سوء الخلقت د خالات او د عمات د جريره ته دا بل قبحه شوه او بيا قد حلبت يې وويل په دې كې كې يې اشاره وكړه خدمت د مواشي ته، يعنى چې ستا خالات او عمات به زمونږ د مواشي خدمت كولو نه دا ناسي او خدمت د مواشي ابلغ دى په ذم كې د خدمت د اناسي نه بيا عشارى وويل دا جمع د عشراء ده او عشراء د لسو مياشتو بلاربى اوښي ته وائي او د هغې لشل ډير ګران وى په دې كې كې يې اشاره وكړه چې ستا خالات او عمات باندې مونږه سخت سخت كارونه كول.

**وقد يحذف فى مثل كم مالك وكم ضربت: ربط:** هركله چې فارغ شو مصنف د بيان د هغه تركيب نه چې دا كم پكې محتمل د احتمالينو وو يو احتمال دا وو چې دا مذكور تميز وى ار دويم دا دى چې دا مذكور تميز نه دى بلكه تميز حذف شوى دى نو شروع يې وكړه په بيان ده هغه تركيب كې چې دا كم محتمل د احتمال واحد دى په دې شان سره چې تميز د كم حذف شوى دى.

**ترجمه:** كله كله حذف كولي شي تميز د كم په وقت د وجود د قرينې دالې كې په تعين د محذوف باندې په مثل د كم مالك او كم ضربت كې **كم مالك كم مبهم** مميز او تميز د دې حذف شوى دى درهما مبهم مميز سره د تميز نه مرفوع محلا بنابر ابتدائيت او مالك ورله خبر دى عندالسيبويه (٢): يا بالعكس دى عندالجمهور او قرينه په حذف د تميز باندې عرف عام دى خكه اخبار او استخبار د مال مطلق نه په عرف عام كې قرينه ده، چې مراد د مال نه دراهم او دنانير دى خكه دا اموال باطنى دى دى سره اخبار او استخبار مناسب دى په خلاف د اموال ظاهريو نه چې هغه معلوميږي په مشاهدى سره اخبار او استخبار ته ضرورت نشته، او كم ضربت كې درې تركيبونه جائز دى (١): كم مبهم مميز تميز يې حذف شوى دى چې مرة دى، مبهم مميز سره د تميز نه منصوب محلاً بنابر مفعول فيه د ضربت د پاره (٢): كم مبهم مميز تميز د دې حذف شوى دى چې ضربة دى، او مميز سره د تميز نه منصوب محلا بنابر مفعول مطلق (٣): كم مبهم مميز او تميز يې

حذف شوی دی چې رجلاً دی دا منصوب محلا دی بنابر مفعول به د ضربت لپاره نحو دا اول دوه ترکیبونه ظاهر دی د وجی د وجود د قرینی دالې نه په تعین د محذوف باندې ځکه استفهام د متکلم د ضرب مطلق نه او اخبار د متکلم د ضرب مطلق نه دلالت کوی په کراتو او ضرباتو باندې او دا دریم ترکیب جائز دی د وجی د عدم فساد د معنی نه لیکن ظاهر نه دی د وجی د عدم وجود د قرینی د الې نه په تعین د محذوف باندې وقد یحذف یې وویل په دې کې یې اشاره وکړه تقلیل ته ځکه قد چې داخل شي په مضارع باندې نو تقلیل فائده کوی نو ذکر د تمیز کثیر دی او حذف د تمیز قلیل دی او حذف د تمیز په طریقه د قلت سره جائز دی عند وجود القرینة الدالة علی تعین المحذوف، او که قرینه دالې په تعین د محذوف باندې نه وو نو بیا حذف نه دی جائز.

## الظـــروف

هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د نوع سابع د اسم مبني نه نو شروع یې وکړه په بیان د نوع ثامنه د اسم مبني کې نو وی ویل **الظروف** ظروف معدوده من المبنیات چې تعبیر شوی وو د هغې نه په اجمال کې په بعض ظروف سره پس حاجت رانغی ذکر د بعض ته په دې مقام د تفصیل کې، او ظروف عام دی حقیقةً وی او که حکماً وی او ذکر د لاغیر لیس غیر او حسب شوی دی په بحث د ظروف مبنیو کې طردا للباب.

**سوال:** (۱): ګرځول د ظروف مطلقاً د قبیلې د مبنیات نه نهٔ دی صحیح ځکه اکثر د ظروف نه د قبیلې د معربات نه دی لکه حین لیل یوم نهار وغیره او بعض د قبیلې د مبنیات نو دی نه تا دلته ظروف مطلقا ولې ذکر کړه (۱) یا اعتراض دا دی چې دا تفصیل ستا موافق نه شو د اجمال سره اجمال کې دی بعض ظروف ویلي وو او دلته دی ظروف مطلقا ذکر کړو؟

**جواب:** دا اعتراض به هله واردیدو چې الظروف کې الف لام جنسي وی لیکن الف لام جنسي نه دی بلکه الف لام عهد خارجي دی او مراد د ظروف نه ظروف معدوده من المبنیات دی چې هغه بعض ظروف دی نه ټول هر کله چې الف لام په الظروف کې عهد خارجي شو نو دا قائم شو په مقام د بعض باندې پس حاجت رانغلو ذکر د بعض ته.

**سوال:** ظروف جمع د ظرف ده او ظرف عند النحات مفعول فیه ته وائي او په دې ظروف مبنیو کې تا ذکر کړی دی مذ او منذ او دا په ترکیب کې مفعول فیه نه واقع کیږي لهذا ګرځول د مذ او منذ د ظروف نه نهٔ دی صحیح. **جواب:** یو ظرف دی یو اسم ظرف دی، اسم ظرف هغه اسم ته وائي چې هغه دلالت کوی په زمان او مکان باندې بیا عام دی چې په ترکیب کې مفعول فیه واقع کیږي او که نه واقع کیږي، او ظرف عند النحات ما فعل فیه فعل مذکوره ته وائي نو د اسم ظرف او ظرف مینځ کې نسبت د عموم خصوص مطلق دی، اسم ظرف اعم مطلق دی او ظرف اخص مطلق دی او دلته مراد د ظرف نه اسماء ظروف دی نه مفعول فیه.

**سوال:** گرځول د کیف د ظروف مبنیو نه نهٔ دی صحیح ځکه ظرف هغه اسم ته وائي چې دلالت کوی په زمان اومکان باندې او کیف دلالت په یو هم نه کوی؟

**جواب:** ظرف عام دی چې حقیقةً وی او که حکماً وی، کیف ظرف حقیقت نه دی لیکن ظرف حکماً دی (۱) ځکه دا محتاج دی متعلق ته لکه څنګه چې ظرف محتاج دی متعلق ته (۲) د دې نه تعبیر کولي شي په جار مجرور سره او جار مجرور ته عندالنحات ظرف وائي مجازاً.

**سوال:** گرځول د لاغیر لیس غیر او حسب د ظروف نه نهٔ دی صحیح ځکه دا ظرف نه حقیقةً دی او نه مجازاً دی؟ **جواب:** دا درې واړه یې ذکر کړی دی طردا للباب د وجې د مشابهت نه د ظروف مقطوعه عن الاضافت سره، د دې وجې نه دا مونږه گرځولي دی قسم علیحده، د اقسام د اسم مبني نه په ارشاد النحو المعروف بخلاصة النحو کې، **منها** بعض د ظروف مبنیو نه **ما هغه** ظرف دی **قطع** چې قطع کړي شوی دی دا ظرف **عن الاضافت** د اضافت معنوی نه په حذف د مضاف الیه سره، زده کړه دا خبره چې قطع د مرکب اضافی کولي شي د اضافت نه په دوه طریقو سره (۱) یو قطع د مرکب اضافی کولي شي د اضافت نه په حذف د مضاف سره نحو قوله تعالی ﴿ وَسْئَلِ الْقَرْيَةَ ﴾ ای اهل القریة او مرکب اضافی چې قطع کړي شي د اضافت نه په حذف د مضاف سره نو هلته قاعده دا ده چې مضاف الیه قائم کیږي په مقام د مضاف کې او اعراب د مضاف اخلي لکه مثال مذکور کې شو **امابقاء** د مضاف الیه په خپل اعراب باندې قلیل او نادر دی کما فی قوله تعالی ﴿ وَاللَّهُ يُرِيدُ الْآخِرَةَ ﴾ علی قراة. وقول الشاعر؛ اکل امرا تحسبین امراء ونار توقد باللیل نارا

**علی ترکیب:** چې دا نارِ مجرور دی ځکه مضاف الیه دی او مضاف د دې حذف شوی دی چې کل دی او دا مضاف الیه په خپل اعراب باندې باقي پاتې شوی دی او مرکب اضافی چې قطع کړي شي د اضافت نه په حذف د مضاف الیه سره نو بیا په متکلم باندې واجب دی یو امر د امور اربعو نه. (۱): په عوض د دې کې تنوین راخي په مضاف کې. (۲): په عوض د دې کې الف لام راخي په مضاف کې. (۳): جعل د مرکب اضافی مثل د مرکب اضافی اولنې په مقام د مضاف الیه کې نحو یا تیم تیم عدی. (۴): بنا علی الضمة مثال لکه قبل او بعد شو کما فی قوله تعالی ﴿ لِلَّهِ الْأَمْرُ مِن قَبْلُ وَمِنْ بَعْدُ ﴾ لیکن قبل او بعد او امثال د قبل او بعد نه دی د قبیلې د مبنیات نه مطلقاً بلکه په دې کې احوال اربعه دی ځکه دا قبل او بعد د اسماء لازمة الاضافة نه دی معناً د دې مضاف الیه به خالي نه وي یا به مذکور وی او یا به محذوف وی، که مضاف الیه د دې مذکور وو نو معرب دی نحو جلست قبلك وجلست بعدك (۲) او که مضاف الیه یې محذوف وو نو بیا به خالي نه وي یا به محذوف نسیاً منسیاً وی، د نسیاً منسیاً دا معنی چې لفظ کې هم نشته او په نیت کې هم نشته د هغې علامه دا ده چې د هغې ترجمه نه کوی (۳) او یا به محذوف منوی وی یعنی په لفظ کې نشته په نیت کې مراد دی او د هغې علامه دا ده چې د مضاف الیه ترجمه کوو که مضاف الیه د دې محذوف وو نسیاً منسیاً نو بیا معرب دی نحو رب بعد. کان خیراً من قبلٍ (۴) او که مضاف الیه د

دي محذوف منوی وو نو بیا به خالي نه وي یا به د مضاف الیه په عوض کې تنوین راغلي وی په مضاف کې او یا به نه وي راغلي که راغلي وو نو بیا هم معرب دی کما فی قول الشاعر: شعر:

فساغ الى الشراب وكنت قبل — اكاد اغص بالماء الفرات

او که مضاف الیه محذوف منوی وو او په عوض کې یې تنوین په مضاف کې نه وو راغلي نه بیا مبني علی الضمه دی نحو قوله تعالی ﴿لِلَّهِ ٱلْأَمْرُ مِن قَبْلُ وَمِنۢ بَعْدُ﴾.

سوال (۱): اصل په اسماؤ کې اعراب دی نو دا قبل او بعد په دې څلورم حالت کې ولې مبني دی (۲) بیا اصل په بناء کې سکون دی نو دا قبل او بعد مبني علی الحرکت ولې دی (۳) بنا په حرکت کې مبني علی الضمه ولې دی مبني علی الفتحه یا علی الکسره ولې نه دی؟

جواب: دا مبني دی څکه دا متضمن دی معنی د حرف اضافت لره چې هغه فی دی په اضافت ظرفی کې او من دی په اضافت بنائي کې او لام دی په اضافت لامی کې (۲) دا مبني دی د وجی د مشابهت په حرف سره په احتیاج کې امر خارج ته چې حرف محتاج دی په دلالت علی المعنی کې انضمام د کلمه اخري ته او دا قبل او بعد محتاج دی مضاف الیه محذوف منوی ته او مبني علی الحرکة مو وګرځو نه علی السکون لپاره، د دې چې لازم نه شي التقاء د ساکنین او بیا مبني علی الضمه وګرځیدو نه علی الکسره او نه علی الفتحه څکه ضمه حرکة قوی دی لپاره د دې چې جبیره وګرځي د مافات چې هغه حذف د مضاف الیه دی او ظروف مقطوعه عن الاضافة ته د نحویانو په اصطلاح کې غایات هم وائي څکه اصل کې غایة الکلام مضاف الیه ددی ظروف وو هر کله چې مضاف الیه د دې ظروف نه حذف شو نو وګرځیدل دا ظروف په خپله غایه او نهایة د کلام په دې شان سره چې منتهی کیږي په دې ظروفو پورې تکلم د کلام د متکلم

واجری مجراه لا غیر ولیس غیر وحسب: ترجمه: او مستعمل کولي شي په شان د استعمال د ظروف مقطوعه عن الاضافة لفظ د لاغیر او لیس غیر په حذف د مضاف الیه او بنا علی الضمه کې نحو جاءنی زید لاغیر ولیس غیر وحسب د وجی د مشابهة د لاغیر او لیس غیر نه د غایاتو سره په شدت ابهام کې او مضاف الیه نه شي حذف کولي د غیر نه مګر حذف کولي شي کله چې دا غیر واقع شي وروستو د لا یا د لیس نه د وجی د کثرت استعمال د غیر نه وروستو د لا او لیس نه لپاره د حصول د خفت او حسب په شان د ظروف مقطوعه عن الاضافة دی په حذف د مضاف الیه او بناء علی الضمه کې د وجی د مشابهت د حسب نه د غیر سره په کثرت استعمال کې (۲) او په عدم کون دده کې معرفه بالاضافة او دا حسب په معنی د لاغیر سره دی جاءنی زید حسب معنی دا ده چې جاءنی زید لاغیر ومنها حیث او بعض د ظروف مبنیو نه لفظ د حیث دی دا غالباً راځي د مکان لپاره او اخفش ویلي دی چې کله کله د زمان لپاره هم راځي کما فی قول الشاعر:

وللفتی عقل یعیش به — حیث تحرك ساقیه

ای زمان یکون حیاً دلته حیث د زمان لپاره دی څکه انتها د حیات راځي په انتها د زمانی سره نه په انتها د مکان سره ولا یضاف او اضافة نه شي کیدی د لفظ د حیث هیڅ یو شي ته الا الی الجملة مګر

اضافت یې کیږي جملې ته او جمله عام ده چې جمله اسمیه وی نحو اجلس حیث زید جالس او که جمله فعلیه وی نحو قوله تعالی ﴿ فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِينَ حَيْثُ وَجَدْتُمُوهُمْ ﴾ **فی الاکثر** په اکثر استعمال د کلام د عربو کې ځکه حیث واضع وضع کړی دی د هغه مکان لپاره چې واقع کیږي په هغې کې نسبت او نسبت نه وي مګر په جمله کې وی لهذا اضافت د دې به کیږي جملې ته فی الاکثر سره یې احتراز وکړو د استعمال اقل نه ځکه لږ لږ اضافت د حیث کیږي مفرد ته کما فی قول الشاعر!

اما تری حیث سهیل طالعا　　نجم یضیئ کالشهاب ساطعاً

چې دلته لفظ د حیث مضاف شوی دی مفرد ته چې هغه سهیل دی او دا واقع شوی دی مفعول به د تری لپاره ای مکان سهیل او مراد د رؤیت نه رؤیت بصری دی نه رؤیت قلبی او دا یو مفعول غواړي.

**سوال:** حیث مبني علی الضمه ولې دی؟ **جواب:** ځکه چې حیث مشابه دی د غایات سره په حذف د مضاف الیه کې په دې شان سره چې د حیث غالبا اضافت کیږي جملې ته او مضاف الیه الی الجمله حقیقت کې مضاف وی مضمون د جملې ته او مضمون د جمله غیر مذکور دی او کله چې د دې اضافت وشي مفرد ته نو په هغې کې مذهبین دی (۱) یو مذهب د جمهورو دی هغه وائي چې دا مبني علی الضمه دی ځکه دا استعمال قلیل محمول دی په استعمال اکثر باندې (۲) بعض وائي چې دا معرب دی د وجې د زوال د علت د بناء نه او اصل په اسماؤ کې اعراب دی.

**پس زده کړه** دا خبره چې حیث اولا دوه قسمه دی (۱) ظرفی (۲) غیر ظرفی، ظرفی بیا دوه قسمه دی (۱) مکانی (۲) زمانی او حیث غیر ظرفی درې قسمه دی (۱) تقیدی (۲) اطلاقی (۳) تعلیلی.

**وجه د حصر:** یکې دا ده چې دا مدخول د حیث به خالي نه وي یا به عین محیث وی یا به غیر وی که عین محیث وو نو اطلاقی نحو الانسان من حیث الانسان حیوان، او که عین محیث نه وو نو بیا به خالي نه وي یا به مدخول د حیث علت وی لپاره د ماقبل او یا به قید وی که قید وو نو هغې ته حیث تقیدی وائي نحو الحیوان من حیث انه ناطق انسان او که علت وو نو هغې ته حیث تعلیلی وائي نحو الانسان من حیث ان عالم مکرم، **ومنها اذا** او بعض د ظروف مبنیو نه اذ دی او دا اذا عام دی چې زمانی وی او که مکاني وی (۱) او علت د بناء د اذا بعینه علت د بناء د حیث دی (۲) یا اذا مبني دی ځکه دا کله کله متضمن کیږي معنی د حرف شرط لره او اذا غیر شرطی محمول دی په اذا شرطی باندې (۳) دا متضمن دی معنی د حرف اضافت لره **وهی** اودا کلمه د اذا کله چې وی زمانیه **مستقبل** نو دا راځي د مازنه مستقبل لپاره اګر که داخل شوی وی په ماضی باندې په دې شان سره چې اذا داخل شي په مضارع باندې نو مضارع خاص کوی په استقبال پورې او چې داخل شي په ماضی باندې نو ماضی ګرځوی په معنی د مستقبل سره غالبا، او کله کله اذا زمانی د ماضی لپاره هم راځي نحو قوله تعالی ﴿ حَتَّىٰ إِذَا بَلَغَ بَيْنَ السَّدَّيْنِ ﴾ ﴿ حَتَّىٰ إِذَا سَاوَىٰ بَيْنَ الصَّدَفَيْنِ ﴾ ﴿ حَتَّىٰ إِذَا جَعَلَهُ نَارًا ﴾ ﴿ فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ فَاسْتَعِذْ بِاللَّهِ ﴾ ﴿ إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلَاةِ فَاغْسِلُوا وُجُوهَكُمْ ﴾

**سوال:** مستقبل صفت دی تقاضه د موصوف کوی معترض موصوف مقدر را اوباسي الفعل نو معنی داشوه چې وهی الفعل المستقبل بیا خو کلمه د اذا اسم فعل شو او حال دا دی چې دا د

اسماء افعال نه نهٔ دی؟ **جواب:** اعتراض به ستا هله وارديدوچې مستقبل صفت د فعل وی ليکن دا صفت د زمانی دی نه دفعل.

سوال: اذا د مستقبل لپاره والی راځي؟ **جواب:** کثير او غالب په استعمال د اذا کې دا دی چې اذا دلالت کوی په وقوع د معنی مصدري باندې په زمانه د استقبال کې قطعاً او يقيناً عند المتکلم د دی وجې نه کثير دی استعمال د اذا په کلام الله کې ځکه الله تعالی عالم دی په امور آيتـه وو باندې او په کلام د عبادو کې راځي په طريقه د قلت او ندرة سره ځکه هغه عالم نه دی په امور استقباليو باندې مثال د اذا استقبالی شعر!

اذا يكون كريهة ادعى لها     واذا يحاس الحيس يدعى جندب

**وفيها معنى الشرط** او کائن دی په کلمه د اذا کې معنی د شرط چې هغه سببيت د اول دی لپاره د ثانی يا ملزوميت د اول دی لپـاره د ثـانی مثـال د اذا شرطيه كقولـه عليـه الصلاة و السـلام: (اذا افطر احدكم فليفطر على تمرة فان لم يجد فليفطر على ماء فانه طهور اى ان افطر احدكم). وقول الشاعر

فاستغن ما اغناك ربك بالغنى     واذا تصبك خصاصة فتجمل اي ان تصبك

وقول الشاعر! اذا لم تستطع امرًا فدعه     وجاوزه الى ماتستطيع

**فلذلك** او د وجې د کيدو د معنی د شرط نه په کلمـه د اذا کې **اختير بعدها الفعل** ګرځولي شوی دی مختار وروستو د کلمه د اذا نه **الفعل** جمله فعليه ځکه شرط تقاضـه د فعـل کوی او هر کله چې دا معنی د شرط په دې اذا کې وضـعی نـه وه نـو وقـوع د جملـی فعليـه وروسـتو د ده نـه واجب ونـه ګرځيدله بلکه جائز ده وقوع د جمله اسميه وروستو د اذا نه په خلاف د انْ اود لَو نه هغه واجب الدخول دی په فعل باندې لفظا يا تقديراً د وجی د اصالت د ان او لو نه په شرط کې، او په اختير کې جائز دی لغات ثلاثه (۱) نقل چې دا اصل کې اخْتُيِرَ وو کسره بر يا ثقيل بود نقل کرده بماقبل دادند بعد از سلب حرکت ايشان تا اخْتير گشت اختير شد، دا لغت افصح دی (۲) جائز دی په دې کې اشمام چې کسره د تا مائـل کړي طرف د ضمی ته په دې شان سره چې نيمه کسره او نيمه ضمه وائي، او وريسې يا مائله کړي طرف د واو ته په دې شان سره چې نيم واو ووائي او نيمه يا ووائي دا لغت فصيح دی (۳) انداخت، چې اختور ووائي په دې شان سره چې اُخْتُيِرَ اصل کې اُخْتُيِرَ وو کسره بر يا ثقيل بود انداخت اختير گشت اُخْتُيرَ شد بعده يا ساکن مظهر ما قبلش مضموم بنابر ان يا رابواوبدل کردند تـا اُخْتُيْرَ گشت اختـور شـد او دا اَرْدَءُ لغت دی، **وقـد تکـون للمفاجـاة**، اوکله کله کيږي کلمه د **اذا للمفاجاة** د مفاجات لپاره چې ملاقات دا حدهما دی داخر سره بی د علم د احدهما نه په اخر باندې **فيلزم المبتداء** پس غالب ده وقوع د جمل اسميه **بعدها** وروستو د اذا مفاجاتی نه لپاره د فرق په مينځ د اذا شرطيه او اذا مفاجاتی کې او مراد د لزوم نه په دې مقام کې غلبه د وقوع د جملی اسميی ده وروستو د اذا مفاجاتی نه پس منافی نه شو دا عبارت د مصنف د هغه عبارت سره چې ذکر شوی دی په بابْ د ما اضمر عامله على شرطية التفسير کې.

**سوال:** دلته مصنف وويل چې دا اذا مفاجاتی نه وروستو وقوع د جمله اسميه لازمه او په باب د اضمار على شرطيه التفسير کې يې ويلي دی چې اسم مظانی چې واقع شي وروستو د اذا مفاجاتی نه نو رفع لوستل اولی او نصب لوستل جائز قدر دی نحو خرجت فاذا زيد يضربه اولی، او خرجت فاذا زيد يضربه جائز خلاف الاولی دی د هغې نه معلومه شوه چې وقوع د جملی اسميې وروستو د اذا مفاجاتی نه لازمه نده نو په کلام د مصنف کې تناقض راغی؟

**جواب:** په کلام د مصنف تناقض نشته ځکه چې دلته لزوم په معنی د غلبی سره دی لهذا د دې عبارت او د هغه دواړو مطلب يو دی، مثال د اذا مفاجاتی لکه خرجت فاذا السبع شو او په اذا مفاجاتی کې څلور ترکيبونه او څلور مذهبونه دی:

(۱): **مذهب د مبرد دا دی** چې چه دا اذا مفاجاتی ظرف مکان خبر مقدم السبع مبتداء مؤخره ده فيکون المعنی السبع مکان خروجی.

(۲): **دويم مذهب د ذجاج دی** چې اذا مفاجاتی ظرف زمان، ظرف خبر مقدم السبع مبتداء مؤخره ده ای السبع زمان خروجی دا دواړه مذهبونه کمزوري دی (۱) لعدم صحة حمل الخبر على المبتداء (۲) او کله کله عرب خبر السبع ذکر کوی په کلام کې ای خرجت فاذا السبع واقف يا لدی اللباب يا حاضر، نو معلوم شوه چې دا لسبع مبتداء لپاره خبر اذا مفاجاتی نه دی بلکه خبر ورله محذوف دی ځکه که خبر ورله دغه اذا مفاجاتی وی نو دا السبع نه وروستو به لدی اللباب يا واقف نه ذکر کولي.

(۳): **دريم مذهب د صاحب د لباب دی هغه وائي** چې اذا ظرف زمان دی لپاره د خبر محذوف د السبع فيکون المعنی السبع واقف وقت خروجی بنا په دی درې واړو مذهبونو باندې اذا مفاجاتی مضاف نه دی مابعد جملی ته بلکه دا مضاف دی ماقبل ته معناً لالفظا.

(۴): **څلورم مذهب د جار الله زمخشري او ابن حاجب دی هغه دواړه وائي** چې اذا مفاجاتی ظرف زمان مضاف دی مابعد ته.

**سوال:** مضاف سره د مضاف اليه نه په ترکيب کې څه واقع شوی دی يا اذا ظرف دی مضاف دی مابعد ته تقاضه د عامل کوی عامل په دې کې څوك دی؟

**جواب:** دا مفعول فيه دی د فعل معنوی لپاره چې هغه فاجات دی چې مستفاد دی د مقام نه فيکون التقدير خرجت ففاجات وقت وقوف السبع او دا فاء محتمل د احتمالين ده (۱) يا فا عاطفه ده نو عطف د جمله فعليه په جمله فعليه باندې راغي (۲) يا سببيه ده، پس د دې ماسبق نه معلومه شوه چې اذا درې قسمه دی (۱) ظرفيه محضه (۲) ظرفيه شرطيه (۳) ظرفيه مفاجاتی **ومنها اذ** او بعض د ظروف مبنيو نه اذدی داسې اذ چې کائن دی لپاره د زمانه ماضی غالبا نحو حيث اذ قام او که چرې داخل شي په مضارع باندې نو هغه گرځوی بمعنی الماضی نحو جئت اذ يقوم زيد ای اذ قام زيد (۲) او کله کله راځي اذ د مستقبل لپاره کقوله تعالى ﴿فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ ۝ إِذِ الْأَغْلَالُ فِي أَعْنَاقِهِمْ﴾

**اوللماضی** جار مجرور په اعتبار د متعلق محذوف سره صفت واقع شوی دی د اذ لپاره فيکون

التقدير اذا كائنة للماضى (۲) يا خبر دى د مبتداء محذوف لپاره فيكون التقدير اذ وهى للماضى او علت د بنا په دې کې بعينه علت د بنا د حيث دى (۲) دا مشابه دى د حرف سره په وضع ثنائي کې (۳) کله کله متضمن کیږي معنی د حرف شرط لره نحو اذ ما تسافرا سافر او اذ غير شرطى محمول دى په اذ شرطى باندې (۴) دا متضمن دى معنى دحرف اضافت لره **ويقع بعدها الجملتان** او واقع کیږي وروستو د کلمه د اذ نه دوه جملى چې هغه جمله اسميه او جمله فعليه ده ځکه دا متضمن نه دى معنى د حرف شرط لره چې مابعد جمله فعليه مختاره شي او نه متضمن دى مفاجاة لره چې مابعد جمله اسميه مختاره شي نحو كان ذلك اذ زيد قائم او اذ قام زيد، او کله کله راځي اذ د مفاجاة لپاره نحو خرجت فاذ زيد قائم او د وجى د قلت نه مصنف دا ذكر نه کړو. او اذا په پنځه قسمه دى (۱) ظرفيه (۲) شرطيه كقول الشاعر!

اذ المرا لم يخزن عليه لسانه فليس على شئ سواه بخزان

اى ان المرء لم يخزن (۳) تعليلى كما فى قول ابن مالك شعر!

وفى جواب كيف زيد قل ذنف فزيد استغنى عنه اذ عرف

(۴) مفاجاتى (۵) زائده.

**سوال:** نه وائي چې دانه متضمن دى معنى د حرف شرط لره او نه متضمن دى مفاجاة لره ځکه وقوع د جملې فعليې او اسميې بعد اذ على السويه دى دا دواړه خبرې ستا غلطى دى ځکه اذ مفاجات لپاره هم راځي نحو خرجت فاذ زيد قائم او متضمن معنى د حرف شرط لره هم دى قياساً هرچې دى اذا د هغې تضمن معنى د حرف شرط لره شاذ دى ځکه دى وروستو په خپله وائي چې اما مع كيفما واذا فشاذ، او اذ یې د اسماء شرطيه سره ذكر کړى دى ديته يې شاذ نه دى ويلې؟

**جواب:** اذ شرطى نه راځي بدون ما او اذ شرطى چې راځي هغه سره د ما نه راځي نحو اذ ماتسافر اسافر او د دې بل نه جواب دا دى چې اذا مفاجاتى راځي په طريقه د كثرت سره او اذ مفاجاتى راځي په طريقه د قلت سره د دې وجى نه مصنف نه دى ذكر کړي ځکه قليل په مقابل د كثير کې كالعدم دى.

**سوال:** نه وائي چې اذ شرطى راځي سره د ما نه نهٔ بدون ما دا خبره ستا منقوضه شوه په دې قول د شاعر سره، اذ المرا لم يخزن عليه لسانه الخ چې دلته اذ راغلي دى په معنى د ان سره بدون ما؟

**جواب:** يجوز فى الشعر ما لايجوز فى غيره **ومنها اين وانى** او بعض د ظروف مبنيو نه اين او انى دى (۱) هسى اين او انى چې دا دواړه كاين دى **للمكان** د مكان لپاره (۲) يا دا دواړه د مكان لپاره دى په حال کې چې دواړو کې چې دا د استفهام دپاره دى او شرط لپاره دى، يا من حيث الاستفهام والشرط (۳) يا برابر خبره ده چې استفهام لپاره وى او يا د شرط لپاره وى مثال د اين استفهامى نحو اين زيد او مثال د اين شرطيه نحو **اين تجلس اجلس**، او مثال د انى استفهامى نحو انى زيد او مثال د انى شرطى نحو انى تجلس اجلس او دا د قبيلې د مبنيات نه دى ځکه چې دا متضمن دى معنى د حرف استفهام او حرف شرط لره او للمكان په اعتبار د متعلق سره صفت واقع شوى دى د

اين او انى لپاره فيكون التقدير اين وانى الكائنتان للمكان (٢) يا للمكان جار مجرور خبردي د مبتداء محذوف لپاره فيكون التقدير اين وانى هما للمكان، **او استفهاما و شرطا**.
(١): منصوب دى بنا بر حاليت (٢) يا منصوب دى بنابر تميز (٣) يا خبر د كان محذوفه لپاره دي په اعتبار د حذف د مضاف سره اى سواء كان ذات استفهام او شرط. انى په استعمال د كلام د عرب كي پنځه قسمه راځي (١) استفهاميه مكانيه نحو انى زيد (٢) شرطيه مكانيه نحو انى تكن اكن دى دواړو ته انى مكانى وائي (٣) بمعنى متى نحو انى الساعة اى متى الساعة او ديته انى متائي هم وائي (۴) بمعنى من اين نحو **انى لك هذا** اى من اين لك هذا (٥) بمعنى كيف د هغې علامه دا ده چې د دې انى نه وروستو به فعل راغلي وى كما فى قوله تعالى ﴿أَنَّىٰ يَكُونُ لِي غُلَامٌ﴾ اى كيف يكون لى غلام ﴿أَنَّىٰ يُحْيِي هَٰذِهِ اللَّهُ بَعْدَ مَوْتِهَا﴾ اى كيف يحيى الله وقوله تعالى ﴿فَأْتُوا حَرْثَكُمْ أَنَّىٰ شِئْتُمْ﴾ اى كيف شئتم او ديته عند النحات انى كيفى وائي او فأتوا حرثكم انى شئتم كې انى كيفى دى نه انى مكانى، ځكه مقصود په دې ايت كې تعميم فى الكيفيت دى نه تعميم فى المكان حتى چې لواطت مع النساء جائز شي او دليل او قرينه په دې خبره باندې (١) شان نزول د دې ايت دى چې دا ايت نازل شوى دى په رد د يهودو كې ځكه يهودو دا عقيده وه چې يو سړي جماع وكړي د ښځې بى بى سره د جانب د دبر نه په قبل كې او د هغې نه چې حمل واخلي نو بچى احول پيدا كيږي نو الله رد وكړو د يهودو په دې عقيده باندې فاتو حرثكم انى شئتم سره او رد په يهودو باندې هله راځي چې دا انى كيفى شي نه انى مكانى. (٢): قرينه په دې باندې چې انى كيفى دى وروستو دا فعل دى ځكه انى كيفى داخليږي په فعل باندې نه انى مكانى (٣): دريمه قرينه په دې خبره چې دا انى كيفى دى نه مكانى فاتو حرثكم دى ځكه چې موضع د حرث قبل دى نه دبر او دبر موضع د فرث دى نه د حرث **ومتى للزمان فيهما** او متى كاين دى د زمانى لپاره په دې استفهام او شرط دواړو كې مثال د متى استفهامى نحو متى الساعة يا رسول الله وقال رسول الله فى جوابه اذا ضيعت الامانة فانتظر الساعة قال كيف اضاعتها قال اذا وسد الامر الى غير اهله فانتظر الساعة؛ او مثال د متى شرطيه نحو متى تخرج اخرج. وقول الشاعر؛

كريم متى امدحه امدحه والورى معي ۔ واذا مالمته لمته وحدى

او دا متى مبني دى ځكه دا متضمن دى معنى د حرف شرط او استفهام لره **وايان للزمان** او ايان راځي د زمانى لپاره په حال كون د دې كې چې د استفهام لپاره يې واخلي كما فى قوله تعالى ﴿أَيَّانَ يَوْمُ الدِّينِ﴾ او دا مبني دى ځكه متضمن دى معنى د حرف استفهام لره.

**الفرق بين متى و ايان:** متى شرطيه راځي بخلاف ايان (٢) ايان د زمانى مستقبلى لپاره راځي او متى عام دى فلا يقال ايان قدم الحاج (٣) ايان مختص دى په امور عظامو پورې او متى عام دى فلايقال ايان يوم قيام زيد، او په ايان كې لغات ثلاثه دى (١) مشهور لغت ايان دى بفتح الهمزة والنون (٢) ايان بكسر الهمزة و فتح النون (٣) ايان بفتح الهمزة وكسر النون **وكيف للحال استفهاما او**

كيف كاين دى د حال او صفت د شئ لپاره په وقت د استفهام كې يا په حال كون د كيف كې چې دا خاوند د استفهام دى نحو كيف زيد او كيف مبني دى څكه دا متضمن دى معنى د حرف استفهام له، او كيف يې گرځولي دى د ظروفو نه څكه دا په معنى د على اى حالٍ سره دى او جار مجرور ته ظروف وائي عند النحات مجازاً (۲) يا دا مشابه دى د ظروفو سره په احتياج الى المتعلق كې لكه څنگه چې ظروف متعلق غواړي نو كيف هم متعلق غواړي، او كيف په اعتبار د معنى سره دوه قسمه دى (۱) استفهاميه نحو كيف زيد وقول الشاعر!

قال لى كيف انت قلت عليل
سهر دائم وحزن طويل

(۲) شرطيه. بيا عند البصريين كيف شرطى راځي سره د ما نه نحو كيفما تقرا اقرا او عند الكوفيين شرطيه راځي مطلقا نحو كيف تجلس اجلس او كيف په اعتبار د اعراب محلى سره څلور قسمه دى (۱): مرفوع محلا بنا بر خبر مبتدا نحو كيف انت كيف خبر مقدم دى او انت مبتدا مؤخره ده دا جمله انشائيه اسميه استفهاميه (۲): منصوب محلا بنابر خبر كان نحو قوله تعالى ﴿كَيْفَ كَانَ عَٰقِبَةُ ٱلْمُكَذِّبِينَ﴾ (۳): منصوب محلا بنابر حاليت نحو كيف رجع سليم (۴): منصوب محلا بنابر مفعول مطلق نحو قوله تعالى ﴿أَلَمْ تَرَ كَيْفَ فَعَلَ رَبُّكَ﴾ اى اىَّ فعلٍ فعل ربك يعنى كوم كار كړى دى رب ستا **مذ ومنذ** بعض د ظروف مبنيونه مذ او منذ دى **بمعنى اول المدة** چې دا دواړه كاين دى په معنى د اول مدى د زمانى د فعل متقدم سره يا هسى وزد منذ چې د واړه كائن دي په معنى د اول المده سره.

**سوال:** بمعنى اول المدة جار مجرور دى او د جار مجرور لپاره لابدي وى د اعراب محلى نه د دي اعراب محلى څه دى؟ **جواب:** (۱): دا جار مجرور خبر واقع شوى دى د مبتدا محذوف لپاره فيكون التقدير مذ ومنذهما بمعنى اول المدة او مذ او منذ مبتداء ده او خبر يې محذوف دى چې منها دى، يا دا مذ او منذ عطف دى په اين او انى باندې (۲) يا بمعنى اول المدة ظرف مستقر په اعتبار د متعلق محذوف سره صفت واقع شوى دى د مذ او منذ لپاره فيكون التقدير مذ ومنذ الكائنتان بمعنى اول المدة.

**سوال:** مذ او منذ نكره ده څكه معرفه اووه قسمه ده او دا يو هم د هغې نه نهٔ دى او دا رنگې مذكر دى څكه علامه د تانيث پكې نشته او تا صفت د دې الكائنتان معرفه مؤنث راوى ستو نو مطابقت رانغى بين الموصوف والصفة؟

**جواب:** دغه مذ او منذ علم دى د هغه مذ او منذ لپاره چې واقع كيږي په تراكيب كې نو معرفه بالعلمية شوه او په تاويل د كلمة سره مؤنث دى نو څكه يې صفت معرفه او مؤنث مقدر راويستلى دى.

**سوال:** الكائنتان چې يې مقدر راويستو نو حذف د موصول راغي سره د بعض اجزاؤ د صلى نه او سره د بقا د بعض نه او د دې لپاره نظير نشته په استعمال د كلام د عربو كې؟

**جواب:** دا الف لام موصولي نه دى بلكه الف لام حرفي دى څكه اختصاص د الف لام موصولي او اسم فاعل او اسم مفعول په مينځ كې د جانبين نه نهٔ دى بلكه من جانب دى چې دخول د الف لام

موصولي مختص دی په اسم فاعل او اسم مفعول پورې او اسم فاعل او اسم مفعول نه دی مختص
په الف لام موصولي پورې بلکه دا لکه څنګه چې مدخول د الف لام موصولي واقع کيږي نو دارنګې
مدخول د الف لام حرفي هم واقع کيږي (۲): يا که اومنم چې اختصاص د جانبين نه دی نو بيا هم دا
الف لام حرفي دی نه الف لام موصولي څکه الف لام موصولي په هغه اسم فاعل او اسم مفعول
باندې داخليږي چې هغه دلالت کوی په معنی مصدري باندې په طريقه د تجدد او د حدوث سره او
دلته اسم فاعل دلالت په معنی مصدري په طريقه د تجدد او حدوث سره نه کوي بلکه دلالت کوی
په طريقه د ثبوت سره (۳): او که اومنم چې دا الف لام موصولي دی او دا اسم فاعل دلالت کوی په
معنی مصدري په طريقه د تجدد او حدوث سره نو بيا حذف د موصول سره د بعض اجزاؤ د صلی
نه جائز دی په نزد د بعض باندې خلافاً للجمهور، او دلته ترکيب بناء دی په مذهب د بعض باندې
**سوال:** منذ اصل دی او مذ فرع ده څکه دا ماخوذ دی د منذ نه نو تا دا فرع ولې مقدم کړه په اصل
باندې؟ **جواب:** لکونه اخف من منذ.
**سوال:** اصل په اسماؤ کې اعراب دی نو دا مذ او منذ مبني ولې دی؟ **جواب:** (۱): څکه دا متضمن دی
اضافت لره څکه معنی د مذ يوم الجمعة ده اول المدة او معنی د منذ يومان دی جميع المدة (۲) دا
مشابه دی د غايات سره په قطع عن الاضافت کې نو دا مشابه شوه د حروف سره په احتياج کې امر
خارج ته چې هغه مضاف اليه محذوف دی بيا دومره فرق دی چې د مذ او منذ سره بنا لازمه ده
بخلاف الغايات څکه دا دواړه مقطوع عن الاضافت دی دائماً ابداً (۳) مذ او منذ مبني دی څکه دا
مشابه دی د حروف سره په وضع ثنائي کې او منذ محمول دی په مذ باندې (۴) مذ او منذ اسمی
مشابه دی د مذ او منذ حرفي سره لفظاً او معنیً نو څکه مبني دی فرق په مينځ د مذ او منذ اسميه
او حرفي کې باعتبار اللفظ خو ظاهر دی چې مدخول د مذ او منذ حرفي مجرور راځي او مدخول د
مذ او منذ اسمی مرفوع راځي او فرق معنوی دا دی چې مذ او منذ حرفي په ماضی کې په معنی د
من سره راځي او اسمی په معنی د اول المدة سره راځي او په زمانه حاضر کې حرفي بمعنی فی
راځي او اسمی بمعنی جميع المدة سره راځي.
**سوال:** چې ته وائي مذ او منذ اسمی کله په معنی د اول المدة سره راځي او کله په معنی د جميع المدة
سره راځي اوس دا به موږ د څه نه معلومه وو چې دا په معنی د اول المدة سره دی او که په معنی د
جميع المدة سره دی؟ **جواب:** دا معلوميږي د علامی نه چې دا مذ او منذ بمعنی اول المدة وو **فيليهما**
**المفرد المعرفة** نو واقع کيږي دا مذ او منذ نه وروستو متصل بلا فصل اسم مفرد نه مثنی او نه مجموع
مفرد عام دی که حقيقة وی او که حکما وی څکه اول د شئ امر واحد وی نه شيئين او نه اشياء، او
داسې مفرد چې معرفه به وی، معرفه عام ده که حقيقة وی او که حکما وی څکه او ليت د مبهم غير
مفيد وی مثال لکه مارأيت زيداً مذ يوم الجمعة ای اول مدة زمان عدم رؤيتی اياه يوم الجمعة.
**سوال:** هما ضمير راجع دی مذ اومنذ ته او ولې اتصال ته وائي اوس دلته اتصال قبلی مراد دی او که
اتصال بعدی مراد دی؟

**جواب:** دلته اتصال بعدي مراد دی ځکه ترجمه کړې ده جامي صاحب چې ای یقع بعد مذ و منذ.
**سوال:** ته ؤائي چې مذ او منذ بمعنی اول المدة شي نو واقع کيږي د دې نه وروستو مفرد نو مثال مطابق نهٔ شو د ممثل سره ځکه په مثال مذکور کې مايلی د مذ مرکب دی نهٔ مفرد؟
**جواب:** المراد من المفرد ههنا المقابل للمثنى والمجموع ځکه مفرد د دوی په اصطلاح کې په څلور معانيو سره راځي (۱) مقابل د مرکب (۲) مقابل د جمله (۳) مقابل د مضاف او شبه مضاف (۴) مقابل د مثنی او مجموع، او دلته مفرد مقابل د مثنی او مجموع دی او د مفرد په دې معنی سره اطلاق کيږي په مرکب باندې هم.
**سوال:** دا خبره ستا منقوضه شوه په مارأيت زيداً مذ اليومان الذان صاحبنا فيهما سره چې دلته مذ په معنی د اول المدة سره دی او د دې نه وروستو مفرد نه دی واقع شوی بلکه تثنيه راغلي ده؟
**جواب:** مفرد عام دی که حقيقة وی او که حکما وی او دلته مفرد حکما دی، ځکه د دې نه مونږ تاويل کوو په مفرد سره فيکون المعنى اول مدة عدم رؤيتي اياه وقت الملاقات.
**سوال:** ته وائي چې مذ او منذ په معنی د اول المدة سره وی نو د دې نه وروستو واقع کيږي مفرد معرفه دا خبره ستا منقوضه شوه په مارأيت مذ يوم لقيتني سره چې دلته مذ په معنی د اول المدة سره دی او د دې نه وروستو مفرد معرفه نده واقع شوی بلکه مفرد نکره واقع شوې ده؟
**جواب:** معرفه عام ده که حقيقةً وی او که حکما وی معرفه حقيقة ديته وائي چې دا يو قسم دی د اقسام د معرفی نه او معرفه حکما نکره مخصصه ته وائي او دلته دا معرفه حکما ده ځکه نکره مخصصه ده او تخصيص يې راغلي دی په صفت جملې سره و **بمعنى الجميع** اومذ او منذ راځي بمعنی جميع المدة د زمانی د فعل مقدم سره د هغې علامه دا ده چې **فيليهما المقصود بالعدد** واقع کيږي وروستو د مذ او د منذ نه زمانه داسې زمانه چې مقصد کړې شوی دی بيان د هغه زمانه په حال کون د دې زمانه کې چې دا به متلبس وی په عدد سره د قبيلې د تلبس د دال نه په مدلول باندې.
**سوال:** المقصود صيغه د اسم مفعول ده صفت دی تقاضه د موصوف کوی د دې موصوف راته وښايه؟ **جواب:** د دې موصوف حذف شوی دی چې الزمان دی.
**سوال:** توصيف د زمان په المقصود سره نه دی صحيح ځکه زمانه مقصود د متکلم نده ځکه قصد د متکلم متعلق کيږي په هغه شئ پورې چې هغه په اختيار د متکلم کې وی او زمانه په اختيار د متکلم کې نده؟ **جواب:** دا اعتراض به هله وارديدو چې دا صفت بحاله وی د زمان لپاره ليکن دا صفت بحاله نه دی بلکه صفت بحال متعلقه دی فيکون المعنى فيليهماالزمان المقصود بيانه.
**سوال:** معترض وائي چې بالعدد جار مجرور متعلق دی په المقصود پورې ځکه اصل په ظرف کې ظرف لغوه دی نو معنی د دې دا شوه چې مقصود د متکلم بيان د زمانی دی په عدد سره او دا معنی باطله ده ځکه چې مقصود د متکلم بيان د زمانی نه دی په عدد سره بلکه مقصود د متکلم بيان د عدد دی په زمانی سره لهذا فيليهما المقصود به العدد ويل پکار وو؟

**جواب:** دا اعتراض به هله وارديدو چي دلته دا با په معنى د مع سره وى او متعلق وى المقصود پورى ليكن دا باء په معنى د مع سره نده بلكه دا تلبس لپاره ده بيا دا ظرف مستقر دى په اعتبار د متعلق محذوف سره چي متلبساً دى حال واقع شوى دى د نائب فاعل دالمقصود نه فيكون المعنى يقع بعد مذ و منذ الزمان المقصود بيانه حال كونه متلبساً بالعدد ، مثال لكه ما رايت زيدا يرمان اى جميع مدة عدم رؤيتي اياه يومان **وقد يقع المصدر** د مذ او منذ اسمى لپاره دوه استعماله دى (۱) يو استعمال كثير دى لكه دا ما سبق شو دويم استعمال قليل دى لكه دا شو خكه چي مصنف قد يقع ويلي دى او قد چي داخل شي په مضارع نو تقليل فائده كوى نو د دي معنى دا شوه چي لږ لږ واقع كيږي وروستو د مذ او منذ متصل بلا فصل **المصدر** مصدر نحو ما ضربت مذ ذهابك **او الفعل** يا جمله فعليه نحو ما خرجت مذ ذهبت **وان** يا انّ سره د اسم او د خبر نه نحو ما خرجت مذ انك ذاهب **وان** يا ان ناصبه مصدريه نحو ما خرجت مذ أنْ ذهبت او دارنگي واقع كيږي د **مذ او منذ نه وروستو متصل بلا فصل** جمله اسميه نحو ما خرجت مذ زيد مسافر او دا دى مصنف نه دى ذكر كړي **لقلته او** كله چي واقع شي وروستو د مذ يا منذ نه مصدر يا جمله فعليه يا جمله اسميه يا انّ يا أنْ **فيقدر** پس مقدر كولي شي پس د مذ او منذ نه هغه لفظ چي دلالت كوى په زمانه بيا عام دى كه لفظ د زمان وى كه وقت وى او كه حين وى لپاره د صحت د حمل او تقدير د اوقات سره د مصادرو نه كثير او شائع دى په استعمال د كلام د عربو كي او دا زمانه به مضاف وى يو د دي امور مذكورو ته نو ما خرجت مذ ذهابك د دي معنى دا شوه چي اول مدة عدم رؤيتي اياه زمان ذهابك، نو حمل د ذهابك په اعتبار د حذف د مضاف سره صحيح شوى دى په ماقبل باندي چي اول المدة عدم رؤيتي اياه دى، او كه زمانه مقدر نه وى راويستلي نو بيا حمل د دي صحيح نه وو په ماقبل باندي.

**سوال:** مذ او منذ اسمى په تركيب كي څه واقع كيږي؟ **جواب:** په دي كي دوه مذهب دى (۱) **وهو مبتداء** هر واحد د مذ او منذ نه مبتداء ده عند الجمهور البصريين، **وخبره** او خبر د هر واحد د مذ او د منذ نه **ما** هغه اسم دى چي واقع كيږي وروستو د مذ او منذ نه.

**سوال:** هو ضمير راجع دى مذ او منذ ته نو مطابقت رانغي بين الراجع والمرجع؟ **جواب:** هو ضمير راجع دى مذ او منذ ته په تاويل د كل واحد سره **خلافاً للزجاج** خلاف كړي شوى دى د جمهورو نه په خلاف كولو سره داسي خلاف چي ثابت دى زجاج لره په دى شان سره چي ذجاج گرځوى د ما بعد مبتداء او مذ او منذ خبر او دليل د زجاج لپاره، هغه قاعده د نحويانو ده چي دوه اسمين راشي په كلام د عرب كي او يو معرفه وى او بل نكره وى نو د معرفى نه به مبتداء جوړه وى او د نكرى نه به خبر جوړ وى؟ **جواب:** طرفه د جمهورو نه دا دى چي په ابتداء كي تعريف باعتبار المعنى كافى دى لپاره د صحت د ابتدائيت او د ماقبل نه چي مبتداء جوړيده نو د مابعد نه به يي نه جوړ وى او وقوع د معرفه وروستو د مذ او منذنه لازم نده ستا دا تركيب نه جوړيږي په دي تركيب چي ما رأيته مذ يومان.

**جواب:** د طرف د زجاج نه دا دى چي دلته يومان اگر چي معرفه نده خو نكره مخصصه ده نو مبتداء واقع شوى ده تخصيص يي راغلي دى په تقديم د مذ سره په شان د رجل باندي په في الدار رجل

کي (۳) او جمهور کوفيان وائي چې دا مابعد اسم مرفوع فاعل د فعل محذوف دی او مذ او منذ ظرف دی د ماقبل لپاره او مضاف دی مابعد ته نو کيږي تقدير د عبارت دارنګې ما رايت زيد مذ کان يومان (۴) او بعض کوفيان وائي چې دا مابعد خبر د مبتداء محذوفی دی ای ما رأيته من الزمان الذی هو يومان خکه چې دا مذ مرکب دی د من او ذو الطائيه نه **ومنها لدی ولدن** او بعض د ظروف مبنيونه لدی دی بالالف المقصورة او لدن دی بفتح اللام و ضم الدال وسکون النون، او دا دوه لغتونه مشهور دی په استعمال د کلام د عرب کې اوس مصنف رحمه الله بيانوی لغات غير مشهوره په لدی او لدن کې **وقد جاء** او کله کله راځي **لدن** بفتح اللام وسکون الدال وکسر النون **ولدن** او لږ لږ راغلي دی **لدن** بفتح اللام وکسره الدال وسکون النون **ولد** او لږ لږ راغلي دی بفتح اللام وسکون الدال **ولد** بضم اللام وسکون الدال **ولد** بفتح اللام وضم الدال.

**سوال:** اصل په اسماؤ کې اعراب دی نو دا د قبيلې د مبنيات نه ولي دی؟

**جواب:** په دې لدی او لدن کې بعض لغتونه مشابه دی د حرف سره په وضع ثنائي کې او دا باقي محمول دی په هغې باندې (۲) يا دا لغت مشابه دی د من سره په ابتداء الغاية کې لکه څنګه چې د من سره ابتدا الغايه لازمه ده نو دارنګې د دې لغات سره هم ابتداء الغايه لازمه ده ماسوی د لدی نه او دا محمول دی په دې باقي لغات باندې او دا ټول راځي په معنی د عند سره، ليکن دومره فرق دی چې د دې ټولو سره ابتداء لازمه ده ماسوی د لدی نه د دې وجی نه لازم دی د لدن او اخوات د لدن سره من ابتدائيه لفظاً يا تقديرا او دا د اسماء عجيبيو نه دی څکه چې په حروف جارو کې صرف من جرور کولي شي دی لدن لره په شان د قبل او بعد او عند نه نور حروف جاره.

او فرق استعمالي په مينځ د عند او لدی کې دا دی چې عند مستعمليږي په حاضر او غائب دواړو کې او لدی مستعمليږي په حاضر کې نه په غائب کې لهذا المال عند زيد ويلی شي، چې دا مال د دې زيد سره حاضر وی او که په کور کې وی يا په بيک کې وی او المال لدی زيد لدن زيد ويلي شي چې دا مال د زيد سره حاضر وی والافلا. او حکم د لدی او لدن دا دی چې دا جر ورکوی مابعد اسم لره بنابر اضافت ليکن کله کله خاص لدن نصب ورکوی خاص لفظ د غدوة لره نحو لدن غدوة (۱) سماعاً (۲) تشبيهاً لنونها بنون تنوين فی مثل رطلٌ زيتاً (۳) لکون غدوة اکثر استعمالاً بعد لدن من سحرة و بکرة وعشية (۴) دا خاصه د لدن ده چې د دې نه وروستو لفظ د غدوة راشي هغې لره نصب ورکوی والافلا په شان د لولا باندې چې د هغې نه وروستو ضمير راشي هغې لره جر ورکوی والافلا، قد يکون لشئ عمل فی حال لايکون فی حال اخر (۱) لولا تعمل الجرفي المضمر ولا تعمله فی المظهر (۲) عسی تنصب المضمر نحو عساك ومع الظاهر الرفع (۳) لان تعمل عمل ليس فی الاعيان ومع غيرها لايکون لها عمل (۴) لدن تنصب غدوة ولاتنصب غيرها **ومنها** او بعض د ظروف مبنيو نه **قط** لفظ د قط دی **للماضی المنفی** (۱) وضع کړي شوی دی لپاره د زمانه ماضی داسې ماضی چې نفی کړي شوې ده وقوع د فعل په دې زمانه کې لپاره د دې چې شامل شي دا نفی د فعل ټولو

ازمنه د ماضی لره (۲) یا قط مستعملیږي لپاره د فعل ماضی هسی ماضی چې نفی کړي شوې ده وقوع د معنی مصدري په ماضی کې مثال لپاره د استغراق د زمانه ماضی نحو ما رأیت زید قط نه دی لیدلي ما زید لره هیڅ کله.

**تشریح:** فقط کې لابدي ده د معرفت د امور اربعو نه (۱) معرفت د لغاتُ (۲) معرفت د اقسام (۳) معرفت د وجې د بناء (۴) معرفت د استعمال، نو فقط کې لغات ډیر دی لیکن مشهور لغتونه پنځه دی. (۱): قط بفتح القاف و ضم الطا المشددة دا اشهر د لغات نه دی. (۲): قط بفتح القاف وضم الطا المخففة (۳): قط بضم القاف اتباعا لضمة الطاء المشددة (۴): قط بضم القاف اتباعا لضم الطاء المخففة (۵): قط بفتح القاف وسکون الطاء، او اقسام یې مخکې تیر شوی دی.

**سوال:** اصل په اسماؤ کې اعراب دی دا قط مبني ولي دی؟

**جواب:** (۱): په دې کې بعض لغات مشابه دی د حرف سره په وضع ثنائي کې او باقي محمول دی په هغې باندې (۲) دا محمول دی په عوض باندې (۳) محمول علی قط بمعنی انتَه.

**سوال:** ماضی صیغه د اسم فاعل ده صفت دی تقاضه د موصوف کوی اوس د اموصوف به خالی نه وي یا به فعل راوباسي یا به زمانه راوباسي او دا دواړه باطل دی که موصوف فعل راوباسي نو بیا توصیف د ماضی په المنفی سره صحیح دی لیکن بل نقصان لازمیږي چې دا جار مجرور متعلق دی په موضوع مقدر پورې نو معنی دا شوه چې دا قط وضع کړي شوی دی لپاره د فعل ماضی بیا خو دا اسم فعل شو شمیرل یې د ظروف مبنیونه باطل دی او که موصوف ورلره زمانه راوباسي نو بیا توصیف د دې ماضی په المنفی سره نه صحیح کیږي ځکه منفی خو فعل دی نه زمانه، بلکه زمانه مثبة ده؟

**جواب:** (۱): زه موصوف د ماضی لپاره فعل راوباسم او دا جار مجرور په موضوعة پورې نه دی متعلق بلکه دا متعلق دی په مستعملة پورې. (۲): یا موصوف د ماضی لپاره زمانه راوباسم او دا جار مجرور متعلق دی موضوعة مقدر پورې او که ته وائي چې توصیف د ماضی په المنفی سره نه صحیح کیږي نو جواب دا دی چې دا اعتراض به ستا هله وراديدو چې دا المنفی د ماضی لپاره صفت بحاله وی لیکن دا صفت بحاله نه دی بلکه صفت بحال متعلقه دی غالبا قط واقع کیږي وروستو د ماضی منفی نه لپاره د استغراق د نفی او په طریقه د قلت او د ندرة سره کله کله راځي په کلام مثبة کې هم نحو اراهُ قط ای ابدا **وعوض للمستقبل المنفی** او بعض د ظروف مبنیونه عوض دی بفتح العین وضم الضاد (۲) او دویم لغت په دې کې راغلي دی عوض بفتح الضاد (۳) او دریم لغت پکې راغلي دی عوضِ بکسر الضاد او دا مستعملیږي لپاره د فعل مستقبل داسې مستقبل المنفی چې نفی کړي شوی دی وقوع د فعل په زمانه د استقبال کې (۲) یا لفظ د عوض وضع کړي شوی دی د زمانه مستقبل لپاره داسې زمانه چې نفی کړي شوې ده وقوع د فعل په دې زمانه کې لپاره د استغراق د نفی په جمیع ازمنه مستقبله وو کې مثال لکه لا اری عوض.

**ترجمه:** نه وینم زه فلانی لره هیڅ کله په زمانه استقبال کې والسوال والجواب ههنا مثل مامر فی قط للماضی المنفی.

**سوال:** اصل په اسماؤ کښ اعراب دی نو دا عوض مبني على الضمه ولې دی؟
**جواب:** دا عوض د ظروف مقطوعه عن الاضافت نه دی په شان د قبل ا و د بعد باندې بدليل اعرابه مع المضاف اليه نحو عوض العائضين اى دهر الداهرين.
**والظروف المضافة الى الجملة واذ يجوز بناءها: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د هغه ظروفو نه چې واجب البناء وو نو شروع يې وکړه په بيان د هغه ظروفو کښ چې جائز البناء دی.
**ترجمه: والظروف** ظروف داسې ظروف چې معرب وی چې مضاف کړې شي جملی فعليې ته بالذات نحو ﴿ يَوْمَ يُنفَخُ فِي الصُّورِ ﴾ ﴿ يَوْمُ يَنفَعُ الصَّادِقِينَ صِدْقُهُمْ ﴾ **واذ** يا مضاف کړې شي کلمی د اذ ته چې هغه مضاف وی جملی ته نحو قوله تعالى ﴿ وَمِنْ خِزْيِ يَوْمِئِذٍ ﴾ **يجوز بناءها** جائز ده بناء ـ دې ظروفو د وجی داکتساب د دې ظروفو نه بناء لره د جملی مضاف اليه بالذات نه لکه په صورت اول کښ يا بالواسطة نه لکه په صورت ثانی کښ شو **على الفتحه** په فتحی باندې د وجی د خفت نه لهذا من خزی يومئذ لوستل هم جائز دی په فتح د ميم سره ځکه دا مبني على الفتحه دی او يومئذ مجرور لوستل هم جائز دی ځکه دا معرب دی.
**سوال:** ته وائې چې والظروف الخ دا قاعده ستا منقوضه شوه په اذ اذا او حيث سره چې دا مضاف دی جملی ته او بناء د دې جائز نده بلکه واجب ده او مبني على الفتحه نه دی بلکه اذ او اذا مبني على السکون دی او حيث مبني على الضمه دی؟ **جواب:** الظروف کښ الف لام عهد خارجي دی او مراد د ظروف نه ظروف معربه دی نه ظروف مبنيه او اذ، اذا حيث ظروف مبنيه دی **وكذلك مثل وغير** او په شان د ظرف مذکور دی لفظ د مثل او لفظ د غير په حال کون د مثل او غير کښ **مع ما وان وان** چې دا معی وی د ما ان ان سره په جواز د بناء على الفتحه کښ.
**تشريح:** کذلك کښ دا کاف اول د تشبيه لپاره دی او د ذلك مشار اليه ظروف مذکوره دی او اشاره شوې ده ظروف مضافه الى الجملةته په تاويل د مذکور سره جار سره د مجرور نه خبر مقدم او مثل غير مبتداء مؤخره ده او مع په اعتبار د متعلق سره حال واقع شوی دی.
**سوال:** مثل او غير د ظروف مذکورو په شان په څه کښ دی؟ **جواب:** په جواز د بناء على الفتحه کښ، مثال د مثل لکه قيامی مثل ما قام زيد قيامی مثل ان يقوم زيد قيامي مثل انك تقوم، او مثال د غير لکه قيامی غير ما قام زيد قيامی غير ان يقوم زيد قيامی غير انك تقوم، نو ټول مثالونه شپږ شو.
**سوال:** مثل او غير چې سر د ما ان ان مصدريه نه راشي نو بناء على الفتحه يکښ ولې جائز ده؟
**جواب:** دا دوجهتين دی که ديته ګورې چې صورتاً مضاف دی جملی ته نو بناء به دې دی جائز شي او که ديته ګورو چې حرف مصدر داخل دی په جمله باندې او د جملی نه مفرد جوړه وی نو اضافت الى المفرد راغلی نو معرب دی.
**زده کړه دا خبره چې** د غير لپاره احوال ثلاثه دی (١) په يو حالت کښ مبني على الضمه دی وجوباً (٢) دويم حالت کښ مبني على الفتحه دی جوازاً (٣) او په دريم حالت کښ معرب على حسب العوامل دی.

**وجه د حصر:** پکښې دا ده چې دا لفظ د غیر به خالي نه وي يا به واقع شوی وي وروستو د لا او د لیس نه او يا به نه وي واقع شوی که واقع شوی وو نو مبني علی الضمه وجوباً نحو جـ ني زيد لاغير وليس غير. او که نه وو واقع شوی نو بيا به خالي نه وي يا به مضاف وی جملی ته چې په هغې باندې ما ان ان مصدريه داخل شوی وی، او يا به مضاف وی غیر ته که مضاف وو غیر ته نو بیا معرب علی حسب العوامل دی نحو قوله تعالی ﴿غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ﴾. وقول الشاعر:

كفى بنا فضلا على من غيرنا حب النبي محمد ايانا

او که مضاف وو هغه جملی ته چې په هغې ما ان ان داخل شوی وو نو مبني علی الضمه به وی جوازاً نحو قيامی مثل ما قام زيد.

**ترکیب:** قيامی مضاف مضاف اليه مبتداء **مثل** مضاف ما مصدريه قام زيد جمله فعليه په تاويل د مصدر سره مضاف اليه لپاره د مضاف، مضاف سره د مضاف اليه نه خبر د مبتداء چې قيامی دی مبتداء مع الخبر جمله خبريه اسميه.

**سوال:** خبر د مبتداء خو مرفوع وی او مثل خو په قيامی مثل ما قام زيد کې منصوب دی نو ته ورته څنګه خبر د مبتداء وائې؟ **جواب:** خبر د مبتداء مرفوع وی دا خبره مسلم عند النحات ده لیکن دا مرفوع عام دی که لفظاً وی نحو هذا زيد يا تقديرا وی نحو هذا فتى يا محلاً وی نحو زيد هذا او دلته دا مثل مبني علی الفتحة دی او مرفوع محلاً دی.

## المعرفة والنكرة

**ربط.** هر کله چې فارغ شو مصنف د تقسيم د اسم نحوی نه او لُنوعين ته په اعتبار د اعراب او د بناء سره چې معرب او مبني وو او بيان يې کړه احکام د دغه قسمين نو شروع يې وکړه په تقسيم اخر د دې اسم نحوی کې نوعين ته چې يو معرفه ده او بله نکره ده په اعتبار د وضع سره نو وی ويل المعرفة والنكرة او هر کله چې تعريف د معرفه وجودی وو او تعريف د نکره عدمی وو او وجودی اشرف وی د عدمی نه نو مقدمه يې کړه معرفه په نکره باندې اجمالاً او تفصيلاً.

**ترجمه:** دا ما سياتي تر يو حده پورې بحث او بيان د معرفه او نکره دی.

**تشريح: سوال:** د دې ربط د ماقبل سره څه دی او غرض او مقصد د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟

**جواب:** ربط د ماقبل سره دا دی چې مخکې د دې کتاب په اول سر کې يې تقسيم د اسم کړي وو نوعين ته چې معرب او مبني دی اوس ثانياً تقسيم د اسم کوی نوعين ته چې معرفه او نکره ده او په معرفت د ربط سره غرض د مصنف هم معلوم شو چې غرض د مصنف په دې عبارت کې تقسيم د اسم نحوی دی ثانيا معرفه او نکره ته.

**سوال:** په شيء واحد باندې تقسيمات کثيره جاری کيږي په اعتبار د جهات مختلفو سره نو د تقسيم اول او د ثانی لپاره جهت د تقسيم څه دی؟ **جواب:** اسم اولاً په اعتبار د اعراب او د بنا سره دوه قسمه دی (١) معرب (٢) او مبني او دلته جهت د تقسيم وضع ده چې اسم په اعتبار د وضع سره دوه قسمه دی معرفه او نکره

**وجه د حصر:** دا اسم به خالي نه وي يا به موضوع وی لمعین او يا به موضوع وی لغیر معین که اول وو نو معرفه او که ثانی وو نو نکره.

**سوال:** د اسم تقسیم یې وکړو اولا معرب او مبني ته او دا معرب او مبني عام دی په اسم کې هم راځي او په فعل کې هم راځي او ثانیا یې د اسم تقسیم وکړو معرفی او نکری ته نو ایا دا هم عام دی په شان د معرب او مبني؟

**جواب:** د تقسیم اول او ثانی په مینځ کې دا فرق دی چې اسم اولا دوه قسمه دی معرب او مبني او دا معرب او مبني عام دی په فعل کې هم راځي او په اسم کې هم راځي او اسم ثانیا دوه قسمه دی، معرفه او نکره او دا خاص دی په اسم پورې په فعل کې نه راځي، د دې وجی نه جامی صاحب ویلي دی چې من اقسام الاسم نو په دې فرق سره دوه اعتراضونه دفع شو.

**سوال:** ضرب معرفه ده او که نکره؟ **جواب:** دا نه معرفه ده او نه نکره ده ځکه معرفه او نکره اقسام د اسم دی نه د فعل.

**سوال:** من معرفه ده که نکره؟ **جواب:** دا نه معرفه ده او نه نکره ده ځکه معرفه او نکره اقسام د اسم دی او من حرف دی.

**سوال:** تا د اسم تقسیم کړی وو معرب او مبني ته او دا نکره او معرفه داخل دی په معرب کې یا په مبني کې نو بیا دا معرفه او نکره د څه لپاره ذکر کوی؟ **جواب:** معرفه او نکره اګر چې داخل دی په معرب او مبني کې لیکن د دې لپاره احکام مختصه دی ځکه یې ذکر کړی دی لپاره د بیان د احکام مختصه.

**سوال:** اصل په اسماؤ کې تنکیر دی او تعریف خلاف الاصل دی نو تا دا معرفه ولې مقدم کړه په نکره باندې؟ **جواب:** هر کله چې تعریف د معرفه وجودی وو او تعریف د نکره عدمی وو او وجودی اشرف وی د عدمی نه نو معرفه یې مقدم کړه په نکره باندې اجمالاً او تفصیلاً.

**سوال:** المعرفة والنکرة څه ترکیب دی؟

**جواب:** دا په اعتبار د حذف د مضافین سره خبر د مبتدا محذوف دی فیکون التقدیر هذا باب بیان المعرفة والنکرة مثل قوله تعالی ﴿ فَقَبَضْتُ قَبْضَةً مِّنْ أَثَرِ الرَّسُولِ ﴾ ای من اثرحا فر فرس الرسول لکه څنګه چې دغه قول د الله تعالی په حذف د مضافین سره دی نو دارنګې دا عبارت د مصنف هم په حذف د مضافین سره دی، بیا مبتدا حذف شوه سره د مضافین د خبر نه لپاره د اختصار فی العنوان او مضاف الیه قائم شو په مقام د مضاف کې او د هغې اعراب یې واخستلو نو المعرفه والنکرة شو ځکه دا قاعده ده چې مضاف حذف شي او مضاف الیه قائم شي مقامه نو اعراب د هغې اخلی (۲) المعرفة والنکرة مرفوع دی بنابر ابتدئیت او خبر د دې حذف دی چې اذکرهما دی (۳) یا المعرفة والنکرة منصوب دی بنابر مفعول به د فعل محذوفه چې هغه ع دی ای اذا عرفت المعرب والمبني فع المعرفة والنکرة.

**المعرفة: ربط:** هر کله چې فارغ شو د بیان د نکرې او معرفې نه اجمالاً نو شروع یې وکړه په بیان د معرفه او نکره کې تفصیلاً نو وی ویل المعرفة ما وضع الخ. په معرفه کې لابدي ده د معرفې امور خمسه ؤنه (١) مفهوم لغوی (٢) تعریف بالمفهوم (٣) تعریف بالعلامه (۴) مناسبت په مفهوم لغوی او اصطلاحی کې (۵) معرفت د اقسام. نو معرفه په لغت کې پیژندلو ته وائي او په اصطلاح د نحویانو کې **ما** اسم دی داسې اسم **وضع** چې وضع کړې شوی دی په وضع جزی یا په وضع کلی سره **لشیٔ** لپاره د یو شی داسې شی **بعینه** چې دا شیٔ متلبس وی په ذات خپل سره داسې ذات چې معین او معلوم وی مخاطب او متکلم ته **عین** په معنی د ذات سره دی او اضافت د عین ضمیر ته چې راجع دی شیٔ ته اضافت عهد خارجي دی چې مراد د ذات الشیٔ نه ذات معلوم بین المتکلم والمخاطب دی او دا شیٔ عام دی چې فرد شخصی وی لکه زید او که فرد نوعی وی لکه لکه اسد او که فرد جنسي وی لکه اسامة شو او که جماعة معینه وی لکه معرفه شوه په الف لام استغراقي سره لکه انسان شو په ان الانسان لفی خسر کې

**تشریح: سوال:** ما د الفاظ عامونه دی دا دلته عبارت د شیٔ نه دی که دلفظ یا اسم نه دی؟

**جواب:** دلته ما عبارت دی د اسم نه نه د شیٔ او د لفظ نه ځکه معتبر په تعریفات د اقسامو کې جنس قریب وی او جنس د معرفی او نکری لپاره اسم دی او لفظ او شیٔ اجناس بعیده دی او په تنکیر د اسم کې یې اشاره وکړه دیته چې دا ما موصوفه دی ځکه واقع شوی دی په جانب د خبر کې او دا قاعده ده چې من او ما چې واقع شي په جانب د خبر کې نو موصوفیت اولی دی د موصولیت نه ځکه اصل په اسماؤ کې تنکیر دی او وضع مشتق دی د وضع نه او وضع په لغت کې نهادن ته وائي او په اصطلاح کې تخصیص شیٔ بشیٔ بحیث متی اطلق او احس الشیٔ الاول فهم منه الثانی ته وائي، او دا وضع بیا په دوه قسمه ده (١) وضع جزئي (٢) وضع کلی، وجه د حصر پکې دا ده چې دا وضع د لفظ د یو معنی لپاره دا به خالی نه وي یا به دا لفظ واضع وضع کړې وی د دې معنی لپاره بالذات او یا به یې وضع کړې وی بالواسطه که وضع کړې یې وو بالذات نو دیته وضع جزی وضع خاص او وضع بالذات وائي لکه وضع د زید شوه د یو مسمی لپاره او که وضع د دې لفظ د یو معنی لپاره بالواسطه وه نو هغې ته وضع کلی وضع عام او وضع بالواسطه وائي لکه وضع د ضمائر اسماء موصوله او اسماء اشارات شوه په نزد د متاخرین باندې چې دا یې وضع کړی دی د جزیات لپاره په واسطه د مفهوم کلی سره او موضوع له هم دوه قسمه دی (١) موضوع له خاص (٢) موضوع له عام

**وجه د حصر:** ځکه دا معنی موضع له به خالي نه وي یا به امر واحد وی او یا به امر متعدد وی که امر واحد وو نو هغې ته موضوع له خاص وائي او که امر متعدد وو نو هغې ته موضوع له عام وائي د دې لپاره څلور مثالونه (١) مثال د وضع جزی خاص او موضوع له خاص لکه زید او مثال د وضع جزی خاص او موضوع له عام لکه انسان شو (٣) او مثال د وضع کلی عام موضوع له عام لکه هذا هم شو (۴) او مثال د وضع عام موضوع له خاص لکه هوالذی شو. **لشیٔ بعینه** شیٔ موصوف او بعینه

کې یا د تلبس لپاره ده جار مجرور په اعتبار د متعلق محذوفه سره چې متلبس دی صفت لپاره د شي دی او عین په معنی د ذات سره دی او اضافت عهد خارجي دی چې مراد د ذات د شي نه هغه ذات دی چې متعین وی په تعین خارجي خپل سره
په هر تعریف کې لابدي وی د جنس او فصل نه ما وضع لشی جنس دی په دې کې ټول پردی ټول داخل شو بعینه سره نکره خارج شوه نو تعریف د معرفی جامع مانع شو. او معرفی ته معرفه ځکه وائي چې معرفه په لغت کې پیژندو ته وائي او ما وضع لشی بعینه هم پیژندلی شي نو معرفه اصطلاحی ملزوم او معرفه لغوی ورسره لازم ده او تعریف بالعلامه یې دا دی چې لایقبل اَل مؤثر او لایقع موقع ما قد ذکرا.
وهي المضمرات الخ: ربط: هر کله چې فارغ شو مصنف د تعریف د معرفی نه نو شروع یې وکړه په تقسیم د معرفی کې ځکه تقسیم د متمات او مکملات د تعریف نه دی ځکه په تعریف سره معلومیږي معنی او مفهوم د شي او تقسیم سره معلومیږي افراد او مصداق د شي نو د تقسیم نه بعد به معرفه موږ ته معلومه شي مفهوما او مصداقاً .وهی المضمرات الخ.
ترجمه: دا معرفه مضمرات او اعلام الخ دی دا هی مبتدا ده المضمرات معطوف علیه سره د معطوفات نه خبر لپاره د مبتدا او عطف مقدم دی په ربط باندې او اعراب جاری شوی دی په هر واحد باندې د وجی د صلاحیت لفظی نه لپاره د دې چې لازم نه شي ترجیح بلا مرجح او دا مقام مقام د حصر دی لابدي ده د ادات د حصر نه او ادات د حصر عام دی که لفظاً وی او که معنأ وی (۱) تقدیم د عطف په ربط باندې دلالت کوی په حصر باندې معنیٰ (۲) مبتدا او خبر چې دواړه معرفه وی نو دا دلالت کوی په حصر باندې او دلته هم دواړه معرفه دی دا مذهب د شارح جامی دی. او شارح هندي وائي چې هی مبتدا ده او خبر یې حذف دی چې سبعة اقسام دی او المضمرات الخ هر واحد خبر دی د مبتدا محذوفی لهذا نه عطف مقدم دی او نه ربط مقدم دی
سوال: دا ټول اقسام سواسی دی په قسمیت کې نو تا مضمرات ولې مقدم کړه په باقي اقسام د معرفه باندې؟ جواب: په دې ترتیب ذکری کې مصنف اشاره وکړه ترتیب د رتبې د انواع د معرفی ته چې مضمرات اول نمبر معرفه ده بیا اعلام دی بیا مبهمات دی الخ. او دا مذهب د سیبویه دی (۲) کوفیان اعرف المعارف اسماء اشارات دی لانه یعرف بالقلب والعین والباقي یعرف بالقلب فقط وما یعرف بالشیئین اعرف مما یعرف بشیء واحد (۳) بصریان وائي اعرف المعاف اعلام دی ځکه دا دلالت کوی په مسمی باندې بلا قید وشرط بخلاف باقي المعارف فافهم او عند المصنف هم مذهب د سیبویه غوره دی ځکه یې اقسام ذکر کړه په دغه ترتیب باندې. المضمرات اول قسم معرفه ضمرات دی ځکه مضمرات واضع وضع کړی دی د معانی معینه مشخصه لپاره په اعتبار د مفهوم کلی سره مثلا مفرد مذکر ماتقدم ذکره لفظا او معنی چې په ځانګړې صادقیږي د هغې لپاره یې وضع کړی دی لفظ د هو والاعلام او دویم قسم اعلام دی او اعلام عام دی که اعلام شخصیه وی لکه

زيد عمرو بكر او كه اعلام نوعيه وي لكه اسود ارقم او كه اعلام جنسيه وي لكه اسامه شو ابوالحسين ام عريط شعالة ابوالحارث شو، او كه اعلام غالبه وي مثال لكه ابن عباس ابن عمر ابن مسعود او رحمن شو، **والمبهمات** دريم قسم د معرفى نه مبهمات دي چې هغه اسماء اشارات او موصولات دي ديته مبهمات ځكه وائي چې اسم اشاره بې د مشار اليه نه مبهم ده او سره د مشار اليه نه معرفه ده او موصول بدون الصله مبهم دى او سره د صلى نه معرفه ده، **وما عرف باللام** څلورم قسم د معرفى نه هغه اسم دى چې معرفه ګرځيدلي وى د وجى د دخول د لام تعريفى نه چې هغه الف لام عهد خارجي يا جنسي يا استغراقي دى او په الف لام عهدى ذهنى كې اختلاف دى بعض وائي مدخول د دې معرفه كيږي، او بعض وائي چې نه معرفه كيږي ځكه دا ذوجهتين دى په اعتبار د لفظ سره معرفه ده ځكه احكام د معرفه پرې جارې كيږي او په اعتبار د معنى سره نكره ده، او وما عرف باللام يې وويل نه بالالف واللام ځكه په الف لام كې درې مذهبونه دى سيبويه وائي چې لام يواځې للتعريف دى، او مبرد وائي چې يواځې همزه للتعريف ده، او خليل وائي چې مجموعه الف لام راځي للتعريف، او مختار عند المصنف مذهب د سيبويه دى ځكه عند المبرد لازميږى حذف د عين علامه او عند الخليل حذف د جزء د علامه لازميږي او مذهب د سيبويه د دې نقصاناتو نه پاك دى

**سوال:** ما دخله اللام يې ولې ونه ويل چې ما عرف باللام يې وويلو؟ **جواب:** ما عرف باللام يې وويل نه ما دخله اللام دى لپاره چې داخل نه شي په دې كې الف لام زائده ځكه د وجى د دخول د الف لام زائده نه اسم نه معرفه كيږي مثال لكه اللئيم شو په دې قول د شاعر كې شعر!

لقد امر على اللئيم يسبني فمضيت ثمه قلت لا يعنيني

دلته اللئيم نه دى معرفه شوى په الف لام سره ځكه جمله صفت واقع شوى دى د اللئيم لپاره

**سوال:** وما عرف باللام او الميم يې ولې ونه ويل ځكه لكه څنګه چې لام راځي د تعريف لپاره دارنګې ميم هم راځي كقول عليه السلام ليس من امبر امصيام فى امسفر؟

**جواب:** ماعرف باللام يې اوى نه اوالميم ځكه دا ميم بدل راغلي دى د لام نه لهذا دا داخل دى په الف لام كې او مستقل قسم د معرفى نه دى **اوالنداء** شپږم قسم هغه اسم دى چې دا معرفه شوى دى د وجى د دخول د حرف ندا نه مثال لكه يا رجلُ شو او تعريف د منادى قصدى دى نه وضعى په دې شان سره كه متكلم قصد د تعيين وكړي نو دا معرفه ده لكه يا رجل او كه قصد د تعيين ونه كړي نو بيا نكره ده لكه يا رجلا خذ بيدي شو (۲) يا تعريف حاصل شوى دى الف لام سره او دا يا حرف ندا قائم مقام د الف لام دى په شان د ميم باندې ځكه يا رجل اصل كې يا يها الرجل وو د هغې نه يا رجل جوړ شوى دى، او هر كله چې تعريف د منادى راجع شو معرفه باللام ته نو د دې وجى نه متقدمينو نحويانو نه دى ذكر كړي منادى د اقسامو د معرفى نه، **او المضاف الى احدهما معنى** اوم قسم معرفه هر هغه اسم نكره ده چې مضاف شي يو د دې امور خمسه مذكورو ته ما سواء د منادى نه په اضافت معنوى سره نو هغه معرفه كيږي

سوال: والمضاف الى المعرف يې ولي ونه ويلو چې داخل شوى په دې كې مضاف الى المضاف الى المعرفه مثال لكه غلام ابيك شو؟

جواب: والمضاف الى المعرف يې ونه ويلو بلكه الى احدها يې وويلو ځكه مضاف الى احدها عام دى كه بالذات وي لكه غلامك شو يا بالواسطه وى لكه غلام ابيك شو.

سوال: ته وائي چې والمضاف الى احدها او يو امر د دې امور خمسه مذكورو نه منادى هم ده او اضافت د اسم منادى ته نه كيږي ځكه لازميږي فصل بين المضاف والمضاف اليه په حرف نداء سره او دا نه دى جائز؟ جواب: نسبت د حكم چې وشي مجموعى ته نو دا لازمه نده چې دا حكم په ثابت وى هر واحد لره نحو قتل بنو فلان زيداً دا لازمه نده چې زيد دى تولو خامنو د فلانى وژلى وى يا جواب دا دى چې زه وايم چې اوم قسم معرفه هغه نكره ده چې مضاف وى يو د دې امور مذكورو ته په دې شرط سره چې دا صالح د مضاف اليه وى نو منادى خارج شو ځكه دا صالح د مضاف اليه نده او دا باقي صالح د مضاف اليه دى.

سوال: اضافت منادى ته ولي نه دى صحيح؟ جواب: بيا لازميږي فصل بين المضاف والمضاف اليه په حرف نداء سره او دا فصل بينهماندي جائز ماسواء د حرف زائد او تاكيد سره او حرف زائد او تاكيد سره جائز دى مثال د اول لكه فى بير لاحور سرى وما شعر او ثانى لكه يا تيم تيم عدي.

سوال: ته وائي چې اسم نكره چې مضاف شي معرفى ته نو معرفه كيږي نو دا قاعده ستا منقوضه شوه په مررت برجل حسن الوجه سره چې حسن اسم نكره ده مضاف دى الوجه معرفه باللام ته او دا نده معرفه شوى؟ جواب: سكارى ته ورشه چې مصنف والمضاف الى احدها فقط نه دى ويلي بلكه والمضاف الى احدها معناً يې ويلي دى يعنى هر هغه اسم چې مضاف شي معرفى ته په اضافت معنوى سره نو هغه معرفه كيږي او مررت برجل حسن الوجه كې حسن مضاف شوى دى معرفى ته په اضافت لفظى سره او دا اضافت لفظى مفيد د تعريف نه دى د دې وجى نه مررت برجل حسن الوجه جائز دى د وجى د مطابقت نه بين الموصوف والصفة او مررت بزيد حسن الوجه نه دى جائز د وجى د عدم مطابقت نه بين الموصوف والصفة.

سوال: ته وائي چې هر هغه اسم نكره چې مضاف شي معرفى ته په اضافت معنوى سره نو معرفه كيږي دا قاعده ستا منقوضه شوه بقوله تعالى ﴿إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ﴾ وبقول الشاعر:

كفى بنا فضلا على من غيرنا — حب النبى محمد ايانا

هر چې دى په دې ايت كې نو مثل مضاف شوى دى كم ته او نه دى معرفه شوى ځكه دا صفت واقع شوى دى د نكرى لپاره او على من غيرنا كې غير مضاف دى معرفى ته چې نا دى او نه دى معرفه شوى ځكه دا صفت واقع شوى دى د نكرى لپاره چې من موصوفه دى؟

**جواب:** د دې قاعدې کلي نه يو څو اسماء مستثنی دي په دې شان سره چې هر هغه اسم نکره چې مضاف شي معرفې ته په اضافت معنوي سره دا معرفه کيږي ماسواء د مثل شبه نحو غير شان سوا نه دا اسماء د وجې د کمال توغل نه په ابهام کې نه معرفه کيږي په اضافت سره معرفې ته

**سوال:** دا خبره ستا منقوضه شوه په دې قول د الله تعالی سره غير المغضوب عليهم ولا الضالين، وبقول الشاعر: نحن بنو الهجان الازهر النسب المعروف غير المنكر

وبقولك عليك بالحرکة غير السکون؟ **جواب:** هر هغه اسم نکره چې مضاف شي معرفې ته په اضافت معنوي سره دا معرفه کيږي سوا د دغه اسماء مذکوره ؤ نه په دې شرط سره که د مضاف اليه لپاره ضد واحد نه وو او په دې شرط سره چې واقع بين الضدين نه وو او که مضاف اليه لپاره ضد واحد وو يا واقع بين الضدين وو نو بيا معرفه کيږي په اضافت معنوي سره معرفې ته لکه په امثله مذکورو کې شو

**سوال:** معنا په ترکيب کې څه واقع شوې ده؟ **جواب:** دا منصوب دی بنابر مفعول مطلق.

**سوال:** د چا لپاره مفعول مطلق واقع شوی دی؟ **جواب:** د المضاف لپاره.

**سوال:** مفعول مطلق خو مصدر دفعل مذکور ته وائي او معنا مصدر د مضاف ندی، نو ته ورته څنګه مفعول مطلق وائي د مضاف لپاره؟ **جواب:** دا مفعول مطلق واقع شوی دی په اعتبار د حذف د مضاف سره ای والمضاف الی احدها اضافة معنی. بيا مضاف حذف شو او دا قائم شوی دی د هغې په مقام باندې اودا مفعول مطلق دی مجازاً بيا په تعريف د مضاف کې دوه مذهبونه دی (١) بعض وائي چې تعريف د مضاف مساوي دی د مضاف اليه سره (٢) او بعض وائي چې تعريف د مضاف کم دی د تعريف د مضاف اليه يعنی مضاف اليه په تعريف کې زيات دی د مضاف نه څکه تعريف د مضاف کسبی دی او تعريف د مضاف اليه لذاته دی، ثمره د خلاف ظاهريږي په مررت بزيد صاحبك کې په دې شان سره چې والموصوف اخص او مساو يو مسئله ده د نحويانو چې موصوف به په تعريف کې زيات وی د صفت نه يا مساوي او دا نه شي کيدی چې موصوف به کم وی په تعريف کې او صفت به زيات وی اوس څوك چې په مضاف کې تعريف مساوي وائي د مضاف اليه سره د هغوی په نزد باندې د اموصوف صفت نه دی څکه تعريف په صاحبك کې زيات دی د زيد نه بلکه دا بدل مبدل منه يا مبين او عطف بيان دی او څوك چې وائي چې په مضاف کې تعريف کم وی د مضاف اليه نه د هغوی په نيز باندې دا موصوف صفت دی څکه په زيد کې تعريف زيات دی او صاحب کې کم دی

**العلم: ربط:** هر کله چې علم ظاهر بنفسه نه وو او نه معرف وو په مقام اخر کې په خلاف د باقي انواع د معرفې نه چې څينې ظاهر بنفسه وو او بعض معرف وو په مقام اخر کې پس تعريف وکړو مصنف فقط د علم نه د باقي انواع نو وې ويل العلم **علم** په لغت کې علامی ته وائي او په اصطلاح د نحويانو کې **العلم** جنس علم **ما** اسم دی داسې اسم **وضع** چې وضع کړې شوی دی په وضع شخصی سره وی که جنسی سره وی وضع اولی سره وې که ثانويه سره وی **لشئ** لپاره د يو مسمی او مدلول

داسې مسمی چې متلبس دی **بعينه** په تعين خارجي خپل سره په دې شان سره چې دا به معلوم وی متكلم او مخاطب دواړو ته **غير متناول غيره** په حال كون د دې اسم موضوع لشئ بعينه كې چې د دې اطلاق نه كيږي په غير د مسمی خپل نه په بل شئ باندې **بوضع واحد** په تناول سره هسې تناول چې كائن دی په وضع واحدی سره دا قيد يې ذكر كړي دی جامعه مدخله لپاره د دې چې خارج نه شي اعلام مشتركه د تعريف د علم نه او غير متناول غيره سره خارج شو د تعريف د علم نه باقي انواع د معرفی نو تعريف د علم جامع او مانع شو.

**تشريح: سوال:** معرفه اوه قسمه ده او مصنف صرف د علم تعريف وكړو د دې نورو اقسامو تعريف يې ولې ونه كړو؟ **جواب:** هر كله چې علم نه ظاهر بنفسه وو او نه معرف وو په مقام اخر كې په خلاف د باقي انواع د معرفی نه چې بعض ظاهر بنفسه وو لكه مضاف الی احدها او معرفه باللام او څنې معرف وو په مقام اخر كې لكه مضمرات مبهمات او معرفه بالنداء پس خاص كړو مصنف علم لره په تعريف سره نو ځكه يې د دې تعريف كړی دی او د نورو اقسامو تعريف يې نه دی كړي، او په علم كې لابدي ده د معرفت د امور ثلاثه و نه (۱) مفهوم لغوی (۲) مفهوم اصطلاحی (۳) معرفت د اقسام. نو علم په لغت كې علامی ته د شئ ته وائي او په اصطلاح كې (۱) اسم يعين المسمی مطلقا (ابن مالك) (۲) ما وضع لشئ بعينه غير متناول غيره بوضع واحد كذا فی المتن

**سوال:** تعريف د علم جامع نه شو افرادو خپلو لره خارج شو د دې نه علم غالبه لكه رحمن، او ابن عباس شو ځكه ته وائي چې علم هغه اسم ته وائي چې وضع لشئ بعينه، او علم غالبه وضع لشئ بعينه نه دی بلكه وضع كړي شوی دی د مفهوم كلي لپاره او مستعمل يې مستعمله وی په يو فرد كې؟

**جواب:** وضع عامه ده كه وضع اولی وی او كه وضع ثانوی وی او استعمال د مستعمل په يو فرد كې په منزله د وضع ثانيا دی.

**سوال:** تعريف د علم جامع نه شو خپلو افرادو لره خارج شو د دې نه علم نوع او علم جنس ورته ځكه وائي چې علم ما وضع لشئ بعينه ته وائي او هغه د يو شئ معين لپاره نه دی وضع شوی؟

**جواب:** دا شئ عام دی كه فرد شخصي وی لكه زيد شو يا فرد نوعی وی لكه اسود او ارقم شو يا فرد جنسي وی لكه اسامه شو **غير متنـ اول** منصوب دی بنابر حاليت حال واقع شوی دی د ضمير د وضع نه او غير متناول مجرور نه دی بنا په دې چې صفت شي د شئ لپاره (۱) ځكه تناول صفت د لفظ دی نه د معنی او شئ عبارت دی د معنی نه توصيف د دې په تناول سره نه دی صحيح (۲) كه دا غير متناول صفت شي د شئ لپاره نو تعريف د علم نه جامع كيږي خپلو افرادو لره د دې نه علم جنس خارجيږي او علم نوع هم خارجيږي ځكه هغه متناول دی كثير لره.

**سوال:** **بوضع واحد** جار مجرور دی د دې لپاره لابدي ده د اعراب محلي نه د دې اعراب محلي څه دی؟

**جواب:** جار مجرور منصوب محلا دی بنابر مفعول مطلق د متناول لپاره.

**سوال:** مفعول مطلق خو مصدر د فعل مذكور ته وائي او وضع مصدر د متناول نه دی نو څنګه ورته منصوب بنابر مفعول مطلق وائي؟

**جواب:** دا مفعول مطلق دی په اعتبار د موصوف محذوفه سره چې تناولا دی
**سوال:** جار مجرور چې په ترکیب کې څه واقع کیږي نو په اعتبار د متعلق سره واقع کیږي نو دا به یا
ته متعلق کوی په متناول پوري یا به تناولاً پوري که په متناول پوري شي نو تقدیم د صفت راغی په
موصوف باندې او دا نه دی جائز او که متعلق کوی یې په تناولاً پوري نو توصیف د شي بنفسه راغی
او دا نه دی جائز؟ **جواب:** دا په یو پوري هم نه دی متعلق بلکه دا متعلق دی په کائنا مقدر پوري یا
کائنا سره د متعلق نه صفت د تناولا دی بیا موصوف حذف شو صفت قائم شو مقامه بیا د کائن
متعلق هم حذف شو او جارمجرور قائم شو مقامه نو دیته مونږه مفعول مطلق وایو نیابة او مجازاً
**سوال:** بوضع واحد قید یې د څه لپاره ذکر کړي دی؟ **جواب:** دا یې ذکر کړي دی د دې لپاره چې
خارج نه شي د تعریف دعلم نه اعلام مشترکه ځکه هغه متناول دی غیر لره په اوضاع متعددو سره
نه په وضع واحد سره او علم هغه ته وائي چې غیر متناول وی غیر لره په وضع واحد سره او اعلام
مشترکه هم متناول غیر لره نه دی په وضع واحد سره
**علم اولاً په دري قسمه دی** (۱) علم محضه (۲) لقب (۳) کنیه، وجه د حصر یکې دا ده چې دا اسم به
خالي نه وي یا به مصدر وی په لفظ د اب ام بنت سره او یا به نه وي که مصدر وو نو کنیه لکه
ابوالقاسم ابن عباس ام کلثوم ابوبکر وغیره او که مصدر نه وو نو بیا به خالي نه وي یا به دلالت
کوی په مدح او ذم باندې په اعتبار د اصل وضع سره او یا به نه کوی که کوو یې نو لقب لکه زین
العابدین آنف الناقة وغیره او که نه یې کوو نو علم محضه لکه زید عمرو بکرو وغیره.
**او علم ثانیا په دوه قسم دی** (۱) منقول (۲) مرتجل
**وجه د حصر:** یکې دا ده چې دا علم به خالي نه وي یا به د دې معنی علمی نه مخکې بله معنی کې
مستعمل شوی وی او یا به نه وي که نه وو نو علم مرتجل لکه زید عمرو بکر سعاد شو او که
مستعمل شوی وو نو علم منقول ورته وائي او علم منقول په اعتبار د منقول عنه سره لس (۱۰)
قسمه دی (۱) منقول من اسم الجنس نحو اسد (۲) من المصدر نحو فضل (۳) من اسم الفاعل نحو
حارث شاکر (۴) من اسم المفعول نحو مسعود (۵) من الماضی نحو شمر (۶) من المضارع نحو
یزید (۷) من صفة المشبة ........ (۸) من اسم التفضیل نحو افضل و اشرف (۹) من المرکب
الناقص نحو عبدالله (۱۰) من الجملة نحو تأبط شرا
**او علم ثالثا دري قسمه دی** (۱) مفرد (۲) مرکب ناقص (۳) جمله
**وجه د حصر:** یکې دا ده چې دا علم به خالي نه وي یا به جز د لفظ دلالت کوی په جز د معنی موضوع
له باندې په اعتبار د اصل وضع سره او یا به یې نه کوي که نه یې کوو نو علم مفرد لکه زید عمرو
بکر او که کوو یې نو بیا به خالي نه وي یا به مفید د فائد تامه وی سامع ته او یا به نه وي که مفید
د فائد تامه وو نو جمله او که نه وو نو مرکب ناقص او مرکب ناقص دري قسم دی (۱) اضافی نحو
عبدالله (۲) صوتی نحو سیبویه (۳) منع صرف نحو بعلبک

المطالب العالیه او علم رابعاً په خلور قسمه دی (۱) علم شخص (۲) علم نوع (۳) علم جنس (۴) علم غالبه
وجه د حصر: یکې دا ده چې دا علم به خالي نه وي یا به وضع شوی وی د یو شي معین لپاره او یا به وضع شوی وی د مفهوم کلي لپاره که وضع شوی وو د شئ معین لپاره نو دا شئ معین به خالي نه وي یا به فرد شخصي وی یا فرد نوعی وی او یا به فرد جنسي وی، که فرد شخصی وو نو علم شخص لکه زید شو، او که فرد نوعی وو نو علم نوع لکه اسود شو، او که فرد جنسي وو نو علم جنس لکه اسامةُ، او که د مفهوم کلی لپاره وضع شوی وو نو بیا به خالي نه وي یا به یې مستعمل مستعمله وی په یو فرد کې او یا به یې نه مستعمل کوی، که مستعمل کوو یې نو علم غالبه لکه رحمن ابن عباس وغیره شو، او که مستعمل په یو فرد کې نه مستعمل کوو نو هغه ته اسم جنس وائي لکه رجل شو.
سوال: د اسم جنس او علم جنس په مینځ کې څه فرق دی لفظاً او معناً؟ جواب: فرق معنوی دا دی چې په علم جنسي کې لحاظ د تعیین ثانوی شته او په اسم جنس کې نشته، او فرق لفظی دا دی چې په علم جنس باندې احکام د علم شخص جاري کیږي او په اسم جنس نه جاری کیږي (۱) چې تأخر د حال دی د هغې نه (۲) منع د دخول د الف لام (۳) منع د اضافت (۴) منع د وقوع د نکره صفت لپاره د دې (۵) منع د کلمه د صرف نه د علم جنس د وجی نه د دې وجی نه اسد منصرف دی او اسامه غیر منصرف دی ځکه چې دوه سببه دی یکې (۱) علم جنس (۲) تانیث لفظی
**واعرفها المضمر المتکلم ثم المخاطب:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان دتعریف دعلم نه نو شروع یې وکړه په بیان د مراتب د تعریف د نوع اول د معرفه کې چې مضمرات دی نو وی ویل چې واعرفها الخ او هر کله چې یو شان وو مراتب د تعریف د اصنافو دباقي انواعو د معرفی په خلاف د مضاف الی احدها نه پس مختص یې وګرځوو بیان د مراتب د تعریف په اصنافو د مضمراتو پورې ځکه په مابین د اصنافو د باقي اقسامو د معرفه کې تفاوت نشته سوا د مضاف الی احدها نه او په دې کې مراتب پیژندې شي په اعتبار د مضاف الیه سره.
**ترجمه: واعرفها** اعرف د معارفو نه یعنی اقل د معارفو نه لبساً عند المخاطب **المضمر المتکلم** ضمیر د متکلم دی د وجی د بعد د وقوع د التباس نه په دې ضمیر د متکلم کې **ثم المخاطب** بیا مضمر مخاطب دی ځکه کله کله عارض کیږي د ضمیر د مخاطب ته هغه شي چې نه عارض کیږي ضمیر د متکلم ته په دې شان سره چې ته ووائي انا نو التباس د غیر سره نشته، او که انت ووائي نو احتمال د التباس شته د اخر سره چې دا خطاب د دې یو سره دی نه د بل سره او بیا مضمر غائب دی او دا یې ذکر نه کړو ځکه معرفت د اعرفیت د متکلم او مخاطب سره مستلزم دی معرفت د اعرفیت د غائب، لهذا ذکر د هغه ته ضرورت نشته.
**تشریح: سوال:** د دې ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟ **جواب:** ربط دا دی چې مخکې یې بیان د ترتیب وکړو په اقسامو د معرفه کې اوس بیان د ترتیب د تعریف د اصنافو د نوع اوله د معرفی کوی چې ضمیر دی او په معرفت د ربط سره غرض د مصنف هم واضح شو

وله کړو؟ **جواب:** په مراتب د
**سوال:** بیان د مراتب د تعریف د اصنافو د باقي انواع د معرفه یې ولي ونه کړو؟ **جواب:** په مراتب د
تعریف د باقي اصنافو د انواعو د معرفه کې تفاوت نشته سوا د مضاف الی احدها نه نو ځکه یې نه
دی بیان کړي، او مراتب د تعریف د اصنافو د مضاف الی احدها معلومیږي د مضاف الیه نه په دې
شان سره که مضاف الیه ضمیر وو نو دا اول نمبر معرفه ده که مضاف الیه علم وو نو دویم نمبر الخ
**سوال:** ته وائې چې ضمیر د متکلم اعرف دی نو مطلب یې داشو چې په دې کې به التباس نه راځي
حالانکه په دې کې خو التباس راځي لکه چې انا وویلي شي من وراء الجدار؟ **جواب:** اعرف په معنی
د اقلها لبساً سره دی نه په معنی د عدم الالتباس سره ځکه ضمیر د متکلم اقل دی د جهت د
التباس نه په نسبت سره ضمیر د مخاطب نه په دې شان سره چې زه انا اوایم نو التباس د غیر سره
نشته او چې انت اوایم نو احتمال شته چې دغه مخاطب نه وي مراد بلکه بل مراد وی
**سوال:** ضمیر د متکلم او مخاطب مرتبه بیان شوه نو ضمیر د غائب یې ولي ذکر نه کړو؟
**جواب:** هر کله چې معرفت د اعرفیت د ضمیر د متکلم او مخاطب مستلزم وو معرفت د اعرفیت د
مضمر غائب لره نو هغه یې ترک کړو اختصاراً
**النکرة ماوضع لشئ لا بعینه:** **ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف دبیان د معرفی نه نو شروع یې وکړه
په بیان د نکره کې، نو نکره په لغت کې ناشنا ته وائي او په اصطلاح د نحویانو کې یو اسم دی
داسې اسم چې وضع کړي شوی دی د یو مسمی لپاره داسې مسمی او مدلول چې متلبس نه دی په
تعین خارجي خپل سره په دې شان سره چې د دغه مسمی او مدلول مصداق معلوم نه دی متکلم او
مخاطب ته لکه رجل شو، دا خو تعریف بالمفهوم د نکره شو او تعریف بالعلامه یې دا دی

نکرة قابل آل مؤثرا　　　　لو واقع موقع ما قد ذکرا

او اقسام د نکره یې ذکر نه کړه ځکه چې غیر محصور او غیر منضبط دی ځکه ماسواء د اقسامو
د معرفی نه ټول اسماء د قبیلې د نکرې نه دی
**اسماء العدد ما وضع لکمیة احاد الاشیاء:** **ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د تقسیم د اسم نه ثانیا په
اعتبار د وضع سره نوعین ته چې معرفه او نکره وو پس شروع یې وکړه په تقسیم اخر د اسم کې
ثالثا په اعتبار د دلالت د اسم سره په کمیة باندې او په اعتبار د عدم دلالت علی الکمیت سره، او
هر کله چې اسماء عدد لپاره احکام مختصه وو په دې شان سره چې جار کیږي په اسماء عدد کې نه
په نورو اسماؤ کې نو ذکر یې کړو عدد لپاره د بیان د احکامو مختصو نو وی ویل اسماء العدد
**ترجمه:** اسماء عدد په اصطلاح د نحویانو کې **ما** الفاظ دی او افراد د ضمیر د وضع په اعتبار د
لفظ د ما سره دی (۲) یا جنس اسم عدد په اصطلاح د نحویانو کې جنس لفظ دی او د کلمه د ما نه
موئږه تعبیر وکړو په لفظ سره نه په اسم سره لپاره د دې چې دا تعریف د اسم عدد شامل شي ټولو
اسماء عدد لره خوا که هغه احاد وی او که مرکبات بنائیه وی او که مرکبات عطفیه وی. او په
احادو او مرکبات بنائیه ؤ باندې اطلاق د اسم کیږي حقیقة ځکه جوز دلفظ دلالت نه کوی په جز د

معنی باندې او په مرکبات بنائیه ؤ باندې اطلاق د اسم کیږي حکماً ځکه اصول د مرکبات عطفیو اسماء دی او په عنوان کې یې اسماء عدد ویلي دی تغلیباً **وضع** داسې لفظ چې وضع کړي شوی دی **لکمیة احاد الاشیاء** لپاره د معلومه ولو د مقدار د افرادو د معدوات په دې شان سره چې دغه کمیة کل معنی موضوع له د دې اسم عدد ده او افراد عام دی که انفراداً وی لکه واحد او ثنان یا اجتماعاً وی لکه ثلاثة او اربعة شو.

**تشریح: سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟

**جواب:** ربط د ماقبل سره دا دی چې دا مخکې هم تقسیم د اسم وو نوعین نه (۱) معرفه (۲) نکره، او دا هم تقسیم د اسم دی نوعین ته (۱) اسماء عدد (۲) اسماء غیر عدد، لیکن دومره فرق دی چې دغه تقسیم ثاني د اسم نوعین په اعتبار د وضع سره وو او دا تقسیم ثالث د اسم نوعین نه په اعتبار د دلالت علی الکمیت او عدم دلالت علی الکمیت سره دی او غرض د مصنف تقسیم احر دی په اسم نحوی کې نوعین ته چې یو اسم عدد دی او بل اسم غیر عدد دی په دې شان سره چې دا اسم به خالي نه وي یا به دلالت کوی په کمیت د احادو باندې او یا به یې نه کوي. که دلالت یې کوو نو اسم عدد، او که دلالت یې نکوو نو اسم غیر عدد.

**سوال:** مخکې تا تقسیم د اسم کړي وو نوعین ته چې معرب او مبني وو نو دا اسماء عدد به خالي نه وي یا به معرف وی او یا به مبني وی، که معرب وی نو داخل دی په معرب کې، او که مبني وی نو داخل دی په مبني کې نو بیا یې ولې ذکر کوی؟ **جواب:** هر کله چې وو د دې لپاره احکام مختصه په دې شان سره چې هغه احکام مختص وو په دې پورې او مجاوز نه دی غیز ته نو ذکر یې کړو لپاره د بیان د احکام مختصه ؤ چې هغه درې دی (۱) استعمال خلاف القیاس یعنی تمیز د عدد چې مذکر راشي نو عدد مؤنث کولي شي وبالعکس (۲) جوړول د اسم فاعل د مادی جامدی نه لکه رابع خامس حادی عشر وغیر شو (۳) اضافت د مرکب الی المرکب.

**سوال:** په نورو ځایونو کې تا **ما** عبارت د اسم نه اغستو نو دلته عبارت دلفظ نه ولې اخلي؟

**جواب:** کلمه د ما په دې مقام کې عبارت دی د لفظ نه، نه ده اسم نه لپاره د دې چې دا تعریف د اسم عدد شامل وګرځي ټولو اسماء عدد لره ځوا که هغه احاد دی که مرکبات بنائیه دی او که مرکبات عطفیه دی او که دا عبارت شي د اسم نه نو مرکبات عطفیه ترې خارجیږي او د اسم اطلاق کیږي په مرکبات بنائیه ؤ باندې حقیقة ځکه جز د لفظ دلالت نه کوي په جز د معنی موضوع له باندې، او په مرکبات عطفیه باندې دلالت حقیقة نه کیږي ځکه جز د لفظ د دې دلالت کوی په جز د معنی باندې.

**سوال:** هر کله چې اطلاق د اسم په مرکبات عطفیه باندې نه کیږي نو په عنوان کې یې اسماؤ العدد ولې ذکر کړي دی؟ **جواب:** په عنوان کې یې اسماء ذکر کړی دی تغلیباً (۲) یا عنوان کې یې اسماء العدد ذکر کړي دی ځکه اصول د اسماء العدد اسماء دی (۳) یا اطلاق د اسم په مرکبات عطفیه باندې حقیقة نه دی جائز خو مجازاً وربانډې کولي شي ځکه اصول د هغې اسماء دی.

**سوال:** دا کلمه د ما به خالي نه وي يا به يې عبارت وائي د لفظ نه او يا به بې عبارت وائي د الفاظو نه دواړه نه دی صحيح، که عبارت يې وائي د لفظ نه نو مابعد ورسره ولګيدو چې وضع دی نو ماقبل ورسره نه لګي چې اسماء العدد دی ځکه چې حمل د مفرد راځي په جمع باندې وذا لايجوز او که عبارت يې وائي د الفاظو نه نو د ماقبل سره لګي خو د مابعد سره نه لګي ځکه وضع کی ضمير د مفرد دی نو دا مطابقت نه راځي بين المرجع والضمير؟

**جواب:** (۱) دا ما عبارت وايم د الفاظو نه او که ته وائي چې مابعد ورسره نه لګي نو جواب دا دی چې افراد د ضمير د وضع په اعتبار د لفظ د ما سره دی ليکن دا جواب کمزوري دی (۲) اصلي جواب دا دی چې ما عبارت دی د لفظ نه او که ته وائي چې ماقبل ورسره نه لګي نو جواب دا دی چې اضافت د اسماء عدد ته اضافت جنس دی نو معنی دا ده جنس اسم عدد عند النحات جنس لفظ دی نو حمل د جنس په جنس باندې راغي اوس دا دويم جواب غوره دی اول نه ځکه چې تعريف کيږي د جنس په جنس سره او په دې اول جواب کې تعريف د افرادو راځي په افرادو باندې او په دويم کې تعريف د جنس راځي په جنس سره په هر تعريف کې لابدي وی د جنس او فصل نه نو ما وضع جنس دی په دې کې خپل او پردی ټول داخل شو **لکمية** فصل اول دی په دې سره يې احتراز وکړو د هغه اسماؤ نه چې هغه وضع کړي شوی دی د غير کميت لپاره بيا برابره خبره ده که دلالت په عدد د معين باندې کوی لکه زيد عمرو بکر يا نه کوي لکه صيغ د جمع او لفظ د عدد شو او اضافت د کميت چې احاد ته وشو دا فصل ثاني دی په دې سره يې احتراز وکړو (۱) د هغه شي نه چې هغه وضع شوی دی د کميت د اجزاؤ لپاره لکه نصف ربع ثلث وغير (۲) او دارنګې احتراز يې وکړو د خط سطح او جسم تعليمي نه ځکه دا اګر چې وضع شوی دی د کميت لپاره خو د کميت د افرادو لپاره نه راځي خط ما له طول ته وائي او سطح ما له طول و عرض او جسم تعليمي ما له طول وعرض وعمق ته وائي (۳) دارنګې يې احتراز وکړو د هغه الفاظو نه چې هغه وضع شوی دی د کيمت د مسافت لپاره لکه ميل او فرسخ شو.

او اضافت د احاد چې يې اشياؤ ته وکړو نو دا فصل ثالث دی په دې سره احتراز وکړو د بضع او نفر نه ځکه دا وضع شوی دی د کميت د افرادو لپاره في نفسها بې د نسبت نه غير ته (۲) او بل يې احتراز وکړو د کل بعض اشي اولاواحد نه ځکه دغه الفاظ وضع شوی دی لپاره د کيمت د افرادو د موضوع د قضيه نه لپاره د کميت د افرادو د معدودات، او دلته دا کميت عبارت دی د مقدار نه او احاد عبارت دی د افرادو نه او اشياء عبارت دی د معدودات نه.

**سوال:** تعريف د اسماء عدد جامع نه شو خپلو افرادو لره خارج شو د دې نه واحد اثنان ځکه ته وائي چې اسم عدد ما وضع لکميت احاد الاشياء نه وائي او واحد او اثنان دلالت نه کوی په کميت د افرادو معدودات بلکه واحد دلالت کوی په يو باندې او اثنان دلالت کوی په دوه باندې؟

**جواب:** دا په تعميم د افرادو سره دی يعنی دا افراد عام دې چې انفراداً وی او که اجتماعاً وی نو داخل شو پکې واحد او اثنان ځکه دا اګر چې دلالت نه کوی په کيمت د افرادو معدودات اجتماعاً

لیکن دلالت کوی په کمیت د افرادو د معدوداتو انفراداً په دفعات کثیرو سره لکه، یو کس تاته ووائي چې کم دینارا ، درهما غلاماً عندك او ته ورته ووائي چې واحد واحد واحد.

**سوال:** تعریف د اسم عدد مانع نه شو د دخول د غیر نه داخل شو پکې رجل او رجلان ځکه دا اسم دی او دلالت کوی په مقدار د افرادو معدد باندې لکه واحد دلالت په یو باندې کوی نو رجل هم دلالت په یو باندې کوی دارنګې رجلان دی، او حال دا دی چې دا اسم عدد نه دی؟

**جواب:** دا دی چې دا قاعده ده چې لام چې صله د وضع راشي نو مدخول دلام کل معنی موضوع له وی نو د اسم عدد ټولو معنی موضوع له دلالت په کیمت د احادو د اشیاؤ دی فقط او رجل او رجلان دلالت په کیمت د احادو د اشیاؤ نه کوی فقط بلکه دلالت ورسره په جنس هم کوی او اسم عدد دلالت په عدد کوی او په جنس یې نه کوی نو تعریف د اسماء عدد جامع مانع شو.

یا عدد په اصطلاح د اهل حسابو کې دیته وائي چې واقع کیږي نصف د مجموعه د حاشیتین مثال لکه اثنان عدد دی ځکه دا نصف د مجموعه د حاشیتین دی په دې شان سره چې د اثنان دوه حاشي دی یو حاشیه دونی چې واحد دی او دویم حاشیه فوقی چې ثلاثة دی دا چې جمع شي اربعة ترې جوړیږي او اثنان د اربعة نصف دی، دارنګې ثلاثة اربعة هم دی، او په اصطلاح د نحویانو کې ما وضع لکمیة احاد الاشیاء ته وائي، اوس د دې نه معلومه شوه چې په اسم عدد د نحویانو او اسم عدد د اهل حساب کې نسبت د عموم خصوص مطلق دی اسم عدد د اهل حساب اخص مطلق دی او اسم عدد د نحویا اعم مطلق دی په دې شان سره چې کوم شئ چې عدد وو اهل حساب په اصطلاح کې هغه عدد عندالنحات دی او دا لازمه نده چې کوم شئ عدد وی عندالنحات نو هغه به عدد عند اهل الحساب وی مثال د ماده افتراقی د عدد د جانب د نحویانو نه لکه واحد شو، دا عدد دی عندالنحات ځکه عدد عند النحات ما وضع لکمیت احاد الاشیاء ته وائي او دا هم د کمیت د احاد د اشیاء لپاره وضع شوی دی (۲) یا عدد عندالنحات ما یقع فی جواب کم ته وائي او دا هم په جواب کې واقع کیږي یا مایقع فی العدته وائي او دا واحد هم په شمیر کې واقع کیږي او دا واحد عدد نه دی عنداهل الحساب ځکه د دوی تعریف ورباندې نه صادقیږي ځکه د دې لپاره حاشیه فوقی شته خو حاشیه دونی ورله نشته، وعندالبعض اثنان هم عدد نهٔ دی ځکه دا مجاور د واحد دی اګر که تعریف د عدد په دی باندې صادقیږي لیکن مجاورة د واحد د وجه نه ورته عدد نه وائي لهذا (۱) واحد عدد نه دی عند اهل الحساب بالاتفاق (۲) ثلاثة وما بعده عدد دی بالاتفاق (۳) اثنان عندالجمهور عدد دی وعند البعض عدد نه دی.

**اصولها اثنتا عشرة کلمة:** **ربط:** (۱) هر کله چې فارغ شو مصنف د تعریف د اسماء عدد نه نو شروع یې وکړه په تقسیم د اسماء عدد کې چې اسماء عدد دوه قسمه دی (۱) اصول (۲) فروع، (۲) یا هر کله چې فارغ شو تعریف د اسماء عدد نه نو شروع یې وکړه په بیان د مصداق د اسماء عدد کې (۳) یا دا جمله مستانفه ده واقع شوې ده په جواب د سوال دسائل کې ځکه کله چې مصنف تعریف د اسماء عدد وکړو

چې ما وضع الخ نو معترض اعتراض وکړو چې ما هی یعنی هغه الفاظ کوم دی چې دلالت کوي په کمیت د افرادو د معدوداتو باندې نو مصنف جواب وکړو چې اصولها اثنتاعشرة کلمة سره.

**ترکیب:** **اصولها** مبتدا **اثنتاعشرة** عدد مبهم ممیز **کلمة** ورله تمیز، ممیز سره د تمیز نه خبر د مبتدا **واحد** (۱) خبر دی د مبتدا محذوفی لپاره ای احدها واحد (۲) یا دا واحد بدل بعض واقع شوی دی د اثنتاعشرة کلمة لپاره، **ومائة والف** عطف دی په واحد باندې او اشتمال د بدل بعض په ضمیر د مبدل منه باندې قاعده کلیه نده بلکه قاعده اکثریه ده (۲) او که اومنم چې قاعده کلیه ده نو اشتمال د بدل بعض ضمیر د مبدل منه لره عام دی که لفظا وی او که تقدیراً وی دلته اګر چې لفظ نشته خو تقدیراً دی فیکون تقدیر واحد منها الی عشرة ومائة والف.

**ترجمه:** **اصولها** اوصول د اسماء عدد یعنی هغه اسماء عدد چې مبني علیه او متفرع علیه د باقي اسماء عدد دی **اثنتاعشرة کلمة** دولس کلمی دی چې **هغه واحد** وغیره دی **الی عشرة** تر عشرة پورې نو لس دا شو اویولسم **مائة** دی او دولسم **الف** دی.

**تشریح:** **سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟

**جواب:** ربط د ماقبل سره په وجوه ثلاثه ؤ سره دی کما مر او په معرفت د ربط سره غرض د مصنف رحمه الله هم معلوم شو پدې شان سره چې (۱) غرض د مصنف د دې عبارت نه تقسیم د اسماء عدد دی نوعین ته چې یو اصول دی او بل فروع دی (۲) یا غرض د مصنف بیان د مصداق او صیغ د اسماء عدد دی (۳) یا غرض د مصنف دفع د اعتراض ده چې هغه اعتراض معترض کړی دی په مصنف باندې پس د تعریف د اسماء عدد نه په ماهی سره، نو مصنف جواب وکړو په اصولها الخ سره.

**سوال:** اصول جمع د اصل ده او اصل په استعمال د کلام دعربو کې په پنځه معانیو سره راځي (۱) بمعنی الدلیل (۲) بمعنی المقیس علیه (۳) بمعنی اولی وراجح (۴) بمعنی قاعده کلیه (۵) بمعنی د مایبتنی علیه غیره سره دی.

**سوال:** او دلته اصول په کومه معنی سره دی؟ **جواب:** دلته اصول په معنی د مایبتنی علیه غیره سره دی او اصل چې په معنی د مایبتنی علیه غیره سره راشي نو د دې په مقابل کې فرع راځي بمعنی مایبتنی علی غیره لهذا د دې عبارت ترجمه دا شوه چې متفرع علیه او مبني علیه د دې اسماء عدد دولس کلمات دی چې هغه واحد، اثنان، ثلثة، اربعة، خمسة، ستة، سبعة، ثمانیة، تسعة، عشرة، مائة، او الف، دی د دې دولسو کلماتو ته عندالنحات اصول د اسماء عدد وائي او د دې نه علاوه نورو ته فروع د اسماء عدد وائي.

**سوال:** دی دولسو کلماتو ته اصول او باقي ته فروع ولې وائي؟ **جواب:** اصل مایبتنی علیه غیره ته وائي او دی دولس کلمات ته اصول ځکه وائي چې دا مبني علیه د باقي اسماء عدد دی په دې شان سره چې دا باقي اسماء عدد دی دولسو کلماتو نه جوړیږي.

**وطرق بناء الفروع من الاصول خمسة** (۱) بالحاق تاء التانیث نحو واحدة واثنتان (۲) باسقاطها نحو ثلاث الی عشر (۳) وبالتثنیة کمائتین والفین (۴) وبالجمع حقیقة او حکما فالاول کمأة والوف

والثاني كعشرين او باقي عقود (۵) وبالتركيب، او دا تركيب عام دی (۱) كه اضافي وی نحو ثلاث مائة (۲) يا امتزاجی وی نحو احد عشر تا تسعة عشر (۳) يا عطفی وی نحو احد وعشرون او په اثنتاعشرة كلمة كې دا كلمة منصوب دی څكه دا تميز واقع شوی دی د عدد اوسط او تميز د عدد اوسط مفرد منصوب راځي، او دا دواړه جزئين مستعمل شوی دی موافق القياس څكه تميز يې مؤنث راغلي دی او د احد عشر نه تر تسعة عشر پورې په دې كې يوولس او دوولس مستعملولې شي موافق القياس په دې شان سره كه تميز يې مذكر وو دواړه به مذكر وی، او كه تميز يې مؤنث وو نو دواړه به مؤنث وی او دلته تميز مؤنث دی څكه دواړه مؤنث دی، او په اثنتاعشرة كې جز ثاني مبني على الفتحه دی څكه متضمن دی معنى د حرف عطف لره او جز اول معرب دی، او مرفوع بالالف دی څكه خبر دی د مبتدا لپاره چې اصولها دی او دا جز اول معرب دی لما مر.

**سوال:** واحد په تركيب كې څه واقع شوی دی؟ **جواب:** دا خبر د مبتدا محذوف دی ای احدها واحد اومائة الف مرفوع دی عطف دی په واحد باندې (۲) يا دا واحد مرفوع دی څكه دا بدل بعض واقع شوی دی د اثنتاعشرة كلمة نه.

**سوال:** په بدل بعض كې لابدي ده د اشتمال نه په ضمير د مبدل منه باندې او دا خو مشتمل نه دی په ضمير د مبدل منه باندې؟ **جواب:** دا قاعده كليه نده بلكه إكثريه ده په دې شان سره چې دا بدل بعض غالبا مشتمل وی په ضمير د مبدل منه باندې او كله كله بدون الاشتمال هم راځي لكه دلته شو (۲) او كه اومنم چې قاعده كليه ده نو بيا اشتمال د بدل بعض په ضمير د مبدل منه عام دی كه لفظا وی او كه تقديرا وی دلته تقديرا دی ای واحد منها الى عشرة.

**سوال:** الى په دوقسمه دی (۱) اسقاطی (۲) امتدادی دی، دلته يو هم نه دی صحيح څكه په الى اسقاطی كې سر د كلام متناول وی مابعد لره او دلته واحد متناول نه دی عشرة لره، او الى امتدادی كې حكم مدخول د الى لره نه وی ثابت او دلته حكم عشرة لره ثابت دی چې دا د اصول د اسماء عدد نه دی؟ **جواب:** دا الى استقاطيه دی او كه ته وائي چې سر د كلام متناول نه دی مابعد لره نو جواب دا دی چې دا عبارت په حذف د مضاف سره دی فيكون التقدير واحد وغيره الى عشرة ومائة، مائة اصل كې مای وو بروزن فعَل يا متحركه وه او ماقبل ترې مفتوح وو بدل شوه په الف باندې او الف حذف شو د وجې د التقاء د ساكنين نه په مينځ د الف او د تنوين كې او د هغې په عوض كې په اخير كې تاء راغله نو مائة شو.

**تقول واحد اثنان الخ: ربط:** هر كله چې فارغ شو مصنف د بيان د اصول د اسماء عدد نه نو شروع يې وكړه په بيان دطريقه د استعمال د اسماء عدد كې.

(۲): يا هر كله چې فارغ شو د بيان د اصول د اسماء عدد نه نو شروع يې وكړه په بيان د احكام مختصه د اسماء عدد كې نو وی ويل چې وتقول الخ.

**ترجمه:** وتقول وائي به ته اې مخاطب واحد او اثنان په مذكر كې او واحدة او اثنتان او ثنتان په مؤنث كې موافق القياس برابره خبر ده كه مفرد وی او كه مركب وی په تركيب امتزاجی سره يا په تركيب

عطفی سره ځکه اصل په استعمال کې موافق القياس دی او خلاف القياس خلاف الاصل دی او
اصل نه عدول کول شي خلاف الاصل ته د وجی د وجود د مقتضی نه چې هغه تميز دی او دلته
تميز نه دی موجود ځکه واحد او اثنان تميز نه غواړي او وجه د دې وروستو راځي.
**تشريح: سوال:** دا واحد او اثنان مقوله ده د تقول لپاره او مقوله د قول نه راځي مګر جمله راځي او
واحد او اثنان مفرد دی؟ **جواب:** مقوله د قول جمله راځي په دې شرط چې مراد اللفظ نه وی او که
مراد اللفظ وه نو بيا مفرد هم راځي کما فی قوله تعالی ﴿ فَلَا تَقُل لَّهُمَآ أُفٍّ ﴾ او دلته واحد او اثنان
مراد اللفظ مفعول به واقع شوې ده د تقول لپاره.
**سوال:** مقوله د قول چې مفرد مراد اللفظ وی نو هغه منصوب وی نو دلته واحد مرفوع ولې دی؟
**جواب:** دا یې مرفوع ویلي دی حکایة ځکه بل ځای داسې مرفوع وو، او تقول صيغه د واحد مذکر
مخاطب فعل مضارع ده نه صيغه د واحدې مؤنثې غائبې، **وثلاثة الى عشر** دا عطف دی په واحد باندې
**ترجمه:** او دغسې وائي به ته ثلاثة ومازاد عليه تر عشرة پورې که تميز د دې جمع مذکر وو کما فی
قوله تعالی ﴿ ءَايَتُكَ أَلَّا تُكَلِّمَ ٱلنَّاسَ ثَلَٰثَةَ أَيَّامٍ إِلَّا رَمۡزًا ﴾ **وثلاثة الى عشر** او وائي به ته ثلاث او ماذاد عليه
تر عشر پورې که تميز د دې جمع مؤنث راغلی وو نحو قوله تعالی ﴿ قَالَ ءَايَتُكَ أَلَّا تُكَلِّمَ ٱلنَّاسَ ثَلَٰثَ
لَيَالٍ سَوِيًّا ﴾
**تشريح:** په دې اصولو د اسماء عدد کې د واحد نه واخله تر عشره پورې واحد او اثنان مستعمله ولې
شي موافق القياس او د ثلاثة نه تر عشرة پورې مستعمله ولې شي خلاف القياس په دې شان سره
چې تميز د دې عدد اقل به خالي نه وي يا به جمع مذکر وی او يا به مؤنث وی که مذکر وو نو عدد
مؤنث مستعمل کول شي نحو ثلاثة رجال الى عشرة رجال او که تميز د دې جمع مؤنث راغلي وو نو
عدد به مذکر مستعمله ولې شي نحو ثلاث نسوة الى عشر نسوة.
**سوال:** اصل په استعمال کې موافق القياس دی نو د ثلاثة نه تر عشرة پورې دا عدد مخالف القياس
ولې مستعمل کیږي؟ **جواب:** منم چې اصل په استعمال کې استعمال موافق القياس دی ليکن دلته
عدول شوی دی د اصل نه خلاف الاصل ته د وجی د وجود د مقتضی نه چې تميز دی په دې شان
سره چې تميز د دې عدد اقل چې جمع مذکر راشي نو دا به ته مؤنث وائي لپاره د موافقت د عدد د
معدود سره ځکه دا جمع په تاويل د جماعة سره مؤنث دی نو عدد هم مؤنث شو نو موافقت راغي،
او هر کله چې د ثلاثة نه تر عشرة پورې مؤنث مستعمل شو په تميز د جمع مذکر کې نو تميز د دې
چې جمع مؤنث راشي نو عدد به مذکر استعمالوی لپاره د دې چې لازم نه شي التباس د عدد مذکر
د عدد مؤنث سره د اول وهلت نه.
**سوال:** التباس خو په عکس سره هم دفع کیږي نو عکس یې ولې ونه کړو؟
**جواب:** عکس یې ونه کړو ځکه چې مذکر اصل دی او مؤنث فرع ده او موافقت اصل دی او مخالفت
فرع ده نو اصل مو اصل لره ورکړو او فرع مو فرع لره ورکړه لپاره د رعايت د تعادل او د انصاف.

**سوال:** ته وائي چې تميز د عدد اقل چې جمع مذكر راشي نو دا عدد مؤنث كولي شي دا قاعده ستا منقوضه شوه په دې قول د الله تعالى ﴿ مَن جَآءَ بِٱلْحَسَنَةِ فَلَهُۥ عَشْرُ أَمْثَالِهَا ﴾ باندې دلته امثال جمع مذكر دى او عشر هم مذكر ذكر شوى دى؟ **جواب:** اذا كان المعدود مؤنثا واللفظ مذكرا او بالعكس فوجهان، او دلته هم امثال لفظ مذكر دى او مصداق د دې مؤنث دى ځكه دا عبارت دى دحسنات نه نو دلته يې لحاظ د معنى كړى دى نو ځكه يې عدد مذكر كړى دى.

**سوال:** دا قاعده ستا منقوضه شوه په دې حديث سره چې: لم يخرج النبي صلى الله عليه وسلم ثلاثا لمرض الموت؛ دلته ثلاثا عدد او تميز يې مقدر دى چې ايام دى او دا مذكر دى نو پكار وه چې ثلاثة يې ويلي وى؟ **جواب:** دا قاعده په هغه ځاى كې ده چې دا تميز جمع مذكر د دې اسم عدد سره مذكور وى، او كه دا تميز ورسره مذكور نه وى نو بيا جواز د وجهين دى.

**واحد عشر اثنا عشر: ربط:** هر كله چې فارغ شو مصنف د بيا د طريقى د استعمال د عدد مفرد نه نو شروع يې وكړه په بيان د طريقه د استعمال د عدد مركب كې نو وى ويل **واحد عشر** دا عطف دى په واحد اثنان باندې.

**ترجمه:** وائي به ته كله چې واورې د لسو نه په شمير كې د عربو په ژبه باندې **احدعشر اثناعشر** په تذكير د جزئين سره په مذكر كې نحو قوله تعالى ﴿ إِنِّي رَأَيْتُ أَحَدَ عَشَرَ كَوْكَبًا ﴾ او وائي به ته **احدى عشرة اثنتاعشرة و ثنتاعشرة** په تانيث د جزئين سره په مؤنث كې نحو قوله تعالى ﴿ فَٱنفَجَرَتْ مِنْهُ ٱثْنَتَا عَشْرَةَ عَيْنًا ﴾ او مغير كړې شو واحد احد ته او واحدة احدى ته لپاره د حصول د تخفيف د وجى د ثقل د تركيب نه، او جز اول د دې مركب قياس دى په حالت د افراد باندې په دې شان سره چې هغه مستعمل وو موافق القياس او دا هم مستعمل دى موافق القياس، او هر چې استعمال د جز ثانى په احد عشر او اثناعشر كې موافق القياس نو دا د دې وجى نه دى چې هر كله چې التباس مدفوع شو په مابين د مذكر او مؤنث كې په تذكير د جز اول سره په نسبت سره مخاطب ته پس حاجت پاتې نه شو استعمال د جز ثانى ته خلاف القياس ځكه دا جز اول او جز ثانى په دې يوولس او دوولس كې مستعمليږي موافق القياس.

**سوال:** په حالت د افراد كې واحد مستعمليدو په مذكر كې او واحدة مستعمليدو په مؤنث كې او كله چې دا مركب شو په تركيب امتزاجى سره نو د واحد نه احد او واحدة احدى ولې جوړ شو؟

**جواب:** مغائر كړې شو واحد احد ته او واحدة احدى ته لپاره د حصول د تخفيف د وجى د ثقل د تركيب نه او احد اصل كې وحد وو ځكه دا ماخوذ دى د وحدت نه واو بدل شوى دى په همزى سره خلاف القياس ځكه دا قانون دى د صرفيانو (۱) چې واو مضمومه چې واقع شي بجاى فا كلمه نو بدلول يې په همزه جائز دى بالاتفاق نحو وُجُوه په دې كې جائز دى اُجوه (۲) واو مفتوحه چې واقع شي بجائې فا كلمه د هغې بدلول نه دى جائز بالاتفاق، واما احد واناة فشاذ (۳) واو مكسوره چې واقع شي بجائې فاء نو هغې كې اختلاف دى.

**سوال:** د احد او واحد په مينځ كې څه فرق دى؟ **جواب:** احد او واحد په مينځ كې فرق دا دى چې احد مرادف د واحد دى په دوه ځايونو كې (۱): يو چې صفت د الله واقع شي لكه الله واحد الله احد.

(۲): دويم په اسماء عدد کې يقال واحد وعشرون واحد وعشرون او د دې نه علاوه په استعمال د دې دواړو کې فرق دی په دې شان سره چې احد نه مستعمليږي مگر (۱) وروستو د نفی نه نحو ءان هو مستوليا على احد، ونحو ما اتانى من احد فمعناه لاواحد اتانى ولااثنان واذا قلت جائنى واحد فمعناه انه لم ياتينى منهم اثنان (۲) احد مستعمليږي په اثبات کې مضاف غالبا، نحو قام احد الثلاثة په خلاف د واحد نه چې دا عام دی وروستو د نفی نه هم راځي او په اثبات کې هم راځي او په اثبات کې راځي مطلقا که مضاف وی او که غير مضاف وی (۳) د واحد جمع احاد راځي ولاجمع للاحد.

**واقعه:** وعن ابى العباس انه سُئل عن الاحاد هى جمع الاحد فقال معاذ الله ليس للاحد جمع ولا للاثنين واحد من جنسه ولكن ان جعلت جمع الواحد فهو محتمل مثل شاهد واشهاد؛ احاد اصل کې أوحاد وو بروزن افعال بيا واو بدل شو په الف باندې نو احاد ترينه جوړ شو **وثلاثة عشر الى تسعة عشر** او وائي به ته ثلاثة عشر تر تسعة عشر پورې په تانيث د جز اول او د تذکير د جز ثانى سره په مذکر کې نحو ثلاثة عشر رجلا اربعة عشر رجلا الى تسعة عشر رجلا، او وائي به ته **ثلاث عشرة الى تسعة عشرة** په تذکير د جز اول او تانيث د جز ثانى سره که تميز د دې مؤنث وو نحو ثلاث عشرة امرأة الى تسع عشرة امرأة ځکه جز اول د دې مرکب قياس دی په حالت د افراد باندې چې هلته دا مستعمليدو خلاف القياس نو دلته هم مستعمليږي خلاف القياس د وجې د حمل د حالت ترکيبى نه په حالت افرادى باندې او هر چې دی استعمال د جز ثانى موافق القياس د دې وجی نه دی (۱) چې هر کله چې امتياز راغي بين المذکر والمؤنث په تانيث د جز اول سره په نسبت سره مخاطب ته پس احتياج پاتې نه شو استعمال خلاف القياس ته ځکه اصل په استعمال کې استعمال موافق القياس دی (۲) دا جز ثانى موافق القياس مستعمل کړو لپاره د دې چې لازم نه شي اجتماع د علامتی د تانيث د جنس واحد نه فيما هو کالکلمة الواحدة په خلاف د احدى عشرة اوثنتا عشرة هلته اجتماع د علامتی د تانيث فيما هو کالکلمة الواحدة راغلي ده خو د جنس واحد نه نده بلکه د جنسين مختلفين نه راغلي ده حقيقة په احدى عشرة کې او د جنسين مختلفين نه حکما راغلي ده په ثنتاعشرة کې ځکه په ثنتاعشرة کې دا محض تانيث لپاره نه ده بلکه دا بدل راغليده د واو نه نو هر کله چې تا د محض تاکيد لپاره نه شوه نو په حکم د تانيث د جنس اخر کې شوه، او هر چې دی اثنتاعشرة دا محمول دی په ثنتاعشرة باندې **وتميم تكسر الشين فى المؤنث**.

**ربط:** دا جمله معترضه واقع شوې ده په مينځ د مرکبات بنائيه ؤ او مرکبات عطفيو کې.

**ترجمه: وتميم** او بنی تميم خاص نه بل څوك (حصرحقيقى) (۲) خاص بنو تميم نه حجازيين (حصر اضافى) بيا قصر قلب او افراد او تعين درې واړه جوړيږی.

**سوال:** دا کلام مثبت دی نو دا دنفی معنى د کوم ځايې نه کوی؟ **جواب:** دی کلام کې حصر دی او کوم کلام کې چې حصر وی په هغی کې دوه نسبتونه وی (۱) ايجابى (۲) سلبى مذکور ته منطوق وايې او غير مذکور ته مفهوم وايې مذکور دلته نسبت ايجابى دی او نسبت سلبى مفهوم دی د حصر د

کلام نه تکسر الشين کسره ورکوی شين د عشرة لره تميم مبتداء ده او تکسر الشين جمله خبر دی وتانيث الفعل لاجل اسناده الی ضمير تميم وهومؤنث بتاويل قبيلة فی المؤنث په مؤنث کې هغه عشرة چې مرکب وی د غير سره لپاره د دې چې لازم نه شي اجتماع د اربعه فتحات فيماهو کالکلمة الواحدة په احد عشرة او ثنتاعشرة کې او يا لپاره د دې چې لازم نه شي اجتماع او توالی د خمس فتحات فيماهو کالکلمة الواحدة په ثلاث عشرة الی تسع عشرة کې سره د ثقل د ترکيب نه او حجازين ساکن کوی عين کلمه دعشرة لره په مؤنث کې چې کله مرکب شي د غير سره او دا لغت د حجازين افصح دی د لغت د بنی تميم نه ځکه چې دا سکون اخف دی د فتحی نه او مذهب د بنی تميم کمزوري دی ځکه په هغوی باندې اعتراض راځي چې تاسو د باران نه تختيدی د پرنالي لاندې راغلي ځکه تاسو خو فرار کوو د فتحی نه لپاره د حصول د خفت او کسره ثقيله ده نو بيا ثقل پکې پيدا شو ليکن بنی تميم جواب کوی چې وقوع د کسرې بين الفتحات اخف ده د وقوع د فتحی نه بين الفتحات لهذا باران نه اوتختيدو پرنالي لاندې رانغلو بلکه د برندې لاندې ودريدو

**والشين: سوال:** ته وائي او تميم تکسر الشين داخبر ستا منقوضه شو شجرة سره؟

**جواب:** الف لام عهدی يا الف لام عوضی المراد من شين العشرة لا مطلق الشين.

**سوال:** دا خبره ستا منقوضه شو عشر سره؟ **جوب:** في المؤنث.

**سوال:** هذا منقوض بجاءنی عشرة رجال؟ **جواب:** دا مسئله په هغه ځای کې ده چې عشرة مؤنث مرکب شي بل عدد سره: نوالشين کې الف لام عهد خارجي دی او مراد د شين نه شين د عشرة دی او دا حجازين په شين د عشرة کې سکون وائي او بنی تميم کسره وائي (۱) په دې شرط سره چې مؤنث وی (۲) او مرکب شوی وی د غير سره او که دا مؤنث نه وو بلکه مذکر وو لکه عشر مجرد عن التاء يا مؤنث وو ليکن مرکب مع الغير نه وو نو هلته فتحه د شين وائي بالاتفاق نحو رأيت عشر نسوة هکذا عشرة بالوقف او بدونه.

**وعشرون واخواتها: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د طريقه د استعمال د مرکبات بنائيه ؤ نه نو شروع يې وکړه په بيان د طريقه د عقود د عدد کې نو وی ويل چې وعشرون واخوتها، دا عشرون عطف دی په ثلاثة عشر باندې نو دا مفعول به واقع شوی دی د تقول لپاره په واسطه د عطف سره او عقود ثمانيه چې مفعول به واقع شي نو منصوب بالياء راځي او دلته مرفوع بالواو لوستلي دی حکاية اوخواتها کې دوه ترکيبه دی او دوه قسمه اعراب لوستل جائز دی:

(۱): يا واخواتها منصوب بالکسره دی صيغه د جمع مؤنث سالم ده عطف دی په عشرون باندې چې هغه منصوب محلا وو د وجې د وقوع د هغې نه مفعول به لپاره د تقول.

(۲): يا دا اخواتُها مرفوع دی بنا په دې چې دا مبتدا ده او خبر يې حذف دی فيکون التقدير واخوتها مثلها او دا جمله معترضه ده چې واقع شوې ده د عشرون اوفيهما په مينځ کې او اخوات د عشرون باقي عقود دی چې هغه ثلاثون، اربعون، خمسون، ستون، سبعون، ثمانون، تسعون، دی.

**ترجمه:** او وائي به ته عشرون مذکر **واخواتها** او هغه اسماء عدد چې هغه په شان د عشرون دی په عقد کې چې هغه ثلاثون، اربعون الخ دی هغه به هم مذکر وائي **فيهما** په مذکر او په مؤنث دواړو کې نو وائي به ته عندي عشرون رجلا او عندي عشرون امرأة بې د فرق نه بين المذکر والمؤنث ځکه فرق د مؤنث د مذکر نه راځي په الحاق د تآء التانيث سره اوس الحاق د تآء التانيث چې ته کوی پدې عقود ثمانيو پورې په مؤنث کې نو، نو دا تاء تانيث به خالي نه وي يا به يې راوړي مخکې د واو او نون نه او يا به يې راوړي وروستو د واو او نون نه که وروستو يې راوړې نو اجراء د علامې د يوې کلمې راغله په کلمه اخرې کې او دا باطله ده او که مخکې يې راوړي نو يو اجراء د علامه د تانيث راغله په وسط د کلمه کې او ذا باطله ده (۲) او دا رنګې لازميږي اجتماع د علامتين متبائنتين په کلمه واحده کې ځکه دا تا تانيث علامه د مؤنث ده او واو او نون او يا نون علامه صريحی د مذکر ده او اجتماع د علامتين متبائنتين په کلمه واحده کې باطله ده پس هر کله چې فرق ممکن نه شو بين المذکر والمؤنث په اتصال د تاء التانيث سره پس شو دا عقود ثمانيه مشترك بين المذکر والمؤنث.

**واحد وعشرون واحدى وعشرون: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د طريقه د استعمال د مفرداتو او مرکبات بنائيه ؤ نه نو شروع يې وکړه په بيان د طريقه د استعمال د مرکبات عطفيو کې او هر کله چې مغائر کړي شوی وو واحد احد ته او واحدة احدی ته په مرکب عطفی کې بې د ترکيب امتزاجی نه د وجې د ثقل د ترکيب نه پس نه شو استعمال د دې دواړو بلفظ ما تقدم نو د دې وجې نه مندرج نه کړو مصنف احد و عشرون او حدی و عشرون په قاعده د عطف بلفظ ما تقدم کې بلکه دا ئې ځان له جدا ذکر کړو.

**ترجمه:** وائي به ته په هغه عدد کې چې د هغې زيادت راغلي وی په هر عقد باندې د دې عقودو نه **احد وعشرون** په تذکير د جز اول او د ثاني سره که تميز يې مذکر راغلي وو نحو احد وعشرون رجلا او وائي به ته احدی وعشرون په تانيث د جز اول سره که تميز يې مؤنث راغلي وو نحو احدی وعشرون امرأة **ثم بالعطف بلفظ ما تقدم** بيابه وائي ته په عطف د عقود سره په عدد زائد باندې په حال کون د دې عدد زائد کې چې دا کائن دی په هغه لفظ او صيغی سره چې هغه مخکې بيان شوې ده په حالت د افراد کې الی **تسعة و تسعين** تر نهه نوي پورې.

**تشريح. سوال:** د واحد وعشرون واحد وعشرون ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د ماقبل سره دی؟ **جواب:** ربط د ماقبل سره دا دی چې مخکې بيان د طريقی د استعمال د مفردات او مرکبات بنائيه ؤ وو او دلته بيان د طريقی د استعمال د مرکبات عطفيو دی او په معرفت د ربط سره غرض د مصنف هم معلوم شو چې مقصد د مصنف په دې عبارت سره بيان د طريقی د استعمال د مرکبات عطفيو دی.

**سوال:** فرض منصبی د مصنف اختصار بماهوا ختصار دی نو هر کله چې مقصد د مصنف بيان د طريقه د استعمال د مرکبات عطفيو دی نو احد وعشرون هم مرکب عطفی دی نو دائي په قاعده د بلفظ ما تقدم کې ولې مندرج نه کړو او ځان له يې ولې ذکر کړو؟

**جواب:** هر كله چې واحد مغير شوی وو احد ته او واحدة مغير شوی وو احدی ته د وجی د ثقل د تركيب نه لپاره د حصول د تخفيف پس نه شو استعمال د احد وعشرون او احدی وعشرون په لفظ د ماتقدم باندې ځکه په حالت د افراد کې واحد او واحدة مستعمل دی او چې مرکب شي د عقودو سره نو احد او حدی ويلي شي نو هر كله چې دانه شو په لفظ د ماتقدم باندې نو ځانه له يې ذکر کړو او په دغه قاعده کې يې داخل نه کړو.

**سوال:** چې واحد او واحدة چې مرکب شي د عقودو سره نو د واحد نه احد او د واحدة نه احدی ولې جوړيږي؟ **جواب:** لپاره د حصول د تخفيف د وجی د ثقل د ترکيب نه بيا دومره فرق دی چې واحد او واحدة چې مرکب شي د عشر سره نو د واحد نه احد او د واحدة نه احدی جوړيږي وجوباً فيقال احد عشر، احدی عشرة، فلايقال واحد عشر، واحدة عشرة، او دا چې مرکب شي د عقودو سره نو د واحد نه احد او د واحدة نه احدی جوړيږي جوازا نه وجوباً فيقال احد وعشرون واحدی وعشرون كما يقال واحد وعشرون واحدة وعشرون.

**سوال:** د عشر سره چې مرکب شي نو د دې نه احد او احدی وجوباً ولې جوړيږي او دعقودو سره چې مرکب شي نو جوازا ترې ولې جوړيږي؟ **جواب:** دا مرکبات بنائيه كثيرالاستعمال دی او مرکبات عطفيه قليل الاستعمال دی او كثرت استعمال تقاضه د تخفيف کوی وجوباً ځکه د واحد نه احد او د واحدة نه احدی جوړيږي وجوباً او کوم شي چې كثير الاستعمال نه وي هغه تقاضه د تخفيف وجوبي نه کوی نو ستاخوخه ده چې تخفيف کوی او که نه کوئ.

**سوال:** بلفظ ماتقدم جار مجرور دی د دې لپاره لابدي ده د اعراب محلی نه نو د دې اعراب محلی څه شي دی؟ **جواب:** اعراب محلی د دې نصب دی.

**سوال:** منصوبات دوولس قسمه دی دا کوم قسمه دی؟ **جواب:** دا منصوب دی بنابر حاليت په اعتبار د متعلق محذوف سره.

**سوال:** حال تقاضه د ذوالحال کوی نو دا حال د چانه واقع شوی دی؟ **جواب:** دا حال واقع شوی دی د مفعول به غير صريحی محذوف د عطف نه فيكون التقدير ثم تقول بعطف تلك العقود على الزائد عليها كائنا ذلك الزائد بلفظ ماتقدم.

**سوال:** عطف د عقود چې په زوائد باندې کيږي نو بالعكس ولې نه کيږي؟ **جواب:** زوائد قليل دی او عقود كثير دی او قليل مقدم وی په كثير باندې (۲) او لپاره د دې چې ترقی د ادنی نه راشي اعلی ته نو وائي به ته اثنان وعشرون رجلا ثلاثة وعشرون رجلا الى تسعة وتسعين رجلا په مذكر کې او وائي به ته اثنتان وعشرون امرأة ثلاث وعشرون امرأة الى تسع وتسعين امرأة په مؤنث کې.

**امالة والف:** **ربط:** هر كله چې فارغ شو مصنف د بيان د طريقی د استعمال د عدد اقل او عدد اوسط نه نو شروع يې وکړه په بيان د طريقه د استعمال د عدد كثير کې نو وی ويل ومائة والف،

**ترجمه:** وائي به ته مائة والف په مفرد کې او مائتان او الفان په تثنيه کې **فيهما** په مذكر او مؤنث دواړو کې نحو مائة رجل ومائة امرأة والف رجل والف امرأة مائتا رجل مائتا امرأة والفا رجل والفا

امرأة بی د فرق ـه بين المذكر والمؤنث څکه فرق د مؤنث د مذکر نه راځي په اتصال د تاء تانيث سره او که په مؤنث کې اتصال د تاء التانيث وکړو په مائة کې نو لازميږي اجتماع د تانين او دا باطله دی او الف محمول دی په مائة باندې د وجی د اشتراك د الف نه د مائة سره په اصل کې او په افراد کې.

**ثم بالعطف على ماتقدم: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د طريقی د استعمال د مفردات د عدد اکثر نه نو شروع يې وکړه په بيان د طريقه د استعمال د مرکبات د عدد اکثر کې نو وی ويل ثم بالعطف على ماتقدم

**ترجمه:** بيا به وائي ته په هغه عدد کې چې هغه زائد شوی دی په مائة او الف او د دې په تثنيه باندې **بالعطف** په عطف د مائة او الف سره په زوائد باندې (۲) يا په عطف د زائد سره په مائة او الف باندې **على ماتقدم** په حال کون د دې زائد کې چې دا به کائن وی په هغه طريقه او صيغه سره چې مخکې بيان شوې ده په مفردات کې

**تشريح: سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څۀ دی؟

**جواب:** ربط د ماقبل سره دا دی چې مخکې يې بيان د طريقی د استعمال د عدد اکثر وکړو اوس بيان د طريقه د استعمال د مرکبات د عدد اکثر کوی چې عطف د زوائد دی په مائة او الف باندې يا د دې په تثنيه باندې، او د دې او د عطف د زوائدو په عقود ثمانيه باندې دومره دی په هلته عطف جائز وو د يو جانب نه چې عطف د عقود دی په زائد باندې او دلته عطف جائز دی د جانبين نه (۱) چې عطف د مائة او الف وکړې يا د دې په تثنيه د زوائدو، نحو مائة و واحد مائة و واحدة مائة واثنان مائة وثلاثة رجال مائة وثلاث نسوة مائة واحد عشر رجلا مائة واحدی عشرة امرأة الی آخره او دغسې به وائي په تثنيه کې (۲) او دارنگې جائز دی عطف د مائة او الف په زائد باندې نو وائي به ته واحد ومائة رجل واحدی ومائة امرأة، اثنان ومائة رجل، وثلاثة ومائة رجل، اربعة ومائة رجل، خسمة ومائة رجل، احدی ومائة امرأة، اثنتان ومائة امرأة، ثلاث ومائة امرأة، اربع مائة امرأة الی اخره.

**سوال:** عطف د عقود ثمانيه په زوايدو باندې جائز وو بيک جانب، لپاره دی چې ترقی د ادنی نه راشي اعلی ته نو دلته عطف د جانبين نه ولې جائز دی؟ **جواب:** دلته عطف د جانبين نه جائز دی څکه عدد اکثر ثقيل دی نو مونږه جواز وکړو دا عطف د جانبين نه لپاره د حصول د تخفيف.

**سوال:** (۱). چې د عدد اکثر تميز مفرد مجرور راځي د عدد اقل تميز جمع مجرور راځي او د عدد اوسط تميز مفرد منصوب راځي، اوس دوه عددين چې راجمع شي په يو ځای کې مثلا عدد اقل او عدد اکثر يا عدد اوسط او اکثر راجمع شي نو تميز د دواړو به ذکر کوی که د يو به ذکر کوی او که د يو ذکر کوی نو د چا به ذکر کوی؟ **جواب:** تميز د معطوف به ذکر کيږي نه د معطوف عليه.

**سوال:** ولې؟ **جواب:** څکه چې په بيان د معطوف سره بيان د معطوف عليه هم راځي لهذا وائي به ته ثلاثة ومائة رجل او مائة وثلاثة رجال.

**سوال:** دا مسئله خو مونږه ته معلومه شوه ليکن عطف د اثنان او واحد چې وکړې شي په مائة باندې نو بيا به څنگه وائي څکه واحد او اثنان خو تميز نه غواړي؟

**سوال:** عطف د واحد اواثنان چې په مائة او الف باندې وشي نو داسې به وائي چې مائة واثنان من الرجال يا من النساء، **وفى ثمانى عشرة فتح الياء: تركيب: فى ثمانى عشرة** خبرمقدم او **فتح الياء** مبتدا مؤخره، مبتدا سره د خبر نه جمله اسميه خبريه.

**ترجمه:** ثابته ده په ثمانى عشرة کې فتحه د ياء يعنى مبني على الفتحه ده.

**تشريح:** د احد عشر نه واخله تر تسعة عشر پورې جز اول او جز ثانى دواړه مبني على الفتحه دى ماسوا د جز اول د اثناعشرنه او په دې ټولو کې بناعلى الفتحه متعين ده او بله وجه نده جائز ماسوى د ثمانى عشر نه په دې کې څلور وجې جائز دى.

(۱) ثمانى عشر مبني على الفتحه د وجې د بنا دصدور د اعداد مركبونه په فتحه باندې نحو احد عشر الى تسعة عشر ما سوا د جز اول د اثناعشر نه.

(۲) **وجاز اسكانها** او جائز دى ساكن كول د ياء د ثمانى عشر په حذف دفتحى سره د وجې د تثاقل د مركب نه د تركيب د وجې نه په شان د معديكرب باندې.

(۳) **وشذ حذفها** او شاذ كړي شوى دى حذف د ياء **بفتح النون** سره د فتحى د نون نه چې ثمان عشرة اووائي په حذف باندې، او په دې باندې باعث حصول د تخفيف دى او په فتحى د نون باندې باعث ګرځول د ثمانى عشر دى په صورت د اخوات باندې.

(۴) او شارح رضى ويلي دى چې پس د حذف د نون نه كسره د نون هم جائز ده يعنى ثمان عشر لپاره د دې چې دلالت وكړي دا كسره په حذف د ياء باندې او دا فتحه د نون شاذ ده د وجې د عدم دلالت د فتحى نه په حذف د يا باندې ليكن فتحه دنون اولى ده اګر كه خلاف القياس ده، دكسرى د نون نه اګر كه موافق القياس ده د وجې د توافق د ثمان عشر نه د اخوات خپلو سره ځكه اخوات د ثمان عشر مفتوحة الاواخر دى چې مركب يې واخلى د عشر سره او د دې ثمان عشر نه چې يا حذف كړو او فتحه د نون اوايو نو دابه هم مفتوحه الاخر شي نو موافقت به يې راشي د اخوات سره په فتحه سره په فتحه د حرف اخير كې او موافقت اولى دى د مخالفت نه.

**وميز الثلاثة الى العشرة مخفوض مجموع: ربط:** هر كله چې فارغ شو مصنف د بيان د طريقه د استعمال د اسماء عدد نه نو شروع يې وكړه په بيان د تميز د اسماء عدد كې ځكه بحث د متعلق د شئ نه بحث د شئ نه وى، او هر كله چې د واحد او اثنان لپاره تميز نه راتلو نو مصنف شروع وكړه د ثلاثة نه نو وى ويل چې و مميز الثلاثة الخ.

**ترجمه:** تميز د ثلاثة ومازاد عليها **الى العشرة** تر لسو پورې په مذكر كې او تميز د ثلاث ومازاد عليها تر عشر پورې په مؤنث كې **مخفوض** مجرور راځي په اعتبار د اعراب سره د وجې د اضافت د عدد نه تميز ته قبيلي د اخلاق ثياب نه چې اضافت د موصوف راغلي دى صفت ته د وجې د كثرت د استعمال نه او كثرت استعمال تقاضه د تخفيف كوى او تخفيف حاصل شو په حذف د تنوين سره د عدد اقل نه د وجې د اضافت نه **مجموع** او جمع به وى په اعتبار د صيغى سره لپاره د موافقت د

عدد د معدود سره دا جمع عام ده **لفظاً** چې لفظا وی نحو ثلاثة رجال **اومعنی** یا معنی وی فقط نه لفظا نحو قوله تعالی ﴿ وَكَانَ فِي الْمَدِينَةِ تِسْعَةُ رَهْطٍ ﴾

**تشريح: سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟

**جواب:** مخکې بیان شو حکم د اسماء عدد چې هغه استعمال خلاف القیاس وو اوس بیانوی حکم د تمیز د اسماء عدد نو په معرفت د ربط سره معرفت د غرض د مصنف هم راغي چې مقصد د مصنف په دې عبارت کې بیان د حکم د تمیز د اسماء عدد دی.

**سوال:** دا خو خروج عن البحث راغي ځکه بحث زمونږه په اسماء عدد کې دی او تا په تمیز کې شروع وکړه؟ **جواب:** خروج عن البحث نه راځي ځکه چې تمیز اګر چې اسماء عدد نه نهٔ دی لیکن د متعلقات د اسماء عدد نه دی او بحث د متعلقات د اسماء عدد نه بحث دی بعینه د اسماء عدد نه فلا یلزم الخروج عن البحث.

**سوال:** مصنف چې دا تمیز د ثلاثة تر عشرة پورې بیان کړو نو تمیز د واحد او اثنان یې ولې بیان نه کړو؟

**جواب:** مونږه تمیز د هغه اسماء عدد بیانوو چې هغه تمیز غواړي چې هغه من ثلاثة لی اخره دی اوکوم اسماء عدد چې تمیز نه غواړي هغه نه بیانوو لکه واحد او اثنان شو.

**سوال:** واحد او اثنان تمیز ولې نه غواړي؟ **جواب:** د دې وجه مصنف وروستو په خپله بیانوی استغناء بلفظ التمیز عنهما لافادة النص المقصود بالعدد.

**سوال:** تمیز د ثلاثة تر عشرة پورې خو مونږه ته معلوم شو چې جمع مجرور راځي نو تمیز د ثلاث مجرد عن التاء تر عشر مجرد عن التاء پورې څنګه راځي د هغې تمیز یې ولې بیان نه کړو؟

**جواب:** د درې نه واخله تر لسو پورې په دی عدد اقل کې عدد د مؤنث شریك دی د عدد د مذکر سره په تمیز کې نو د وجې د اشتراك د عدد مؤنث نه د مذکر سره په تمیز کې یې تمیز د مؤنث نه دی بیان کړي او ترك کړي یې دی مقایسة، او الی په دې مقام کې اسقاطیه دی او صدر د کلام متناول دی مدخول د الی له ځکه دا عبارت د مصنف په حذف د معطوف سره دی ای و ممیز الثلاثة و ما زاد علیها الی العشرة.

**سوال:** د ثلاثة نه واخله الی اخره دا اسماء عدد تمیز ولې غواړي؟

**جواب:** ځکه په دې کې ابهام جنسي دی دا تقاضه کوی د رفع د ابهام جنسي او رفع د ابهام جنسي راځي په تمیز سره، پس لابدي شوه د دې لپاره د تمیز نه؟

**سوال:** اصل په تمیز کې نصب دی نو تمیز د عدد اقل مجرور ولې راځي او جمع ولې راځي؟

**جواب:** او منم چې تمیز د قبیلي د منصوبات نه دی لیکن په دې کې دا جر راغلي دی د اضافت د وجې نه، او اضافت د عدد اقل راغلي دی د وجی د کثرت استعمال د عدد اقل نه او کثرت استعمال تقاضه د تخفیف کوی او تخفیف ورله ورکړي شو په حذف د تنوین سره د مضاف نه او دا اضافت د قبیلي د اخلاق ثیاب نه دی چې اضافت د موصوف راغلي دی صنفت ته او جمع راځي

لپاره د موافقت د عدد د معدود سره او دا جمع عامه ده چې لفظا وي او که معنى وى مثال د لفظا لکه ثلاثة رجال او مثال د معنى لکه خمسة نفر.

سوال: ثلاثة رجال کې دا رجال لکه څنګه چې لفظا جمع ده دارنګې معنى هم جمع ده نو تا يواځې لفظا ولې وويله؟ جواب: د جمع لفظي سره جمع معنا لازم ده ځکه يې صرف لفظا وويل او معنا قيد يې ورسره ونه لګوو ځکه معنى قيد لګول ورسره هله ضروري وو چې د جمع لفظي سره جمع معنوي لازم نوی، او تميز د عدد اقل راځي غالبا جمع مکسر دا جمع مکسر بيا عام دی چې مذکر مکسر وی او که مؤنث مکسر وی، او دا جمع مکسره عامه ده که قلته وی او که کثرته وی نحو قوله تعالى ﴿يَتَرَبَّصْنَ بِأَنفُسِهِنَّ ثَلَاثَةَ قُرُوٓءٍ﴾ ﴿مَن جَآءَ بِٱلْحَسَنَةِ فَلَهُۥ عَشْرُ أَمْثَالِهَا﴾ (۲): او تميز د عدد اقل جمع مؤنث سالم راځي په طريقه د قلت سره نحو قوله تعالى ﴿وَسَبْعَ سُنۢبُلَٰتٍ﴾ (۳): او تميز د عدد اقل جمع مذکر سالم نه راځي فلا يقال ثلاثة مسلمين ځکه بيا لازميږي اجتماع د علامتين متبائنين فيما هو كالكلمة الواحدة، چې دا تاء التانيث علامه صريحى د مؤنث ده او يا او نون علامه صريحى د مذکر ده او په مينځ د دې کې منافات دى، واما قول الفقهاء اکثر مدة الحمل عند الشافعي ثلاث سنين وعند مالك اربع سنين؟ جواب: دا جار مجرى د جمع مکسر دى په شان د بنون بانديز د دوى سره معامله کولي شي په استعمال د کلام د عرب کې معامله د جمع مکسرې ځکه دلته تميز واقع شوى دى د عدد اقل لپاره، **الا فى ثلاث مائة**، دا مستثنى مفرغه ده او مستثنى منه حذف دى فيكون التقدير مخفوض مجموع فى جميع المواضع الا فى ثلاثمائة وما زاد عليها الى تسعمائة يعنى د عدد اقل لپاره تميز چې مائة راشي نو دا مفرد تميز واقع کيږي نه جمع ځکه دا لفظا مفرد دى او معناً جمع دى.

سوال: چې الى تسعة مائة يې ويل نو الى عشر مائة يې ولې نه ويل؟ جواب: الى عشر مائة يې نه دى ويلي ځکه دا نه دى مستعمل په کلام د عربو کې استغناء بلفظ الف ځکه لس سوو ته د عربو په استعمال کې الف ويلي کيږي نه عشر مائة.

سوال: مائة مفرد چې تميز دى عدد اقل واقع کيږي نو د دې جمع ولې تميز د عدد اقل لپاره نه واقع کيږي باوجود د دې نه چې تميز د دې عدد اقل راځي جمع مجرور؟

جواب: وكان قياسها مئين مئات ځکه قاعده دا ده په مائة کې چې هغه مضاف اليه واقع شوى دى د ثلاث لپاره الى تسع چې دا جمع کړي شي په مئات جمع مؤنث سالم يا مئين جمع مذکر سالم سره ځکه د مائة لپاره دوه جمع دى (۱): يو په صورت د جمع مؤنث سالم چې هغه مئات دى.

(۱): دويم په صورت د جمع مذکر سالم چې هغه مئون دى او اضافت د عدد اقل مئون ته نه دى جائز ځکه که په دې عدد کې تانيث وانې نو لازميږي اجتماع د علاميتين متبائنين او که تانيث پکې نه وانې نو لازميږي خلاف د استعمال د عدد اقل نه ځکه تميز د عدد اقل چې جمع مذکر راشي نو عدد مؤنث مستعمل کولي شي پس پاتې شوه جمع مؤنث سالم چې هغه مئات دى ځکه

جمع مؤنث سالم اگر چې تميز واقع کيږي د عدد اقل خو دا منات پخپله عدد دی تميز غواړی او
دې تميز انکار کوی د وقوع نه وروستو د جمع مؤنث سالم نه ځکه تميز د اسماء عدد راځي
وروستو د مفرد نه يا وروستو د مرکب نه يا وروستو د عقود نه چې هغه په صورت د جمع مذکر
سالم کې دی او تميز وروستو د جمع مؤنث سالم نه نه راځي.

**ومميز احد عشر الخ: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف دبيان د تميز د عدد اقل نه شروع يې وکړه په
بيان د تميز د عدد اوسط کې نو وی ويل ومميز احد عشر الخ

**ترجمه:** تميز د احد عشر وما زادعليها **الى تسعة وتسعين** تر يو کم سلو پورې چې ديته عند النحاة
عدد اقل وائي **منصوب** منصوب راځي باعتبار الاعراب **مفرد** او مفرد راځي په اعتبار د صيغې سره
نحو قوله تعالى ﴿إِنِّي رَأَيْتُ أَحَدَ عَشَرَ كَوْكَبًا﴾ ﴿لَمْ يَتَّبِعْ وَتِسْعُونَ نَعْجَةً﴾ ﴿فَانْفَجَرَتْ مِنْهُ اثْنَتَا عَشْرَةَ عَيْنًا﴾

**سوال:** تميز د دې منصوب ولې راځي؟ **جواب:** ځکه تميز د منصوبات نه دی او په عدد اقل کې تميز
مجرور راغلي وو د اضافت د وجې نه او دلته اضافت ممتنع دی ځکه لازميږي جعل د کلمات ثلاثه
کلمه واحده او دا نده جائز او هر چې دی عقود نو په هغې کې اضافت ممتنع دی ځکه د اضافت د
وجې نه به يا نون غورځوی يا نه که غورځوی نو بيا حذف د غير د نون د تثنيه او د نون د جمع مذکر
سالم راغي او دا باطل دی او که نه يې غورځوی نو بيا اتصال د مابعد سره رانغی(او دا هم باطل دی
ځکه اتصال لفظی واجب دی اضافت کې)د وجې د انفصال نه د دې واو او نون د عقود سره.

**سوال:** مفرد به ولې راځي؟ **جواب:** هر کله چې تميز د عدد اوسط منصوب شو نو فضله شو او دا قلت
اولی دی د فضله سره ځکه تميز د دې مفرد راځي.

**سوال:** دا قاعده ستا منقوضه شوه په دې قول د الله تعالی چې ﴿وَقَطَّعْنَاهُمُ اثْنَتَيْ عَشْرَةَ أَسْبَاطًا أُمَمًا﴾ دلته
تميز جمع منصوب راغلي دی نه مفرد منصوب.

**جواب:** اسباطا تميز نه دی د اثنتی عشرة لپاره بلکه دا بدل واقع شوی دی د اثنتی عشرة نه او تميز
د دې محذوف دی چې فرقة دی.

**ومميز مائة والف وتثنيتها الخ: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د تميز د عدد اوسط نه نو
شروع يې وکړه په بيان د تميز د عدد اکثر کې چې هغه د مائة نه واخله الی اخره دی.

**تر جمه:** تميز د مائة او د الف او تميز د تثنيه د مائة او الف چې مئتان او الفان دی، او تميز د جمع
د الف چې الاف او الوف دی نه جمع د مائة ځکه د مائة جمع نده مستعمل په کلام د عربو کې
مخفوض مجرور راځي باعتبار الاعراب اومفرد راځي په اعتبار د صيغې سره فيقال مائة رجل الف
رجل مائتا رجل الفا رجل الاف رجل والوف رجل.

**سوال:** تميز د عدد اکثر مجرور ولې راځي؟ **جواب:** (۱). حملا على العدد الاقل لاشتراكهما فی
الاصول (۲) د وجې د اضافت د عدد اکثر نه تميز ته او مضاف اليه نه وي مگر مجرور وی.

**سوال:** اضافت د عدد اکثر يې تميز ته ولې کړی دی؟ **جواب:** ځکه چې عدد اکثر ثقيل دی باعتبار
المعنی او ثقل تقاضه د تخفيف کوی نو تخفيف ورله ورکړې شو په اعتبار د اضافت سره.

سوال: مفرد به ولي وی؟ جواب: ځکه که تمیز د دې جمع راشي نو ثقل در ثقل لازميږي ځکه عدد اکثر ثقيل دی باعتبار المعنى او جمع هم ثقيله ده.

سوال: دا قاعده ستا منقوضه شوه په دې قول د الله تعالى ﴿ وَلَبِثُوا فِي كَهْفِهِمْ ثَلَثَ مِائَةٍ سِنِينَ ﴾ سره په دې ايت کې مائة عدد اکثر راغلي او د دې تميز راغلي دی جمع چې هغه سنين دی؟

جواب: په دې ايت کې دوه قراتونه دی (۱) يو قراة کې راغلي دی ثلاث مائة سنين په تنوين د مائة سره بيا بعض ويلي دی چې دا سنين بدل واقع شوی دی د مائة نه او دا يا علامه د جر ده، خو دا ترکيب ضعيف دی ځکه د بدل لپاره شرط صحت د وقوع د بدل دی موضع المبدل منه مع بقاء المعنى ولو قيل ثلاث سنين اختل المعنى (۲) غوره ترکيب دا دی چې دا بدل واقع شوی دی د ثلاث نه او دا ياء پکې علامه د نصب ده او شرط د بدليت موجود دی، لانه لوقيل ولبثوا في كهفهم سنين مائة احتمل ثلاث مائة فلم يذهب المعنى بالكلية.

(۲) او په دويم قراة کې راغلي دی ثلاث مائة سنين بدون التنوين چې مائة مضاف دی سنين ته او دا جمع تميز واقع شوې ده د مائة لپاره دا محمول دی په استعمال اقل باندې ځکه غالبا تميز د عدد اکثر راځي مفرد مجرور او په طريقه د قلت سره راځي جمع مجرور كما قال ابن مالك.

ومائة والالف للفرد اضف ومائة بالجمع نذرا قدردف

سوال: چې وجمعه يې وويل نو وجمعهما يې ولې ونه ويل په شان د و تثنيتهما باندې؟

جواب: جمعهما يې ونه ويل لعدم استعمال جمع المائة مع التميز.

سوال: دا قاعده ستا منقوضه شوه په دې قول د شاعر سره!

وهم مئون الوفأ وهو فئ نفر شم العرانين ضرابين البهم

په نه وائي چې جمع د مائة نه وه مستعمل سره د تميز نه او دلته جمع راغلي ده چې مائة دی سره د تميز نه چې هغه الوفأ دی، او بل تاسو وائي چې تميز د عدد اکثر مفرد مجرور راځي او دلته جمع منصوب راغلي ده؟ جواب: يجوز في شعر ما لايجوز في غيره يعنى د مصنف دا خبره بنا ده په سعت د كلام کې او ته شعر ته لاړې.

**واذا كان المعدود مؤنثا واللفظ مذكرا او بالعكس فوجهان:** ربط: هر كله چې فارغ شو مصنف د بيان د هغه اسم عدد نه چې هغه ذوجهة واحدة وو د وجې د کيدو د تميز نه ذوجهة واحدة نو شروع يې وکړه په بيان د هغه اسم عدد کې چې ذوجهتين دی د وجې د کيدو د تميز د دې نه ذوجهتين (۲) يا دا جمله مستانفه واقع شوې ده جواب د سوال ځکه مصنف مخکې ويلي وو چې تميز د عدد اقل چې جمع مذکر راشي نو دا عدد به مستعملولي شي مؤنث نحو ثلاثة رجال نو معترض اعتراض وکړو چې دا قاعده ستا منقوضه شوه په دې قول دالله تعالى ﴿ مَن جَاءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهُ عَشْرُ أَمْثَالِهَا ﴾ سره چې دلته تميز جمع مذکر دی او عدد مؤنث ندی، او دارنګې دا قاعده ستا منقوضه شوه په دې قول د فقهاؤ سره اكثر مدة الحمل اربع سنين عند الشافعي چې دلته تميز د عدد اقل راغلي دی جمع مذکر او دا عدد

مؤنث نه دی مستعمل او دارنګې دا قاعده ستا منقوضه شو په دې قول د عربو سره جا عنی ثلاث
اشخاص من النساء چې دلته تميز جمع مذکر راغلي دی او عدد مؤنث نه دی مستعمل نو مصنف
جواب وکړو چې واذا کان المعدود مؤنثا واللفظ مذکرا او بالعکس فوجهان.

**ترجمه:** که چرې وو معدود يعنی تميز مؤنث په اعتبار د مصداق سره **واللفظ مذكرا** او دا لفظ
تميز مذکر وو نحو عندي ثلاثة اشخاص من النساء **او بالعكس** او يا بالعکس وو په دې شان سره
چې تميز مذکر دی په اعتبار د مصداق سره او لفظ مؤنث دی نحو عندي ثلاث انفس من الرجال
**فوجهان** ای ففی العدد وجهان په دې عدد کې دوه وجهې جائز دی مذکر لوستل هم جائز دی او
مؤنث لوستل هم جائز دی د وجې د کيدو د تميز نه ذوجهتين، لکه ثلاثة اشخاص من النساء، نو
نو په دې کې که ديته وګوري چې دا اشخاص لفظ مذکر دی نو ثلاثة اشخاص ووايه ځکه تميز د
عدد اقل چې جمع مذکر راشي نو عدد مؤنث مستعمله ولي شي او که ديته ګوری چې د دې
اشخاص مصداق مؤنث دی نو ثلاث اشخاص اووايه ځکه تميز د عدد اقل چې جمع مؤنث راشي
نو عدد مذکر مستعمل کولي شي او دغسې عندي ثلاثة انفس من الرجال کې که ديته ګوري چې
لفظ د انفس مؤنث دی نو عندي ثلاث انفس ووايه ځکه تميز د عدد اقل چې جمع مؤنث وو نو
عدد مذکر کولي شي او که ديته ګوري چې مصداق د انفس مذکر دی نو عندي ثلاثة انفس من
الرجال ووايه ځکه تميز د عدد اقل چې جمع مذکر راشي نو عدد مؤنث کولي شي.

او صاحب د غاية التحقيق ويلي دی چې په دې عدد کې دوه وجې رواد دی ليکن اعتبار د لفظ اولی دی
د اعتبار د معنی نه ځکه نظر د نحوی لفظ ته دی نه معنی ليکن دا خبره کمزوری ده لقوله تعالی ﴿مَن جَآءَ
بِٱلْحَسَنَةِ فَلَهُۥ عَشْرُ أَمْثَالِهَا﴾ دلته لحاظ د معنی شوی دی نه د لفظ نو دا دليل دی په دې خبره باندې چې دلته
تذکير او تانيث په دې اسم عدد کې چې تميز د دې ذوجهتين وی علی السويه جائز دی بې د ترجيح د
احدهما نه په اخر باندې لپاره د دې چې لازم نه شي حمل د کتاب الله په خلاف اولی باندې.

**سوال:** بل اعتراض کړی دی صاحب دغاية التحقيق په مصنف باندې چې دا مسئله ذکر کول پکار
وو وروستو د عدد اقل نه متصل بلا فصل ځکه دا فرق ثابت دی په عدد اقل کې او د الف او مائة
نه وروستو ذکر کول نه وو پکار د وجې د اشتراك د مائة او الف نه په مذکر او مؤنث کې؟

**جواب:** دا مسئله مصنف ذکر کړې ده پس د اختتام د تميز د عدد نه د وجی د تعلق د دې مسئلی نه
د تميز سره په دې شان سره که دا تميز وو ذوجهة واحدة نو عدد هم ذوجهة واحدة دی او که تميز وو
ذوجهتين نو عدد به هم ذو جهتين وی، اذا کان المعدود مؤنثا الخ دلته دا اللفظ عطف دی په
المعدود باندې او مذکرا عطف دی په مؤنثا باندې نو عطف د اسمين راغي په معمولين مختلفين
د عامل واحد باندې او دا جائز دی بالاتفاق.

**سوال:** اذا کان المعدود الخ دا شرط دی او فوجهان جزاء ده او جزاء د شرط نه راځي مګر جمله او دا
خو مفرد دی؟ **جواب:** وجهان مبتدا ده او د دې خبر محذوف دی فيکون التقدير ففی العدد وجهان

مبتدا سره د خبر نه جمله جزاء د شرط واقع شوې ده او جمله اسميه چې جزاء واقع شي نو هلته لابدي وي د فاء جزائيه نه او دلته فاء راغلي ده.

**ولايميز احد واثنان: ربط:** دا هم جمله مستانفه ده واقع شوې ده په جواب د سوال کې سوال دا دی چې د ثلاثة نه واخله تر اخره د ټولو اسماء عدد د تميز بيان شو نو واحد او اثنان هم د اسماء عدد نه دی عند النحات د دې تميز دی ولې بيان نه کړو نو مصنف جواب وکړو ولا يميز واحد الخ سره.

**ترجمه: ولايميز** نه شي ذکر کولې د واحد او اثنان لپاره تميز وروستو د واحد او اثنان نه **استغناء بلفظ** التميز د وجې د استغناء د متکلم نه په هغه لفظ سره چې هغه صلاحيت د تميز لري **عنهما** د ذکر د واحد او د اثنان نه مثال د هغه لفظ چې هغه صالح دی لپاره د تميز د واحد او اثنان لکه رجل او رجلان شو چې رجل صلاحيت لري د تميز لپاره د واحد او رجلان صلاحيت لري د تميز لپاره د اثنان، اوس کله چې ذکر کړې شي رجل نو ذکر د واحد ته ضرورت نشته او چې ذکر شي رجلان نو ذکر د اثنان ته ضرورت نشته، **لافادة النص المقصود** دا دليل د دليل دی او علت العلت دی، د وجې د دلالت کولو د لفظ صالحه نه صراحتاً په هغه معنی باندې چې هغه مقصود د متکلم ده **بالعدد** په کميت او مقدار د اسم عدد سره.

**تشريح: سوال:** ولايميز الخ د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟

**جواب:** ربط د ماقبل سره دا دی چې دا جمله مستانفه جواب د سوال دی او په معرفت د ربط سره غرض د مصنف هم معلوم شو چې دفع د اعتراض ده چې واردېږي په عدم ذکر د تميز د واحد او اثنان سره د کېدو د دې دواړو نه د اسماء عدد نه عند النحات.

**سوال:** ولايميز الخ مدعی ده او استغناء بلفظ التميز ورله دليل دی او دا دليل مطابق نه دی د مدعی سره ځکه د ولايميز الخ نه معلومېږي چې واحد او اثنان ذکر کولې شي بی د تميز نه ځکه د لا يميز واحد معنی دا ده چې تميز نه شي واقع کولې د واحد او د اثنان نو مطلب دا شو چې واحد او اثنان به ذکر کوی او تميز به ورسره نه ذکر کوی او د دليل نه معلومه شوه چې تميز به ذکر کوی نه واحد او اثنان؟

**جواب:** دليل مطابق دی د مدعی سره ځکه په لايميز واحد واثنان کې ذکر د ملزوم دی او مراد ترينه لازم دی، يا لايميز متضمن دی معنی د لا يذکر له فيکون المعنی لايذکر لواحدة واثنان تميز بعدهما.

**سوال:** بلفظ التميز نه معلومه شوه چې د واحد او اثنان لپاره تميز شته او د لايميز نه معلومه شوه چې د دې تميز نشته نو په مابين د مدعی او دليل کې منافات او تناقض راغي؟ **جواب:** ولايميز الخ کې نفی د تميز د واحد او اثنان لپاره کړې ده بالفعل او په دليل کې يې اثبات د تميز کړی دی بالقوه او په اعتبار د صلاحيت سره نه بالفعل او د تناقض لپاره وحدات ثمانيه شرط دی کما فی قوله الشاعر!

در تناقض هشت وحدت شرط دان     وحدت موضوع و محمول مکان

وحدة شرط و اضافت جزء و کل     قوة و فعل است در آخر زمان

**سوال:** دا نور اسماء عدد تميز غواړي نو واحد او اثنان تميز ولي نه غواړي؟
**جواب:** دا باقي عدد دلالت کوی فقط په کميت باندې نه په جنسيت باندې او تميز د هغوی دلالت کوی فقط په جنسيت نه په کميت باندې پس لابدي شوه د ذکر د اسم عدد او تميز د دواړونه لپاره د دې چې معلوم شي سامع او مخاطب ته جنس او مقدار د عدد دواړه او د واحد او اثنان لپاره چې کوم لفظ صلاحيت د تميز لري لکه رجل او رجلان شو دا په اعتبار د ما دی سره دلالت کوی په جنست باندې او په اعتبار د هئيت سره دلالت کوی په کميت باندې نو ذکر د واحد او اثنان ته ضرورت پاتې نه شو او دا مقصد د دې قول د مصنف دی چې لافادة النص المقصود بالعدد؟
**سوال:** استغناء منصوب دی او منصوبات دوولس دی دا کوم قسم دی؟ **جواب:** دا منصوب دی بنابر مفعول له
**سوال:** دابه خالي نه وي يا به يې مفعول له وائي د نفی لپاره چې لادی او يا به يې مفعول له وائي د منفی لپاره چې يميز دی دا دواړه نه دی صحيح، که مفعول له يې وائي د نفی لپاره نو دا نه دی صحيح د دوه وجونه يو وجه منطقی ده او بله وجه نحوی ده (۱) منطقی وجه دا ده چې مفعول له د حرف لپاره نه واقع کيږي ځکه مفعول له علت وی او معانی د حروفو معلول بالعلت نه وي او وجه نحوی دا ده چې مفعول له راځي د فعل لپاره دا فعل عام دی که لفظا وی او که تقديرا وی نه د حرف لپاره ځکه مفعول له عند النحات ما فعل لاجله فعل مذکور ته وائي، او که مفعول له يې منفی لپاره وائي چې يميز دی نو بيا لازميږي فساد د معنی، ځکه دا قانون دی چې نفی چې داخله شي په يو کلام باندې او هغه مقيد وی په يو قيد سره نو دا نفی قيد ته متوجه کيږي او مقيد باقي پاتې کوی بنا په دې قانون باندې الاولګيدو نفی د استغناء يې وکړه او يميز يې باقي پاتې کړو فيکون المعنی لايذکر لواحد واثنان تميز بعدهما لاجل الاستغناء بل شئ اخر، او دا معنی باطله ده
**جواب:** (۱): دا مفعول له دی د نفی لپاره چې لادی ځکه دا بمعنی انتفی دی فيکون المعنی انتفی ذکر تميز الواحد والاثنين بعدهما استغناء بلفظ التميز عنهما ليکن دا جواب کمزوري دی ځکه په دې باندې اعتراض واردېږي چې استغناء مفعول له دی منصوب بتقدير اللام او مفعول له چې منصوب بتقدير اللام راځي نو هغه مشروط دی شروط ثلاثه ؤ سره (۱) مصدر به وی (۲) متحد به وی د فعل سره په زمانه کې (۳) متحد به وی، فعل سره په فاعل کې، او دلته اتحاد فی الفاعل نشته ځکه د انتفی لپاره فاعل ذکر دی او د استغناء فاعل متکلم دی **جواب:** دا بناء دی په مذهب د هغه چا باندې چې مفعول له منصوب بتقدير اللام مطلقا جائز وائي (۲) استغناء مفعول له لما تضمنه معنی لايميز واحد بحذف المضاف لاللنفی والمنفی ای ترک تميز الواحد و اثنين مخافة لزوم الاستغناء (۳): دا مفعول له دی د فعل محذوف لپاره ای لايميزان والايلزم ترکها استغناء بلفظ التميز (۴): دا مفعول له دی د فعل منفی لپاره چې يميز دی او نفی چې داخله شي په يو کلام باندې او هغه مقيد وی په يو قيد باندې نو دا نفی د قيد کوی دا قاعده [illegible] يه نده بلکه اکثريه ده، په دې کې درې صور تونه دی (۱) غالبا نفی د قيد کوی نحو ما رايت زيداً قائماً (۲) او کله نفی

مقيد او مقيد دواړو کوی کما فی قوله تعالی ﴿ وَمَا رَبُّكَ بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيدِ ﴾ (٣) او کله نفی د مقيد د مقيد او قيد باقي پاتې وی کما فی قوله تعالی ﴿ وَلَمْ يُصِرُّوا عَلَىٰ مَا فَعَلُوا وَهُمْ يَعْلَمُونَ ﴾ او دا ترکيب د کوی او قيد باقي پاتې وی کما فی قوله تعالی ولم يصروا على ما فعلوا و هم يعلمون نه دی نو نفی د مقيد يې کړې ده چې مصنف د قبيلې د ولم يصروا على ما فعلوا و هم يعلمون نه دی نو نفی د مقيد يې کړې ده چې بيبز دی او قيد يې باقي پاتې کړې دی چې استغناء دی.

وتقول فی المفرد من المتعدد: ربط: هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د استعمال خلاف القياس د اسماء عدد نه چې دا يو حکم وو د احکام مختصه د اسماء عدد نه نو شروع يې وکړه په بيان د جوړولو د اسم فاعل کې د ماده جامده نه چې دا دويم حکم دی د احکام مختصه د اسماء عدد نه.

پس زده کړه دا خبره چې اسم فاعل چې جوړ کړې شي د اسم عدد نه دا په دوه قسمه دی (١) يو اسم فاعل بيان التصير دی (٢) او دويم اسم فاعل بيان الحال دی، اسم فاعل بيان التصير ديته وائي چې دلالت کوی په يو باندې هغه يو چې ګرځوی عدد انقص لره د مشتق منه نه زائد په يو سره په سبب د انضمام د دې يو عدد انقص د مشتق منه سره، او علامه د دې دا ده چې شروع کيږي د دوه نه د يو نه ځکه د يو لاندې بله مرتبه د عدد نشته چې دا زياتی راولې په هغې کې (٢) علامه يې دا ده چې دا تر عشرو پورې راځي او په مرکبات کې نه راځي ځکه دا دلالت کوی په حدث باندې نو دا مشابه شو د فعل سره نو دا به جوړيږي د هغه مادی نه چې د کومې مادی نه فعل جوړيږي او فعل جوړيږي د احادونه نه د مرکباتو نه نو اسم فاعل بيان التصير هم جوړيږي د احادونه نه د مرکبات نه (٣) دريم علامه يې دا ده چې دا مضاف کيږي دون بالذات ته نه مساوی ته او نه مافوق ته ځکه مقصود په دې کې زيادت راوستل دی او زيادت په دون کې راځي نه په مساوی او مافوق کې مثال لکه ثالث اثنين.

ترجمه: هغه يو چې ګرځونکی دی دوه لره درې، او اسم فاعل بيان الحال ديته وائي چې دلالت کوی په يو باندې هغه يو چې واقع کيږي په مرتبه معينه کې د مشتق منه د مضاف اليه نه، او علامه د دې دا ده چې دا شروع کيږي د واحد نه ځکه دا دلالت کوی په مرتبه معينه باندې او د واحد لپاره هم مرتبه معينه شته.

(٢): دويمه علامه يې دا ده چې دا راځي تر اخره پورې يعنی په مرکباتو کې هم راځي ځکه دا دلالت نه کوي په معنی مصدري باندې نو مشابه نه شو د فعل سره بلکه دلالت کوی په مرتبه باندې او مرتبه لکه څنګه چې په مفردات کې شته نو په مرکبات کې هم شته.

(٣): دريمه علامه يې دا ده چې دا مضاف کيږي مساوی يا مافوق ته نه ماتحت ته ځکه که ماتحت ته مضاف شي نو لازميږي کذب ځکه دا دلالت کوی په مرتبه معينه باندې او په ماتحت کې مرتبه معينه نشته مثال لکه ثالث ثلاثة.

ترجمه: هغه يو چې واقع دی په مرتبه معينه کې د دريو نه چې هغه دريم دی وتقول او وائي به ته فی المفرد په واحد کې من المتعدد د متعدد د مشتق منه نه يو قول داسې قول چې متلبس وی باعتبار تصييره په اعتبار د ګرځولو د دې واحد هغه عدد لره چې انقص دی د مشتق منه د واحد نه زائد په دې باندې په يو سره.

**تشریح**: تفسیر د مفرد چې په واحد سره وکړي شو نو په دې کې اشاره ده دیته چې مفرد په معنی د واحد سره دی مقابل د مثنی او د مجموع دی او د متعدد نه مراد مشتق منه د واحد دی باعتبار تصییره کې دا باء سببی ده او تصیر مصدر متعدي الی المفعولین دی او اضافت د مصدر زاغلی دی فاعل ته چې ضمیر دی چې راجع دی مفرد بمعنی الواحد ته او مفعولین د مصدر دواړه حذف شوي دي او دا مصدر مضاف سره د مضاف الیه نه مضاف الیه د مضاف دی، مضاف سره د مضاف الیه نه مجرور د جار دی، جار سره د مجرور نه په اعتبار د متعلق محذوف سره صفت واقع شوی دی د مفرد لپاره فیکون التقدیر فی الواحد من المتعدد الکائن باعتبار تصییره (۲) یا دا با د تلبس لپاره ده او جار مجرور په اعتبار د متعلق محذوفه سره چې متلبسا دی صفت دی د موصوف محذوفه چې قولا دی موصوف مع الصفت مفعول مطلق دی د تقول لپاره فیکون المعنی وتقول فی المفرد من المتعدد قولا متلبسا باعتبار تصییره (۳) یا باعتبار تصییره صله د مفرد دی یعنی دا جار مجرور ظرف لغوه متعلق دی مفرد پورې ځکه مفرد په معنی د افرد سره دی او الف لام بمعنی الذی دی فیکون المعنی وتقول فی الذی افرد من المتعدد باعتبار تصییره ای باعتبار تصییر ذلك المفرد عدداً انقص من عدده عددا زائد علیه بواحد

**الثاني والثانية الى العاشر والعاشرة**: دا مقوله د تقول ده.

**ترجمه**: وائي به ته په دې واحد کې د مشتق منه نه په اعتبار د ګرځول د دې واحد کې عدد انقص لره مشتق منه څخه نه عدد زائد په دې انقص باندې په یو سره **الثاني** ای ثاني الاول په مذکر کې، ترجمه، (۱) ای مصیر الاول اثنین (۲) یعنی دو کننده یکی را (۳) یعنی هغه یو چې ګرځونکي دی اول لره دوه **والثانية** او وائي به ته ثانية الاولی په مؤنث کې (۱) ای مصیرة الاولی اثنتین (۲) یعنی دو کننده یکې را (۳) یعنی هغه یوه چې ګرځونکې ده اولی لره دوه **الى العاشر** د عاشر پورې په مذکر کې نحو عاشر التسع ای مصیر التسع عشر یعنی ده کننده نه را، هغه یو چې ګرځونکي دی نهه لره لس، **والعاشرة** او د عاشرة پورې په مؤنث کې نحو عاشرة التسعة ای مصیر التسعة عشرة هغه یوه چې ګرځونکې دی نهه لره لس **لاغير** او نه به وائي ته اسم فاعل بیان التصیر په غیر د دې مذکور کې ځکه ماقبل د ثاني او د ثانية نه اول او اولی دی او د دې نه لاندې بله مرتبه د عدد نشته چې دی پکې زیادت راولي، او مابعد د عاشر او عاشرة نه مرکبات دی او دهغې نه فعل نه جوړیږي چې د هغې نه موننږه جوړ کړو اسم فاعل بیان التصیر د دې نه معلومه شوه چې اسم فاعل بیان التصیر شروع کیږي د دوه نه او ختمیږي په لس باندې د دوه نه ماتحت کې او د لسو نه بره کې نه راځي او اضافت د اسم فاعل بیان التصیر کیږي ماتحت یعنی دون بالذات ته ځکه دی زیاتی راولي په ماتحت کې او مافوق او مساوی ته نه مضاف کیږي، **اولا غير** مبني علی الضمه دی او وجه د دې مخکې تیره شوې ده او په الی العاشر والعاشرة کې الی اسقاطیه دی او صدر د کلام متناول دی مدخول د الی لره ځکه عبارت د مصنف په حذف د معطوف سره دی ای وهکذا تقول الی العاشر الخ **وباعتبار حالة** دا عطف دی په باعتبار التصيره باندې او قاعده دا ده چې ماقبل د معطوف علیه معاد وی د معطوف سره فیکون التقدیر وتقول فی المفرد

من المتعدد باعتبار حاله، وائي به ته په واحد کې د مشتق منه نه **باعتبار حاله** په اعتبار د بیان د مرتبه د دې واحد کې **الاول** په مذکر کې کله چې واقع شي په مرتبه اولی کې **والثانی** او وائي به ته په مذکر کې کله چې واقع شي په مرتبه ثانیه کې لکه ویلې دی صاحب د تلخیص المفتاح الفن الاول علم المعانی والفن الثانی علم البیان څکه علم معانی واقع شوی دی په مرتبه اوله کې د مقاصدو بالذات د دغه کتاب نه نو د هغې توصیف وشو په الاول سره او علم بیان واقع شوی دی په مرتبه ثاني کې د مقاصدو بالذات د دې کتاب نه د هغې توصیف وشو په الثاني سره **والاولی** او وائي به ته په الاولی په مؤنث کې کله چې واقع شي په اوله مرتبه کې **والثانیة** او وائي به ته الثانیة چې کله واقع شي په مرتبه ثانیه کې **الاول** والاولی ای وویل نه الواحد او الواحدة څکه هغه دلالت نه کوي په هغه مرتبه باندې چې اول واقع وی پس ذکر کړې شو په بدل د واحد کې الاول او په بدل د د واحدة کې الاولی د وجې د دلالت کولو نه په مرتبه معینه باندې **الی العاشر** تر عاشر پورې په مذکر کې او د عاشرة پوی په مؤنث کې **والحادی عشر** دا عطف دی په الاول باندې فیکون التقدیر وتقول فی المفرد من المتعدد باعتبار حاله الحادي عشر په مذکر کې په تذکیر د جزئین سره او الحادیة عشرة په مؤنث کې په تانیث د جزئین سره.

**ترجمه**: یوولسم د یوولسو نه **والثانی عشر** په مذکر کې په تذکیر د جزئین سره والثانیة عشرة په تانیث د جزئین سره په مؤنث کې دا به وائي الی التاسع عشر فی المذکر والتاسعة عشرة فی المؤنث څکه اسم فاعل چې جوړ شي د اسم عدد نه نو هلته دا عدد مستعملولې شي موافق القیاس په دې شان سره چې په مذکر کې به مذکر وائي او په مؤنث کې به مؤنث وائي، څکه هلته په استعمال خلاف القیاس باندې باعث موجود وو چې موافقت دی بین العدد والمعدود او دلته په استعمال خلاف القیاس باندې باعث نشته.

(۲): اسم فاعل بیان التصیر د مرکبات نه نه راځي او اسم فاعل بیان الحال راځي، او اسم فاعل بیان الحال د مجموعه مرکب نه جوړول ممکن نه دی څکه چې وزن د فاعل حروف د مرکب په خپل ځان کې نه شي ځاي کولې او که بعض حروف د هر جز د مرکب نه واخلو دا موهم د التباس دی په دې شان سره چې بعض حروفو د جز اول باندې زمونږه نظر ولګي نو دا ګمان زمونږه کیږي چې دا د جز اول د مرکب نه مشتق دی، او که په بعض حروف د جز ثاني باندې مو نظر ولګي نو دا ګمان مو کیږي چې دا د جز ثاني د مرکب نه جوړ شوی دی لهذا دوی اقتصار وکړو په بناء د اسم فاعل من المرکب علی احد الجزئین پس مختار یې کړه بنا د اسم فاعل د جز اول د مرکب نه لیدل علی المقصود من اول الامر.

(۳): د اسم عدد نه چې اسم فاعل جوړ شي د بیان الحال لپاره یا د بیان التصغیر لپاره نو دا تمیز نه غواړي نحو قوله تعالی ﴿ثَانِيَ اثْنَيْنِ إِذْ هُمَا فِي الْغَارِ﴾ په دې ایت کې اسم فاعل بیان الحال ذکر شوی دی او تمیز ورسره نه دی ذکر څکه دا تمیز نه غواړي

(۴): څلورم اسم فاعل بیان التصیر اسم فاعل دی لفظا او معنا او اسم فاعل بیان الحال جامد دی په شان د حائط باندې خو صورة یې صورة د اسم فاعل دی.

اضافت د اسم فاعل راغلي دی
(۵): اضافت د اسم فاعل بیان التصییر اضافت لفظی دی ځکه چې اضافت د صفت معمول خپل ته او اضافت د اسم فاعل بیان الحال اضافت معنوی دی ځکه چې اضافت د معمول ته نه دی راغلي، **ومن ثمّ** د وجې د اختلاف د اعتبارینو نه چې یو اعتبار د تصییر دی او بل اعتبار د حال دی اختلاف راغلي په اضافت د دې دواړو کې یا اختلاف راغي په مضاف الیه د اسم فاعل بیان الحال او اسم فاعل بیان التصییر کې او د وجې د اختلاف د اضافت د دې دواړو نه یا د وجې د اختلاف د مضاف الیه د دې دواړو نه **قیل** ویلي شوی دی **فی الاول** په اعتبار اول کې چې هغه اسم فاعل بیان التصییر دی **ثالث اثنین** په اضافت د اسم فاعل بیان التصییر سره دون بالذات ته ای مصیر هما ثلاثة یعنی هغه یو چې گرځونکي دی دوه لره دریې او **ثالث** اسم فاعل بیان التصییر ماخوذ دی او جوړ شوی دی **من ثلثتهما** د ثلثتهما نه بالتخفیف او د ثلثتهما ترجمه دا دی چې صیرت الاثنین ثلاثة **وفی الثانی** ویلي شوی دی په اعتبار ثانی کې چې **هغه** اسم فاعل دی د بیان حال لپاره **ثالث ثلاثة** په اضافت د اسم فاعل بیان حال سره مساوی خپل ته ترجمه د دې په عربی کې احدها دی ای احد الثلاثة یعنی هغه یو چې واقع شوی دی په مرتبه معینه کې د دریو نه چې هغه دریم دی پس زده کړه دا خبره چې په اضافت د اسم فاعل بیان التصییر کې احتمالات عقلیه پنځه دی (۱) اضافت الی المساوی (۲) الی الفوق بالذات (۳) الی الفوق بالواسطه (۴) الی دون بالواسطه (۵) الی دون بالذات، په دې کې صرف دا پنځم احتمال چې اضافت دی دون بالذات ته موجود دی په خارج کې او دا نور څلور واړه مجرد احتمالات عقلیه دی، درخارج وجود ندارد، او په اضافت د اسم فاعل بیان الحال کې هم احتمالات عقلیه پنځه دی لیکن دریې موجود دی په خارج کې (۱) اضافت الی المساوی (۲) الی الفوق بالذات (۳) الی الفوق بالواسطه، او دوه مجرد احتمالین علقین دی وجود نه لري په خارج کې چې اضافت دون بالذات او دون بالواسطه دی.

**وتقول حادی عشر احد عشر: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د حکم مختصه ثانی د اسماء عدد نه نو شروع یې وکړه په بیان د حکم ثالث مختصه د اسماء عدد کې چې هغه اضافت د مرکب الی المرکب دی نو وی ویل وتقول الخ.

**ترجمه:** وائي به ته حادی عشر احد عشر په اضافت د مرکب الی المرکب سره یعنی یولسم د یولسو نه **علی الثانی** په اعتبار ثانی باندې چې **هغه** اسم فاعل بیان الحال دی **خاصة** (۱) په حال کون د دې اعتبار ثانی کې چې مختص دی په مرکب پورې او تا راغلي ده د مبالغی لپاره (۲) یا خاص کړې شوی دی دا اعتبار ثانی په دی مرکب پورې په خاص کولو سره او نه دی مجاوز اسم فاعل بیان التصییر ته ځکه چې هغه د مرکب نه نه راځي

**تشریح: سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟

**جواب:** ربط د ماقبل سره دا دی چې مصنف اسماء عدد ذکر کړي وو لپاره د بیان د احکام مختصو او احکام مختصه د اسماء عدد دریې وو (۱) استعمال خلاف القیاس (۲) جوړول د اسم فاعل د مادی جامدی نه (۳) اضافت مرکب الی المرکب، نو دا دوه حکمونه مختصه بیان شو اوس د دې

ځای نه حکم ثالث مخص د اسماء عدد بیانوی چې اضافت د مرکب الی المرکب دی او په دې سره غرض د مصنف هم معلوم شو چې بیان د حکم ثالث دی (۱) اضافت المرکب الی المرکب جائز دی په اسماء عدد کې عند البصریین او د کوفیانو په نزد نه دی جائز (۲) او اضافت د عدد زائد په عشر باندې جائز نه دی په نزد د بصریانُ او کوفیانو په نزد باندې جائز دی خمسة عشرِ (۳) دخول د الف لام په مرکب باندې جائز نه دی عند البصریین او د کوفیانو په نزد باندې جائز دی نحو الخمسة عشر درهما، حادی عشر احد عشر مضاف سره د مضاف الیه نه مفعول به دی د نقول لپاره منصوب محلا دی ځکه لفظا دا دواړه مبني علی الفتحه دی وعلی الثانی متعلق دی په تقول پورې.

سوال: خاصة په ترکیب کې څه واقع شوی دی؟ جواب: دا منصوب دی بنابر حالیت د اعتبار ثانی نه

سوال: مطابقت نشته بین الحال و ذی الحال ځکه ثانی مذکر دی او خاصة مؤنث دی؟

جواب: دا تاء د مبالغی لپاره ده نه د تانیث لپاره (۲) یا دا خاصة منصوب دی بنابر مفعول مطلق د فعل مقدر او محذوف لپاره فیکون التقدیر خص الاعتبار الثانی بالمرکب خصوصا او دا جمله معترضه ده او ذکر کړي یې ده یو مقصد لپاره هغه دا دی چې اسم فاعل بیان الحال په مرکب کې راځي او اسم فاعل بیان التصییر پکې نه راځي.

سوال: ته وائې چې دا منصوب دی بنابر مفعول مطلق نو مفعول مطلق خو مصدر د فعل مذکور ته وائي او دا خو مصدر نه دی بلکه اسم فاعل دی؟ جواب: هر اسم چې په وزن د فاعل یا فاعلة راشي نو هغه اسم فاعل نه وي بلکه کله په دې وزن باندې مصدر هم راځي نو دا خاصة هم مصدر دی بمعنی الخصوص.

سوال: مصدر چې راغلي وی په وزن د فاعلة باندې په کلام د عربو کې ما ته مثال وښایه علاوه د خاصة نه؟ جواب: یو نه بلکه څلور مثالونه به درته وښایم عافیة، عاقبة، باقیة، کاذبة، **وان شئت قلت حادی احد عشر** او که ستا خوښه وی نو په حادی عشر احد عشر کې حادی احد عشر ووایه په حذف د جز ثانی سره د مرکب اول نه د وجی د اکتفاء نه په جز ثانی باندې په مرکب ثانی کې تر **تاسع تسعة عشر** پورې نه په معنی کې تغیر نه راځي بلکه لکه څنګه چې د حادی عشر احد عشر ترجمه دا وه چې یوولسم د یوولسو نه نو د دې ترجمه هم دغه ده البته په حکم کې تغیر راځي **فتعرب الاول** معرب کوی به ته جز اول د دې مرکب اول لره د وجی د انتفاء د علت د بناء نه چې هغه ترکیب دی او مبني کولي شي جز آن باقیانُ د مرکب ثانی چې مضاف الیه واقع شوی دی د مرکب اول لپاره د د وجی د وجود د علت د بناء نه په دې دواړو کې چې هغه ترکیب دی.

**المذکر والمؤنث:** **ربط:** (۱): هر کله چې فارغ شو مصنف د تقسیم د اسم نه ثالثاً عدد او غیر عدد ته نو شروع یې وکړه په تقسیم د اسم کې رابعا مذکر او مؤنث ته او هر کله چې د مذکر او مؤنث لپاره احکام مختصه وو چې هغه ثابت دی د مذکر او مؤنث لپاره نه د غیر لپاره نو تقسیم یې وکړو د اسم مذکر او مؤنث ته لپاره د بیان د احکام مختصو او هر کله چې ذکر شو په مراتُ او کرات سره مذکر او مؤنث په بحث د اسماء عدد کې نو د دې وجی نه ذکر کړو مصنف مذکر او مؤنث د اسماء عدد نه وروستو.

(۲): یا هر کله چې ذکر شو مذکر او مؤنث په اسماء عدد کې نو معترض اعتراض وکړو په مصنف باندې چې مذکر څه ته وائي او مؤنث څه ته وائي نو مصنف اول تقسیم د اسم وکړو مذکر او مؤنث ته او د هغې نه بعد یې تعریف د مذکر او مؤنث وکړو، او هر کله چې مذکر اصل وو د مؤنث نه په اعتبار د ذات سره نو مقدم یې کړو په مؤنث باندې په جانب د اجمال کې، او هر کله چې تعریف د مؤنث وجودي وو او تعریف د مذکر عدمي وو او وجودي اشرف وي د عدمي نه نو مقدم یې کړو مؤنث په مذکر باندې په تفصیل کې.

**تشریح: سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟

**جواب:** د دې ربط په دوه طریقو سره دی (۱) یو دا چې مخکې مصنف تقسیم کړي وو اسم عدد او غیر عدد ته دا بل تقسیم د اسم دی مذکر او مؤنث ته او په دې سره غرض د مصنف هم معلوم شو چې تقسیم د اسم دی رابعاً نوعین ته.

**سوال:** چې دا تقسیم د اسم رابعاً مذکر او مؤنث ته ولې کوي باوجود د دې نه چې دا داخل دی په معرب او مبني کې؟ **جواب:** هر کله چې د دې لپاره احکام مختصه وو نو دا یې ذکر کړل لبیان الاحکام.

**سوال:** دا یې د اسماء عدد نه وروستو متصل ولې ذکر کړه؟ **جواب:** هر کله چې ذکر شو په اسماء عدد کې مذکر او مؤنث نو د دې مناسبت د وجې نه یې وروستو متصل بلافصل ذکر کړه (۲) یا ربط دا دی چې دا جمله مستانفه ده جواب د سوال دی خکه هر کله چې ذکر شو مذکر او مؤنث اسماء عدد کې نو معترض اعتراض وکړو چې مذکر او مؤنث څه ته وائي نو مصنف اول تقسیم د اسم وکړو مذکر او مؤنث ته او بیا تعریف د هر یو کوي.

**سوال:** په جانب د اجمال کې مذکر مقدم دی نو په تفصیل کې یې مؤنث ولې مقدم کړو؟

**جواب:** (۱): هر کله چې مذکر اصل وو د مؤنث نه باعتبار الذات یا اسبق وو وجود نو مقدم یې کړو په جانب د اجمال کې او هرکله چې مفهوم د مؤنث وجودي وو او مفهوم د مذکر عدمي وو او وجودي اشرف وي نو مقدم یې کړو مؤنث (۲) یا یې مؤنث مقدم کړي دی په جانب د تفصیل کې مخص لپاره د اختصار فی البیان په مذکر کې خکه چې اول یې د مؤنث بیان وکړو نو د مذکر بیان وشو په بخلافه سره لکه چې اعراب تقدیري یې مقدم کړي وو په لفظي باندې للاختصار (۳) یا مؤنث یې مقدم کړي دی په مذکر په جانب د تفصیل کې لپاره د دې چې مصنف شروع وکړي په بیان باندې د قریب نه خکه مذکر بعید دی او مؤنث قریب دی.

**سوال:** ته وائي چې اسم دوه قسمه دی (۱) مذکر (۲) مؤنث، نو دا خو تعمیم د قسم راغي د مقسم نه په دې شان سره چې ضرب مذکر دی او اسم نه دی او ضربت مؤنث دی او اسم نه دی؟

**جواب:** مطلق اسم مقسم دی او اسم مذکر او اسم مؤنث قسمین دی نو مذکر فی المتن قیدین د قسمین دی نه قسمین یعنی مطلق اسم په دوه قسمه دی (۱) اسم مذکر (۲) او بل اسم مؤنث.

**سوال:** المذکر والمؤنث څه ترکیب دی؟ **جواب:** په دې کې تراکیب ثلاثه دی (۱) المذکر والمؤنث خبر د مبتداء محذوف دی په اعتبار د حذف د مضاف سره فیکون التقدیر هذا بحث المذکر والمؤنث

يا دا مبتداء حذف شوه بحث المذكر والمؤنث پاتې شو، بيا دا مضاف هم حذف شو نو المذكر والمؤنث شو (۲) يا دا مبتداء ده او خبر يې حذف دی فيكون التقدير المذكر والمؤنث هذان يا اذكرهما (۳) يا دا منصوب دی بنابر مفعول به د فعل مقدر ای ع المذكر والمؤنث

**المؤنث ما فيه علامة التانيث: ربط:** هر كله چې فارغ شو مصنف د اجمال نه نو شروع يې وكړه په تفصيل كې نو وی ويل المؤنث الخ

**ترجمه:** اسم مؤنث عند النحات **ما** اسم دی داسې اسم چې موجود وی **فيه** په دې اسم كې **علامة التانيث** علامه د تانيث برابره خبره ده چې ملفوظه وی او كه مقدره وی مثال د تقديري لكه شمس او عين دار، او دا لفظا عام دی حقيقة وی لكه ظلمة ناقة ضاربة، يا حكما وی لكه عقرب چې دا مؤنث سماعي دی او علامه د تانيث پكې موجود ده حكماً چې حرف رابع دی څكه هغه تاء د تانيث نه ظاهريږي په تصغير كې لپاره د دې چې لازم نه شي اجتماع بين النائب والمنوب او لپاره د دې چې لازم نه شي اجتماع د علامتي د تانيث

**تشريح: سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی؟ **جواب:** دا مخكې اجمال وو او دا تفصيل دی او كلمه د ما د لته عبارت دی د اسم نه او په تنكير د اسم كې اشاره ده موصوفيت د ما ته څكه چې واقع دی په جانب د خبر كې الخ

**سوال:** دا ما عبارت د اسم نه ولې دی؟ **جواب:** څكه چې معتبر په تعريفاتو د اقسامو كې جنس قريب دی او جنس قريب د دې لپاره اسم دی او لفظ او شئ اجناس بعيده دی.

(۲) يا ما عبارت دی د اسم نه څكه دا مطلق اسم مقسم دی د اسم مذكر او مؤنث لپاره او مقسم معتبر وی په تعريفات د اقسامو كې (۳) يا ما عبارت دی د اسم نه مقصد په دې سره دفع د اعتراض ده اعتراض دا دی چې ته وائې چې مؤنث هغې ته وائي چې علامه د تانيث پكې وی او علامات د تانيث تا درې بيان كړی حالانكه علامه د تانيث بله هم شته چې فرج دی؟

**جواب:** دلته مراد اسم مؤنث دی او د اسم مؤنث لپاره علامات دغه درې دی اوفرج علامه د ذات د مؤنث ده او دی سره بل اعتراض هم دفع شو اعتراض دا دی چې ته وائې چې علامات د تانيث څلور دی دا خبره نده صحيح بلكه علامات د تانيث اته دی څلور دا دی او څلور نور دی.

(۱) تاء تانيث ساكنه نحو ضربت (۲) تاء تانيث متحركه فى الاول نحو تضرب (۳) نون نحو ضربن (۴) يا نحو اضربي وتضربين

**جواب:** علامات د تانيث دوه قسمه دی (۱) فى الاسم (۲) فى الفعل، دلته ما علامات د تانيث د اسم بيان كړی دی او هغه څلور دی او دا باقي څلور علامات د تانيث په فعل كې دی.

**سوال:** تعريف د مؤنث جامع نه شو خپلو افرادو لره خارج شو د دې نه عقرب حايض او رجال دا درې واړه مؤنث دی څكه د دوی سره معامله كولې شي په استعمال د كلام د عربو كې معامله د مؤنث او علامه د تانيث پكې نده موجود نه لفظا او نه تقديرا عدم وجود لفظا خو ظاهر دی او تقديرا څكه نشته چې په تصغير كې نه ښكاره كيږي؟ **جواب:** علامه د تانيث لفظا عامه ده كه حقيقة وی

لکه ضاربة او حکما وی لکه عقرب دلته دا حرف رابع په منزله د تاء تانيث دی ځکه دا تاء د دې ...
ظاهريږي په تصغير کې لپاره د دې چې لازم نه شي جمع بين النائب والمنوب او لازم نه شي جمع ...
علامتي د تانيث او حايض صفت مختصه د مؤنث دی او رجال مؤنث حقيقتا نه دی بلکه مؤنث ...
دی تاويلا او دا تعريف د مؤنث غير مؤل دی. **والمذکر بخلافه** او اسم مذکر د نحويانو په اصطلاح ...
کې متلبس دی په مخالفت د مؤنث سره يعنی اسم مذکر عند النحات هغه اسم ته وائي چې نه وي ...
موجود په اسم کې علامه د تانيث نه لفظا نه تقدير او نه حکماً مثال لکه رجل او جعفر شو دا دواړه ...
اسمين مذکرين دی ځکه چې په دې کې نده موجود علامه د تانيث نه لفظا نه تقدير نه حکماً او ...
باء په بخلافه کې د تلبس لپاره ده او دا بخلافه جار مجرور ظرف مستقر په اعتبار متعلق محذوف ...
سره چې متلبس دی خبر واقع شوی دی د مبتدا لپاره چې المذکر دی.

**وعلامة التانيث الخ: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د تعريف د مؤنث نه نوشروع يې وکړه په بيان د علامه د تانيث کې ځکه چې وضاحت د معرف موقوف دی په جميع اجزاؤ د تعريف پورې او يو جز د اجزاؤ د تعريف د مؤنث نه علامه د تانيث ده نو مؤنث به مؤنره هله وپيژنو چې علامه د تانيث وپيژنو پس لابدي شوه د بيان د مصداق د علامه د تانيث نه نو ويل مصنف چې وعلامة التانيث التاء (۲) يا دا جمله مستانفه جواب د سوال دی هر کله چې مصنف تعريف وکړه د مؤنث او د اسم مذکر چې مؤنث هغه اسم ته وائي چې په هغې کې موجود وی علامه د تانيث او مذکر هغه اسم ته وائي چې موجود نه وي په هغې کې علامه د تانيث، نو معترض اعتراض وکړو چې علامه د تانيث څه ته وائي نو مصنف جواب وکړو چې وعلامة التانيث الخ نو په معرفت د ربط سره غرض د مصنف هم معلوم شو چې غرض او مقصد د مصنف په دې عبارت سره بيان د مصداق د علامه د تانيث دی او په معرفت د غرض د مصنف سره دفع د اعتراض هم وشوه اعتراض دا دی چې تا د اسم تقسيم وکړو اولا مذکر او مؤنث ته او د هغې تعريف دی هم وکړو نو علامه د تانيث ولې بيانوی؟ **جواب:** علامه د تانيث مذکور ده په تعريف د اسم مؤنث او مذکر کې جزءً او قاعده دا ده چې معرفت د معرف موقوف وی په معرفت د جميع اجزاؤ د تعريف پورې نو مذکر او مؤنث به مونږ هله وپيژنو چې علامه د تانيث وپيژنو نو ځکه مصنف د دې مصداق بيانوی.

**ترجمه: وعلامة التانيث.** علامه د تانيث په اسم کې **التاء** تاء زائده متحرکه مدوره ده چې بدليږي په حالت د وقف کې په هاء سره او محض ده په تانيث کې او مخکې د هغې نه بناء على الفتحه واجب ده، بيا دا عامه ده چې ملفوظه وی لکه ضاربة يا مقدره وی لکه ارض شو **والالف** او بله علامه د تانيث په اسم کې الف دی **مقصورة او ممدودة** برابره خبره ده چې دا الف مقصوره وی او که الف ممدوده وی، الف مقصوره علامه د مؤنث په اسم کې هغه الف دی چې زائد به وی د غير د الحاق او د غير د تکثير د بناء لپاره بيا برابره خبره ده که په اسم کې وی لکه سلمی شو يا صفت کې لکه حبلی شو او الف ممدوده علامه د تانيث په اسم کې هغه الف دی چې زائد به وی لپاره د غير د الحاق بيا برابره خبره ده که په اسم کې وی لکه صحراء که صفت کې وی لکه حمراء شو، او په دی

الف ممدوده کې دوه مذهب دی (۱) یو مذهب د سیبویه دی (۲) او دویم مذهب د بعض دی، سیبویه وائي چې علامه د تانیث دا همزه ده څکه حمراء اصل کې حمرا وو په الف مقصوره سره چې دا علامه د مؤنث وو بیا بل الف د دې نه مخکې زیات کړي شو لپاره د مد د صوت بیا التقاء د ساکنین راغله بین الفین نو دا دویم الف چې علامه د مؤنث وو بدل شو په همزی سره نو حمراء شو او حذف ونه کړي شو لپاره د دې چې غرض فوت نه شي چې مد د صوت دی.

**سوال:** هر کله چې علامه د مؤنث دا همزه ده نه الف نو په دې همزی باندې اطلاق د الف ولي کیږي؟

**جواب:** اطلاق د الف کیږي په همزی باندې مجازاً (۱) د وجی د علاقی د مجاورت نه (۲) یا په اعتبار د ماکانه سره په شان د دې قول د الله تعالی باندې ﴿ وَءَاتُوا۟ ٱلْيَتَٰمَىٰٓ أَمْوَٰلَهُمْ ﴾ چې اطلاق د یتیم په بالغ باندې شوی دی په اعتبار د ماکان سره (۲) او مذهب د بعض دا دی چې علامه د مؤنث الف دی نه همزه لیکن محتار عنده مذهب د سیبویه دی نه مذهب د بعض څکه دا الف زیاتی کړي شوي دی د مد د صوت لپاره نه لپاره د تانیث.

**تشريح: سوال:** ته وائي چې علامه د تانیث تاء او الف مقصوره او الف ممدوده دی نو دا خبره ستا منقوضه شوه په هذی او تی سره چې دا دواړه مؤنث دی او علامه د تانیث پکې یاء ده او دارنګې دا خبره ستا منقوضه شوه په ضربت، ضربن، تضربین، او تضرب سره ضربت مؤنث دی د تاء ساکنی د وجی نه او ضربن د نون د وجی نه او تضربین د یاء د وجی نه او تضرب د تاء د وجی نه چې په اول کې ده لهذا علامات د تانیث درې نه دی بلکه اته دی درې دا او پنځه هغه نو ته څنګه وائي چې علامات د تانیث دا درې دي په طریقې د حصر سره څکه مبتداء او خبر دواړه معرفی دی دا حصر فائده کوی نو معنی دا شوه چې علامات د تانیث دغه درې دی نه نوری او دا معنی باطله ده څکه علامات نور هم شته؟ **جواب:** اضافت د علامة التانیث ته اضافت عهد خارجي دی او مراد د علامه د تانیث نه علامه د تانیث ده په اسم کې نو په دې سره یې احتراز وکړو د تاء التانیث ساکنه او نون یاء او تاء متحرکه نه چې راځي په اول د مضارع کې څکه هغه علامات د تانیث نه دی په اسم کې بلکه علامات د تانیث دی په فعل کې، او هر چې دی هذی او تی نو دلته دا یاء علامه د مؤنث نده بلکه دا صیغی د مؤنث دی په شان د تان باندې.

**سوال:** ته وائي چې علامی د تانیث په اسم کې درې دی تاء، الف مقصوره، او الف ممدوده نو دا خبره ستا منقوضه شوه په ارض او عین سره دا مؤنث دی او تاء او الف مقصوره او ممدوده پکې نشته؟

**جواب:** تاء عامه ده که ملفوظه وی او که مقدره وی مثال د ملفوظې لکه ضاربةٌ او مثال د مقدرې لکه ارض شو، په دې کې تاء مقدره ده څکه اصل کې ارضة وو بیا پکې تاء مقدره شوه نو ارض شو، او دلیل په دې باندې تصغیر دی څکه سید سند صاحب ویلي دی، زیراکر تصغیر اسماء راباصل خود برد.

**سوال:** ته وائي چې تاء علامه د تانیث ده په اسم کې دا خبر ستا منقوضه شوه په ضربت سره دلته تاء علامه د تانیث ده په فعل کې؟ **جواب:** التاء کې الف لام عهد خارجي دی مراد د دې نه تاء زائده متحرکه مدوره چې بدلیږي په حالت د وقف کې حاء سره او محضه وی په تانیث کې او د دې نه

مخکې بناء علی الفتحه واجب ده متحرکه سره یې احتراز وکړو د ساکنې نه ځکه هغه علامه د تانیث ده فعل کې او په محضه سره یې احتراز وکړو د تاء د مسلمات نه ځکه دا محضه نده په تانیث کې بلکه څنګه چې علامه د تانیث ده نو دارنګې علامه د جمع هم ده او باقي قیودات سره یې احتراز وکړو د اخت او د بنت نه ځکه دا تاء د تانیث نده بلکه دا صیغه د دې صیغه د مؤنث ده لهذا احت او بنت چې علم وګرځولي شي د یو مذکر لپاره نو دا منصرف دي بالاتفاق د وجې د عدم وجود د سببین د اسباب د منع صرف نه او که علم وګرځولي شي د مؤنث لپاره نو په شان د هند دې غیر منصرف لوستل یې هم جائز دي لوجود السببین (۱) علمیة (۲) او تانیث معنوی او منصرف لوستل هم جائز دي ځکه چې شرط د وجوب د تاثیر د تانیث معنوی نشته چې هغه زیادت علی الثالثه او عجمه او تحرك الاوسط دی.

**سوال:** ته وائي چې الف مقصوره او ممدوده علامه د تانیث ده په اسم کې دا اوله خبره ستا منقوضه شوه په الفتی ارطی او قبعثری سره په دې شان سره چې په دې درې واړو کې الف مقصوره راغلي دی او مؤنث نه دي او دا دویمه خبره دی منقوضه شوه په کساء او رداء او علباء سره، په دې کې الف ممدوده شته او مؤنث نه دي بلکه مذکر دي؟ **جواب:** الف مقصوره چې علامه د مؤنث راځي نو هغه الف دی چې زائد به وی نو دی سره یې احتراز وکړو د الفتی نه ځکه په هغې کې دا الف اصلي دی چې بدل د یاء نه راغلي دی او زاید د الحاق لپاره به نه وي نو دی سره یې احتراز وکړو د ارطی نه ځکه په دې کې دا الف اګر که زائد دی لیکن زاید دی د الحاق لپاره نه د تانیث لپاره (۲) او زائد به نه وي د تکثیر د بناء لپاره نو احتراز راغي د قبعثری نه ځکه دلته اګر چې زاید دی خو د تکثیر د بناء لپاره دی او الف ممدوده علامه د تانیث هغه الف دی چې زاید وی نو په دې سره یې احتراز وکړو د کساء او رداء نه ځکه دا الف اصلي دی بدل د واو نه راغلي دی کساء کې او بدل د یاء نه راغلي دی په رداء کې او زائد به نه وي د الحاق لپاره نو احتراز راغلي د علباء نه ځکه دا اګر چې زائد دی خو د الحاق لپاره دی چې دا ملحق دی په قرطاس پورې او په دې سره یو بل اعتراض هم دفع شو اعتراض دا دی چې تاسو وائي چې الف ممدوده چې په اسم کې راشي نو دا قائم وی په مقام د سببین باندې د اسم غیر منصرف ګرځي نو دا قاعده ستا منقوضه شوه په علباء باندې دلته الف شته او غیر منصرف نه دی او دارنګې تاسو وائي چې الف مقصوره چې کله په اسم کې راشي نو هغه غیر منصرف ګرځي نو دا قاعده ستا منقوضه شوه په فتی سره، دلته الف راغلي دی او غیر منصرف نه دی؟ **جواب:** الف مقصوره او ممدوده د وجې نه چې اسم غیر منصرف ګرځي نو مراد د هغې نه هغه الف مقصوره او ممدوده دی چې علامه د مؤنث دی او اصلي نوی، او زائد للتانیث وی نه د الحاق او د تکسیر د بناء لپاره.

**سوال:** الف مقصوره ته مقصوره او ممدوده ممدوده ولې وائي؟ **جواب:** الف ممدوده ته ممدوده وائي د وجې د امتداد د صوت نه او مقصوره ته مقصوره وائي (۱) د وجې د قصر د صوت نه (۲) یا د وجې د حبس او منع د اعراب نه لفظا په دې باندې

**وهو حقيقي ولفظي: ربط:** هر كله چې فارغ شو مصنف د تعريف د مؤنث او مذكر نه او د بيان د علامات د تانيث نه په اسم كې نو شروع يې وكړه په تقسيم د مؤنث كې نو وي ويل وهو حقيقي ولفظي.

**ترجمه: هو** دا مؤنث **حقيقي ولفظي** حقيقي او لفظي دي.

**وجه دحصر:** دا ده چې دا مؤنث به خالي نه وي يا به د دې مقابل كې مذكر من الحيوان موجود وي او يا به نه وي كه موجود وو نو حقيقي ورته او كه نه وو نو لفظي ورته وائي.

**فالحقيقي: ربط:** هر كله چې فارغ شو مصنف د بيان د اقسامو د مؤنث نه اجمالاً نو شروع يې وكړه په بيان د تعريف د اقسامو د مؤنث كې نو وي ويل فالحقيقي الخ، فاء په فالحقيقي كې تفصيلي ده ځكه د ماقبل اجمال وو او دا مابعد تفصيل دی او الف لام په الحقيقي كې عهد خارجي ذكري صريحي دی.

**ترجمه: فالحقيقي** پس مؤنث حقيقي عند النحات **ما** مؤنث دی په تنكير د مؤنث كې اشاره ده موصوفيت د ما ته لانه واقع في جانب الخبر داسې مؤنث **بازائه** چې وي په مقابل د دې مؤنث كې ذكر مذكر داسې مذكر چې هغه كائن دی **من الحيوان** په جنس حيوان كې مراد د ذكر نه په دې مقام كې مقابل د انثى دی چې هغه مذكر دی نه خلاف د فرج چې قبل د رجل دی او په الحيوان كې الف لام جنسي دی مراد جنس حيوان دی او من په من الحيوان كې په معنى د في سره دی مثال لكه امرأة شو چې دا مؤنث حقيقي دی ځكه د دې مقابل كې مذكر من الحيوان شته چې رجل دی او بل مثال لكه **ناقة** شو دا هم مؤنث حقيقي دی ځكه مقابله كې يې مذكر من الحيوان شته چې جمل دی او تعدد د مثال بنا دی په تعدد د ممثل باندې چې امرأة مثال د مؤنث حقيقي في الاناسي دی او ناقة مثال د مؤنث حقيقي في البهائم دی **واللفظي** او مؤنث لفظي متلبس دی **بخلافه** په خلاف د مؤنث حقيقي باندې يعنى مؤنث لفظي په اصطلاح د نحويانو كې هغه مؤنث ته وائي چې هغه په مقابل كې مذكر من الحيوان موجود نه وي او مؤنث لفظي ورته وائي د وجې د وجود د علامې د مؤنث نه په لفظ كې حقيقتا لكه ظلمة شو يا حكما لكه عقرب شو او يا تقديرا لكه عين شو.

**تشريح: سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟

**جواب:** ربط د مخكې سره دا دی چې مخكې مصنف تعريف د مؤنث كړي وو او **وهو حقيقي الخ** سره تقسيم د مؤنث كوي او په دې سره غرض د مصنف هم معلوم شو چې تقسيم د مؤنث دی حقيقي او لفظي ته.

**سوال:** لكه څنګه چې مؤنث دوه قسمه دی (۱) حقيقي (۲) لفظي، نو دارنګې مذكر هم په دوه قسمه دی (۱) حقيقي (۲) لفظي، حقيقي هغه ته وائي چې په ماقبل كې يې مؤنث من الحيوان موجود وی لكه رجل او جمل شو، او لفظي هغه ته وائي چې ماقبل كې يې مؤنث من الحيوان نه وي موجود لكه قلم او كتاب شو، نو مصنف د مذكر تقسيم ولي ونه كړو حقيقي او لفظي ته او فقط د مؤنث تقسيم يې وكړو؟ **جواب:** دا اعتراض به تا هله كولي چې دا تقسيم بما هو تقسيم دلته مقصود بالذات وی ليكن دا مقصود بالذات نه دی بلكه ذريعه ده او تمهيد دی لپاره د بيان د احكامو د مؤنث حقيقي او لفظي په دې شان سره چې د فعل اسناد چې مؤنث حقيقي ته وشي نو د هغې جدا

احکام دی او چې اسناد د فعل مؤنث لفظی ته وشي د هغې جدا احکام دی په خلاف د قسمين د
مذکر نه چې په هغه باندې احکام نه دی مرتب نو ځکه ورته تقسیم ونه شو.
**سوال:** دا قسمین د مؤنث دواړه سواسي دی په قسمیت کې نو دا حقیقی یې ولې مقدم کړو په لفظی
باندې؟ **جواب:** حقیقی یې مقدم کړو په لفظی باندې د وجې د اصالت نه (۱) ځکه دا مؤنث دی خلقتاً
او مصداقاً په خلاف د مؤنث لفظی نه چې دا مؤنث دی د جهت د لفظ نه نه د جهت د خلقت او
مصداق نه (۲) یا هر کله چې مفهوم د حقیقی وجودي وو او مفهوم د لفظی عدمی وو او وجودي
اشرف وی د عدمی نه نو ځکه یې مقدم کړو په مؤنث لفظی باندې اجمالاً او تفصیلاً.
**سوال:** **ما بازائه** کې کلمه د ما راغلې ده او دا د الفاظ عامه وونه ده دا د څه نه عبارت دی؟
**جواب:** دا عبارت دی د مؤنث نه.
**سوال:** دا عبارت د مؤنث نه ولې دی؟ **جواب:** معتبر په تعریفاتو کې جنس قریب وی نه جنس بعید او
حقیقی او لفظی لپاره جنس قریب مؤنث دی نه لفظ شئ ځکه دا اجناس بعیده دی (۲) یا ما عبارت دی د
مؤنث نه ځکه چې حقیقی او لفظی اقسام د مؤنث دی او مقسم معتبر وی په تعریفاتو د اقسامو کښې؟
**سوال:** چې ته وائې فالحقیقی ما بازائه ذکر من الحیوان نو ذکر راځي مقابل د فرج نو ذکر چې
مقابل د فرج واخلې نو لازمیږي فساد د معنی چې مؤنث حقیقی په اصطلاح کې هغه مؤنث ته وائي
چې د ده مقابل کې قبل د رجل من الحیوان وی او دا معنی خو باطله ده ځکه د مؤنث مقابل قبل د
رجل من الحیوان نه دی بلکه مقابل د مؤنث مذکر دی؟
**جواب:** دلته ذکر نه مراد مذکر دی چې مقابل د انثی دی نه قبل د رجل چې مقابل د فرج دی
**سوال:** من الحیوان جار مجرور په ترکیب کې څه واقع شوی دی؟
**جواب:** دا جار مجرور په اعتبار د متعلق سره ظرف مستقر صفت دی د ذکر لپاره.
**سوال:** توصیف د ذکر یې په من الحیوان سره ولې کړی دی؟ **جواب:** په دې سره یې احتراز وکړو د
انثی من النخل نه ځکه چې کجوره کې هم بعض مؤنث وی او د هغې مقابل مذکر کجورې هم
راځي لیکن تانیث د هغې حقیقی نه دی بلکه لفظی دی ځکه تانیث حقیقی هغه مؤنث کې چې
مقابل کې یې مذکر من الحیوان وی او دلته مذکر من الحیوان نشته.
**سوال:** من الحیوان کې دا من جاره دی او من جاره په استعمال د کلام د عربو کې په شلو معانیو
سره راځي دلته یې څه معنی ده؟ **جواب:** دا من ظرفیه دی یعنی بمعنی في دی او الف لام په الحیوان
کې جنسي دی فیکون المعنی ذکر کائن فی جنس الحیوان، برابره خبره ده چې علامه د تانیث
پکې لفظاً موجوده وی لکه امرأة او ناقة شو او که نه وي لکه هند شو.
**سوال:** من بمعنی فی چرته راغلې دی په کلام دعربو کې چې ته وائې چې دا من بمعنی فی دی؟
**جواب:** او من بمعنی فی راځي کما فی قوله تعالی ﴿إِذَا نُودِيَ لِلصَّلَوٰةِ مِن يَوْمِ ٱلْجُمُعَةِ﴾ ای فی یوم الجمعة

**سوال:** د مؤنث حقيقي تعريف يې وکړه مابازائه ذکر من الحيوان سره نو داسې تعريف يې ولې ونه کړو چې فالحقيقي ما له فرج؟ **جواب:** (۱): دغسې تعريف يې ونه کړو لکراهة التلفظ عليه (۲) ځکه بيا تعريف د مؤنث نه مانع کيدو د دخول د غير نه داخليدو پکې خنثى مذکر چې علامه د مذکر پکې زياته وى ځکه د هغه سره فرج شته او مؤنث نه دى.

**واذا اسند الفعل اليه فالتاء: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د تقسيم د مؤنث نه حقيقي او لفظي نه چې دا تمهيد وو لپاره د بيان د احکامو نو شروع يې وکړه په مقصود کې چې بيان د احکامو د مؤنث حقيقي او لفظي دى نو وى ويل اذا اسند.

**ترجمه:** کله چې نسبت وکړي شي د عامل متصرف متصل بلا فصل **اليه** (۱) دى مؤنث ته مطلقا عند الشارح الجامي دا مؤنث عام دى که حقيقي وى او که لفظي وى او که اسم ظاهر وى او که مضمر وى (۲) **اليه** اسم ظاهر د مؤنث حقيقي ته يا ضمير د مؤنث ته مطلقا عند الشارح الهندي **فالتاء** نو تا واجبه ده په هغه **فعل** کې چې مسند شوى دى دغه مؤنث ته، يا دغه فعل به متلبس وى په تاء سره وجوباً لپاره د دې چې دلالت وکړي سامع مخاطب ته په تانيث د فاعل باندې د اول وهلت نه او تانيث د فاعل سرايت کوى وجوباً تانيث د فعل ته د وجى د کمال امتزاج نه په ضمير د مؤنث کې او تانيث د فاعل سرايت کوى تانيث د فعل ته د وجى د قوت د تانيث نه په مؤنث حقيقي اسم ظاهر کې او اسم ظاهر مؤنث غير حقيقي کې جواز وجهين دى د وجى د عدم د کمال امتزاج نه په لفظ کې او د وجى د قصور د تانيث نه، تانيث د فاعل سرايت نه کوي تانيث د فعل ته وجوباً ځکه که لفظ ته ګوري نو دغه مؤنث دى د هغې تقاضه دا ده چې فعل مؤنث کړي شي او که مصداق ته ګوري د هغې تقاضه دا ده چې فعل مذکر کړه، وانت في ظاهر غير الحقيقي بالخيار او ته په اسم ظاهر د مؤنث غير حقيقي کې اختيار لرې په مابين د تاء راوړلو او نه راوړلو کې نحو طلع الشمس وطلعت الشمس.

**تشريح: سوال:** اليه کې دا ضمير چاته راجع دى؟ **جواب:** په دې کې دوه مذهبه دى:(۱): په نز د شارح هندي باندې دا راجع دى مؤنث حقيقي او ضمير د مؤنث ته نه مطلق مؤنث ته ځکه که دا ضمير راجع شي مطلق مؤنث ته بيا تناقض راځي په کلام د مصنف کې ځکه چې دا اذا اسند اليه الفعل فالتاء نه وجوب د تاء معلوميږي مطلقا او انت في ظاهر غير الحقيقي بالخيار نه جواز د وجهينو معلوميږي (۲): او په نيز د شارح جامي باندې دا ضمير راجع دى مؤنث ته مطلقا او تناقض په کلام د مصنف کې نشته، ځکه دا وانت في ظاهر غير الحقيقي په منزله د مستثنى دى ځکه د مصنف دا قانون دى چې کله اول يو حکم کلي ذکر کړي او دهغې نه بعد يو جزى ذکر کړي د هغې نه مخالف نو هغه په منزله د مستثنى باندې وى د هغه حکم کلي نه، نو معنى دا شوه چې اسناد د فعل وشي مؤنث ته نو تانيث د فعل واجب دى مطلقا ماسوى د اسم ظاهر د مؤنث غير حقيقي نه.

**سوال:** لکه ځنګه چې د فعل اسناد وشي مؤنث ته نو تانيث د فعل واجب دى دارنګې د شبه فعل اسناد چې وشي مؤنث ته نو هم تانيث د شبه فعل واجب دى نو مصنف صرف فعل ولې ذکر کړه؟

**جواب:** دا اعتراض به تا هله کولي چې دا عبارت د مصنف بناء وی په حقیقت باندې لیکن دا بناء دی په مجاز باندې ذکر د خاص دی چې فعل دی او مراد ترینه عام دی چې عامل دی.

**سوال:** ته وائي چې اسناد د فعل وشي اسم ظاهر د مؤنث حقیقی ته تانیث د فعل واجب دی دا قاعده ستا منقوضه شوه په بئس المراة سره دلته تذکیر د فعل اولی دی د تانیث نه؟

**جواب:** الفعل کې الف لام عهد خارجي دی مراد د فعل نه فعل متصرف دی نو په دې سره احتراز راغي د فعل غیر متصرف نه هلته تذکیر د فعل اولی دی لان قصد الجنس فیه بین یعنی مقصود د متکلم دلته جنس مراه ده او جنس مذکر دی

**سوال:** ته وائي چې د فعل اسناد وشي اسم ظاهر د مؤنث حقیقی ته هلته تانیث د فعل واجب دی دا قاعده ستا منقوضه شوه په ضرب الیوم هند سره دلته فعل مذکر شوی دی؟

**جواب:** دلته مراد اسناد د فعل دی مؤنث ته متصل بلا فصل او که اسناد د فعل وشي مؤنث ته مع الفصل نو هلته جواز د وجهین دی ضرب الیوم هند او ضربت الیوم هند دواړه جائز دی، په دې شرط سره چې دا مشهور نه وو په مذکر کې او که مشهور وو په مذکر کې هلته تانیث د فعل واجب دی نحو ضربت الیوم زید اذا جعل زید علماللمؤنث فلایجوز ضرب الیوم زید او هر چې دی قال فلانة چې منقول دی د سیبویه نه دا شاذ دی، او چې د فعل اسناد وشي ضمیر د مؤنث ته مطلقا نو تانیث د فعل واجب دی برابره خبره ده که ضمیر د مؤنث حقیقی وی او که لفظی وی لکه هند ضربت او الشمس طلعت واما قول الشاعر؛ ولا ارض ابقل ابقالها فشاذ

یا دا عبارت په حذف د مضاف سره دی ای ولامکان ارض ابقل ابقالها او د فعل اسناد چې وشي ضمیر د مؤنث ته نو تانیث د فعل واجب دی خو په دې شرط سره چې دا ضمیر متصل وی نه منفصل او که ضمیر د مؤنث منفصل وو نو هلته تذکیر د فعل اولی دی د تانیث نه نحو هند ماقام الاهی، او که اسناد وشي د فعل اسم ظاهر د مؤنث حقیقی ته مع الفصل نو دا فصل به خالي نه وي یا به په الاسره راغلي وی او یا به بغیر د الانه وی که په الاسره فصل راغلي وو نو تذکیر د فعل اولی دی نحو ماذکي الافتاة ابن العلی، او که په بل شي سره وو نو تانیث اولی دی نحو ضربت الیوم هند.

**سوال:** فاعل د فعل چې ضمیر مؤنث راشي یا اسم ظاهر مؤنث حقیقی راشي نو تانیث د فعل واجب ولي دی، او فاعل د فعل چې اسم ظاهر مؤنث غیر حقیقی راشي نو جواز وجهین ولي دی؟

**جواب:** هر چې دی وجوب د تانیث د فعل په ضمیر د مؤنث کې نو د وجې د کمال امتزاج د ضمیر نه د فعل سره تانیث د فاعل سرایت کوی تانیث د فعل ته وجوباً او اسم ظاهر مؤنث حقیقی کې د وجی د قرت د تانیث نه سرایت کوی تانیث د فاعل تانیث د فعل ته وجوباً او په اسم ظاهر د مؤنث غیر حقیقی کې د وجی د عدم د کمال امتزاج نه او د وجی د قصور نه په تانیث کې تانیث د فاعل سرایت نه کوی تانیث د فعل ته وجوباً

**قصة ابی حنيفة و قتادة:** قتاده کوفی ته داخل شو خلقو هغه ته وکتل نو هغه وويل چې سلوني عما شئتم، او امام ابو حنيفة په دغه مجلس کې ناست وو هغه سوال وکړو د نملة د سيلمان په باره کې چې اکان ذکرا ام انثى قتاده غلي شو نو امام ابو حنيفة وويل چې نمله د سليمان عليه السلام مؤنث وو چا وويل چې من اين عرفت فقال من کتاب الله تعالى وهو قوله تعالى ﴿ قَالَتْ نَمْلَةٌ ﴾ لو کانت ذکرا لقيل قال نملة کما يقال قال طلحة ځکه د فعل اسناد چې وشي مذکر ته نو تذکير د فعل واجب دی بيا په دې کې خلاف دی بعض وائي نملة مؤنث دی لفظی نه حقيقی ځکه دا تاء فارقه ده بين الوحدة والجنس لابين المذکر والمؤنث او څوك وائي چې تانيث حقيقی دی

**سوال:** اذا اسند الخ شرط دی او فالتاء جزاء ده او جزا نه وي مگر جمله وي او دا مفرد دی؟

**جواب:** فالتاء خبر دی د مبتداء محذوف لپاره فيکون التقدير فذلك الفعل متلبس بالتاء وجوباً او جمله اسميه جزاء واقع شي د شرط لپاره نو فاء جزائيه راوړل پکې واجب دی (٢) يا دا مبتدا ده او خبر يې محذوف دی ای فالتاء واجبة فی فعله المسند اليه.

**سوال:** فالتاء فاعل د فعل محذوف لپاره ولې نه گرځوی ای فوجب التاء؟ **جواب:** دا ترکيب زه نه شم کولې ځکه جمله فعليه چې جزا واقع شي او فعل پکې ماضی متصرف وی او په مقام د دعا کې نه وی او خالی وی د قد نه نو هلته فاء راوړل ممتنع دی نو معلومه شوه چې دا فاعل د فعل محذوف لپاره نه دی

**وحکم ظاهر الجمع غير المذکر السالم: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د حکم د هغه فعل نه چې اسناد يې شوی وو اسم ظاهر واحد مؤنث حقيقی ته يا ضمير د واحد مؤنث ته نو شروع يې وکړه په حکم د هغه فعل کې چې اسناد يې شوی دی جمع اسم ظاهر ته او حکم د دې بيانوی په طريقه د تشبيه سره.

**ترجمه: وحکم ظاهر الجمع** حکم د هغه فعل چې د هغه اسناد شوی وی جمع اسم ظاهر ته **غير المذکر السالم** داسې جمع چې غير وی د مذکر سالم نه په حال کون د دې جمع کې چې مطلقا يې واخلې بيا برابره خبره ده چې دا جمع مؤنث سالم وی او که مکسر وی او که اسم جمع وی او مکسر عام دی که جمع مذکر مکسر وی اوکه جمع مؤنث مکسر وی او برابره خبره ده که واحد د دې مؤنث حقيقی وی لکه نسوة او که مذکر حقيقی وی لکه رجال حکم د اسم ظاهر مؤنث غير حقيقی دی په جواز د تانيث د فعل او دتذکير د فعل کې په دې شان سره چې د فعل اسناد وشي اسم ظاهر جمع ته ماسوا د جمع مذکر سالم نه نو تذکير د فعل هم جائز دی او تانيث هم جائز دی نحو قوله تعالى ﴿ إِذَا جَآءَكَ الْمُؤْمِنَٰتُ ﴾ ﴿ وَقَالَ نِسْوَةٌ ﴾ ﴿ قَالَتِ الْأَعْرَابُ ﴾ ځکه دا جمع چې ماؤل کړي شي په جماعة سره دا مؤنث غير حقيقی دی ځکه لفظا مؤنث دی نه معنی اوس که لفظ ته وگوري دا مؤنث دی نو فعل مؤنث کوه او که معنی ته وگوري نو دا مؤنث نه دی نو فعل مذکر کوه او که د فعل اسناد وشي جمع مذکر سالم ته نو تذکير د فعل واجب دی نحو قام المسلمون فلا يجوز قامت المسلمون ځکه چې جمع مذکر سالم اشرف الجموع ده او تاويل د ده نه په جماعة سره نه دی جائز او هر چې دی ارضون او

سنون او بنون دا درې واړه جمع مذکر سالم د وجې د تغیر نه په بنا د مفرد کې ګرځیدلي دي جار مجری د جمع مکسر، نو د دوی سره معامله کولي شي په استعمال د کلام د عربو کې معامله د مکسر فلا یرد بقوله تعالی ﴿ءَامَنَتْ بِهِۦ بَنُوٓاْ إِسْرَٰٓءِيلَ﴾ وبقول الشاعر:

لوکنت من مازن لم تستبیح ابلی بنو اللقیطة من ذحل ابن شیبانا

تشریح: سوال: د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟

جواب: ربط دا دی چې مخکې بیان د هغه فعل و شو چې اسناد یې شوی وو اسم ظاهر واحد مؤنث ته یا ضمیر د واحد مؤنث ته اوس بیان د حکم د اسناد د فعل دی جمع اسم ظاهر ته او غرض د مصنف هم معلوم شو او ظاهر الجمع من قبیل جرد قطیفة واخلاق ثیاب یعنی اضافت د صفت راغلي دی موصوف ته.

سوال: غیر المذکر السالم صفت واقع شوی دی د الجمع لپاره او الجمع معرفه باللام ده او غیر المذکر الخ نکره ده ځکه غیر د وجې د کمال توغل نه په ابهام کې نه معرفه کیږي په اضافت سره معرفی ته نو مطابقت نشته بین الموصوف والصفة؟

جواب: دا صفت نه دی د الجمع لپاره بلکه دا بدل واقع شوی دې د الجمع نه.

سوال: نکره چې بدل واقع شي د معرفی نه فالنعت نحو بالناصیة ناصیة کاذبة او دلته خو د دې توصیف نه دی شوی؟ جواب: دا قاعده په نکره محضه کې ده او دا نکره محضه نهٔ ده بلکه نکره مخصصه ده تخصیص پکې راغلي دی د اضافت د وجې نه (۲) یا غیر المذکر صفت دی د الجمع لپاره او الجمع معرفه نده ځکه الف لام پکې زائد دی په شان د الف لام د اللئیم په دې قول د شاعر کې لقد امر علی اللئیم یسبنی الخ (۳) یا دا صفت دی د الجمع لپاره او دا الف لام زائد نه دی او دا غیر معرفه ده ځکه اضافت د غیر وو چې مذکر سالم ته وشو نو تعین د مصداق د مضاف راغې چې جمع مؤنث سالم او جمع مکسر ده (۴) دا غیر مجرور نه دی بلکه مرفوع دی خبر دی د مبتدا محذوف لپاره ای هو غیر المذکر السالم او د غیر د جمع مذکر سالم نه مصداقونه پنځه دی (۱) جمع مؤنث سالم (۲) جمع مؤنث مکسر (۳) جمع مذکر مکسر (۴) اسم جمع نحو قوم ورهط (۵) اسم جنس جمعی، لکه کلِم او روم شو کما فی قوله تعالی ﴿غُلِبَتِ ٱلرُّومُ ۝ فِىٓ أَدْنَى ٱلْأَرْضِ﴾.

سوال: د فعل اسناد چې وشي ماسوی د جمع مذکر سالم ته نو جواز د وجهین ولې دی؟

جواب: ځکه د دې نه تعبیر کولي شي په جماعة سره او دا مؤنث غیر حقیقی دی او د فعل اسناد چې وشي اسم ظاهر د مؤنث غیر حقیقی ته هلته جواز د وجهین دی.

سوال: د فعل اسناد چې وشي جمع مذکر سالم ته نو تانیث د فعل ولې نه دی جائز؟

جواب: جمع مذکر سالم اشرف الجموع دی د دې نه تاویلی په جماعة سره نه دی جائز یا جمع مذکر سالم کې واو او نون علامه صریحی د مذکر ده د دې نه تاویل په مؤنث سره جائز نه دی چې هغه جماعة دی ځکه تذکیر د فعل واجب دی.

سوال: ته وائي چې د فعل اسناد وشي جمع مذکر سالم ته نو تذکیر د فعل واجب دی دا قاعده ستا منقوضه شوه په دې قول د الله تعالی ﴿ ءَامَنَتْ بِهِۦ بَنُوٓا۟ إِسْرَٰٓءِيلَ ﴾ سره چې او په دې قول د شاعر سره!

لوکنت من مازن لم تستبح ابلی
بنو اللقيطة من ذحل ابن شيبانا

جواب: بنون او سنون او ارضون درې واړه جمع مذکر سالم د وجې د تغیرنه په بنا د مفرد د دې کې ګرځیدلي دی جار مجری د جمع مکسر په دې شان سره چې معامله د مکسر ورسره کولي شي او د فعل چې اسناد وشي جمع مکسر ته نو هغې کې جواز د وجهین دی نو په دې کې هم جواز د وجهین دی.

پس زده کړه دا خبره چې د فعل اسناد وشي جمع مذکر سالم ته او جمع مؤنث سالم ته نو په دې کې مذاهب ثلاثه دی (۱) ابوعلی (۲) جمهور بصريان (۳) جمهور کوفيان.

مذهب د ابو علی مذکور فی المتن دی چې اسناد د فعل وشي جمع مذکر سالم ته نو تذکیر واجب دی او چې غیر د مذکر سالم ته اسناد وشي نو جواز د وجهین دی.

(۲) او مذهب د جمهورو بصريانو دا دی چې د فعل اسناد چې جمع مذکر سالم ته وشي نو تذکیر د فعل واجب دی او چې جمع مؤنث سالم ته وشي نو تانیث د فعل واجب دی.

سوال: دا خبره ستا منقوضه شوه په اذا جاءك المؤمنات سره؟ جواب: موږه وايو چې د فعل اسناد وشي جمع مؤنث سالم ته متصل بلافصل نو تانیث د فعل واجب دی او دلته اسناد مع الفصل شوی دی. (۳): جمهور کوفيان وائي چې د فعل اسناد جمع ته وشي مطلقا نو جواز د وجهین دی خواکه جمع مذکر سالم وی او که جمع مؤنث سالم وی او که جمع مکسره وی او که اسم جمع وی بنا د دوی په مذهب باندې په قام المسلمون کې قامت المسلمون جائز دی او امنت به بنواسرئیل باندې اعتراض نشته د دوی په مذهب باندې.

او اضافت د ظاهر چې یې وکړو الجمع ته په دې سره یې احتراز وکړو د غیر د جمع نه ځکه د هغې حکم دا دی چې وضمير العاقلين د فعل چې کله اسناد وشي ضمير د جمع مؤنث عاقل ته غير المذکر السالم، غیر د جمع مذکر سالم نه فعلت نو په هغې کې جائز دی تانیث د فعل وفعلوا او جائز دی پکې ذکر کول د ضمیر د جمع مذکر.

سوال: هذا منقوض بقوله عليه السلام اللهم رب السموات ورب الارضين وما اقللن ورب الشياطين وما اضللن شياطين جمع مذکر عاقل دی په شان د رجال لهذا اضلت یا اضلوا ويل پکار وو بنا په دې قاعدې باندې؟ جواب: اضللن ويلي دی لاتباع ضمير المذکر لضمير المؤنث وكذا فی حديث المواقيت هن لهن اى لاهل ذى الحليفة، غير المذکر السالم سره احتراز راغي د ضمير د جمع مذکرسالم نه ځکه هلته تانیث د فعل نه دی جائز بلکه فقط ضمير د جمع مذکر به ذکر کوی له الرجال قامت الرجال قاموا ويل جائز دی که د الرجال نه تاويل کوی په جماعة سره نو قامت وايه والانو قاموا وايه او المسلمون قاموا به وائي او قامت ويل پکې نه دی جائز ځکه تانیث د فعل جائز وو د دې وجی نه چې دا جمع په تاويل د جماعة سره واحد مؤنث شي او د جمع مذکر سالم نه تاويل په جماعة سره نه

دی جائز، **والنساء والایام** او دفعل اسناد چې وشي ضمیر د جمع مؤنث عاقل ته لکه النساء، یا ضمیر د جمع مؤنث غیر عاقل ته لکه عیون شو یا ضمیر د جمع مذکر غیر عاقل ته لکه ایام شو **فعلت وفعلن** نو بیا جائز دی الحاق د تاء التانیث په دې فعل پورې په دې اعتبار سره چې د دې فعل اسناد شوی دی ضمیر ته چې هغه راجع دی جمع ته په تاویل د جماعة سره **وفعلن** او دارنګې جائز دی الحاق د نون د جمع مؤنث په دې فعل پورې په دې اعتبار سره چې د فعل اسناد شوی دی جمع مؤنث ته

**سوال:** د فعل اسناد چې وشي ضمیر د جمع مذکر غیر عاقل ته نو الحاق د نون ضمیر د جمع مؤنث ولې جائز دی؟ **جواب:** ایام اګر چې جمع مذکر دی لیکن غیر عاقل دی او دا محمول دی په جمع مؤنث باندې د وجې د عدم عقل نه لهذا الایام مضت وائي او که الایام مضین وائي دواړه جائز دی.

**سوال:** د واحد او جمع حکم موږه ته معلوم شو لیکن د مثنی حکم راته معلوم نه شو نو د فعل اسناد چې وشي تثنیه مؤنث ته د هغې حکم څه دی؟ **جواب:** حکم د تثنیه په شان د حکم د واحد باندې دی.

**تشریح د ماسبق په طریقه دوجه د حصر سره:** دا فعل به خالي نه وي یا به متصرف وی او یا به غیر متصرف وی که غیر متصرف وو نو د هغې اسناد چې وشي مؤنث ته نو جواز د وجهین دی نحو بئس المراة بئست المراة او که فعل متصرف وو نو دا فعل به خالي نه وي یا به مسند وی اسم ظاهر ته یا ضمیر ته که مسند وو اسم ظاهر ته نو بیا به خالي نوي یا به مسند وی اسم ظاهر مفرد ته یا جمع ته که مسند وو اسم ظاهر مفرد ته نو دا اسم ظاهر مفرد به خالي نه وي یا به مذکر وی یا به مؤنث وی که مذکر وو نو تذکیر د فعل واجب دی مطلقا برابره خبره ده چې اسم ظاهر مذکر حقیقی وو لکه قام زید او که مذکر لفظی وو لکه کتاب شو او که اسم ظاهر مؤنث وو نو بیا به خالي نه وي یا به مؤنث لفظی وی او یا به حقیقی وی که مؤنث لفظی وو نو تذکیر او تانیث د فعل دواړه جائز دی نحو طلعت الشمس وطلع الشمس، او که اسم ظاهر مؤنث حقیقی وو نو بیا به خالي نه وي یا به متصل وی او یا به منفصل وی که متصل وو نو تانیث د فعل واجب دی نحو ضربت هند، او که منفصل وو نو بیا به خالي نه وي یا به فصل راغلي وی په الا سره او یا به بل شئ سره که فصل راغلي وو په الا سره نو تذکیر اولی دی د تانیث نه نحو ماذکي الا فتاة ابن العلي، او که فصل بل شئ سره راغلي وو نو بیا به خالي نو یا به مشهور وی په مذکر کې او یا به نه وي که مشهور وو په مذکر کې نو تانیث د فعل واجب دی نحو ضربت الیوم زید فلایجوز ضرب الیوم زید چې زید علم واخلي د ښځې لپاره، او که مشهور نه وو په مذکر کې نو بیا تانیث د فعل اولی دی د تذکیر نه نحو ضربت الیوم هند. او که مسند وو اسم ظاهر جمع ته بیا جواز د وجهین دی په فعل کې مطلقاً ماسوی د جمع مذکر سالم نه چې هلته تذکیر واجب دی او که مسند وو ضمیر ته دا ضمیر به خالي نه وي یا به ضمیر د مفرد وی او یا به ضمیر د جمع وی که ضمیر د مفرد وو نو بیا به خالي نه وي یا به متصل وی او یا به منفصل وی، که متصل وو نو تانیث د فعل واجب دی مطلقاً برابره خبره ده که ضمیر د مؤنث حقیقی وی نحو هند قامت او که ضمیر د مؤنث لفظی وی نحو الشمس طلعت،

او که منفصل وو نو تذکیر د فعل اولی دی د تانیث نه نحو هند ما قام الاهي، او که ضمیر د جمع وو نو بیا (۱) که د فعل اسناد شوی وو ضمیر د جمع مذکر سالم نو ضمیر د مذکر ذکر کول واجب دی نحو المسلمون جاهدوا فلایقال المسلمون جاهدت، (۲) او چې د فعل اسناد ضمیر د جمع مذکر عاقل ته وشي نو هلته تانیث او ضمیر د جمع مذکر ذکر کول دواړه جائز دی نحو الرجال قاموا او الرجال قامت، (۳) او که د فعل اسناد وشي ضمیر د جمع مذکر غیر عاقل ته، (۴) یا د فعل اسناد وشي ضمیر د جمع مؤنث ته مطلقا نو په هغې کې هم تانیث د فعل او ضمیر د جمع مؤنث دواړه جائز دی نحو الایام مضت الایام مضین النساء ضربت النساء ضربن.

**المثنى ما لحق اخره الف او یاء الخ: ربط**: هر کله چې فارغ شو مصنف د تقسیم رابع د اسم نه نوعین ته چې مذکر او مؤنث وو نو شروع یې وکړه په تقسیم خامس د اسم کې انواع ثلاثه ؤ ته په اعتبار د افراد تثنیت او جمعیت سره واحد مثنی او مجموع ته او هر کله چې ذکر شو جمع او واحد مخکې په بحث د مذکر او مؤنث کې نو ذکر یې کړه مثنی او مجموع وروستو د مذکر او مؤنث نه متصل بلا فصل او هر کله چې معرفت د فرعین مستلزم وو معرفت د اصل لره چې مفرد دی نو ذکر کړو مصنف مثنی او مجموع او مفرد یې ترک کړی دی روماً للاختصار او هر کله چې عدد د مثنی مقدم وو په عدد د مجموع باندې پس مقدم یې کړه مثنی په جمع باندې نو وې ویل المثنی الخ.

**ترجمه**: مثنی صیغه د واحد مذکر اسم فاعل ده په لغت کې دو کرده شده را گویند او په اصطلاح کې **ما** اسم دی داسې اسم **لحق** (۱) چې متصل شوی دی **اخره** په اخیر د مفرد د دې اسم پورې، **الف و یاء** الف یا یاء (۲) داسې اسم چې وی الف او یاء اخیر د دې اسم داسې یا چې مفتوح وی **ما هغه** حرف **قبلها** چې مخکې د یاء نه وی لپاره د دې چې التباس رانه شي د مثنی د جمع مذکر سالم سره په حالت نصبی جری کې. **ونون مکسورة** او متصل شوی وی په اخیر د مفرد د دې اسم پورې نون داسې نون چې مکسور دی ځکه دا نون عوض راغلي دی د حرکت نه یا عوض راغلي دی د تنوین نه یا عوض راغلي دی د حرکت او تنوین دواړو نه او تنوین نون ساکنه دی او الساکن اذا حرك حرك بالکسر، یا دا تثنیه واقع ده په اوسط حال کې په مینځ د واحد او جمع کې او دا کسره هم واقع ده په اوسط حال کې چې په مینځ د ضمی او فتحی کې ده فاعطی الاوسط للاوسط للتعادل (۳) دا نون به مکسور وی ځکه که فتحه ورکړي نو بیا لازمیږي توالی د اربع فتحات په حالت رفعی کې ځکه الف د دوه فتحو نه پیدا دی او یوه فتحه مخکې الف نه ده او یوه دا شوه، او حالت نصبی او جری محمول دی په حالت رفعی باندې او کومه کلمه چې بنا د هغې په حرف واحد وی هغه مفتوح راځي یا مکسور راځي مضموم نه ده راغلي **لیدل** دا جار مجرور متعلق دی په لحق پورې او په مرجع د ضمیر د یدل کې احتمالات ثلاثه دی (۱) چې دا ضمیر راجع دی الف او یا ته په تاویل د کل واحد سره یا په تاویل د لاحق سره (۲) یا راجع دی لحوق ته چې مذکور دی په ضمن د لحق کې په شان د اعدلوا هو اقرب للتقوی (۳) یا راجع دی لاحق ته سره د ملحوق نه نو ترجمه یې دا ده **لیدل** لپاره د دې چې دلالت وکړي

هر واحد د الف او يا نه يا دلالت وکړي د الاحق چې الف او يا دی يا دلالت وکړي د الحوق يا دلالت وکړي لاحق سره د ملحوق نه او نسبت د فعل چې مجموعی ته وشي دا مستلزم نه دی چې دا حکم دی ثابت وی مجموعی لره، اوس دلالت په څه باندې کوی، **علی** په دې خبره **ان معه** چې د دې اسم مفرد سره **مثله** مثل د دې اسم دی په لفظ يا په وحدت کې **من جنسه** د جنس د دې اسم نه په معنی کې په دې شان سره چې دا دواړه واقع دی د يو مفهوم کلي لاندې او مفهوم کلی عام دی که حقيقتاً وی او که حکماً وی پس داخل شو پکې تثنيه تغليبی لکه شمسين او قمرين شو.

**تشريح: سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟

**جواب:** ربط د ماقبل سره دا دی چې مخکې مصنف تقسيم د اسم کړي وو رابعا نوعين ته چې مذکر او مؤنث دی او اوس تقسيم کوی خامساً مفرد مثنی او مجموع ته او په معرفت د ربط سره غرض د مصنف هم معلوم شو چې تقسيم د اسم دې خامساً اقسام ثلاثه ؤ ته (۲) يا دا جمله مستانفه واقع شوې ده جواب د سوال څکه هر کله چې ذکر شو واحد او مجموع په بحث د مذکر او مؤنث کې نو معترض اعتراض وکړو چې مفرد او جمع څه ته وائي نو مصنف جواب ورکړو.

**سوال:** هر کله چې اسم په اعتبار د افراد تثنيت او جمعيت سره درې قسمه وو نو مصنف خو دلته مثنی او مجموعه ذکر کړي دی نو واحد يې ولې نه دی ذکر کړي؟ **جواب:** (۱): واحد اصل دی او مثنی او مجموع فرع ده او په معرفت د فرع سره معرفت د اصل راځي نو ترک يې کړو واحد روماً للاختصار (۲) يا جواب دا دی چې مقصود زموږ دلته ذکر د مثنی بما هو مثنی او مجموع بما هو مجموع نه دی بلکه دا ذريعه ده او تمهيد دی احکامو د مثنی او د مجموع ته څکه مثنی او مجموع لپاره څه احکام دی چې هغه نه دی ثابت د غير لپاره نو دائي ذکر کړل لپاره د بيان د احکام مختصر.

**سوال:** دا مثنی او مجموع يې د مذکر او د مؤنث نه وروستو متصل ولي ذکر کړل؟ **جواب:** څکه په بحث د مذکر او مؤنث کې باربار ذکر د واحد او د مجموع وشو نو څکه يې په هغې پسې متصل دا ذکر کړل.

**سوال:** کرځول د مثنی او مجموع د اقسامو د اسم نه نۀ دی صحيح څکه اسم قسم دی د کلمې نه نو مفرد دی او مثنی او مجموع مرکب دی څکه جز د لفظ دلالت کوی په جز د معنی باندې؟ **جواب:** مثنی او مجموع اګر چې مرکب دی حقيقتاً ليکن د وجی د شدت اتصال د علامې د تثنيه او جمع نه د مفرد سره ګرځيدلي دی په منزله د کلمه واحده باندې، پس وئي ګرځول د قسم د اسم نه مجازاً.

**سوال:** مجموع او مثنی دواړه سواسی دی په قسميت کې نو مثنی يې ولي مقدم کړو په جمع باندې؟ **جواب:** قدم المثنی علی المجموع لسبق عدده علی عدد المجموع فی الوجود:

(۲): ولقربة بالمفرد يعنی اول مرتبه د مفرد ده بيا تثنيه ده او بيا جمع ده نو څکه يې ذکر کړه مخکې د جمع نه (۳): دائي مقدم کړه په جمع باندې د وجی د اصالت نه څکه مثنی اصل ده د جمع نه د وجی د سلامت د لفظ د مفرد نه په مثنی کې دائما ابدا په خلاف د جمع نه چې په هغې کې دا مفرد کله سالم وی او کله نه وي (۴): دائي مقدم کړه په مجموع باندې د وجی د کثرت استعمال د

دي نه په نسبت سره مجموع ته (۵). دائي مقدم کړه په مجموع باندې ځکه دا مطلقه ده د وجې د عدم اختصاص د بنا د دې نه په شرائطو پورې بخلاف المجموع چې بنا د هغې مشروط ده په شروطو سره او مطلق مقدم وي په مقيد باندې.

**سوال:** تعريف د مثنى جامع نه شو ځېنو افرادو لره خارج شو د دې نه رجلان او مسلمان او مانع نه شو د دخول د غير نه داخل شو يکې مفرد لکه رجل او مسلم ځکه ته وائي چې مثنى هغه اسم ته وائي چې لحق اخره الف او ياء نو د رجلان او مسلمان اخر خو الف او ياء دى او په دې پورې خو نور الف او ياء نه ملحق کيږي او د رجل او مسلم په اخير پورې الف او ياء ملحق کيږي او رجلان او مسلمان ويل کيږي؟

**جواب:** (۱). دا عبارت په حذف د مضاف سره دى اى مالحق آخر مفرده الف او ياء (۲) يا لحق په معنى د کان سره دى آخره خبر دى او الف او ياء يې اسم دى نو معنى دا شوه چې ما کان الف او ياء مفتوح ما قبلها ونون مکسورة اخره، او کلمه د ما عبارت دى د اسم نه ځکه (۱) معتبر په تعريفات کې جنس قريب وي او جنس قريب د دې لپاره اسم دى او لفظ او شئ يې اجناس بعيده دى (۲) يادا مقسم دى د مذکر او مؤنث نه او مقسم معتبر وي په تعريف د اقسامو کې او په نکارت د اسم کې اشاره ده موصوفيت د ما ته **مفتوح** دا مرفوع دى ځکه صفت بحال متعلقه دى د ياء لپاره **ما** موصوفه او **قبلها** ظرف ورله صفت دى يا **ما** موصوله او **قبلها** ظرف ورله صله ده، موصول سره د صلې نه يا موصوف سره د صفت نه دا نائب فاعل دى د مفتوح لپاره، اسم مفعول سره د نائب فاعل نه شبه جمله صفت دى د ياء لپاره موصوف سره د صفت نه عطف دى په الف باندې معطوف عليه سره د معطوف نه فاعل دى د لحق لپاره او اخره مضاف سره د مضاف اليه نه مفعول فيه دى د لحق لپاره.

**سوال:** د ياء نه مخکې حرف به مفتوح ولې وى؟ **جواب:** لپاره د دې چې لازم نه شي التباس د مثنى او مجموع په حالت نصبى او جرى کې؟

**سوال:** التباس خو په عکس سره هم دفع کيږي نو عکس يې ولې ونه کړو؟

**جواب:** عکس يې ونه کړو ځکه تثنيه کثيره ده په نسبت سره جمع ته استعمالاً ځکه دا خانله هم موجوديږي او په ضمن د جمع کې هم موجوديږي او دا کثرت استعمال تقاضا د تخفيف کوى نو تخفيف ورله ورکړي شو په فتح سره (۲) يا عکس يې ونه کړو ځکه چې مثنى په حالت رفعى کې الف سره وى او د الف نه مخکې حرف مفتوح وو نو په حالت نصبى جرى کې ورله هم فتح ورکړي شو لپاره د موافقت د حالت نصبى جرى د حالت رفعى سره.

**سوال:** نون د مثنى مکسور ولې وى او مفتوح ولې نه راځي؟ **جواب:** نون د مثنى مکسور وى ځکه چې دا کلمه ده په حرف واحد سره او کلمه په حرف واحد باندې مبني وى او اصل په بناء کې سکون دى او دلته ورله حرکت ورکړي شو د وجې د التقاء د ساکنين نه د الف سره او کسره ورکړي شوه د قاعدې د وجې نه لان الساکن اذا حرك حرك بالکسر **دويم جواب:** دا نون د مثنى به مکسور وى ځکه که مفتوح راشي نو توالى د اربع فتحات راځي په حالت رفعى کې او دا په کلمه واحده کې مستکره ده او حالت نصبى

جرى محمول دى په حالت رفعي باندې (٣) يا مكسور ځكه راځي چې مثنى واقع ده په مرتبه اوسطه كې بين المفرد والجمع او كسره هم په مرتبه اوسطه كې ده بين الفتحة والضمة او نون د تثنيه غالبا مكسور راځي او كله كله په طريقه دقلت سره مفتوح هم راځي كما في قول الشاعر

واعرف منها الانف والعينانا ومنخرين اشبها طبيانا

**سوال: ليدل** جار مجرور دى او ديته عند النحات ظرف وائي او ظرف دوه قسمه دى (١) ظرف لغوه (٢) مستقر، دا كوم قسم دى؟ **جواب:** دا ظرف لغوه متعلق دى په لحق پورې او مضارع منصوب ده په تقدير د ان سره وروستو د لام كى نه

**سوال:** ليدل كې ضمير مستتر راجع دى الف او ياء ته نو مطابقت رانغى بين الراجع والمرجع؟
**جواب:** (١) دا ضمير راجع دى الف نون او يا نون ته په تاويل د لاحق سره (٢) يا راجع دى لحوق ته چې مذكور دى په ضمن د لحق كې (٣) يا راجع دى لاحق ته سره د ملحوق نه

**سوال:** الف او ياء د لالت كوى على ان معه مثله من جنسه باندې او نون خو دلالت په دې باندې نه كوي ځكه دا راغلي دى،عوض د حركت رفعي نه يا د تنوين نه يا د دواړو نه؟

**جواب:** منم چې دا نون دلالت نه كوي على ان معه مثله من جنسه باندې ليكن نسبت د حكم چې وشي مجموع ته نو دا لازمه نده چې دا دې ثابت وى ټولو لره نحو قتل بنو زيد عمرا (٢) عموم د مرجع متلزم نه دى عموم د راجع لره كما في قوله تعالى ﴿ وَٱلْمُطَلَّقَٰتُ يَتَرَبَّصْنَ بِأَنفُسِهِنَّ ﴾ دلته مطلقات مرجع عام دى او د عموم د مرجع سره عموم په ضمير د يتربصن كې نه دى راغلي بلكه مراد د دې نه مطلقات رجعيه مدخول بها احرار دى نو دارنګې دلته هم عموم د مرجع مستلزم نه دى عموم د راجع لره مرجع عام دى او دال، الف او يا دى نه نون (٣) يا جواب دا دى چې نه منم دا خبره چې نون دلالت نه كوي على ان معه مثله من جنسه باندې بلكه لكه څنګه چې الف او يا دلالت كوى نو نون هم دلالت كوى ځكه راوړل د نون عوض د حركت يا د تنوين نه منافي نه دى د دلالت د دې سره على انه معه مثله من جنسه، **معه** كې ضمير راجع دى ما ته عبارت دى د اسم نه او **مثله** كې ضمير هم راجع دى ما ته او مراد د مثل نه مماثلت في الوحدة دى.

**سوال:** تعريف د مثنى جامع نه شو خپلو افرادو لره خارج شو د دې نه تثنية تغليبى لكه شمين تثنيه د شمس ده او قمرين تثنيه د قمر ده اوس د شمس په اخير كې چې الف او نون يا ياء او نون زياتى شي نو دا خو دلالت نكوي په دې چې معه من جنسه دى ځكه قمر خو د جنس د شمس نه نۀ دى؟
**جواب:** شمس داخل دى په مفهوم كلى د قمر كې تاويلا او تغليبا او قمر داخل دى په مفهوم كلى د شمس كې تاويلا او تغليبا او بيا د هغې نه تثنيه جوړه شوې ده.

**فالمقصور ان كانت الفه عن واو الخ: ربط:** هر كله چې تغير راتلو په بعض مفرداتو كې د وجې د الحاق د علامه د تثنيه نه نو مصنف شروع وكړه په بيان د هغې كې

**ترجمه:** پس اسم مقصور چې په اخير د هغې كې الف مفرده لازمه راغلي وى نو دا اسم مقصوره به خالي نه وې **ان كانت الفه** كه چرې وو الف د دې اسم مقصور عن واو چې بدل راغلي وو د واو نه

حقيقتا لكه عصا كې يا حكما لكه الى كې شو چې دا د چا لپاره علم وګرځولي شي **وهو ثلاثي** او حال دا دى چې دا اسم مقصور ثلاثي وى او مراد د ثلاثي نه ثلاثي لغوى دى چې ذو ثلاثة ته وائي نه ثلاثي اصطلاحي **قلبت واوا** نو بدلولي شي دا الف د اسم مقصوره په واو سره هر چې دى نفس قلب نو دوجى د التقاء د ساكنين نه او هر چې دى په واو سره نو لپاره د اعتبار د اصل نو په عصا كې به وائي عصوان او په الى كې به وائي الوان **والا** او كه چرې دا الف د اسم مقصور بدل د واو نه نه وو راغلي بلكه بدل د ياء نه راغلي وو حقيقة لكه رحى كې يا حكما لكه په متى كې شو او يا وو على اربعة احرف فصاعدا بيا برابره خبره ده چې الف يې اصلي وى لكه اعلى شو يا زائد وى لكه الف د حبلى شو **فبالياء** بيا دا الف د اسم مقصور بدل كولي شي په ياء سره لپاره د رعايت د اصل په هغه ځاى كې چې دا الف بدل د يا نه راغلي وى حقيقتا يا حكما او لپاره د حصول د تخفيف په مازاد على اربعة احرف كې نو اعلى كې به اعليان وائي او مصطفى كې به مصطفيان وائي او حبلى كې به حبليان وائي واما قهقران وخوذلان فشاذ.

**تشريح: سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دى او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دى؟

**جواب:** ربط دا دى چې په بعض مفرداتو د تثنيو كې تغير راځي په وقت د الحاق د علاماتو د تثنيه كې نو مصنف شروع وكړه په بيان د هغه مفرداتو كې چې هغه كې تغير راځي د وجې د الحاق د علامى د تثنيى نه چې هغه اسم مقصور او اسم ممدود دى او هر چې دى اسم منقوص او صحيح او جار مجرى صحيح نو د وجې د الحاق د علاماتو د تثنيه نه په هغې كې تغير نه راځي لكه رجل كې رجلان ويل كيږي او قاض كې قاضيان دلو كې دلوان ظبى ظبيان او په اسم مقصور او ممدود پورې چې الحاق د علاماتو د تثنيه وشي نو په دې كې تغير راځي نو د هغې بيان كوى فالمقصور سره.

**سوال:** اسم مقصور عند النحات څه ته وائي؟ **جواب:** اسم مقصور عند النحات هغه اسم معربه ته وائي چې اخير كې الف مفرده لازمه راغلي وى اسم سره احتراز راغي د رمى نه او معرب سره يې احتراز وكړو د ذانه او الف مفرده سره يې احتراز وكړو د حمراء نه دلته دوه الفه دى يو بدل شوى دى همزى سره او لازم سره يې احتراز وكړو د الف د زيدا نه په حالت د وقف كې او د الف د كلا نه ځكه دا لازم نه دى د كلمى سره.

**سوال:** اسم مقصور پورې چې الحاق د علامه د تثنيه راشي نو دا تغير پكې څنګه راځي؟

**جواب:** دا اسم مقصور به خالي نه وي يا به زائد على ثلاثه احرف وى او يا به نه وي كه زائد على ثلاثه احرف وو نو بدلولي به شي په ياء سره لپاره د حصول د تخفيف، او كه ثلاثي وو نو بيا به خالي نه وي يا به معلوم الاصل وى او يا به مجهول الاصل وى كه معلوم الاصل وو نو بيا به خالي نه وي يا به بدل د واو نه راغلي وى او يا به بدل د يا نه راغلي وى كه بدل د يا نه راغلي وو نو قلبت ياء رعاية للاصل او كه بدل د واو نه راغلي وو نو قلبت واوا لپاره د رعايت د اصل او د وجى د خفت د ثلاثي نه او كه مجهول الاصل وو نو بيا به خالي نه وي يا به په دې كې اما له شوى وى او يا

به نه وي که نه وه شوی نو قلبت واوا لکه الوان په الی کې اذا جعل علماً للشخص او که اما له شوی وه نو قلبت یاء لکه متیان شو په متی کې اذا جعل علماً للشئ.

**سوال:** دا به د څه نه معلوموو چې په مجهول کې اماله شوې ده که نده شوی؟

**جواب:** په حروفو کې اماله شوې ده صرف په الی، یا، لا په امّا لا کې او په اسماء مبنیو کې اماله شوې ده په متی، انی، اذا کې نه په نورو کې.

**سوال:** دا قاعده ستا منقوضه شوه په خوزلان او قهقران باندې چې دا تثنیه د قهقری او خوزلاده چې دا اسم مقصور دی او زائد علی ثلاثة احرف دی او دلته الف نه دی بدل شوی په یاء سره؟

**جواب:** اما خوزلان وقهقران فشاذ.

**سوال:** اسم مقصور ته مقصور ولي وائي؟ **جواب:** للامتناع عن المد (٢) دا ممنوع ګرځولي شوی دی د اعراب لفظی نه **والممدود ان كانت همزته اصلية** او هر چې دی اسم ممدود که چرې همزه د دې اصلي وه په دې شان سره چې زائد نه وه او نه بدله راغلي وه د واو او یا اصلیه نه **تثبت** نو ثابته پاتې کیږي دا همزه په حین د الحاق د علامات د تثنیه کې په اشهر استعمال د کلام د عرب کې د وجې د اصالت نه لکه قرآء شو نو په دې کې به قراء ان وائي، اوابوعلی حکایت کړي دي د بعض عرب نه قراوان په بدلولو د همزه اصلیه په واو سره په حین د الحاق د علاماتو د تثنیه کې **وان كانت للتانيث** او که چرې وه دا همزه د اسم ممدود د تانیث لپاره په دې شان سره چې دا همزه بدل راغلي ده د الف د تانیث نه **قلبت** نو اړولي شي دا همزه د اسم ممدود په واو سره په حین د الحاق د علامات د تثنیه کې لکه حمراء شو د دې نه چې تثنیه جوړ وی نو حمراوان به وائي ځکه همزه د حمراء د تانیث لپاره ده ځکه دا بدل راغلي ده د الف د تانیث نه ځکه حمراء په اصل کې حمرا وو بیا الف زیاتي کړي شو مخکې د دې الف نه لپاره د مد د صوت بیا دا الف ثانی بدل شو په همزی سره په قاعده د دعاء سره د وجې د وقوع د ده نه په طرف کې پس د الف زائده نه نو حمراء شو.

**سوال:** همزه د تانیث پس د الحاق د علامات د تثنیه نه په واو سره ولي بدلولي شي؟

**جواب:** ځکه دا همزه بین الالفین ثقیل ده نو بدلولي شي واو سره لپاره د حصول د تخفیف.

**سوال:** د حصول د تخفیف لپاره همزه په یا سره ولي نه بدلوی چې واو سره یې بدلوی باوجود د دې نه چې تخفیف په یا کې زیات دی؟ **جواب:** په واو سره یې بدلوو نه په یاء سره د وجې د مناسبت د واو نه په همزی سره په ثقل کې د دې وجې نه بدل شویدی واو په همزی سره په اقتت او اجوه کې(٢) او کله حمران ویلي شي په بقاء د همزی سره په خپل حال باندې (٣) او حکایت کړی دی مبرد د مازنی نه حمرایان په بدلولو د همزی د اسم ممدود په یاء سره لیکن اعرف او اشهر په دې کې بدلول د همزی دي په واو سره نو ځکه مصنف وویل چې قلبت واو لیکن دغه همزه د تانیث واو سره بدلولي شي په دې شرط سره چې د الف نه مخکې بل واو نه وو راغلي او که مخکې بل واو راغلي وو نو هلته په خپل حال باندې پاتې کولي شي لپاره د تحسین د لفظ لکه اسواء کې اسواءان ویلي کیږي نه اسواوان **والا** او که چرې دا همزه اصلي نه وه او نه زائده وه د تانیث لپاره بلکه زائده وه د الحاق

لپاره لکه همزه د علباء شوه چې دا زائده لپاره د الحاق په قرطاس پورې یا بدل د واو او یا نه راغلي وی لکه کساء او رداء چې اصل کې کساو او ردای وو بیا واو او یا بدل شو په همزی سره په قاعده د دعاء باندې **فالوجهان** په دې کې دوه وجهې روا دی (۱) ثبوت او بقاء د همزی (۲) بدلول د همزی په واو سره ځکه دا همزه به خالي نه وي یا به زائده وی د الحاق لپاره او یا به بدل د واو او یا اصلی نه راغلي وی که زائده وه د الحاق لپاره نو که دیته ګوري چې زائده ده په دې شان سره چې مقابل د فاء عین او لام کې نده راغلي نو مشابه شوه د همزی د حمراء سره نو بدل یې کړه په واو سره علباوان وایه او که دیته ګوري چې دا همزه زائده ده د الحاق لپاره او دا په حکم د اصلی کې ده نو مشابه شوه د همزی د قراء سره نو باقي پاتې کوه او علباءان وایه او که دا همزه بدل د واو او یا اصلی نه راغلي وه دا هم ذوجهتین ده که دیته ګوري چې دا اصل نده په شان د همزی د قراء بلکه بدل د غیر نه راغلي ده نو مشابه شوه د همزه د حمراء سره نو بدل یې کړه واو سره نو کساوان او رداوان اووایه او که دیته ګوري چې اصلی ده نو مشابه شوه د همزی د قراء سره نو په خپل حال باندې یې ثابته پاتې کوه کساءان رداءان اووایه.

**ویحذف نونه** هر کله چې فارغ شو مصنف رحمه الله د بیان د احکامو د تثنیه د اسم مقصور او د اسم ممدود نه پس شروع یې اوکړه په بیان د حکم د مطلق مثنی کې چې حذف د نون د مثنی دی وجوباً عند الاضافة نو اوئی فرمائیل او حذف کولي شي نون د مثنی په حذف واجبه دائمه سره **للاضافة** د وجی د اضافت نه ځکه اضافت تقاضه کوی د اتصال د مابعد سره او دا نون د مثنی چې قائم مقام د تنوین دی دا تقاضه کوی د اتمام د کلمی او د انفصال د مابعد سره او په مابین د دې کې منافات دی نو جاءنی ضاربا زید به وائي په ضاربان کې **وحذفت تاء التانیث الخ**.

**ربط**: هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د حکم د مطلق مثنی نه پس شروع یې وکړه په بیان دحکم د خاص مثنی کې چې هغه حذف د تاء التانیث دی په تثنیه د الیة او خصیة کې دون غیرهما او حذف کولي شي په حذف جائزه قلیله سره تاء علامه د مؤنث **فی خصیان والیان** په خصیان کې چې تثنیه د خصیة ده او الیان کې چې تثنیه د الیة ده خلاف القیاس، سره د جواز د اثبات د دې نه په خصیتان او الیتان کې موافق القیاس بالاتفاق ځکه دا قاعده ده چې علامه د تانیث نه شي حذف کولي د وجی د الحاق د علامه د تثنیه نه لکه ضاربة کې ضاربتان تمرة کې تمرتان او شجرة کې شجرتان ویلي کیږي لیکن صرف په خصیان اوالیان چې دا تثنیه د خصیة او الیة ده تاء التانیث حذف کولي شي خلاف القیاس.

**سوال**: دا ولي حذف کیږي؟ **جواب**: ځکه دا دواړه اجزاء د وجي د شدت اتصال نه ګرځیدلي دی په منزله د عضو واحد باندې نو دا په منزله د مفرد شو نو لازمیږي اجراء د علامه د تانیث په وسط کې او دا نده صحیح ځکه علامه د تانیث دمفرد په اخیر کې راځي نه په مینځ کې (۲) او بعض وائي چې خصیتان او الیتان تثنیه د خصیة او الیة متلبس بالتاء ده دا کثیره ده او خصیان او الیان تثنیه خصی او الی مجرد عن التاء ده او دا لغت قلیله دی.

**سوال:** حذف د نون سره يې يحذف صيغه د مضارع ذكر كړه او حذف د تاء سره يې حذفت صيغه د ماضي ذكر كړه دا ولې **جواب:** د حذف د نون سره يې مضارع ذكر كړه خكه دا دلالت كوي په استمرار تجددي باندې او نون مثنی حذف كولې شي د اضافت د وجې نه په حذف استمراري دائمي سره او د حذف د تاء سره يې ماضي ذكر كړه خكه ماضي دلالت نه كوي په دوام او استمرار باندې او حذف د تاء هم دائما نه دی بلكه احيانا دی

**المجموع مادل على احاد مقصودة بحروف مفرده بتغير ما: ربط:** هر كله چې فارغ شو مصنف د بيان د تعريف د مثنی او احكام د مثنی نه چې هغه يوه نوع د اسم وه نو شروع يې وكړه په بيان د تعريف او د احكام د جمع كې چې دا بله نوع د اسم ده نو وي ويل المجموع الخ

**ترجمه: المجموع** جمع حقيقي په اصطلاح كې **ما** اسم دی او اطلاق د اسم په **جمع** باندې مجازا او حكما دی نه حقيقة او په تنكير د اسم كې اشاره ده موصوفيت د ما ته داسې اسم **دل** چې دلالت كوي بالمطابقة **على احاد** په مجموعه افرادو باندې داسې افراد **مقصودة** چې متعلق كيږي په دې افرادو پورې قصد د متكلم په ضمن د اسم كې **بحروف مفرده** په حروفو سره چې **هغه** بعينه ماده مفرد د دې اسم ده **هغه** اسم چې هغه دلالت كوي په واحد واحد باندې د دې افرادو نه **بتغير ما** په حال كونړ د دې حروفو كې چې دا به متلبس وي په تغير سره مطلقا دا تغير عام دی كه خارجي وي او كه داخلي وي او تغير داخلي عام دی كه صفتي وي او كه ذاتي وي او صفتي عام دی كه لفظا وي او كه تقديرا وي او ذاتي عام دی كه په طريقه د زيادت سره وي او كه په طريقه د نقصان سره وي

**تشريح: سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟

**جواب:** ربط دا دی چې مخكې بيان د مثنی وو چې دا يو قسم وو د اسم نه اوس بيان د بلې نوع د اسم كوي چې جمع ده او په معرفت د ربط سره غرض د مصنف هم معلوم شو (۱) **مجموع** صيغه د اسم مفعول ده په لغت كې جمع كرده شده راگويند (۲) يا مصدر ميمي دی جمع كولو ته وائي

**سوال:** مصدر چرته په وزن د مفعول باندې راغلي دی؟

**جواب:** نعم كما في قوله تعالى ﴿ بِأَييِّكُمُ الْمَفْتُونُ ﴾ او الف لام په المجموع كې الف لام عهد خارجي دی مراد په دې سره جمع حقيقي ده نه مطلق جمع خكه دا تعريف د جمع حقيقي دی نه د مطلق جمع

**سوال:** كلمه د ما د الفاظو عامونه ده دا د څه نه عبارت دی؟ **جواب:** دا عبارت دی د اسم نه

**سوال:** دا ما عبارت د اسم نه ولې دی؟ **جواب:** (۱) خكه معتبر په تعريفاتو كې جنس قريب دی او جنس قريب د دې اسم دی او لفظ او شئ اجناس بعيده دی (۲) اسم مقسم دی د مثنی او مجموع لپاره او مقسيم معتبر وي په تعريفاتو د اقسامو كې

**سوال:** اسم چې وائي نو الاسم سره تعبير ولې نه كوي؟

**جواب:** په تنكير د اسم كې يې اشاره وكړه موصوفيت د ما ته لانه واقع في جانب الخبر

**سوال:** اطلاق د اسم په جمع باندې نه دی صحيح خكه اسم قسم دی د كلمې نه او د كلمه په مفهوم كې افراد معتبر دی او جمع مركب دی خكه جز د لفظ دلالت په جز د معنی باندې؟

**جواب:** دا اعتراض به هله راتلو چي اطلاق د اسم په جمع باندې حقيقة وی ليکن اطلاق د اسم په جمع باندې حقيقة نه دی بلکه مجازاً دی ځکه علامات د جمع د وجی د شدت اتصال نه د مفرد سره ګرځيدلي دی بمنزلة کلمه واحده.

**سوال:** دل مشتق دی د دلالت نه او دلالت درې قسمه دی (۱) مطابقی (۲) تضمنی (۳) التزامی، دلته کوم يو مراد دی؟ **جواب:** دلته مراد دلالت مطابقی دی اسم سره يې احتراز وکړو د الف لام استغراقي نه او دلالت مطابقی سره يې احتراز وکړو د تثنيه د جمع او د اسم جمع نه لکه طائفتان او رجلان ځکه هغه دلالت په احاد بالمطابقت نه کوی بلکه بالالتزام کوی او مراد د احادو نه جمله احاد دی نو دی سره يې احتراز وکړو د کل افرادی نه نحو قوله تعالی ﴿ كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ ﴾ او مقصودة بحروف مفرده چې يې وويل نو په دې سره يې احتراز وکړو د کل مجموعی نه نحو کل نملة يرفع هذا الحجر، اوبل يې احتراز وکړو د اسم جمع اسم جنس او اسم عدد نه ځکه هغه اګر چې دلالت کوی په مجموع افرادو باندې ليکن هغه افراد مقصود بحروف مفرده نه دی.

**سوال:** دا تعريف د جمع **مادل علی احاد الخ** سره باطل دی ځکه دا تعريف مستلزم دی دور لره په دې شان سره چې دا جمع په تعريف کې محتاج ده مفرد ته او مفرد محتاج دی جمع ته په تعريف کې ځکه مفرد ماليس بجمع ولا تثنيه ته وائي؟ **جواب:** دا تعريف د جمع صحيح دی او مستلزم نه دی دور لره ځکه دا جمع په تعريف کې مفرد ته محتاج ده خو مفرد په تعريف کې جمع ته نه دی محتاج ځکه د مفرد تعريف مونږه داسي کوو چې هو الاسم الدال علی واحد واحد من تلك الاحاد.

**سوال:** بحروف مفرده جار مجرور ظرف لغوه دی که ظرف مستقر دی؟ **جواب:** دا ظرف لغوه دی.

**سوال:** دا په چا پورې متعلق دی؟ **جواب:** (۱) دا متعلق دی په دلّ پورې (۲) يا مقصودٌ پورې (۳) يا په دواړو پورې علی سبيل التنازع

**سوال:** بتغير ما ظرف لغوه دی که مستقر؟ **جواب:** دا ظرف مستقر دی ځکه متعلق يې محذوف دی چې متلبساً دی.

**سوال:** دا جار مجرور په ترکيب کې څه واقع شوی دی؟ **جواب:** دا حال واقع شوی دی د بحروف مفرده نه او ما چې وروستو د تغير نه راغلي دی دا ما صفتی دی او توصيف د **تغير په ما** سره شوی دی لپاره د تاکيد د عموم او دا **بتغير** ما قيد جامعه او قيد مدخله دی په دې قيد سره داخل شو فلك او هجان په تعريف د جمع کې ځکه دا تغير عام دی که خارجي وی لکه جمع مذکر او مؤنث سالم کې يا داخلي وی او دا تغير داخلي عام دی چې صفتی وی او که ذاتی وی او دا تغير صفتی عام دی که حقيقتا وی لکه أسْد يا حکما وی لکه فلك او هجان او دا تغير ذاتی عام دی که زيادت سره وی لکه رجال يا نقصان سره وی لکه طلبةٌ **فنحو تمرورکب ليس بجمع علی الاصح**، مثل د تمر او رکب جمع نده په مذهب د اصح باندې چې مذهب د سيبويه دی بلکه تمر اسم جنس دی او رکب اسم جمع ده ځکه جمع دلالت کوی په ثلاثه ؤ او مافوق د ثلاثه ؤ باندې نه په ماتحت باندې او تمر دلالت په واحد

او اثنین باندې هم کوی، او رکب اسم جمع ده نه جمع ځکه دی سره معامله کولي شي په استعمال د
کلام دعربو کې معامله د مفرد مذکر (۱) ضمیر د مفرد مذکر ورته راجع کیږي (۲) د دې نه تصغیر
بنفسه راځي او دجمع تصغیر بنفسه نه راځي (۳) او که دا جمع حقیقي شي نو جمع دوه قسمه ده
(۱) یو جمع قلته ده (۲) او دویم جمع کثرته ده، نو دا جمع قلته خو نده ځکه هغه راځي په اوزان
محصوره وو باندې او دا یو د هغې نه نده، او هر چې جمع کثرته ده نو هغه هم په دې وزن باندې
نده راغلي، **علی الاصح** سره یې احتراز وکړو د مذهب صحیح نه چې مذهب د اخفش او فراء دی
اخفش وائي چې څومره اسماء جموع چې دی چې مفرد من لفظه ورله راغلي وی لکه جامل، باقل
رکب، دا په جمع حقیقي کې داخل دی، او فراء وائي چې د کومو اسماء اجناسو لپاره چې مفرد من
لفظه وی لکه تمر او نخل دا په جمع کې داخل دی، او هر چې دی هغه اسماء جموع او اسماء اجناس
چې مفرد من لفظه ورله نشته لکه مثال د اسم جمع لکه قوم او رهط، او مثال د اسم جنس ابل او
غنم دا جمع نده بالاتفاق

**پس زده کړه** دا خبره چې اسم جنس او اسم جمع به خالي نو یا به ورله مفرد من لفظه وی او یا به
نه وي که نه وو نو دا جمع نده بالاتفاق، او که مفرد من لفظه راغلي وو د اسم جنس لپاره نو بیا هم
جمع نده په مذهب اصح باندې چې مذهب د سیبویه دی او جمع ده عند الفراء او که د اسم جمع
لپاره مفرد من لفظه راغلي وو نو بیا دا هم جمع نده علی الاصح او جمع ده عند الاخفش

**سوال:** جمع اسم جمع، او جنس او اسم جنس کې څه فرق دی؟

**جواب:** جمع هغه ته وائي چې دلالت کوی په ثلاثه او مافوق د ثلاثه باندې او مفرد من لفظه ورله
راغلي وی قیاساً اطراداً، او اسم جمع هغې ته وائي چې دلالت کوی په ثلاثه او مافوق د ثلاثه او
مفرد ورله اصلاً نه وي راغلي لکه عقود ثمانیه، یا ورله مفرد راغلي وی خو من غیر لفظه وی لکه
نساء جمع د امرأة او اولو جمع د ذو ده یا ورله مفرد من لفظه وی خو جمع شوی وی خلاف القیاس لکه
رکب، او اسم جنس هغې ته وائي چې اطلاق یې کیږي په کثیرین باندې علی سبیل البدلیت لاعلی
سبیل الاجتماع لکه رجل شو، او جنس هغې ته وائي چې اطلاق یې کیږي په کثیرین باندې علی
سبیل الاجتماع او اطلاق یې په قلیل باندې هم کیږي لکه ماء او تمر شو

**سوال:** کلم جنس دی او ته وائي چې جنس هغې ته وائي چې اطلاق یې کیږي په قلیل او کثیر باندې
او د دې اطلاق خو په ما تحت ثلاثه باندې نه کیږي؟

**جواب:** (۱): کلم جنس نه دی بلکه جمع ده (۲) او که اومنم چې جنس دی نو اطلاق یې په ثلاثه او
مافوق د ثلاثه باندې کیږي او په ماتحت باندې نه کیږي د عارض استعمال د وجې نه

**ونحو فلك جمع** او مثل د فلك جمع ده د وجې د تحقق د تغیر نه په بنا د مفرد د دې کې تقدیرا او مراد د فلك
نه هر هغه جمع ده چې بناء د واحد پکې روغه پاتې شوی وی یعنې جمع او واحد په یو وزن باندې راغلي
وی لکه فلك او هجان شو، او تغیر په دې کې راغلي دی تغیر داخلي صفتي فرضي ځکه دا فلك چې
وزن د قفل باندې راځي نو مفرد دی او دا ضمه یې ضمه د مفرد ده بیا دا ضمه د مفرد د دې نه لرې شو

او دا وگرځولي شو په وزن د اسد باندې او ضمه د جمع پکې راغله، او دارنګې هجان چې په وزن د حمار واخلي نو مفرد دی او چې په وزن د رجال باندې یې واخلي نو جمع ده. **وهو صحيح ومكسر: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د تعریف د جمع حقیقی اصطلاحی نه نو شروع یې وکړه په تقسیم د جمع حقیقی اصطلاحی کې نوعین ته لپاره د اتمام د تعریف د جمع حقیقی اصطلاحی ځکه تقسیم د مکملاتو او متمماتو د تعریف نه دی ځکه په تعریف سره معلومیږي معنی او مفهوم د شي او تقسیم سره معلومیږي افراد او مصداق د شي نو وروستو د تقسیم او تعریف نه دا جمع مونږ ته معلومه شوه مفهوماً او مصداقاً.

**ترجمه: وهو** دا جمع حقیقی اصطلاحی په اعتبار د لفظ سره دوه قسمه ده (۱) یو صحیح ده او بله مکسره ده.

**وجه د حصر:** بنا د واحد د دې جمع به خالي نه وي یا به سالم وی په دې جمع کې او یا به سالم نه وي که سالم وه نو جمع سالمه او که نوه نو جمع مکسره ده او فلك جمع مكسره ده نه جمع سالمه ځکه په بناء د مفرد د دې کې تغیر راغلي دی تقدیراً او فرضاً.

**سوال:** ته وائي چې صحیح هغې ته وائي چې بناء مفرد د دې سالمه پاتې شوی وی په جمع کې نو تعریف د جمع سالم جامع نه شو خپلو افرادو لره خارج شو د دې نه مصطفون او بنون دا جمع سالمه ده او بنا د مفرد پکې روغه نده پاتې شوی؟

**جواب:** جمع صحیح دیته وائي چې بنا د مفرد د دې روغه پاتې شوی وی او تغیر پکې نه وی راغلي لپاره د حصول د جمعیت او دلته هم دا تغیر لپاره د حصول د جمعیت نه دی بلکه دا تغیر راغلي دی وروستو د حصول د جمعیت نه د وجی د قانون صرفی نه.

**فالصحيح لمذكر ولمؤنث: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د تقسیم د مطلق جمع نه په اعتبار د لفظ سره نوعین ته چې یو جمع سالمه وه او بله جمع تکسیره وه نو شروع یې وکړه په تقسیم د قسم کې نو وی ویل فالصحيح لمذكر ولمؤنث.

**ترجمه:** پس جمع صحیح کله راځي د مذکر لپاره هغې ته جمع مذکر سالم وائي **ولمؤنث** او کله راځي د مؤنث لپاره چې هغې ته عندهم جمع مؤنث سالم وائي.

**فالمذكر مالحق اخره الخ: ربط:** دا جمله مستانفه جواب د سوال دی ځکه هر کله چې مصنف تقسیم د جمع صحیح وکړو مذکر او مؤنث ته نو معترض اعتراض وکړو چې جمع مذکر سالم څه ته وائي او مؤنث سالم څه ته وائي نو مصنف جواب وکړو فالمذکر الخ سره.

**ترجمه:** پس جمع سالم مذکر په اصطلاح کې **ما** اسم دی داسې اسم **لحق** چې متصل شوی دی **اخره** په اخیر د مفرد د دې اسم پورې **واو** واو داسې واو **مضموم** چې مضموم وی **ما هغه** حرف **قبلها** چې مخکې د واو نه راغلي وی په حالت رفعی کې ازبرائي مناسبت واو او دا مضموم عام دی چې حالاوی لکه مسلمون شو یا اصالة وی لکه مصطفون شو (۲) یا جمع مذکر سالم په اصطلاح کې **ما** هغه اسم ته وائي **لحق** چې وی **اخره** په اخیر د دې اسم کې **واو** واو داسې واو چې مضموم وی ماقبل د **هغې** نه او یاء یاء راغلي وی داسې یا چې مکسور وی **هغه** حرف چې مخکې د یاء نه راغلي وی په حالت نصبی جری کې ازبرائي مناسبت یاء (۳) یا لپاره د دې چې لازم نه شي التباس د مثنی سره په حالت نصبی جری کې او دا کسره عامه ده که لفظا وی لکه مسلمین شو یا تقدیرا وی لکه مصطفین شو **ونون** سره

د نون نه **مفتوحة** داسې نون چې مفتوح وی لپاره د دې چې مقابله وکړي دا خفت د فتحه د ثقل د واو او د ضمې سره یا لپاره د دې چې که دا نون مفتوح نه شي بلکه مکسور شي نو لازمیږي توالی د اربع کسرات په حالت نصبي جرې کې او حالت رفعي محمول دی په دې باندې **لیدل علی ان معه اکثر منه** لپاره د دې چې دلالت وکړي د الحوق چې مذکور دی په ضمن د لحق کې یا لاحق فقط. یا لاحق سره دملحوق نه **علی** په دې خبره باندې **ان معه** چې په تحقیق سره د دې مفرد واحد سره **اکثر** زیات دی د دې. مفرد واحد نه په عدد کې د جنس د دې اسم مفرد نه او من جنسه یې ونه ویل د وجې د اکتفاء نه بماذکر فی التثنیة او اسم تفضیل دلالت کوی د ثبوت د اصل فعل د مفضل علیه لپاره خو دا ثبوت د فعل په مفضل علیه کې عام دی چې تحقیقتا وی لکه زید افضل الناس یا فرضا وی لکه فلان افقه من الحمار واعلم من الجدار نو دا ترکیب د مصنف هم د دغه قبیلې نه دی چې دا کثرت موجود دی په مفضل علیه کې چې مفرد دی علی سبیل الفرض یا، صیغه د اسم تفضیل بمعنی اصل فعل دی چې کثرت دی، یا صیغه د اسم تفضیل بمعنی صفت مشبه ده چې کثیر دی.

**تشریح: سوال:** فالمذکر مالحقه الخ د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟ **جواب:** (۱): ربط د ماقبل سره دا دی چې مخکې یې جمع صحیح مذکر او مؤنث ذکر کړو اجمالا اوس یې تفصیل کوی نو بنا په دې دا فا تفضلیه ده (۲) یا دا جمله مستانفه جواب د سوال دی ځکه کله چې مصنف تقسیم د جمع صحیح وکړو مذکر او مؤنث ته نو معترض اعتراض وکړو چې جمع مذکر څه ته وائي او مؤنث څه ته وائي نو مصنف جواب وکړو فالمذکر الخ سره نو بنا په دې دا فاء استنافیه ده.

**سوال:** ته وائي چې مذکر په اصطلاح کې مالحق اخره الخ ته وائي دا تعریف ستا باطل دی ځکه مذکر اصطلاح کې مالحق اخره الخ ته نه وائي بلکه مذکر خو مالیس فیه علامة التانیث لفظا او تقدیرا ته وائي؟ **جواب:** دا اعتراض به تا هله کولي چې دا تعریف د مذکر وی لیکن دا تعریف د مذکر نه دی بلکه دا تعریف د جمع مذکر دی.

**سوال:** ما د الفاظ عامونه دی دا د څه نه عبارت دی؟ **جواب:** دا عبارت دی د اسم نه (۱) ځکه معتبر په تعریفات کې جنس قریب وی او جنس قریب د جمع مذکر لپاره اسم دی (۲) یا اسم مقسم دی د جمع مذکر الخ لپاره او مقسیم معتبر وی په تعریفات د اقسامو کې

**سوال:** تعریف د جمع مذکر سالم جامع نه شو افرادو خپلو لره خارج شو د دې نه مسلمون مسلمین دلته دا واو او نون او یا نون په اخیر د مفرد کې راغلي دی نه په اخیر د جمع کې.

**جواب:** دا عبارت دی په حذف د مضاف سره ای لحق اخر المفرد (۲) یالحق فعل ناقص غیر مشهور دی معنی کان اخره یې خبر دی او واو مضموم یې اسم دی.

ه وائي چې د وا نه مخکې به مضموم وی دا قاعده ستا منقوضه شوه په مصطفون سره دلته

تضموم ... **جواب:** ضمه عا ... ده که لفظا وی او که تقدیرا وی یا ضمه عامه ده که حالاوی او که اصالة وی دلته تقدیراً او اصالة ده.

**سوال:** د یاء نه مخکې حرف به مکسور ولې وي؟ **جواب:** از برائې مناسبت یاء (۲) یا لپاره د دې چې لازم نه شي التباس د دې د تثنیه سره په حالت نصبی جری کې

**سوال:** دا قاعده ستا منقوضه شوه په مصطفین سره دلته د یاء نه مخکې کسره نشته؟

**جواب:** دلته کسره تقدیرا ده.

**سوال:** دا نون به مفتوح ولې وي؟ **جواب:** لپاره د دې چې دا خفت د فتحه د نون مقابله وکړي د ثقل د واو سره په حالت رفعي کې او حالت نصبی جری محمول دی په حالت رفعي باندې (۲) که مفتوح نه شي نو مکسور به وي نو لازمیږي توالی د اربع کسراتو په حالت نصبی جری کې او حالت رفعي محمول دی په دې باندې

**سوال:** ته وائې چې نون د جمع مذر مفتوح راځي دا قاعده ستا منقوضه شوه په دې قول د شاعر باندې

وماذا يبتغى الشعراء منى وقد جاوزت حد الاربعين

دلته مکسور راغلی دی؟

**جواب:** مونږه وایو چې نون د جمع به مفتوح راځي په نثر کې او دا په شعر کې راغلي دی یجوز فی الشعر مالایجوز فی غیره (۲) دائې ویلې دی په طریقه د غلبې سره او کله کله مکسور هم راځي **لیدل** دا ظرف لغوه متعلق دی په لحق پورې او ضمیر راجع دی لحوق ته چې په ضمن د لحق کې دی یا راجع دی واو او یا ته په تاویل د لاحق سره فقط یا سره د ملحوق نه

**سوال:** لکهٔ څنګه چې په تعریف د مثنی کې من جنسه شرط وو نو دا رنګې په جمع کې هم شرط دی نو دا یې ولې ذکر نه کړو؟ **جواب:** دا یې نه دی ذکر کړي اکتفاء بماسبق ځکه د مصنف دا قانون دی چې قاعده ثانیه چې په کوم قیوداتو کې شریکه وي د اولی سره هغه دی نه ذکر کوی اکتفاء کوی په ماسبقه باندې او په کوم کې چې شریکه نه وي هغه ذکر کوی

**سوال:** اکثر اسم تفضیل دی او قاعده په اسم تفضیل کې دا ده چې دا واجب کوی ثبوت د اصل فعل مفضل علیه لره او مفضل لره یې ثابتوی په طریقه د زیادت سره نحو زید افضل الناس دلته دی افضل دلالت وکړو چې نفس فضلیة ثابت دی مفضل علیه لره چې ناس دی او فاعل د اسم تفضیل لره ثابت دی په طریقه د زیادت سره بنا په دې باندې د دې عبارت د مصنف ترجمه دا شوه چې جمع مذکر سالم اکثر ده د مفرد نه نو دی اکثر دلالت وکړو په ثبوت د کثرت باندې مفضل علیه لره چې مفرد دی او حال دا دی چې لاکثرة فی الواحد؟ **جواب:** دا قاعده په هغه ځای کې ده چې اسم تفضیل مستعمل وي په معنی تفضیلی کې او دلته دا په معنی د صفت مشابه سره دی چې کثیر دی (۲) یا په معنی د اصل فعل سره دی چې کثُر دی (۳) او که او منو چې په خپله معنی دی نو بیا ثبوت د اصل فعل په مفضل علیه کې عام دی که علی سبیل التحقیق وي او که علی سبیل الفرض وي دلته اکر چې علی سبیل التحقیق نشته لیکن غلی سبیل الفرض شته په شان د زید افقه من الحمار باندې

**فان کان اخره یاء ما قبلها کسرة حذفت مثل قاضون:** **ربط:** هر کله چې تغیر راتلو په بعض مفرداتو کې د رجی د الحاق د علاماتو د جمع مذکر نه نو ذکر کړه مصنف دغه مفردات لپاره د بیان د تغیر

**ترجمه**: كه چري وو اخر د اسم د مفرد چې اراده كړي شوې ده د جمعيت د هغې په جمع مذكر سالم سره **ياء** داسي ياء چې مخكې د **هغې** نه كسره راغلي وى دا يا عامه ده كه ملفوظه وى لكه قاضي كې او كه مقدره وى لكه قاضٍ كې يعنى چې دغه اسم مفرد اسم منقوص وو نو حذف كولي شي دا ياء د وجى د التقاء د ساكنين نه على غير حده نه لكه قاضون شو چې اصل كې قاضيون وو ضمه بر يا ثقيل بود اندا ختن، بيا يا حذف شوه د التقاء د ساكنين د وجى نه او كسره د ضاد بدله شوه په ضمى سره نو قاضون شو (٢) يا ضمه بر يا ثقيل بود نقل كرده بما قبل دادند بعد از سلب حركت او يا را حذف كردن از التقاء الساكنين نو قاضون شو بروزن فاعون، او په حالت نصبى كې قاضين راځي چې اصل كې قاضيين بيا پس د اعلال نه قاضين شو بروزن فاعين.

**سوال**: مثل مضاف دى او قاضون مضاف اليه دى او مضاف اليه مجرور راځي نو دا مرفوع ولي راغي؟

**جواب**: دا اعراب حكايةً دى، **وان كان اخره** او كه چري وو اخير د دغه مفرد چې اراده كړي شوې ده جمعيت د **هغې** په جمع مذكر سالم سره، الف مقصورة، بيا عام دى كه لفظا وى او كه تقديرا وى **حذفت الالف** نو حذف كيږي به دغه الف د وجى د التقاء د ساكنين نه **ويبقى ماقبلها مفتوحا** او باقي پاتې كيږي **هغه** حرف چې د دې نه مخكې راغلي وى مفتوح لپاره د دې چې دلالت وكړي دا فتحه په الف محذوفه باندې مثال لكه مصطفون شو په حالت رفعى كې او مصطفين شو په حالت نصبى جرى كې، دا په اصل كې مصتفوون وو بيا دا واو بدل شو په ياء باندې په قاعدى د اعليت سره نو مصتفوون شو بيا ضمه په ياء باندې ثقيله وه وغورځيده او يا د التقاء د ساكنين د وجى نه حذف شوه نو مصطفوون شو، بيا چې كله په ځاى د فاء كلمه د باب افتعال باندې يو حرف راشي د حروف مستعليه مطبقو نه راشي نو تاء د باب افتعال به بدليږي په طاء باندې نو مصطفون بيا په دې كې فك ادغام هم جائز دى او ادغام هم جائز دى خو صرف د يو جانب نه چې طاء بدله شي په صاد او ادغام وشي مصّفون وويل شي او د دې بل جانب نه ادغام نه دى جائز ځكه چې په صاد كې يو زياتى صفت دى چې سفيريت ورته وائي **هغه** فوت كيږي.

**وشرطه ان كان اسما فمذكر علم يعقل**: **ربط**: هر كله چې فارغ شو مصنف د تعريف د جمع مذكر سالم نه او د مواد مغيرونه نو شروع يې وكړه په بيان د شرطونو د جمع مذكر سالم كې نو وى ويل وشرطه الخ.

**ترجمه**: شرط لپاره د **هغه** اسم مفرد چې اراده كړي شوې ده د جمعيت د **هغې** نه په جمع مذكر سالم سره يعنى شرط د صحت د جمعيت د اسم مفرد په جمع مذكر سالم سره **ان كان** كه چري وو دغه اسم مفرد چې اراده كړى شويده د جمعيت د هغې په جمع مذكر سالم سره **اسماً** سام جامد **فمذكر** كون داسم دى مذكر يعنى مجرد عن التاء ملفوظة او مقدرة، او كون د دې اسم دى علم داسې علم **يعقل** چې ذى عقل وى مسمى د ده ځكه دا قسم مفرد اصل دى د باقي مفرداتو نه او جمع مذكر سالم اصل دى د نورو جموعونه فاعطى الاصل للأصل رعاية للتعادل والانصاف **او فمذكر** خبر د مبتدا دى چې شرطه دى او حمل صحيح دى ځكه د دې نه مونږه تاويل كوو په كونه مذكر علم

يعقل سره او دا فا راغلي ده په خبر د مبتدا کي ځکه مبتدا چي مقارن وی د شرط سره نو په خبر کي بي فاء راخي او لغويت د شرط بين المبتداء والخبر جائز دی په نزد د شارح هندي باندي (۲) يا ان کان اسما شرط دی او فمذکر علم يعقل خبر د مبتدا محذوف دی چي هو دی او حذف د عائد مرفوع په داسي مقام کي جائز کړی دی شيخ رضی نحو ان جاءك زيد فکريم ای فهو کريم بيا شرط سره د جزا نه جمله شرطيه خبر د مبتدا دی چي شرطه دی مبتدا سره د خبر نه جمله خبريه اسميه

**تشريح: سوال:** د دې عبارت ربط دماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟

**جواب:** هر کله چي فارغ شو مصنف د بيان د جمع مذکر سالم نه او د هغه موادونه چي په هغې کي تغير راتلو د وجې د الحاق د علاماتو د جمع مذکر سالم نه چي اسم منقوص او اسم مقصور وو نو شروع بي وکړه په شرطونو د جمع مذکر سالم کي او په معرفت د ربط سره غرض د مصنف هم معلوم شو چي بيا ۱۰ شرطونو د جمع مذکر سالم دی.

**سوال:** په ... رط کي دا ضمير چاته راجع دی (۱) يا به يي راجع کوی مفرد ته (۲) يا به يي راجع کوی جمع مذکر سالم ته، که ته وائي چي راجع دی جمع مذکر سالم ته نوفمذکر علم يعقل حمل نه دی صحيح ځکه مسلمون علم نه دی او که ته وائي چي ضمير راجع دی مفرد ته نو بيا خروج عن البحث راځي؟ **جواب:** ضمير راجع دی مفرد ته ليکن مطلق مفرد نه دی مراد بلکه هغه مفرد مراد دی چي اراده کړي شوی وی جمعيت د هغه په جمع مذکر سالم سره نو بحث د متعلقاتو د شئ نه بحث د شئ نه وی نو خروج عن البحث رانغی.

**سوال:** ته وائي جمعيت د اسم مفرد په جمع مذکر سالم سره مشروط دی په شروط ثلاثه ؤ سره نو دا دري شرائط د وجوب لپاره دی او که د جوازاو صحت لپاره؟ **جواب:** دا شرائط ثلاثه د صحت د جمعيت لپاره دی نه د وجوب لپاره يعنی دا دري واړه شرطونه چي معاً موجود وو نو هغه مفرد جمع کول په جمع مذکر سالم سره صحيح دی غلط نه دی ليکن دا لازم او واجب نده چي دا دري شرطونه چي موجود شئ په يو اسم مفرد کي نو ته به يي خامخا جمع کوی په جمع مذکر سالم سره.

**سوال:** وشرطيه مبتدا ده دا خبر غواړي او **ان کان اسما** شرط دی او شرط جزاء غواړي نو دا وروستو فمذکر الخ به خالي نه وائي يا به يي خبر وائي د مبتدا لپاره او يا به يي جزاء وائي د شرط لپاره او دا دواړه نه صحيح کيږي که خبر يي وائي د مبتدا لپاره نو په هغې کي څلور نقصانه لازميږي (۱) په خبر د مبتدا کي فاء هله راځي چي متضمن وی معنی د حرف شرط لره او دلته متضمن نده معنی د حرف شرط لره ځکه د هغې مثالونه مصنف دوه بيان کړی دی وذلك فی الاسم الموصول بفعل او ظرف او النکرة الموصوفة بهما او دا يو د دغه دواړو نه نۀ دی (۲) خبر د مبتدا محمول وی په مبتدا باندي او دلته حمل نه دی صحيح ځکه شروط د قبيلي د اوصافو نه دی لهذا شرط د دغه اسم لپاره تذکير علميت او عاقليت دی نه مذکر علم او عاقل (۳) خبر مربوط وی د مبتدا سره او دلته ربط نشته په مينځ د مبتدا او د خبر کي ځکه د دې معنی دا ده چي وشرطه فمذکر.

شو نو د ان كان اسما الخ لپاره جزا د مبتدا شو نو د ان كان اسما الخ لپاره جزا
(۴) لازميږي لغويت د شرط ځكه چې فمذكر الخ خبر د مبتدا شو نو د ان كان اسما الخ لپاره جزا
(۱) جمله چې خبر واقع شي نو په هغې نشته، او كه جزا يې گرځوي د شرط لپاره نو دوه نقصانه دي (۱) جمله چې خبر واقع شي نو په هغې كې لابدي وي د عائد نه او دلته عائد نشته او كه ته وائي چې رابط محذوف دي چې هو دى نو هغه رابط نه دى ځكه هغه راجع دى اسم ته نه شرط ته (۲) او دويم حذف د عائد مرفوعه راغي او دا باطل دى؟ جواب: فمذكر علم يعقل خبر دى د شرطه مبتدا لپاره او كه ته وائي چې فا جزائيه هله راځي په مبتدا كې چې متضمن وى معنى د حرف شرط لره او دلته متضمن نده معنى د حرف شرط لره. جواب: كله چې مبتدا مقارن وى د شرط سره هلته هم فاء جزائيه راوړل جائز دي او كه ته وائي چې حمل نه دى صحيح او مربوط نه دى نو جواب دا دى چې فمذكر الخ خبر دى د مبتدا لپاره په اعتبار د كون محذوف سره اى و شرطه كونه مذكراً علماً يعقل نو حمل صحيح شي او ربط هم پيدا شو او دخلورم اعتراض نه جواب دا دى چې شرط چې واقع شي بين المبتدا والخبر نو لغويت د شرط جائز دى كما قال الشارح الهندي (۲) يا فمذكر علم يعقل جزاء د شرط وايم په اعتبار د مبتدا محذوف سره اى فهو مذكر علم يعقل او حذف د عائد مرفوع په داسې مقام كې جائز كړې دى شيخ رضي.

**سوال:** يعقل په تركيب كې څه واقع شوى دى؟ **جواب:** دا صفت دى د علم لپاره.

**سوال:** توصيف د علم په يعقل سره نه دى صحيح ځكه علم ذى عقل نه دى بلكه ذى عقل مسمى د علم دى؟ **جواب:** دا اعتراض به هله وارديدو چې دا صفت بحاله وى ليكن دا صفت بحال متعلقه دى اى يعقل مسماه.

**سوال:** چې ته وائي چې اسم جامدُ مذكر علم يعقل وى نو بيا جمع كولي شي په جمع مذكر سالم سره والافلا دا قاعده ستا منقوضه شوه په ورقآء او سلمى سره دا چې علمين واخلي د رجلين لپاره نو جمع كولي شي په جمع مذكر سالم سره ورقاؤن او سلمون ويلي كيږي بالاتفاق باوجود د دې نه چې دا مذكر نه دى ځكه چې په اخير كې يې الف مقصوره او ممدوده راغلي دى او دا علامه د مؤنث ده؟

**جواب:** مراد د مذكر نه په دې مقام كې هغه اسم دى چې مجرد وى د تاء ملفوظه او مقدره نه نو احتراز راغي د طلحة نه دا نه شي جمع كولي په جمع مذكر سالم سره عند البصريين خلافا للكوفيين وابن كسيان ځكه كوفيينو جائز كړى دى طلحون بسكون اللام او ابن كسان جائز كړى دى طلحون بفتح اللام او داخل شو پكې ورقاء او سلمى چې علمين شي د سړو لپاره دا جمع كولي شي په واو نون سره بالاتفاق ځكه دا سم مذكر مجرد عن التاء دى ا وعلم او يعقل دى.

**سوال:** اسم چې متلبس وى په الف مقصوره او ممدوده سره او علم وگرځي د مذكر لپاره هلته جمعيت جائز دى په جمع مذكر سره نو كله چې يو اسم متلبس بالتاء وى او علم وى د هغې جمعيت ولي نه دى جائز په جمع مذكر سالم سره؟

**جواب:** ځكه دا تاء علامه كامله ده په تانيث كې نو جمعيت يې ممتنع دى په واو او نون سره او الف ممدوده او مقصوره كامل نه دى په تانيث كې نو جمعيت يې ممتنع نه دى په واو او نون سره.

**سوال:** تا ولي علامه كامله فى التانيث ده او الفين ولي كامل فى التانيث نه دى؟

**جواب:** ځکه چې الف ممدوده بدلیږي په واو سره او الف مقصوره حذف کیږي او ماقبل ترې فتحه پاتې کیږي په حین د الحاق د علامه د جمع مذکر سالم کې نو هغه علامه لاړه په خلاف د تاء التانیث نه چې هغه ته حذف کیږي.

**سوال:** د لته دی وویل چې تاء التانیث قوی ده په تانیث کې او په غیر منصرف کې دی ویلي وو چې الف مقصوره او الف ممدوده قوی دی د تاء نه ځکه چې اسم د الفین د وجې غیر منصرف کیږي او پواځې د تاء د وجې نه نه غیر منصرف کیږي نو په دې کې تناقض دی؟ **جواب:** هلته یې الفین ته قوی ویلي دی باعتبار اللزوم او دلته ورته ضعیف وایو په تانیث کې نو منافات نشته.

**سوال:** جمعیت د اسم جامد په جمع مذکر سالم سره ولې مشروط دی په شروط ثلاثه ؤ سره؟

**جواب:** جمع مذکر سالم اصل ده د باقي جموع نه او دا قسم مفرد اصل دی د باقي مفردات نه نو اصل اصل لره ورکړي شو لپاره د رعایت د تعادل او د انصاف.

**سوال:** تا د ـه جمع مذکر سالم ته اصل وویل او په بیان د اصنافو د اعراب د اسم کې دی جمع مکسر ته اصل ویلي دی نو دا خو منافات زاغي دی دواړو کې؟ **جواب:** شرافت او اصالت د اومورو اضافیونه دی په یو جهت سره جمع مذکر سالم اصل ده د مکسر نه او په بل جهت سره جمع مکسر اصل ده که دیته ګوري چې بنا د مفرد پکې روغه پاتې شوې ده نو جمع مذکر سالم اصل ده او که دیته ګوري چې د جمع مکسرې معنی مطابق ده د لفظ سره په تغیر کې او موافقت اولی دی د مخالفت نه نو جمع مکسره اصل ده مثال د جمع مذکر سالم چې جامع د دې شروط ثلاثه ؤ وی لکه زید شو دا اسم جامد دی او شروط ثلاثه پکې موجود دی چې مذکر دی او علم دی او یعقل دی نو جمع کولي شي په جمع مذکر سالم سره چې زیدون ویلي کیږي فان فقد فیه الکل کالعین چې دا نه مذکر دی نه علم دی نه یعقل دی او اثنان کالمراة چې مذکر نه دی او علم نه دی او یعقل دی او واحدة نحو اعوج علما للفرس چې دا مذکر دی او علم دی خو یعقل نه دی نو دانه شي جمع کولي په جمع مذکر سالم سره، او دارنګې دا اسم جامد به خالي وی د ترکیب نه نو احتراز یې وکړو د سیبویه نه ځکه دا اګر چې مذکر دی علم دی او یعقل دی خو خالي نه دی د ترکیب نه نو دا نه شي جمع کولي په جمع مذکر سالم سره پس شو جمعیت د اسم جامد په جمع سالم سره مشروط په شروط خمسه ؤ سره، علم، مذکر، یعقل، خالي د تاء التانیث نه، او خالي به وی د ترکیب نه.

**وان کان صفة:** **ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د شرطونو د جمع مذکر سالم نه په اسم جامد کې پس شروع یې وکړه په شرطونو د جمع مذکر سالم په صفت کې نو وی ویل وان کان صفة

**ترجمه:** کې چرې وو دغه اسم یو صفت د صفات نه لکه اسم فاعل اسم مفعول صفت مشبه او اسم تفضیل شو نو جمعیت د دې په جمع مذکر سالم سره مشروط دی په شروط ستة وو سره په دې شان سره چې دا صفت علم نه وو ګرځیدلي د چا لپاره ځکه ګه علم وو نو پس د علمیت نه دا داخل دی مذکر په اسم جامد کې او حکم د هغې تیر شوی دی (۱) **فمذکر** اول شرط کون : دغه اسم دی مذکر

ضاربة نه ځکه دا مؤنث دی او د مؤنث حکم وروستو را روان دی (۲)
په دې سره احتراز راغی د ضاربة نه ځکه دا مؤنث دی او د مؤنث حکم وروستو را روان دی
يعقل دويم شرط دا دی چې دا به وی صفت د مذکر عاقل نو په دې سره يې احتراز وکړو د مرفوع
منصوب مجرور نه ځکه دا اګر چې مذکر دی خو صفت نه دی د مذکر عاقل لپاره بلکه صفت دی
د مذکر غير عاقل لپاره چې اسم دی او صفت د مذکر غير عاقل نه شي جمع کولي په جمع مذکر
سالم سره بلکه جمع کولي شي په جمع مؤنث سالم سره لهذا د مرفوع منصوب مجرور جمع
مرفوعون منصوبون مجرورون نه راځي بلکه مرفوعات منصوبات مجرورات راځي کما مرفي
الايام والنساء (۳) **وان لا يکون افعل فعلاء** دريم شرط دا دی چې نه به وی دغه اسم چې صفت واقع
شوی دی د مذکر عاقل لپاره په وزن د افعل باندې چې مؤنث د هغې راځي په وزن د فعلاء باندې
مثال لکه احمرُ شو چې دا صفت دی د مذکر عاقل لپاره او په وزن د افعل باندې دی او مؤنث د دې
راغلي دی حمراءُ بروزن فعلآء، نو دا احمر نه شي جمع کولی په جمع مذکر سالم سره بلکه د دې
جمع راځي حُمر بروزن فُعلُ فلايقال احمرون لپاره د دې چې التباس رانه شي د افعل صفتی د افعل
تفضيلی سره لکه افضلون شو هلته صيغه د اسم تفضيل جمع شوې ده په جمع مذکر سالم سره که
دا افعل صفتی هم جمع شي نو التباس راځي
**سوال:** دفع د التباس خو په عکس سره هم راتله نو عکس يې ولې ونه کړو؟
**جواب:** عکس يې ونه کړو ځکه افعل تفضيلی کامل دی د صفتی نه ځکه هغه دلالت کوی په زيادت
باندې په خلاف د صفتی نه هغه دلالت نه کوي په زيادت باندې پس مناسب د دې سره دا دی چې دا
دی جمع کولي شي په جمع مکسرې سره لپاره د بقاء د وصفيت (۴) **ولا فعلان فعلی** څلورم شرط دا
دی چې نه به وی دغه اسم صفتی په وزن د فعلان باندې چې مؤنث د هغې راځي په وزن د فعلی
باندې مثال لکه سکران شو دا صيغه د صفت مشبه ده او صفت دی د مذکر عاقل لپاره او مؤنث د
دې راغلي دی سکری بروزن فعلی نو دا سکران نه شي جمع کولي په جمع مذکر سالم سره بلکه
جمع د دې راځي سُکاری فلايقال سکرانون لپاره د دې چې لازم نه شي التباس د جمع د هغه صفت
مشبه سره چې مؤنث يې راغلي وی په وزن د فعلانة باندې لکه ندمان شو د دې جمع راځي
ندمانون ځکه مؤنث يې راغلي دی ندمانة په وزن د فعلانة باندې اوس که سکران هم جمع شي په
واو او نون سره نو بيا دا پته نه لګي چې دا جمع د فعلان د فعلی ده او که جمع د فعلان ده فعلانة
ده، او عکس يې ونه کړو ځکه هغه صفت مشبه چې راځي په وزن د فعلان او مؤنث يې راځي په وزن
د فعلانة باندې هغه اصل دی د هغه صفت مشبه نه چې په وزن د فعلان وی او مؤنث يې په وزن د
فعلی وی د وجې د فرق نه بين المذکر والمؤنث بالتاء او اصل د فرق لپاره تاء ده لقوته فی التانيث
او الف مقصوره خلاف الاصل دی (۵) **ولامستويافيه** پنځم شرط دا دی چې نه به وی دغه اسم چې
صفت دی **مستويا** برابر **فيه** په دې صفت کې **مع المؤنث** د مؤنث سره او ضمير فيه راجع دی صفت ته په
تاويل د وصف سره مثال د صفت مشترک بين المذکر والمؤنث لکه جريح شو يقال امرأة جريح و

رجل جريح، يا لكه صبور شو يقال امرأة صبور و رجل صبور، ځكه دا صفت مشترك دى بين المذكر والمؤنث دا نه شي جمع كولي په جمع مذكر سالم سره او نه په جمع مؤنث سالم سره بلكه د جريح جمع جرحى راځي او د صبور جمع صُبُر راځي ځكه هر كله چې دا اسم مختص نه شو په مذكر او په مؤنث پورې پس نه دى حسن چې جمع كړي شي په داسې يو جمع سره چې هغه مختص دى په مذكر يا مؤنث پورې بلكه دا جمع كولي شي په داسې جمع سره چې مذكر او مؤنث دواړه پكې شريك وى وزن د فعيل دوه قسمه دى (۱) بمعنى الفاعل نحو شريف وكريم په دې كې فرق كولي شي په تاء سره يقال رجل شريف وامرأة شريفة ورجل كريم، وامرأة كريمة (۲) دويم وزن فعيل بمعنى المفعول دى لكه جريح شو په دې كې فرق نه شي كولي بين المذكر والمؤنث بالتاء بلكه دا مشترك دى بين المذكر والمؤنث او دغسې وزن فعول هم دوه قسمه دى (۱) بمعنى المفعول لكه ركوب شي په دې كې فرق كولي شي بين المذكر والمؤنث بالتاء يقال رجل ركوب امرأة ركوبة (۲) وزن فعول بمعنى فاعل لكه صبور په دې كې فرق نه شي كولي بين المذكر والمؤنث بالتاء بلكه دا مشترك دى بين المذكر والمؤنث.

**سوال:** وزن فعيل بمعنى الفاعل او وزن فعول بمعنى المفعول كې فرق كولي شي او په وزن فعيل بمعنى المفعول او وزن فعول بمعنى الفاعل كې فرق نه شي كولي نو عكس پكې ولې ونه كړي شو؟ **جواب:** عكس ونه كړي شو ځكه وزن فعيل بمعنى الفاعل او وزن فعول بمعنى المفعول كثير او شائع دى نو هلته فرق كول پكار دى نو فرق پكې وكړي شو په تاء سره او په وزن د فعيل بمعنى المفعول او وزن فعول بمعنى الفاعل قليل دى نو فرق پكې ونه كړي شو.

**سوال:** وزن فعيل بمعنى الفاعل دى كه بمعنى المفعول دى يا وزن فعول بمعنى الفاعل دى او كه بمعنى المفعول دى دا به د څه نه معلومو وو؟ **جواب:** د دې مشتق منه فعل ته وګوره كه لازم وو نو دا بمعنى الفاعل دى او كه متعدي وو نو بيا بمعنى الفاعل والمفعول دواړه راځي او دا به معلوميږي په قرينې د مقام سره **ولا بتاء التانيث** شپږم شرط دا دى چې نه به وى دا اسم مذكور مذكر متلبس په تاء التانيث سره مثال لكه علامة شو د دې جمع جائز نده په جمع مذكر سالم سره ځكه بيا لازميږي اجتماع د علامتين متبائنتين كه دا تا نه حذف كوى او كه دا تاء حذف كړي نو بيا لازميږي التباس د جمع د علام او علامة په مينځ كې ځكه دا پته نه لګي چې علامون جمع د علام ده او كه جمع د علامة ده **وتحذف نونه بالاضافة** حذف كولي شي په حذف واجبه دائمه سره نون د جمع مذكر سالم د وجې د اضافت د جمع مذكر سالم نه غير ته ځكه دا نون قائم مقام د تنوين دى او اضافت تقاضه كوى د اتصال د مابعد سره او نون تقاضه كوى د انفصال د مابعد سره په مابين كې منافات دى مثال نحو قوله تعالى ﴿ وَالْمُقِيمِي الصَّلَوٰةِ ﴾ اصل كې المقيمين وو او دا نون حذف شوى دى د وجى د اضافت نه وقوله تعالى ﴿ وَلَوْ تَرَىٰ إِذِ الْمُجْرِمُونَ نَاكِسُوا رُءُوسِهِمْ ﴾ اصل كې ناكسون وو نون حذف شوى دى د اضافت د وجى نه **وقد شذ نحو سنين و ارضين** دا جمله مستانفه جواب د سوال دى اعتراض

دا دی چې اسم جامد چې جمع کوی په جمع مذکر سالم سره نو جمعیت د دې مشروط دی
خمسه ؤ سره چې مذکر به وی علم به وی یعقل به وی او خالي به وی د تاء التانیث نه او د
دا قاعده ستا منقوضه شوه په سنون او ارضون سره چې جمع د سنة او ارض ده دا اسم
مذکر دی نه علم دی نه یعقل دی او په جمع مذکر سره جمع شوی دی، نو مصنف جواب وکړو
دا شاذ دی یعني سنون جمع دسنة او ارضون جمع د ارض راغلي ده خلاف القیاس او شاذ
قاعده جوړیږي او نه ورانیږي.

**سوال:** چې ته وائي سنین شاذ دی او حال دا دی چې صاحب د لباب سنون ته جمع قیاسي ویلي
څکه هغه دا قاعده بیان کړې ده چې هر هغه اسم جامد چې لام کلمه یې حذف شوی وی او عوض
یې تا راغلي وی نو دا جمع کولي شي په جمع مذکر سالم سره لکه سنون قلون سبون وغیره شو، د دې
قاعدې نه معلومه شوه چې شاذ فقط لفظ د ارضون دی او سنون جمع قیاسی ده نو تا ورته شاذ ولي
وویل؟ **جواب:** مختار عند المصنف مذهب د جمهورو دی او عند الجمهور لکه څنګه چې ارضون
شاذ دی نو سنون هم شاذ دی د وجې د عدم وجود د شروط د بنا د جمع مذکر سالم نه په دې کې.

## المـؤنـث

**ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د جمع مذکر سالم نه تفصیلا نو شروع یې وکړه په بیان د
جمع مؤنث سالم کې تفصیلا او هر کله چې جمع مذکر سالم اصل وه نو مقدم یې کړه په جمع مؤنث
سالم باندې اجمالا او تفصیلاً.

**ترجمه:** **المؤنث** جمع مؤنث سالم په صطلاح د نحویانو کې **ما** اسم دی داسې اسم **لحق** چې متصل شوی
وی **اخره** په اخیر د مفرد د دې اسم پورې **الف وتاء** الف او تا زائدتان.

(۲): یا جمع مؤنث سالم عند النحات **ما** یو اسم دی چې وی اخر د دې اسم الف او تا زائدتان.

**تشریح:** **سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟

**جواب:** ربط دا دی چې مخکې بیان د جمع مذکر سالم وو اوس بیان د جمع مؤنث سالم دی او غرض
د مصنف بیان د جمع مؤنث سالم دی.

**سوال:** جمع سالم دوه قسمه ده (۱) مذکر (۲) مؤنث، نو جمع سالم مذکر یې ولي مقدم کړه؟

**جواب:** هر کله چې جمع مذکر سالم اصل وه د جمع مؤنث سالم نه نو مقدم یې کړه په جمع مؤنث
سالم باندې اجمالا و تفصیلاً د وجې د اصالت نه.

**سوال:** مخکې تا ویلي وو چې المؤنث ما فیه الخ او دلته وائي چې المؤنث مالحق الخ او دا نه دی مګر
تناقض دی په کلامین د مصنف کې او تناقض خو باطل دی نو دا کلام د مصنف هم باطل دی؟

**جواب:** المؤنث کې الف لام عهد خارجي دی مراد د جمع مؤنث صحیح ده یعني په مابین د کلامین د
مصنف کې تناقض نشته څکه هغه تعریف د مؤنث وو او دا تعریف د جمع مؤنث سالم دی.

سوال: دا تعریف د جمع مؤنث سالم جامع نه شو خارج شو د ترې مسلمات ځکه د دې اخیر کې الف او تاء نه دی راغلي بلکه الف او تا په اخیر کې د مسلمات دی او دارنګې مانع نه شو د دخول د غیر نه داخل شو پکې مسلمة ځکه د دې په اخیر کې الف او تا راغلي دی مسلمات ترې جوړ شوی دی؟

جواب: (۱) لحق بمعنی کان دی یعنی فعل دی د افعال ناقصه غیر مشهورو نه او الف وتاء یې اسم دی او آخره خبر دی (۲) یا دا په خپله معنی سره دی او عبارت په حذف د مضاف سره دی ای اخر مفرده الف وتاء نو تعریف صادق شو په مسلمات باندې او مسلمة خارج شو.

سوال: تعریف د جمع مؤنث سالم جامع نه شو خپلو افرادو لره خارج ترې قائمات ځکه ته وائې چې جمع مؤنث سالم هغه اسم ته وائې چې په اخر د مفرد پورې یې متصل شوی وی الف و تاء او د قائمات په اخیر پورې الف او تا نه دی متصل شوی ځکه د دې مفرد قائمة دی او د هغې اخیر تا ده او دا په تا پورې نه دی متصل شوی بلکه په میم پورې متصل شوی دی؟

جواب: اخیر د قائمة میم دی او تاء په معرض د زوال کې ده اعتبار ورله نشته او تا حذف شوې ده د دې لپاره چې اجتماع د علامتی د تانیث را نه شي.

سوال: دا تعریف مانع نه شو د دخول د غیر نه داخل شو پکې مفرد چې مسعاة دی او دارنګې دا تعریف د جمع مؤنث سالم مانع نه شو د دخول د غیر نه داخل شو پکې جمع مکسره لکه قضات ابیات اموات شو ځکه ته وائې چې جمع مؤنث سالم هغه اسم ته وائې چې د هغې په اخیر کې الف او تا وی نو د سعاة او دعاة اخیر کې الف تا راغلي دی او مسعاة مفرد دی او دعاة نحاة وغیره جمع مکسر دی؟ جواب: مراد د الف او تا نه الف او تا زائدتان دی او مسعاة او قضاة وغیره کې الف او تا زائدتان نه دی بلکه مسعاة او قضاة کې تا زائده او الف اصلي دی او ابیات اموات کې الف زائد او تا اصلي ده لام کلمه ده ځکه دا جمع د بیت او د موت ده.

شرطه ان کان صفة: ربط: هرکله چې فارغ شو مصنف د تعریف د جمع مؤنث سالم نه نو شروع یې وکړه په بیان د شروطو د بنا د جمع مؤنث سالم کې نو وی ویل وشرطه الخ.

ترکیب: شرطه، مبتدا فان یکون خبر د مبتدا دی او فا زائده ده، او ان کان صفة وله مذکر جمله شرطیه ده، معترضه راغلي ده بین المبتدا والخبر او دا جزا نه غواړي (۲) شرطه مبتدا ان کان صفة وله مذکر شرط، فان یکون خبر د مبتدا محذوف دی، ای فذلك، دا جمله جزا د شرط، شرط سره جزا نه خبر د مبتدا چې شرطه دی (۳) شرطه مبتدا او خبر یې حذف دی چې ما یذکر دی او ان کان صفة تفصیل دی د هغه خبر لپاره په شان د د دې قول د الله تعالی ﴿ اَلزَّانِيَةُ وَالزَّانِي ﴾ دا مبتدا ده په اعتبار د حذف د مضاف سره او خبر یې حذف دی چې فیما سیتلی علیکم او مابعد تفصیل دی.

ترجمه: شرطه شرط لپاره د هغه اسم چې اراده کړې شوی دی جمعیت د هغې په جمع مؤنث سالم سره ان کان که چرته وو دغه اسم چې اراده کړې شوی دی جمعیت د هغې په جمع مؤنث سالم سره صفة مشتق چې هغه اسم فاعل اسم مفعول صفة مشبه او اسم تفضیل دی او حال دا دی چې وله

**مذکر** ثابت دی د دې مؤنث لپاره مذکر، او صفة سره يې احتراز وکړو د اسم جامد نه د هغې حکم وروستو راځي او **وله مذکر** سره يې احتراز وکړو د هغې نه چې د هغې لپاره مذکر نه وي د هغې حکم هم وروستو راروان دی اوس چې دا صفت وی او مذکر ورله هم وی او ته يې جمع کوی نو شرط يې دا دی چې وی به مذکر د دغه اسم مؤنث جمع کړي شوی په واو او نون سره نو بيا به ته دا صفت مؤنث جمع کوی په جمع مؤنث سره لپاره د دې چې فرع موافق شي د اصل سره په سلامتيا د واحد کې او لازم نه شي مزيت د فرع په اصل باندې مثال لکه ضاربات شو چې دا جمع د ضاربة ده او ضاربة اسم مؤنث دی صفت دی ځکه صيغه د اسم فاعل ده او مذکر ورله شته چې ضارب دی او جمع شوی دی په جمع مذکر سالم سره چې ضاربون دی نو مؤنث د دې به ته جمع کوی په جمع مؤنث سالم سره نو ضاربات به وائې او که دا اسم مؤنث صفت وو او مذکر ورله شته خو هغه نه دی جمع شوی په جمع مذکر سالم سره نو دا مؤنث هم نه شي جمع کولې په جمع مؤنث سالم سره لپاره د دې چې لازم نه شي مزيت د فرع په اصل باندې مثال لکه مرفوعة منصوبة او مجرورة، اسم مؤنث صفت دی او مذکر ورله شته چې مرفوع منصوب او مجرور دی خو هغه نه دی جمع شوی په جمع مذکر سالم سره ځکه صفت د مذکر لايعقل دی نو دا هم نه شي جمع کولې په جمع مؤنث سالم سره.

**سوال:** ته وائې چې اسم مؤنث صفت وو او د هغې لپاره مذکر وو او جمع شوی وو په جمع مذکر سالم سره نو دا به جمع کيږي په جمع مؤنث سالم سره، والا فلا هذا منقوض بقوله عليه السلام (ليس فی الخضراوات صدقة) چې د اجمع مؤنث سالم د حضراء ده او خضراء واحد مؤنث صفت مشبه دی مذکر يې شته چې احضر دی او دا نه دی جمع شوی په احضرون سره ځکه دا صفت د مذکر لايعقل دی او دا حضراء جمع شوی دی په الف او تاء سره؟

**جواب:** دا جمع د حضراء ده او دلته غلبه د اسميت راغلي ده په وصفيت باندې نو دا گرځيدلي دی اسم جامد **وان لم يكن له مذكر** او که د دې مذکر نه وو نو شرط يې دا دی **فان لايكون مجرد** چې نه به وی مجر عن تاء التانيث بلکه متلبس به وی په تاء التانيث سره لکه حائضة شو چې جمع يې حائضات راغلي ده، او که دا مجرد عن التاء نه وو نو نه شي جمع کولې لکه حائض او طالق چې جمع يې حوائض او طوالق راځي نه حائضات او طالقات لپاره د دې چې لازم نه شي التباس د جمع مؤنث سالم د متلبس بالتاء سره ځکه که دا جمع شي نو پته نه لگي چې دا جمع د حائض ده او که د حائضة ده.

**سوال:** التباس خو په عکس سره هم دفع کيږي نو عکس يې ولې ونه کړو؟

**جواب:** عکس يې ونه کړو ځکه هغ مؤنث په تاء لفظی سره اليق ده په جمع مؤنث سالم سره د مؤنث بتاء تقديري نه، حائض هغه زنانه ته وائې چې هغه قابله د حيض وی او بالفعل يې حيض نه وی او حائضة هغې ته وائې چې بالفعل يې حيض وی والا او که دا اسم مؤنث صفت نه وو بلکه اسم جامد وو **جمع** جمع کولې شي په جمع مؤنث سالم سره بې د شروط مذکورو نه سماعاً، **مطلقاً** دا منصوب دی بنابر مفعول مطلق د جمع لپاره باعتبار الموصوف المحذوف ای جمعا مطلقا (۲) يا مفعول

نیه دی په اعتبار د موصوف محذوف سره ای زمانا مطلقا . فیقال هندات فی هند ، وتمرات بفتح الميم فی تمرة وکسرات فی کسرة ، وغرفات فی غرفة.

سوال: ته وائي چې اسم مؤنث صفت نه وو بلکه اسم جامد وو نو دا جمع کولي شي بلاقید و شرط دا خبره صحیح نده ځکه جمع کول د اسم مؤنث په جمع مؤنث سالم سره مشروط دی په یو شرط سره چې سمع ده کوم چې مسموع وی هغه جمع کولي شي او کوم چې مسموع نه وی هغه نه شي جمع کولي لهذا مطلقا ویل نه دی صحیح؟

جواب: د مطلقا دا معنی نده چې بلاقید وشرط بلکه د دې معنی دا ده چې بي د شروط مذکورونه.

## جمع التکسیر

ربط: هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د نوع اول د جمع حقیقی اصطلاحی نه چې هغه جمع تصحیح وه نو شروع یې وکړه په بیان د نوع ثانی د جمع حقیقی اصطلاحی کې چې جمع تکسیر ده او هر کله چې جمع تصحیح اصل وه د تکسیر نه د وجی د سلامیتا د بناء دمفرد نه په جمع تصحیح کې پس مقدم یې کړه جمع تصحیح په تکسیر باندې اجمالا و تفصیلا.

ترجمه: **جمع التکسیر** جمع تکسیر په اصطلاح د نحویانو کې **ما هغه** جمع ده **تغیر بناء واحده** داسې جمع چې ورانه شوی وی بناء د مفرد د ده په تغیر داخلي سره لپاره د حصول د جمعیت او تغیر داخلي عام دی حقیقة وی او که حکما وی **کرجال وافراس** مثال د دې لکه رجال او افراس شو چې دا جمع مکسره ده ځکه بنا د مفرد د دې چې رجل او فرس دی روغه نده پاتې شوی بلکه په دې کې تغیر راغلي دی په زیادت سره لپاره د حصول د جمعیت.

تشریح: **سوال**: د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟

جواب: ربط دا دی چې مخکې بیان وو د نوع اول د جمع حقیقی اصطلاحی چې جمع تصحیح ده بکلا النوعین اودا بیان د نوع ثانی د جمع حقیقی اصطلاحی دی چې جمع مکسره ده او په معرفت د ربط سره غرض د مصنف هم معلوم شو چې بیان د نوع ثانی د جمع حقیقی اصطلاحی دی.

سوال: جمع حقیقی اصطلاحی دوه قسمه ده (۱) تصحیح (۲) تکسیر ، او دا دواړه سواسی دی نو تصحیح دی ولي مقدم کړه اجمالا وتفصیلا؟

جواب: هر کله چې جمع تصحیح اصل وه د تکسیر نه پس مقدم یې کړه جمع تصحیح په جمع تکسیر باندې اجمالا وتفصیلا د وجی د اصالت نه.

سوال: جمع تصحیح ولي اصل ده؟ **جواب**: د وجی د سلامیتا د بنا د مفرد نه په جمع تصحیح کې په خلاف د جمع مکسر نه دلته بنا د مفرد روغه نده پاتې شوی او تکسیر مصدر د باب تفعیل دی او مصدر مبني للمفعول دی په معنی د مکسر سره ځکه مونږه د دې معنی جمع مکسر سره کوو یو جمع تکسیر ده بالسین او بل جمع تکثیر ده بالثاء د دې په مینځ کې فرق دا دی چې جمع تکسیر عام ده ځکه دا مقسم دې او تکثیر خاص ده ځکه دا د هغې یو قسم دی.

**سوال:** ما تغير کې دا ما الفاظ عامونه دی دلته د څه نه عبارات دی؟ **جواب:** دا عبارت دی د جمع نه
**سوال:** ما عبارت د جمع نه ولې دی د لفظ، اسم، شئ نه ولې نه دی؟ **جواب:** (۱): څکه معتبر په تعریفات کې جنس قریب دی او جنس قریب دلته جمع ده او لفظ او شئ اجناس بعیده دی (۲) ما عبارت دی د جمع نه نه د غير نه څکه جمع تكسير او تصحيح اقسام د جمع دی او مقسم معتبر وی په تعریفات د اقسام کې او په تنكير د جمع کې یې اشاره وکړه موصوفيت د ما ته دلاته واقع في جانب الخبر.
**سوال:** ته وائې چې جمع تكسير اصطلاح کې ما تغير بنا واحده ته وائې دا تعريف مانع نه شو د دخول د غير نه داخل شو په کې جمع سالم لکه مسلمون او مسلمات دلته هم تغير راغلي دی په الحاق د علامات سره؟ **جواب:** د لته مراد د تغير نه مطلق تغير نه دی بلکه مراد تغير داخلي دی او په مسلمون او مسلمات کې تغير داخلي نشته بلکه تغير خارجي دی.
**سوال:** تعريف د جمع تكسير مانع نه شو د دخول د غير نه داخل شو پکې مصطفون او قاضون تمرات، كسرات، غرفات څکه په بنا دمفرد د دې جموعو کې تغير داخلي راغلي دی؟
**جواب:** جمع تكسير هغه جمع ته وائې چې په بنا د واحد دهغې کې تغير داخلي راغلي وی لپاره د حصول د جمعيت او په مصطفون او قاضون اوباقي مجموعو کې تغير داخلي لپاره د حصول د جمعيت نه دی بلکه دا راغلي دی پس د حصول د جمعيت نه د وجې د قانون صرفی نه.
**سوال:** دا تعريف د جمع تكسير جامع نه شو خپلو افرادو لره خارج شو ترینه فلك او هجان څکه ته وائې چې جمع تكسير هغې ته وائې چې ورانه شوی وی بنا د مفرد د دې په تغير داخلي سره او هلته تغير داخلي نه دی راغلي؟ **جواب:** تغير د بنا د واحد د جمع تكسير په تغير داخلي سره په جمع تكسير کې عام دی چې حقيقة وی لکه غلمان کې او که حکما وی لکه هجان او فلك کې دلته اگر که تغير داخلي حقيقة نشته خو حکما شته مثال د جمع تكسير لکه رجال او افراس شو چې رجال جمع د رجل ده او جمع مکسر ده څکه بنا د مفرد یې روغه نده پاتې شوی او افراس جمع د فرس ده.
**سوال:** مثال ذکر کولې شي لپاره د وضاحت د ممثل او وضاحت د ممثل راځي په مثال واحد سره نو تا دوه مثالونه ولې ذکر کړه؟ **جواب:** (۱): مثال بمنزله شاهد دی او شهادت د دوه معتبر دی څکه یې دوه مثالونه ذکر کړی دی (۲): رجال مثال د جمع مذکر مکسر دی او افراس مثال د جمع مؤنث مكسر دی په دې اعتبار سره چې فرس مؤنث سماعی دی (۳): رجال مثال د ذوی العقول دی او افراس مثال د غير ذوی القعول دی په دې کې یې اشاره وکړه تعميم ته چې جمع تكسيره عام ده په ذوی العقول غير ذوی العقول او مذکر او مؤنث ټولو کې راځي (۴) جمع تكسير دوه قسمه ده (۱) جمع قلته (۲) جمع کثرته، نو رجال مثال د جمع کثرت دی او افراس مثال د جمع قلت دی.
**جمع القلة: ربط:** دا جمله مستانفه جواب د سوال دی (۲): يا هر کله چې فارغ شو مصنف د تقسيم د مطلق جمع نه په اعتبار د لفظ سره نوعين ته چې مکسره او سالمه ده نو شروع یې وکړه په تقسيم د مطلق جمع کې ثانيا په اعتبار د معنی سره نوعين ته چې يو جمع قلته ده او بله جمع کثرته ده نو وی ويل جمع القلة.

**ترجمه:** جمع قلته راځي په استعمال د کلام د عربو کې په وزن د **افعل افعال افعلة وفعلة** بانديې مثال لکه افلس افراس ارغفة وغلمة، **والصحيح** او بل جمع صحيح ده بغير د الف لام نه بيا عامه ده که مذکر وی او که مؤنث وی د دې اطلاق کيږي د ثلاثه نه تر عشرة پورې لکه مسلمون او مسلمات ده بدون اللام **جمع کثرة** هغه جمع کثرته ده، د دې اطلاق کيږي د يولس نه تر الى ما لانهاية له پورې دا فرق په هغه ځاى کې دى چې دا ځان له ځانله جمع راغلي وه د مفرد لپاره لکه غلمة او غلمان شو او که داسې نه وه لکه ارجل او رجال نو دغه يوه جمع مشترکه ده بين القلة والکثرة او دا فرق بينهما فرق وضعى دى نه استعمالي ځکه احدهما مستعمليږي په مقام د اخر کې مجازاً مثال الکثرة مقام القلة، نحو قوله تعالى ﴿ ثَلٰثَةَ قُرُوٓءٍ ﴾ دا قروء جمع کثرته مستعمل ده په مقام د قلته کې چې ثلاثة دى مجازاً سره د وجود د جمع قلت نه چې اقراء دى او مثال دقلت مقام الکثرت قوله تعالى ﴿ كَمْ تَرَكُوا۟ مِن جَنّٰتٍ ﴾ جنات جمع قلته ده ځکه جمع مؤنث سالم مجرد عن اللام ده او مستعمل ده په مقام د کثرت کې او دا مقام د کثرت دى په دليل د کم خبرى سره ځکه کم خبرى د انشاء د تکثير لپاره راځي او جمع صحيح مذکر او جمع صحيح مؤنث کې مذاهب اربعه دى.

(۱): **صاحب د فصول اکبرى** ويلي دى موضوع مر قلت را.

(۲): **او ابن خروف** وائي چې د جمع صحيح د قلت او کثرت دواړو لپاره ده.

(۳): **او بعض** وائي چې دا د مطلق جمع لپاره دى بې د لحاظ د قلت او کثرت نه.

(۴): **او خوک** وائي چې دا جمع صحيح مذکر او مؤنث به خالي نه وي يا به متلبس باللام وى يا به مجرد وى که مجرد وو نو قلت لپاره دى والا د کثرت لپاره دى.

**تشريح: سوال:** (۱) د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دى او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دى؟

**جواب:** ربط دا دى چې دا جمله مستانفه جواب د سوال دى ځکه هر کله چې په دې تعدد د مثال د جمع کثرت کې اشاره وکړه نوعين د جمع تکثير ته چې دا دوه قسمه ده (۱) قلته (۲) کثرته رجال مثال د کثرت وو او افراس مثال د قلت وو نو معترض اعتراض وکړو چې قلت څه ته وائي او کثرت څه ته وائي نو مصنف جواب وکړو (۲) هر کله چې فارغ شو مصنف د تقسيم د مطلق جمع نه نوعين ته باعتبار اللفظ نو شروع يې وکړه په تقسيم د مطلق جمع کې نوعين ته باعتبار المعنى چې قلت او کثرت دى او په معرفت د ربط سره غرض د مصنف هم معلوم شو چې يا جواب د سوال دى يا تقسيم د مطلق جمع دى ثانيا باعتبار المعنى نوعين ته چې قلت او کثرت دى.

**سوال:** جمع القلة مبتدا ده او افعل افعال الخ ورله خبر دى او خبر محمول وى په مبتدا او دلته حمل نه دى صحيح ځکه دا خو جمع قلته نده بلکه اوزان د جمع قلتى دى؟

**جواب:** دا عبارت د په حذف د مضاف سره دى اى ابنية جمع القلة افعل افعال افعلة وفعلة يا دا عبارت په حذف د مضاف سره نه دى بلکه ذکر د اوزان او مراد ترينه موزونات دى نو معنى دا شوه

چې جمع قلته هغه جمع ته وائي چې راځي په وزن د افعل الخ باندې مثال د جمع قلت لکه اقلس افراس، ارغفة، او غلمة. شو اوزان د جمع قلت څلور دی کمافی قول الشاعر؛ شعر

جمع قلت چار راست ابنیه　　افعل افعال فعلة وارغفة

باتو گویم هریکی امثله　　افلس افراس غلمة ارغفة

**سوال:** افعل غیر منصرف دی د وجې د علمیت او د وزن فعل نه او افعلة او فعلة غیر منصرف دی د وجې د علمیت او د تانیث لفظی نه او افعال منصرف دی څکه دې کې صرف علمیت دی او بل سبب پکې نشته او حکم د غیر منصرف دا دی چې ان لاکسرة ولاتنوین نو افعلة فعلة افعل کې تنوین ولې راغلي دی؟ **جواب:** (۱). دا تنوین راغلي دی د وجې د تناسب بین الکلمتین نه چې افعال کې تنوین راغلي وو د وجې د انصراف نه نو په دې نورو کې تنوین راوړې شو لپاره د دې چې د افعال سره تناسب راشي (۲). په غیر منصرف کې تنوین تمکن نه راځي او دا تنوین تمکن نه دی بلکه دا راغلي دی مشاکلة چې مشاکلت راشي بین الاسم والمسمی او ماتن د جمع قلت او کثرت تعریف بالمثال کړې دی چې جمع قلت هغې ته وائي چې راځي په وزن د افعل الخ یا جمع سالم وی او کثرته د دې نه علاوه ده او تعریف بالمفهوم یې دا دی چې جمع قلته هغې ته وائي چې اطلاق یې د درې نه تر لس پورې کیږي او کثرته هغې ته وائي چې د هغې اطلاق کیږي د یولس نه الی مالانهایة له.

**سوال:** اوزان د جمع قلته یې بیان کړه نو اوزان د جمع کثرته یې ولې بیان نه کړه؟

**جواب:** اوزان د جمع قلت معدود محصور دی نو دا یې بیان کړه او اوزان د جمع کثرت غیر محصور او غیر منضبط وو نو هغه یې بیان نه کړه.

**سوال:** ته وائي چې جمع قلته دیته وائي چې اطلاق یې کیږي د درې نه تر لسو پورې او دا راځي په وزن د افعل الخ دا قاعده ستا منقوضه شو په ارجل او رجال سره څکه رجال جمع کثرت ده او اطلاق یې کیږي په ماتحت د احد عشر باندې هم او ارجل جمع قلته ده او د دې اطلاق د احد عشر نه په مافوق هم کیږي. **جواب:** دا فرق بین القلة والکثرت وضعاً هغه ځای کې دی چې یو مفرد جمع شوی وی جمع القلت او کثرت دواړو سره لکه اغلمة اوغلمة شو که د لسو پورې مراد وو نو غلمة به وائي او که زیات مراد وو نو غلمان به وائي.

**سوال:** ته وائي چې دا فرق هغه ځای کې دی چې مفرد جمع شوی وی په جمع قلت او کثرت دواړه سره، دا قاعده ستا منقوضه شو بقوله تعالی ﴿ ثَلٰثَةَ قُرُوْٓءٍ ﴾ دلته قروء جمع کثرت مستعمل شوې ده په ځای د قلته باندې سره د وجود د جمع قلت نه چې اقراء دی دارنګې په دې قول د الله تعالی کَمْ تَرَكُوْا مِنْ جَنّٰتٍ سره چې دلته جمع قلته مستعمل شوې ده په مقام د کثرته سره د وجود د جمع کثرت چې الجنات دی؟ **جواب:** دا فرق وضعی دی نه استعمالا احدهما مستعملیږي په مقام د اخر کې مجازا لکه دغه دوه مثالونه شو.

سوال: ابن حاجب صاحب جمع تصحیح د جمع قلت نه وګرځوله او شیخ رضی ویلي دي چې جمع تصحیح د مطلق جمع لپاره راځي قطع نظر د قلت او د کثرت نه؟ جواب: دا جمع تصحیح به خالي نه وي یا به سره د الف لام نه وي او یا به بغیر د الف لام نه وي که بې د الف لام نه وه نو دا راځي د قلت لپاره او که سره د الف لام نه وه نو دا راځي د مطلق جمع لپاره نو د مصنف خبره بنا ده په مجرد عن اللام کې او شیخ رضی خبره بنا ده په متلبس باللام کې نو منافات نشته.

سوال: لفظ د تراویح مفرد دی که مثنی دی که مجموع دی؟ جواب: تراویح جمع ده نه مفرد او مثنی او جمع د ترویحة ده او ترویحة کې تا د وحدة لپاره ده معنی یوځل دمه کول او د تراویح معنی ده [illegible] کرته دمه کول

سوال: تراویح جمع قلته ده که جمع کثرته ده؟ جواب: تراویح جمع کثرته ده نه جمع قلته ځکه جمع قلته راځي په اوزان مخصوصو باندې او دا د هغې نه نه دی او د جمع کثرت اطلاق کیږي په مافوق احد عشر باندې نو معلومه شوه چې تراویح دیولس نه زیاتي دي نه کم.

سوال: تراویح جمع کثرته ده نه قلته لیکن دا احدهما مستعمل کیږي په مقام د اخر کې نو دلته جمع کثرته مستعمل شوې ده په مقام د جمع قلته کې لهذا تراویح د یولس نه کمې دي نه زیاتي؟

جواب: جمع قلته او کثرته احدهما مستعملیږي په مقام اخر کې په وقت د عدم وجود د مانع کې او دلته مانع موجود دی ځکه تراویح جمع د ترویحة ده او ترویحة یوځل دمه کولو ته وائي، او دوه ځله چې دمه وکړي نو هغې ته ترویحتان وائي او د دوه نه زیات چې دمه وکړي هغې ته تراویح وائي او دمه کولي شي وروستو د څلور رکعتو نه او د څلور رکعتو نه وروستو چې دمه وکړي دا یوه ترویحه شوه، بیا د څلور نه وروستو ترویحتان شو، او بیا د هغې نه اخوا د څلور نه وروستو چې دمه وکړي نو تراویح شو نو معنی د تراویح انکار کوي چې د دې اطلاق وشي په مقام د قلت کې چې هغه اته رکعاته دي ځکه اته رکعته کې دوه ځله دمه کولي شي په هغې اطلاق د ترویحتان کیږي نه د تراویح

سوال: اته رکعتونه تراویح وایو ځکه مراد د جمع نه جمع لغوی ده او جمع لغویٰ مافوق الواحد ته وائي؟

جواب: (۱) اطلاق د جمع په دوه باندې مجازاً دی نه حقیقتاً او مجاز لپاره شرط تعذر د حقیقت دی او دلته حقیقت نه دی متعذر (۲) چې مراد د جمع نه جمع لغوی شي او جمع لغوی مافوق الواحد ته وائي د هغې اطلاق لکه څنګه چې په دوه باندې کیږي په مافوق د دوه باندې هم کیږي دا جمع لغوی نص نه دی په مثنی کې لهذا دعوی د خصم نه ثابتیږي په جمع لغوی سره چې شل رکعته تراویح نشته ځکه د جمع لغوی اطلاق په شلو باندې هم کیږي.

## المصدر

ربط: هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د اسماء غیر متصلونه نو شروع یې وکړه په بیان د اسماء متصلو کې چې هغه مصدر اسم فاعل اسم مفعول صفت مشبه او اسم تفضیل اسم مکان اسم زمان دی او هر کله چې مصدر اصل د مشتقاتو وو بنا په مذهب اصح باندې چې هغه مذهب د بصریانو دی نو مقدم یې وګرځوو دا مصدر په باقي اسماء متصلو باندې نو وي ویل المصدر مصدر صیغه د ظرف ده په

لغت کې ځاې د صدرو ته وائي او په اصطلاح کې **اسم** نوم دی **للحدث** د هغه معنی لپاره چې هغه قائم ... په غیر پورې برابره خبره ده چې صادر بالاختیار وی لکه ضرب او مشی یا نه وي لکه طول او قصر شو ... **الجاري علی الفعل** داسې حدث چې هغه جاري دی په فعل باندې په دې شان سره چې دا مصدر ... اشتقاق د فعل د ده نه واقع کیږي مفعول مطلق د دې فعل لپاره په یو د انواع ثلاثه ؤ سره چې هغه تاکیدی او نوعی او عددی دی نو جلست جلوسا، وجلسة وجلسة، دی سره یې احتراز وکړو د اسم مصدر نه لکه ضاربیت او مضروبیت ویلا او ویحا شو ځکه دا آګر که دلالت کوی په معنی مصدري باندې لیکن مشتق منه لپاره د مشتقات نه واقع کیږي او په مصدر او مفعول مطلق کې نسبت د عموم خصوص مطلق دی په اعتبار د صلاحیت سره مصدر احض مطلق او مفعول مطلق اعم مطلق دی او په اعتبار د فعلیت سره عموم خصوص من وجه دی، ماده اجمتاعی نحو ضربت ضربا ماده افتراقی د جانب د مفعول مطلق نه هلکت ویلا، ماده افتراقی از مصدر اعجبنی ضرب زید.

**تشریح: سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟

**جواب:** ربط دا دی چې هر کله فارغ شو مصنف د تقسیم د اسم نه خامساً انواع ثلاثه ؤ ته چې واحد مثنی او مجموع وو نو شروع یې وکړه په تقسیم د اسم کې سادساً نوعین ته چې یو اسم متصل بالفعل دی او بل غیر متصل بالفعل دی او په دې تقسیم سادس کې جهت د تقسیم کون د اسم دی متصل بالفعل په دې شان سره چې اسم په اعتبار د اتصال د ده سره په دوه قسمه دی (۱) متصل بالفعل چې دلالت کوی په معنی مصدري باندې (۲) غیر متصل بالفعل چې دلالت په معنی مصدري باندې نه کوي او اسماء متصله بالفعل اوه دی مصدر اسم فاعل الخ او د دې نه مخکې بیان د اسماء غیر متصلو وو او د دې نه بعد بیان د اسماء متصلو کوی په دې سره غرض د مصنف هم معلوم شو چې تقسیم د اسم دی باعتبار الاتصال الی النوعین.

**سوال:** اسماء غیر متصله اوه دی او مصنف خو دلته پنځه ذکر کړی دی اسم ظرف او اسم اله یې ولې نه دی ذکر کړي؟ **جواب:** دلته مصنف هغه اسماء ذکر کوی چې د اسماء عاملونه دی او اسم ظرف او اسم اله د اسماء غیر عاملونه دی.

**سوال:** په دې اسماء متصلو عاملو کې یې مصدر ولې مقدم کړو په دې نورو باندې؟

**جواب:** ځکه چې مصدر اصل د مشتقاتو دی بنا په مذهب اصح چې مذهب د بصریانو دی ځکه دا مشتق منه د مشتقاتو دی او مختار عند المصنف مذهب د بصریانو دی.

پدې مقام کې لابدي ده د معرفت د امور ستهؤ نه (۱) مفهوم لغوی (۲) مفهوم اصطلاحی (۳) وجه د تسمیه (۴) فرق په مینځ د مصدر او اسم مصدر کې (۵) نسبت بین المصدر والمفعول المطلق په اعتبار د فعلیت او صلاحیت سره (۶) معرفت د معنی الجاری علی الفعل، نو مصدر صیغه د اسم ظرف ده لغت کې جاي صدور ته وائي او په اصطلاح کې اسم للحدث الجاري علی الفعل ته وائي او دی مصدر ته مصدر ځکه وائي چې دا ځاې د صدور د باقي مشتقات دی ځکه باقي مشتقات د دې نه مشتق کیږي، او مصدر او په اسم مصدر کې فرق دا دی چې مصدر هغه اسم ته وائي چې دلالت کوی په معنی مصدري

باندې او مشتق منه د مشتقات واقع کیږي لکه ضرب او قتل، او اسم مصدر هغه اسم ته وائي چې دلالت کوي په معنی مصدري او مشتق منه د مشتقات نه واقع کیږي لکه ضاربیت مضروبیت ویلا او یحا شو.
او نسبت بین المصدر والمفعول دوه قسمه دی (۱) باعتبار الصلاحیت اوقوت (۲) باعتبار الفعلیت، نو په اعتبار د صلاحیت سره په مینځې د دې کې عموم خصوص مطلق دی مصدر احض مطلق او مفعول مطلق اعم مطلق په دې شان سره چې هر مصدر صالح د مفعول مطلق دی داسې مصدر نشته چې مفعول مطلق نه واقع کیږي او هر مفعول مطلق صالح د مصدر نه دی لکه هلکت ویلاً کې ویلاً مفعول مطلق دی او مصدر نه دی بلکه اسم مصدر دی او په اعتبار د فعلیت سره عموم خصوص من وجه دی (۱) ماده اجتماعی لکه ضربت ضرباً (۲) افتراقی از مفعول مطلق هلکت ویلا (۳) افتراقی از مصدر اعجبنی ضرب زید، دلته ضرب مصدر دی ځکه د لالت کوی په معنی مصدري اومشتق منه واقع کیږي د مشتقات او مفعول مطلق نه دی ځکه فاعل دی.
سوال: جاری علی الفعل څه ته وائي؟ **جواب:** زده کړه دا خبره چې یو جریان د مشتقی دی په ماقبل باندې د هغې مصداقونه څلور دی (۱): چې دا مشتقی صفت وی دماقبل نحو جاءنی رجل ضارب عمرا. (۲): چې حال وی د ماقبل نه نحو جاءنی زید راکباً. (۳): یا خبر د مبتدا وی نحو زید قائم. (۴): چې صله وی د ماقبل نه نحو جاءنی الضارب عمراً. (۲): او بل جریان د اسم فاعل دی په مضارع باندې چې دا اسم فاعل جاري دی په فعل مضارع باندې یعنی دا مشابه دی د فعل مضارع سره په تعداد د حروف او حرکات سکنات کې. (۳): دریم جریان د مصدر دی په فعل باندې د دې دا معنی ده چې دا مصدر مفعول مطلق واقع شوی دی د دې فعل لپاره په یو د طرق ثلاثه و سره چې هغه تاکیدی، نوعی، او عددی دی او دلته هم د جریان نه دغه معنی مراد ده.
**وهو من الثلاثی المجرد سماعی: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د تعریف د مصدر نه پس شروع یې وکړه په تقسیم د مصدر کې نوعین ته چې (۱) یو مصدر قیاسی (۲) اوبل مصدر سماعی دی نو وی ویل وهو من الثلاثی الخ.
**ترجمه: وهو** او دغه مصدر **من الثلاثی المجرد** دثلاثی مجردو نه **سماعی** سماعی دی په دې شان سره چې مجئیت د دې مسموع دی د عرب نه او د یو قاعدی لاندې نه دی داخل ولایقاس علیه غیره او عدد د مصدر سماعي د ثلاثی مجردو مشهور رسیږي (۳۲) ته لکه چې بیان شوی دی په کتابونو د علم صرف کې چې قتل، فسق، شغل، رحمة، نشدة، کدرة، دعوی، ذکری، بشری، مرطی لیان، حرمان، غفران، نزوان، طلب، حنق، صغر، هدی، ذهاب، صراف، سوال، ذهادة، درایة، بغایة، غلبة، سرقة، قبول، دخول، وجیف، قطیعة، صهوبة، قیلولة، کینونة، مملوکة مدخل، مرجع، مسحاة، محمدة، کراهیة، کاذبة، مفتون، قائم.
**ومن غیره:** او غیر د ثلاثی مجردو نه چې هغه ثلاثی مزید، رباعی مجرد، او مزید دی **قیاس** قیاسی راځي په دې شان سره چې داخل دی د یو قاعدی لاندې کوم چې مسموع دی د عرب نه نو په هغې

باندې نور هم قياس کولي شي د وجې د قاعدې نه مثال لکه هر هغه باب چې ماضي يې افعل په وزن وي نو مصدر به يې افعال وي لکه اسلام، اکرام، انعام، شو او هر هغه باب چې ماضي يې د استفعل په وزن وي مصدر يې راځي په وزن د استفعال باندې لکه، استخرج او چې ماضي يې په وزن فعلل وي نو مصدر په وزن د فعللة راځي له دحرجة او چې ماضي ئې په وزن د تفعلل وي نو مصدر به يې راځي په وزن د تفعللا باندې لکه تدخرج شو.

**تشريح: سوال**: د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟

**جواب**: ربط دا دی چې مخکې تعريف د مصدر وو او دا تقسيم دی او په دې سره غرض د مصنف هم معلوم شو چې تقسيم د مصدر دی نوعين ته (۱) سماعی (۲) قياسی

**سوال**: هو مبتدا دی او سماع خبر دی او من الثلاثی متعلق دی په سماع پورې او من غيره عطف دی په من الثلاثی او قياس عطف دی په سماع باندې او خبر محمول وی په مبتدا باندې او دلته حمل نه دی صحيح ځکه مصدر د ثلاثی مجردو سماع نه دی او د غير د ثلاثی مجردو قياس نه دی؟ **جواب**: (۱): دا محمول دی په الحاق د يا نسبتی سره ای سماعی وقياسی (۲) يا په اعتبار د حذف د مضاف سره ای ذوسماع و ذوقياس (۳) يا مصدر مبني للمفعول دی ای مسموع و مقيس او ده من الثلاثی او من غيره مينځ کې مقابله ده او دسماعی او قياسی مينځ کې مقابله ده دا يو صنعت دی د ضائع د بديع نه فائده کوی حسن عارضی په کلام بليغ کې.

**ويعمل عمل فعله: ربط**: هر کله چې فارغ شو مصنف د تعريف او د تقسيم د مصدر نه نو شروع يې وکړه په بيان د عمل د مصدر کې نو وی ويل ويعمل الخ

**ترجمه**: عمل کوی دا مصدر **عمل فعله** عمل په شان د فعل خپل هغه فعل چې مشتق شوی دی د دې مصدر نه په دې شان سره چې دا فعل مشتق به خالي نه وي يا به لازم وی او يا به متعدي وی که لازم وو نو دا مصدر به عمل د رفع کوی بنابر فاعليت فقط او که متعدي وو نو دا مصدر به عمل د رفع بنابر فاعليت او نصب بنابر مفعول به کوی **ماضيا** په حال کون د دې مصدر کې چې په معنی د ماضی وی **وغيره** او يا غير د ماضی وی، يعنی مصدر عمل کوی په شان د عمل د فعل خپل بی د اشتراط د زمانی نه مطلقا برابر خبره ده چې بمعنی الماضی وی نحو اعجبنی ضرب زيد عمرا امس يا بمعنی الحال وی نحو اعجبنی ضرب زيد عمرا الان يا بمعنتی الاستقبال وی نحو اعجبنی اکرام عمرو خالدا غداً ځکه دا مصدر عمل کوی په شان د فعل خپل د وجې د مناسبت او علاقی نه بنيهما يا علاقه د اشتقاق ده يا علاقه د کليت او د جزيت ده نه د وجې د مشابهت نه د فعل سره په شان د اسم فاعل او اسم مفعول ځکه يې د عمل لپاره زمانه شرط ونه ګرځوله.

**اذا لم يکن مفعولا مطلقا**: عمل د مصدر په شان د عمل د فعل خپل مشروط دی په يو شرط سره هغه دا دی چې نه به وی دا مصدر مفعول مطلق ځکه که دا مصدر مفعول مطلق وو نو دا فعل به خالي نه وي يا به مذکور وی او يا به محذوف وی که مذکور وو نو عمل متعين دی د فعل لپاره او که

محذوف وو نو بيا به خالي نه وي يا به محذوف وجوبا وی او يا بـه جوازاً کـه محذوف وو جوازا نو عمل متعين دی فعل لره لپاره د دې چې لازم نه شي اعمال د عامل ضعيف چې مصدر دی سره د وجود د عامل قوی نه چې فعل دی او که فعل حذف وو وجوبا نو جواز د وجهين دی يا عمل ثابت دی فعل لره لاصالته يا مصدر لره د وجی نيابت نه.

**ولايتقدم معموله عليه: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د عمل د مصدر نه نو شروع يې وکړه په احکامو د مصدر کې نو وی ويل ولايتقدم معموله عليه.

**ترجمه:** نه مقدم کيږي معمول د مصدر **عليه** په دې مصدر باندې مطلقا (۱) ځکه دا مصدر ضعيف العمل دی عمل کوی په معمول متاخر کې او په متقدم کې عمل نه شي کولی.

(۲) يا دا مصدر په حين د عمل کې ان مع الفعل سرہ وی او ان موصول حرفي دی تقديم د فعل په دې نه دی جائز نو تقديم د معمول په طريق اولی سره نه دی جائز ځکه بيا لازميږي تقديم د صله په موصول باندې او دا نه دی جائز.

**سوال:** ان موصول حرفي ولي دی؟ **جواب:** لکه څنګه چې موصول اسمی بی د صلی نه په ترکيب کې څه نه واقع کيږي نو دغسې موصول حرفي بی دصلی نه په کلام کې څه نه واقع کيږي او معمول د مصدر دوه قسمه دی (۱) يو ظرف دی (۲) دويم غير ظرف دی، که غير ظرف وو نو تقديم يې بالاتفاق ممتنع دی او که ظرف يا جار مجرور وو نو په تقديم د هغې کې خلاف دی بعض وائي نه دی جائز او بعض وائي جائز دی ځکه ظروفو کې توسع دی دا په منزلـه د محار مودی جائز دی په دې کې هغه څه چې ممتنع دی نورو کې د دې نظير لکه تقديم د خبر د حروف مشبه بالفعل په حروف مشبه بالفعل ممتنع دی بخلاف الظرف او کوم خلق چې تقديم د معمول ظرف او جار مجرور جائز وائي د هغوی دليل دا قول د الله تعالی دی ﴿ فَلَمَّا بَلَغَ مَعَهُ ٱلسَّعْيَ ﴾ ﴿ وَلَا تَأْخُذْكُم بِهِمَا رَأْفَةٌ ﴾ دلته السعی مصدر دی او معه ظرف متعلق دی په دغې پورې او مقدم شوی دی ځکه مراد د معيت نه معيت فی العمل دی نه معيت فی البلوغ يعنی دا معه چې متعلق شي نو لازميږي فساد د معنی او ﴿ وَلَا تَأْخُذْكُم بِهِمَا رَأْفَةٌ ﴾ کې بهما متعلق دی په رافة پورې ځکه مراد د نفی درأفة نه نفی د رافة مقيده ده نه د مطلق که دا متعلق شي رافة پورې نو نفی د رافة مقيده راځي او که متعلق نه شي نو نفی د رافة مطلقه راځي او دا نده صحيح، **ولايضمر فيه** (۱) او نه شي مستتر کولي معمول د مصدر چې هغه فاعل او نائب فاعل دی **فيه** په دې مصدر کې (۲) يا نه واقع کيږي مضمر په دی مصدر کې (۱) ځکه مصدر ضعيف العمل دی عمل کوی په معمول ظاهر او بارز کې نه په مستتر کې (۲) يا لپاره د دې چې لازم نه شي التباس په مابين د حذف د فاعل او استتار د فاعل کې (۳) يا لپـاره د دې چې لازم نـه شي التباس د اجتماع د تثنيتينو او جمعينو په نظر سره مصدر او فاعل ته. او تثنيت او جمعيت د فعل او شبه فعل په نظر سره فاعل ته دی نه په نظر سره فعل او شبه فعل ته او اضمار فيه مستلزم دی استتار د ضمير لره په دې مصدر کې پس حاجت پاتې نه شو ذکر کولو د بطريق الاختصار تـه د ولايضمر فيـه نه وروستو، لپاره د دې چې خارج شي ضربی زيدا

حاصل ځکه دا خارج شوی دی په قید د فیه سره او قیاس د مصدر په ظرف او اسم فعل باندې صحیح نه دی ځکه هلته ضمیر مستتر دی په اعتبار د متعلق د ظرف سره یا په اعتبار د هغه فعل سره چې اسم فعل په معنی د هغې سره دی.

**تشریح: سوال:** ولایضمر فعل مجهول د ي تقاضه د نائب فاعل کوی د دې نائب فاعل کوم دی؟
**جواب:** نائب فاعل د دې لپاره فیه جار مجرور دی لکه په چې نائب فاعل دی د المفعول لپاره په المفعول به کې یا نائب فاعل د دې لپاره ضمیر دی په دې کې مستتر دی چې راجع دی معمول د مصدر ته او مراد د معمول نه فاعل او نائب فاعل دی.

**سوال:** ته وائي چې ولایضمر فیه معمول نه شي واقع کولي په دې مصدر کې دا قاعده ستا منقوضه شوه ضربی زیدا قائما سره چې دلته ضمیر فاعل دی د مصدر لپاره لهذا د ولایضمر فیه نه وروستو قید د استتار ذکر کول پکار وو چې ولایضمر فیه بطریق الاختصار یې ویلي وی نو ضربی زیدا به خارج شوی وی؟ **جواب:** په قید د فیه سره ضربی زیدا خارج شو ځکه اضمار فیه نه دی مگر استتار د ضمیر دی په دې مصدر کې.

**سوال:** استتار د ضمیر په مصدر کې ولي نه دی جائز؟ **جواب:** استتار د ضمیر په مصدر کې جائز نه دی د درې وجونه (۱) مصدر ضعیف العمل دی، عمل کوی په بارز کې نه په مستتر کې (۲) حذف د فاعل د مصدر جائز دی اوس که مونږه ضمیر مستتر وگرځوو نو التباس راځي په ضمیر محذوف او مستتر کې بیا پته نه لگي چې فاعل د دې حذف دی که ضمیر مستتر دی په دې کې (۳) او که مونږه ضمیر مستتر اومنو نو بیا مستتر کیږي په تثنیه او جمع د مصدر کې هم قیاساً علی الواحد، بیا لازمیږي اجتماع د تثنیتینو او جمعینو چې یوه تثنیه د مصدر او د فاعل ده اوبله تثنیه د فعل ا وفاعل ده نحو ضرباتان ضربانون، او اجتماع د تثنیتین او جمعین نده جائز په خلاف د فعل او شبه فعل نه چې هلته تثنیه راغلي ده په نسبت سره فعل او فاعل ته نحو الزید ان ضربا الذیدون ضربوانڈ په نظر سره فعل او شبه فعل ته.

**سوال:** په دې مصدر کې ضمیر مستتر کوه ابدا په شان د ظرف او اسم فعل چې هغې کې ضمیر مفرد مستتر کولي شي نحو الذیدان فی الدار الذیدون فی الدار نو اجتماع د تثنیتین او جمعین نه راځي؟ **جواب:** د دې قیاس په ظرف او اسم فعل باندې باطل دی ځکه په ظرف او اسم فعل کې استتار راغلي په اعتبار د هغه فعل سره چې متعلق د ظرف دی یا په اعتبار د هغه فعل سره چې اسم فعل په معنی د هغې سره دی والمصدر لیس کذلك.

**ولایلزم ذکر الفاعل:** او لازم نه دی ذکر کول د فاعل د مصدر د مصدر سره لامضمرا ولامظهراً بلکه حذف د فاعل د مصدر جائز دی بی د سد مسد نه ځکه په مفهوم د مصدر کې نسبت فاعل ما ته نه دی معتبر نو په حذف د فاعل سره وجود د نسبت بدون الطرفین نه راځي، بخلاف الفعل و اسم الفاعل والمفعول، والصفة المشبهة، و اسم تفضیل چې د هغې د فاعل حذف بی د سد مسد نه نه

دی جائز ځکه د هغې په مفهوم کې نسبت فاعل ما ته معتبر دی، اوس که فاعل مونږه حذف کړو نو لازمیږي وجود د نسبت بدون الطرفین او دا محال دی.

**سوال:** مصدر مستقل شو ځکه نسبت پکې نه دی معتبر او فعل ته غیر مستقل وائي په اعتبار د معنی مطابقی سره ځکه نسبت پکې معتبر دې فاعلٌ مَا ته نو مشتقی ته ولې مستقل وائي د دې په مفهوم کې خو هم نسبت معتبر دی فاعلٌ مَا ته؟

**جواب:** معنی مطابقی د فعل حدث، نسبت زمان دی، او معنی مطابقی د شبه فعل حدث دی اونسبت الی الفاعل دی ځکه معنی د ضارب دا ده چې ذات مَن له الضرب یعنی وهونکی یو سړي نو فعل کې نسبت دی امر خارج ته چې فاعل دی او مشتقی کې نسبت دی جز داخل ته او نسبت الی الخارج سبب د عدم استقلال دی او نسبت جز داخل ته سبب د عدم استقلال نه دی مثال د مصدر چې فاعل یې حذف شوی دی لکه اعجبنی ضرب زیدا شو.

**ویجوز اضافته الی الفاعل:** جائز دی اضافت د مصدر فاعل خپل ته اګر که اعمال د مصدر منون غیر مضاف اولی او راجح دی (۱) ځکه د مصدر منون مناسبت دفعل سره زیات دی او د فعل اضافت نه کیږي نو د دې اضافت هم ونه شو (۲) فعل د لالت کوی په حدث مبهم باندې نو دا هم دلالت کوی په حدث مبهم باندې مثال د مصدر مضاف الی الفاعل قوله تعالی ﴿ وَلَوْلَا دَفْعُ ٱللَّهِ ٱلنَّاسَ بَعْضَهُم بِبَعْضٍ ﴾

**وقد یضاف الی المفعول** او لږ لږ مضاف کولې شي دا مصدر مفعول ته او مفعول عام دی چې مفعول به وی که ظرف وی او که مفعول له وی ځکه ماتن مفعول مطلق ذکر کړی دی او اضافت د مصدر مفعول ته قلیل دی په نسبت سره اضافت د مصدر الی الفاعل ته لان نسبة الحدث لمن وجد اظهر من نسبته لمن اوقع علیه، او مثال د مصدر چې مضاف دی مفعول ته نحو قوله تعالی ﴿ وَلِلَّهِ عَلَى ٱلنَّاسِ حِجُّ ٱلْبَيْتِ مَنِ ٱسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلًا ﴾ وکقولك ضرب اللص الجلاد، ضرب یوم الجمعة، ضرب التادیب، نو مصدر په اعتبار د اعمال سره درې قسمه شو (۱) اعمال د مصدر منون دا کثیر دی (۲) اعمال د مصدر مضاف الی الفاعل دا قلیل دی (۳) اعمال د مصدر مضاف الی المفعول او دا اقل دی.

او مصدر متعدي مضاف پنځه قسمه دی. (۱): چې مضاف وی فاعل ته او مفعول منصوب وروستو ذکر وی، نحو اعجبنی ضرب زید عمرا: (۲): چې مضاف وی فاعل ته او مفعول نه وي ذکر نحو عجبت من ضرب زید ای من ان ضرب زید عمرا: (۳): چې مضاف وی مفعول ته په دې شان سره چې فاعل حذف شوی وی او مفعول قایم شوی وی په مقام د هغې نحو عجبت من ضرب زید ای من ان یضرب زید. (٤): چې مصدر مضاف وی مفعول ته او فاعل مرفوع وروستو مذکور وی نحو عجبت من ضرب اللص الجلاد. (٥): چې مصدر مضاف وی مفعول ته او فاعل حذف شوی وی نحو قوله تعالی ﴿ لَّا يَسْـَٔمُ ٱلْإِنسَـٰنُ مِن دُعَآءِ ٱلْخَيْرِ ﴾ ای من دعائه الخیر، او هر چې دی مصدر لازم د هغې لپاره صرف یو صورة دی چې اضافة د مصدر کیږي فاعل ته نحو اعجبنی قعود زید،

**واعما له باللام قليل** اعمال د مصدر په حال کون د دې مصدر کې چې متلبس وي په لام تعريفي سره لږ دی عقلا او نقلا هر چې دی عقلا نو ځکه چې مصدر په حين د عمل کې ان مع الفعل سره وي او دخول د الف لام په فعل ممتنع دی نو د دې تقاضه دا ده چې دخول د الف لام دی ممتنع شي په دې مصدر باندې ليکن ممتنع نه دی بلکه جائز کړې شو ځکه فرق دی بين الشئ ومؤول بالشئ (۲): فعل دلالت کوی په حدث مبهم باندې او الف لام چې داخل شي نو په دې معنی مصدري کې تعين پيدا کوی يعنی دلالت کوی په حدث معين باندې نو مشابهت ذ دې دفعل سره کمزوري شو ځکه عمل د دې قليل دی، او هر چې دی نقلا نو عمل د مصدر متلبس باللام په فاعل او مفعول صريحی کې نه دی راغلي په کلام فصيح کې بلکه عامل موندلي شوی دی په جار مجرور کې نحو قوله تعالی ﴿ لَا يُحِبُّ اللَّهُ الْجَهْرَ بِالسُّوءِ ﴾ او مثال د عمل د مصدر متلبس باللام په مفعول صريحی کې لکه دا قول د متنبی شو!

کيف الرجاء من الخطوب تخلصا　　من بعد ما انشبن فی مخالبا

**ترجمه:** څه رنګي به وی اميد زما د خلاصيدو د حوادث نه وروستو د هغې نه چې خخ کړی دی خوادثو پنجي خپلي په ما کې شعر

ضعيف النکاية اعدائه　　يخال الفرار يراخي الاجل

**فان کان مطلقا فالعمل للفعل،** که چرته وو د امصدر خالص مفعول مطلق بي د سد مسد نه په مقام دفعل کې، پس عمل متعين دی دفعل لپاره نه د مفعول مطلق لپاره، لپاره د دې چې لازم نه شي عمل ورکول عامل ضعيف ته چې مصدر دی سره د وجود د عامل قوی نه چې فعل دی برابره خبره ده چې دغه فعل مذکور وی نحو ضربت ضربا زيدا يا محذوف وی په حذف جائز سره نحو ضربا زيدا، **وان کان بد لا منه.** که چرته وو دا مصدر مفعول مطلق بدل د دې فعل نه په دې شان سره چې فعل حذف شوی وی وجوبا او دا قائم شوی وی په مقام د هغې باندې نحو سقيا له، شکرا له، حمدا له، **فوجهان** په دې کې دوه وجې روا دی (۱) عمل فعل لره ورکول هم جائز دی ذ وجی د اصالت نه (۲) او عمل مصدر لره ورکول هم جائز دی د وجی د نيابت نه. يا د فوجهان معنی دا ده چې په دې عمل د مصدر کې دوه وجې دی (۱) دا مصدر عمل کوی د وجی د مصدريت نه (۲) يا عمل کوی د وجی د بدليت نه نو په دې قول د مصنف کې چې **فوجهان** دی وجهان دی، او هر کله چې د دې احکام مذکورو تعلق د مصدر غير مفعول مطلق سره زيات وو او د مصدر مفعول مطلق سره کم وو نو ذکر يې کړه وروستو د مصدر غير مفعول مطلق نه متصل بلا فصل، او مخکې د مصدر مفعول مطلق نه لپاره د دفع د توهم د تعلق د دې احکامو د قسمين سره علی السويه. حاصل دا دی چې د دې پنځه حکمونو تعلق د مصدر عامل قسم اول سره قطعی دی او د دويم سره قطعی ندی، نو تعلق يې د قسم اول سره زيات شو د ثانی نه نو ځکه دا جمله معترضه ذکر شوه بين النوعين نه فی اخر النوعين لپاره د دفع د توهم د تعلق د دې قسمين سره علی السويه.

## اسم الفاعل

ربط: هر كله چي فارغ شو مصنف د بيان د قسم اول د اسماء متصلو نه چي مصدر وو نو شروع يې وكړه په قسم ثاني د اسماء متصلو بالفعل كې چې اسم فاعل دى نو وى ويل اسم الفاعل، اسم فاعل په لغت كې نام كار كننده راگويند او په اصطلاح د نحويانو كې ما اسم دى داسې اسم چې مشتق كړې شوى دى من فعل د مصدر نه او وضع كړې شوى دى دغه اسم لمن د هغه ذات لپاره قام چې قائم شوې ده دا معنى مصدرې به په دغه ذات پور بمعنى الحدوث په حال كړن د دې مصدر كې چې دا كائن دى په معنى د حدوث سره وضعاً نه په طريقه د ثبوت سره.

تشريح: اسم فاعل كې لابدې ده د معرفت د امور سبعو نه (۱) مفهوم لغوى (۲) مفهوم اصطلاحى (۳) وجه د تسميه (٤) نسبت بين الفاعل و اسم الفاعل (٥) اوزان د اسم فاعل (٦) معرفت د عمل (۷) معرفت د احكام. نو اسم فاعل په لغت كې نام كار كننده راگويند، او په اصطلاح ما اشتق من فعل الخ ته وائې، او دې اسم فاعل اصطلاحى ته اسم فاعل ځكه وائې چې اسم فاعل لغت كې نام كار كننده ته وائې، نو دا اسم چې مشتق دى د فعل نه الخ دا هم نوم دى د كار كننده لپاره، او د اسم فاعل او فاعل په مينځ كې نسبت د تبائن دى باعتبار المفهوم او عموم خصوص من وجه دى باعتبار الوجود، ماده اجتماعى نحو جاءنى ضارب، دلته ضارب فاعل هم دى او اسم فاعل هم دى (۲): ماده افتراقى لز فاعل نحو جاءنى زيد. (۳): ماده افتراقى از اسم فاعل نحو جاءنى قائم.

او ما عبارت دى د اسم نه ځكه معتبر په تعريفات كې جنس قريب دى او جنس قريب د دې اسم دى (۲) يا دا اقسام د اسم دى او اسم مقسم دى او مقسم معتبر وى په تعريفات د اقسام كې او په تنكير د اسم كې اشاره ده موصوفيت د ما ته لانه واقع فى جانب الخبر، من فعل كې د فعل نه مراد مصدر دى بنا په مذهب د هغه چا چې اسم فاعل او اسم مفعول مشتق گوى براسها د مصدر نه. او فعل اصطلاحى مراد دى بنا په مذهب د هغه چا چې دا جوړ وى د فعل نه او فعل د مصدر نه.

سوال: لمن قام به په چا پورې متعلق دى؟ جواب: د دې په متعلق كې خلاف دى د شارح جامى او د نورو شارحينو، نور شارحين وائې چې دا ظرف لغوه دى متعلق دى په اشتق پورې ځكه اصل په ظرف كې ظرف لغوه دى، او شارح جامى صاحب وائې چې دا ظرف مستقر دى او متعلق يې محذوف را اباسي موضوعا بيا دا جار مجرور په اعتبار د متعلق محذوف سره حال دى، د ضمير د اشتق نه. هر تعريف كې لابدې وى د جنس او فصل نه ما عبارت دى د اسم نه، او دا جنس اشتق من فعل فصل اول دى په دې سره يې احتراز وكړو د اسماء غير مشتقو نه ځكه هغې ته عندهم اسم فاعل نه وائې، او لمن قام به فصل ثاني دى په دې سره يې احتراز وكړو د اسم مفعول، اسم زمان، اسم مكان، اسم اله، نه ځكه په اسم مفعول اسم زمان اسم مكان كې اسم آله معنى مصدرې نده قائمه شوى په ذات پورې بلكه اسم مفعول كې لمن وقع عليه ده او اسم مكان كې لمن وقع فيه ده او آله كې لمن وقع به ده، او بمعنى الحدوث سره يې احتراز وكړو د صفت مشبه او اسم تفضيل نه ځكه صفت مشبه لمن

قام به بمعنى الثبوت دی نه بمعنی الحدوث، او اسم تفضیل لمن قام به بمعنی الحدوث مع زیادة علی غیره دی، او اسم فاعل ما اشتق من فعل لمن قام به بمعنی الحدوث فقط ته وائي ځکه دا قاعده ده چې لام په صله د وضع کې راشي نو مدخول د لام کل معنی موضوع له وی، او اسم فاعل للمبالغه هم خارج شو ځکه دا تعریف د اسم فاعل لغیر المبالغه دی ځکه هغه هم لمن قام به بمعنی الحدوث مع زیادة دی، او که اومنم چې دا تعریف د اسم فاعل دی مطلقا، نو بیا دا اسم فاعل للمبالغه داخل دی په تعریف د اسم فاعل کې ځکه مراد د زیادت منفیه نه زیادت د معنی مصدري بالنسبت الی الغیر دی، او اسم فاعل للمبالغه دلالت کوی په مطلق زیادت د معنی مصدري باندې

**سوال:** دا تعریف د اسم فاعل جامع نه شو افرادو خپلو له خارج شو د دې نه ناهق، او صاهل، ځکه ته وائي چې اسم فاعل ما اشتق من فعل لمن قام به الخ ته وائي او مَنْ د ذوی العقول لپاره راځي او ناهق اوصاهل غیر ذوی العقول دی؟ **جواب:** دلته مصنف لمن قام کې غلبه ورکړي ده ذوی العقول له په غیر ذوی العقول باندې نو ځکه یې تعبیر کړي دی مَنْ سره.

**سوال:** دا تعریف د اسم فاعل جامع نه شو خارج شو ترې دائم، خالد، مستمر، ځکه دا دلالت کوی په دوام او استمرار نه په حدوث او تجدد باندې؟ **جواب:** دا داخل دی په تعریف د اسم فاعل کې ځکه دائم، خالد، مستمرَ دلالت کوی په حدوث د دوام او استمرار باندې، او په حدوث د خلود باندې.

**سوال:** دا تعریف جامع نه شو افرادو خپلو له خارج شو د دې نه عالم، خالق، رازق وضعا دلالت کوی لمن قام به باندې په طریقه د ثبوت سره نه په طریقه د حدوث او تجدد سره.

**جواب:** دلته مراد لمن قام به بمعنی الحدوث وضعا دی او عالم او خالق وضعا دلالت کوی په حدوث د معنی مصدري باندې او دوام او استمرار یکې راغلي دی د موصوف د وجی نه چې الله دی نه په اعتبار د وضع د واضع سره.

**وصیغته: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د تعریف د اسم فاعل نه نو شروع یې وکړه په صیغو د اسم فاعل کې نو وی ویل وصیغته الخ.

**ترجمه:** صیغه د اسم فاعل **من الثلاثي المجرد** (١) داسې صیغه چې کائن ده د ثلاثي مجردو نه **علی فاعل** دا راځي په وزن د فاعل باندې قیاساً او اطراداً (٢) په حال کون د دې صیغه د اسم فاعل کې چې دا کائن ده د ثلاثي مجردو نه **ومن غیره** او صیغه د اسم فاعل د غیر ثلاثي مجردو نه چې ثلاثي مزید رباعی مجرد او مزید فیه دی **علی صیغة المضارع** دا راځي په صیغه د مضارع باندې **بمیم مضمومة** سره د میم مضموم نه چې وضع کړي شوی دی په موضع د علامه د مضارع کې دا علامه د مضارع عامه ده چې مضموم وی او که نه وی **وکسر ما قبل الاخر** سره د کسرې د ماقبل اخر نه په دې شان سره چې دا ماقبل اخر د مضارع به خالي نه وي یا به مکسور وی او یا به نوی، که وو نو په خپل حال باقي پاتې کولي شي، او که مکسور نه وو نو کسره ورکولي شي، لکه باب تفعل تفاعل او تفعلل کې شو لپاره د دې چې التباس رانه شي د صیغی د اسم مفعول سره، او کسره عامه ده که

لفظا وی لکه مکرِم شو یا تقدیرا وی لکه مختار محمر او محمار کې شو، مثال د اسم فاعل د غیر ثلاثی مجردو نه لکه مدخل او مستغفر شو مدخل مثال د هغه اسم فاعل دی چې دا میم مضمومه وضع کړي شوی دی په موضع د علامه مضمومه کې او مستغفر مثال د هغه اسم فاعل دی چې میم مضمومه وضع کړي شوی دی په موضع د حرف مضارعت مفتوحه کې او هر چې دی منتن په کسرې د میم سره او منتن په ضمې د نون او تاء سره دا یو لغت دی په منتن کې او دا د هغې فرع ده نه اصل اوارث اسم فاعل د اورث او عاشب اسم فاعل د اعشب او مشهب اسم فاعل د اشهب او محصن اسم فاعل د احصن او ملقح د القح او محتر د احتر او مفلج د افلج فشاذ.

**تشریح: سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟

**جواب:** دا مخکې بیان د تعریف د اسم فاعل وو او دا بیان د صیغو د اسم فاعل دی، او په دې سره غرض د مصنف هم معلوم شو چې بیان د صیغو د اسم فاعل دی.

او اسم فاعل دوه قسمه دی (۱) از ثلاثی مجرد (۲) از غیر ثلاثی مجرد.

اسم فاعل د ثلاثی مجردو نه راځي په وزن د فاعل باندې قیاساً او اطراداً او د غیر نه راځي په وزن د مضارع باندې په دې شان سره چې علامه د مضارع حذف شي او میم مضمومه علامه د اسم فاعل راوړي شي، او علامه د مضارع عامه ده که مضمومه وی لکه مُکرِم کې یا مضموم نه وي لکه متضارب کې او ماقبل اخر له کسره ورکړي شي که مکسور نه وو لکه متضارب کې او که مکسور وو نو په خپل حال به پاتې شي لکه مکرِم، او تنوین علامه د اسم به په اخیر کې راوړي.

**سوال:** ته وائي چې اسم فاعل د غیر ثلاثی مجردو نه راځي په وزن د مضارع دا قاعده ستا منقوضه شوه په عاشب وارث وافع باندې من اعشب، اورث ایفع، چې دا درې واړه باب افعال دی او اسم فاعل په میم مضمومه سره نه دی بلکه بروزن فاعل دی دا رنګې مشهب، محصن، محتر، مفلج، (ای الفقیر المفلس) وفی الحدیث اطعموا مفلجیکم ای فقراء کم؛ دا ټولې صیغې د اسم فاعل دی از باب افعال په میم مضمومه سره لیکن ماقبل اخیر مکسور نه دی؟

**جواب:** دا شاذ دی او شاذ سره نه قاعده جوړیږي او نه ورانیږي.

**سوال:** ته وائي چې کسر ماقبل الاخر دا خبره منقوضه شوه په مختار، محمر، محمار، سره د دې ماقبل اخیر مکسور مکسور نه دی؟ **جواب:** دا کسره د ماقبل اخیر عامه ده چې لفظا وی او که تقدیرا وی، دلته مکسور دی تقدیرا نه لفظا څکه مختار اصل کې مختیر وو محمر اصل کې محمرِر او محمار اصل کې محمارر وو په اول کې یا بدل شوه په الف باندې په قاعدې د باع سره او په ثانی او ثالث کې ادغام شوی دی د وجې د وجود د قاعدې د ادغام نه چې وجود د حرفین متجانسین دی او التقاء د ساکنین علی حده راغلي ده او دا جائز ده په کلمه واحده کې.

**سوال:** ماقبل اخیر د اسم فاعل لره کسره ولې ورکولې شي؟

**جواب:** لپاره د دې چې لازم نه شي التباس د اسم فاعل د اسم مفعول سره.

عكس يې ونه کړو؟ **جواب:** (۱): عکس يې ونه کړو
**سوال:** التباس خو په عکس سره هم دفع کيږي عکس يې ولي ونه کړو؟ **جواب:** (۱): عكس يې ونه کړو
لپاره د موافقت د اسم مفعول د اصل خپل سره په فتحه د ماقبل اخير کې (۲) يا عکس يې ونه کړو
وجې د کثرت د انواع د اسم مفعول نه ځکه مفاعيل پنځه دي هغه تقاضه د تخفيف کوي نو تخفيف
ورله ورکړي شو په فتحې سره په خلاف د اسم فاعل نه چې دا متکثر الانواع نه دی ځکه فاعل يو دی.
**سوال:** مدخل او مستغفر دواړه مثال دی د هغه اسم فاعل لپاره چې ماقبل اخير د مضارع مکسور
په خپل حال باقي پاتې کړي دی پکار دا وه چې د مستغفر په ځای يې متضارب ذکر کړي وی نو
دا به مثال وو د هغه اسم فاعل لپاره چې ماقبل اخير د مضارع مکسور نه وی بلکه مفتوح وی او
اسم فاعل جوړولو کې ماقبل آخر لره کسره ورکړي وی؟
**جواب:** مستغفر يې ذکر کړو نه متضارب (۱) ځکه مدخل مثال د ادنى مرتبه د زيادت دی چې يو
حرف دی او مستغفر مثال د اعلى مرتبه د زيادت دی چې درې حرفونه دی.
(۲): يا اول مثال د هغه دی چې ميم مضمومه په ځای د علامه د مضارع مضمومه کې راغلي دی او
ثانی مثال د هغې دی چې ميم مضمومه په ځای د علامه مفتوحه د مضارع کې راغلي دی، او ماقبل
اخير د مضارع چې مفتوح راځي دا درې بابونه دی (۱) تفاعل (۲) تفعل از ثلاثی مزيد مطلق (۳) تفعلل
چې دا د رباعی مزيد فيه نه دی، او دا نورو بابونو کې ماقبل اخير د مضارع مکسور راځي د وجې د
قلت د مضارع نه چې ماقبل اخير د هغې مفتوح راځي نو مثال د اسم فاعل يې د هغې نه ترک کړي دی.
**سوال:** **وصيغة** مبتدا ده من الثلاثی صفت د صيغته دی او **على فاعل** خبر د مبتدا دی او من غيره
عطف دی په من الثلاثی او على صيغته المضارع عطف دی په على فاعل باندې نو عطف د
اسمين راغي په معمولين د عاملين مختلفين باندې بی د تقديم د جر نه په جانب د معطوف عليه
کې او هم په جانب د معطوف کې او دا جائز نه دی؟
**جواب:** وصيغته موصوف دی او من الثلاثی ورله صفت دی موصوف سره د صفت نه مبتدا ده او على
فاعل ورله خبر دی (۲) يا صيغته مبتدا او على فاعل ورله خبر دی او من الثلاثی حال دی د ضمير د
على فاعل نه او راجع دی مبتدا ته او تقديم د حال په عامل معنوی نه دی جائز بخلاف الظرف **ومن**
غيره خبر د مبتدا محذوف دی چې صيغته دی نو عطف د جمله راغلي دی په جمله باندې.
**ويعمل عمل فعله:** **ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د صيغو د اسم فاعل نه نو شروع يې وکړه په
احکامو د اسم فاعل کې او يو حکم د احکامو د اسم فاعل نه عمل د اسم فاعل دی نو وی ويل ويعمل الخ.
**ترجمه:** عمل کوی دا اسم فاعل **عمل فعله** په شان د عمل د فعل خپل په دې شان سره چې دا اسم
فاعل چې د کوم فعل نه جوړ دی نو دا به خالي نه وي يا به لازم وی او يا به متعدي وی که لازم وو نو
دا اسم فاعل به هم لازم وی او که متعدي وو نو بيا به خالي نه وي يا به متعدي وی مفعول واحد ته او
يا مفعولين ته يا مفاعيل ثلاثه ته نو دا به هم دغسې وی اول لکه ضارب، عالم، معلم، او ځنګه
چې فعل عمل کوی د نصب بنابر حاليت، تميز، مفعول له، مفعول فيه، مفعول معه، نو اسم فاعل هم

دغښې عمل کوی یعمل کې ضمیر راجع دی اسم فاعل ته هغه ورله فاعل، او عمل فعله مفعول مطلق نوعی دی، لیکن اسم فاعل چې عمل کوی په شان د عمل د فعل خپل دا مشروط دی په شروط ثلاثه ؤ سره.

(۱) دا به مکبر وی نه مصغر. (۲) **بشرط معنى الحال او الاستقبال:** په حال کون د دې اسم فاعل کې چې دا به متلبس وی په یو شرط سره چې هغه بعینه معنی ده هغه معنی چې بعینه حال او استقبال دی اضافت د شرط معنی ته او اضافت د معنی حال او استقبال ته اضافت بیانی دی، یعنی اسم فاعل عمل کوی په شان د عمل د فعل خپل چې دلالت کوی په معنی د حال یا استقبال سره په قرائن خارجیو سره ځکه اسم فاعل عمل کوی د وجې د مشابهت نه مضارع سره، او معنی د حال او استقبال شرط وګرځولي شو د دې عمل لپاره، لپاره د دې چې لازم نه شي مخالفت د اسم فاعل د مضارع نه په زمانه کې او حال عام دی که حقیقة وی او که حکایةً وی، **والا عتماد على صاحبه** او دارنګې اسم فاعل عمل کوی په شان د عمل د فعل خپل په حال کون د دې اسم فاعل کې چې متلبس وی په یو شرط سره چې هغه اعتماد د دې دی په هغه شئ باندې چې دا معنی مصدري قائمه شوې ده په هغه پورې (۲) یا اعتماد د اسم فاعل راغلي وی په ما جری علیه خپل باندې او صاحب او ماجری علیه د اسم فاعل څلور دی.

(۱) مبتداء (۲) ذوالحال (۳) موصول (۴) موصوف، موصوف عام دی که لفظا وی او که تقدیرا وی

مثال د اسم فاعل چې اعتماد یې راغلي وی په مبتداء باندې لکه زید ضارب ابوه.

او مثال د هغې چې اعتماد یې راغلي وی په موصول باندې لکه جاءنی زید الضارب ابوه.

او مثال د هغې چې اعتماد یې راغلي وی په ذوالحال باندې نحو جاء زید راکبا فرسه.

مثال د هغې چې اعتماد یې راغلي وی په موصوف مذکور باندې نحو جاءنی رجل ضارب ابوه. او مثال د هغې چې اعتماد یې راغلي وی په موصوف محذوف باندې نحو قوله تعالى ﴿وَالدَّوَآبِّ وَالْأَنْعٰمِ مُخْتَلِفٌ أَلْوَانُهُ﴾ مختلف عمل کړی دی د رفع بنابر فاعلیت په الوا نه کې ځکه د دې اعتماد راغلي دی په موصوف مقدر باندې چې صنف دی.

**اوالهمزة** یا به اعتماد راغلي وی د دې اسم فاعل په حرف استفهام باندې یا عام دی که همزه استفهامیه وی او که هل وی نحوا قائم زید او **ما** یائي اعتماد راغلي وی په حرف نفی باندې نحو ماقائم الذیدان او یا یې اعتماد راغلي وی په حرف ندا باندې نحو یا طالعا جبلا او دا شرط مصنف نه دی ذکر کړي د وجی د قلت استعمال نه او اعتماد اسم فاعل په یو د اشیاء مذکورو شرط دی د اعمال د اسم فاعل لپاره عند السیبویه والبصریین خلافا للاخفش والکوفیین ځکه هغوی د عمل د اسم فاعل لپاره اعتماد شرط نه وائي لکه عند هم بدون الاعتماد هم عمل کوی، دلیل د هغوی لپاره دا قول د شاعر دی! فخیر نحن عند الناس منکم

سيبويه او بصريين جواب کوي چې خير خبر مقدم دی او نحن مبتداء مؤخره ده او معمول د خير منکم مقدر او محذوف دی او دا وروستو منکم ورله بيان دی نو فصل بين العامل والمعمول په اجنبی سره رانغي

**تشريح: سوال:** بشرط معنی الحال جار مجرور دی او د جار مجرور لپاره لابدي وی د اعراب محلی نه د دې اعراب محلی څه دی؟ **جواب:** دا منصوب محلا دی بنابر حاليت په دې شان سره چې بشرط کې باء د تلبس لپاره ده او جار مجرور په اعتبار د متعلق سره چې متلبساً دی، حال دی د ضمير د يعمل نه چې راجع دی اسم فاعل ته، او شرط په دوه قسمه دی (۱) نحوی (۲) عرفی، شرط نحوی مدخول د حرف شرط ته وائي او شرط عرفی متقدم د شئ او موقوف عليه د شئ ته وائي، دلته شرط عرفی دی نه نحوی.

**سوال:** ته وائي چې دا عمل د اسم فاعل مشروط دی په شرط د معنی د حال او استقبال سره يعنی حال او استقبال شرط نه دی بلکه د دې حال او استقبال يو معنی ده د هغې لپاره يو شرط دی هغه شرط دی د دې عمل لپاره او دا معنی باطله ده ځکه د دې شرط حال او استقبال دی؟

**جواب:** دا اعتراض به هله راتلو چې دا اضافت لامی وی ليکن دا اضافت بيانی دی.

**سوال:** ته وائي چې عمل د اسم فاعل مشروط دی په معنی د حال او استقبال سره دا معنی باطله ده ځکه د دې لپاره بعينه حال او استقبال شرط دی نه معنی؟ **جواب:** دا اعتراض به هله راتلو چې اضافت د معنی الحال او الاستقبال ته اضافت لامی وی ليکن دا اضافت بيانی دی نه لامی يعنی په حال کون د دې کې چې متلبس وی په يو شرط سره چې هغه بعينه حال او استقبال دی.

**سوال:** د اسم فاعل د عمل لپاره حال او استقبال ولې شرط دی؟

**جواب:** دا عمل کوی د وجې د مشابهت نه د مضارع سره او مشابهت هله راځي چې بمعنی الحال والاستقبال شي که په معنی د حال او استقبال نه وي نو بيا مشابهت نشته نو عمل نه شي کولې په شان د عمل د فعل خپل.

**سوال:** دا چې بمعنی الحال اوالاستقبال شي نو دا ولې عمل کوی په شان دعمل د فعل خپل؟

**جواب:** اصل په افعالو کې اعمال دی او اصل په اسماؤ کې عدم اعمال دی نو هر کله چې دا مشابه شو د مضارع سره لفظا په تعداد د حروف او حرکاتو سکناتو کې **او معنیً** په حال او استقبال کې ليکن دومره فرق دی چې مضارع دلالت کوی په حال او استقبال باندې شطراً او اسم فاعل او مفعول دلالت کوی شرطاً او دا به معلوموی د قرائن خارجيو نه نو د دې کمال مشابهت د وجې نه اسم فاعل مضارع لره اعراب ورکړو او مضارع ورله اعمال ورکړو ځکه هل جزاء الاحسان الا الاحسان.

**سوال:** ته وائي چې اسم فاعل عمل کوی بمعنی الحال والاستقبال دا خبر ستا منقوضه شوه په ﴿وَكَلْبُهُم بَاسِطٌ ذِرَاعَيْهِ بِالْوَصِيدِ﴾ باندې دلته باسط عمل کړی دی او په معنی د حال سره نه دی بلکه بمعنی الماضی دی؟ **جواب:** حال عام دی که حقيقة وی او که حکايةً وی او دلته مراد حکايت الحال دی.

**سوال:** حكايت الحال څه ته وائي؟ **جواب:** حكايت الحال دېته وائي چې فرض كړي شي وجود د متكلم چې تلفظ ئې كړيدي اسم فاعل بمعنى الماضى موجود په زمانه د حال كې (۲) يا حكايت الحال دا معنى چې هغه زمانه د ماضى موجود فرض كړي شي فى الحال.

**سوال:** اسم فاعل بمعنى الماضى دى عمل كوى په شان د عمل د فعل خپل د وجې د وجود د كلام حكائي نه په هغې كې نو بيا دا ولې وائي چې اسم فاعل بمعنى الماضى والاستمرار وو نو عمل نه كوي؟ **جواب:** حكايت الحال علت ضروري دى او دا راځي پس د وجود د حكم نه كما فى قوله تعالى ﴿وَكَلْبُهُم بَاسِطٌ ذِرَاعَيْهِ﴾ اوس كوم ځاى كې چې اسم فاعل بمعنى الماضى دى او عمل يې ونه كړو په شان د عمل د فعل خپل نو دا حكايت الحال په هغې كې معتبر كوو د وجې د وجود د ضرورت نه چې وجود د حكم دى بې د شرط او د علت نه پس شو حكاية الحال په شان د عدل تقديري عدل تقديري معتبر كولې شي د وجې د ضرورت نه چې وجود د حكم دى بې د علت نه لكه ثلثة كې، او بې د ضرورت نه نه شي معتبره ولې لكه زيد عمرو كې شو نو د غسې حكايت الحال هم دى.

**سوال:** اعتماد د اسم فاعل لپاره د عمل كولو په مبتدا موصوف ذوالحال الخ ولې شرط دى؟

**جواب:** ځكه اسم فاعل دلالت كوى په معنى مصدري باندې اوس د دې معنى مصدري لپاره لابدي ده د داسې يو امر نه چې معنى مصدري ورپورې قائم شوى وى.

**سوال:** اعتماد په حرف نفئ حرف استفهام باندې ولې شرط دى؟

**جواب:** لپاره د كمال مناسبت د اسم فاعل د مضارع سره ځكه استفهام د فعل دا حداث سره وى او نفل دلالت كوى په حدث باندې؟

**سوال:** نه وائي چې دا عمل هله كوى چې اعتماد يې راغلي وى په يو د اشياء مذكورو، دا قاعده منقوضه شوه په ﴿وَالدَّوَابِّ وَالْأَنْعَامِ مُخْتَلِفٌ أَلْوَانُهُ﴾ دلته مختلف عمل د رفع كړي دى په الوانه كې او اعتماد يې نه دى راغلي؟ **جواب:** اسم فاعل عمل كوى د وجې د اعتماد نه په موصوف باندې او دا موصوف عام دى چې مذكور وى او كه محذوف وى دلته يې اعتماد كړى دى په موصوف محذوف باندې چې صنف دى.

**سوال:** دا قاعده ستا منقوضه شوه يا طالعا جبلا سره چې دا طالعا اسم فاعل دى عمل د نصب يې كړى دى جبلا كې او اعتما يې نه دى راغلي په يو د اشياء مذكورو باندې؟

**جواب:** دى طالعا عمل كړى دى په جبلا كې د نصب بنابر مفعوليت د وجې د اعتماد د ده نه په موصوف مقدر، دا اصل كې ايها الطالع جبلا وو اىّ موصوف الطالع ورله صفت دى بيا موصوف حذف شو او الف لام لري شو د وجې د دخول د حرف ندا نه نو يا طالعا جبلا شو.

**جواب:** (۲) يا دلته اعتماد راغلي دى په حرف ندا باندې.

**سوال:** هر كله چې اعتماد د اسم فاعل په حرف نداء باندې شرط وو د عمل لپاره نو دا يې ولې نه دى ذكر كړي؟ **جواب:** دائي نه دى ذكر كړي د وجې د قلت نه اسم فاعل عمل كوى په شان د عمل د

فعل خپل په دې شرط سره چې اعتماد یې راغلي وو په یو د اشیاء سته ؤ مذکورو عند الجمهور
خلافاً الکوفیین والاخفش چې د دوی په نزد باندې اسم فاعل بدون الاعتماد هم عمل کولي شي
او دلیل د دوی لپاره یو دا قول د الله تعالی دی ﴿ وَمِنَ النَّاسِ وَالدَّوَابِّ وَالْأَنْعَامِ مُخْتَلِفٌ أَلْوَانُهُ ﴾ چې
مختلف اسم فاعل دی عمل یې کړي دی د رفع بنابر فاعلیت په الوانه کې او اعتماد یې نه دی
راغلي نو معلومه شوه چې اعتماد ورله شرط نه دی.
(۲). دویم دلیل یې دا قول د شاعر دی: فخیر نحن عند الناس منکم
چه خیر مبتدا ده نحن ورله خبر دی او منکم جارمجرور متعلق دی په خیر پورې او خیر عمل کړي
دی په منکم کې بدون الاعتماد.
(۳). دریم دلیل د هغوی لپاره یا طالعا جبلا دی طالعا عمل کړي دی په جبلا کې د نصب بنابر
مفعولیت او اعتماد یې نه دی راغلي؟
**جواب:** د طرفه د جمهورو نه دا دی چې هر چې دی دا قول د الله تعالی ومن الانعام والدواب مختلف
الوانه دلته مختلف عمل کړي دی د رفع په الوانه کې او د دې اعتماد راغلي دی په موصوف مقدر
چې صنف دی او اعتماد په موصوف باندې عام دی چې مذکور وی او که مقدر وی او هر چې دی
دا قول د شاعر، فخیر نحن الخ نو خیر خبر مقدم دی او نحن مبتداء مؤخره ده، او معمول د خیر
حذف دی چې منکم دی او مابعد ورله تفسیر دی، یا جواب دا دی چې خیر صیغه د اسم تفضیل ده
عمل یې کړی دی په منکم کې چې ظرف دی بې د اعتماد نه ځکه په ظرف کې اسم جامد هم عمل
کولي شي چې په هغه کې بوی د معنی د فعل موجود وی نحو اسد علي وفي الحروب نعامة او دا
خو صیغه د اسم تفضیل ده دلالت کوی په معنی مصدري باندې نو خامخا عمل کوی په ظرف او
جارمجرور کې بدون الاعتماد او اعتماد په یو د اشیاء مذکورو مونږ ه شرط وایو د صفت لپاره، د
دې لپاره چې دا عمل وکړي په مابعد اسم کې د رفع بنابر فاعلیت یا نصب بنابر مفعولیت، او هر
چې دی یا طالعا جبلا نو دلته طالعا عمل کړي دی د وجې د اعتماد نه په حرف نداء باندې او دا نه
دی ذکر شوی د وجې د قلت نه، یا یې عمل کړي دی د وجې د اعتماد نه په موصوف مقدر باندې،
اصل کې ایها الطالع جبلا وو بیا ای حذف شو الخ، او اسم فاعل عمل کولي شي په شان د عمل د
فعل خپل په دې شرط چې بمعنی الحال والاستقبال وو عند الجمهور خلافا للکسائي چې هغه
وائي چې دا عمل د اسم فاعل په شان د عمل د فعل مشروط نه دی حال او استقبال سره بلکه
مطلقا عمل کوی که په معنی د حال او استقبال سره وی او که نوی، دلیل د هغه لپاره دا قول د الله
تعالی دی ﴿ وَكَلْبُهُم بَاسِطٌ ذِرَاعَيْهِ ﴾ چې باسط صیغه د اسم فاعل ده عمل د نصب یې کړي دی
ذراعیه کې او بمعنی الماضي دی نو معلومه شوه چې دا عمل کوی بې د اشتراط د زماني نه؟
**جواب:** د طرفه د جمهورو نه دا دی چې دا حال عام دی که حقیقة وی او که حکایة وی او دلته اګر
چې اسم فاعل حقیقة بمعنی الحال نه دی لیکن حکایة دی.

سوال: يو اسم فاعل دی هغه بمعنی الحال يا بمعنی الدوام والاستمرار دی او تاسو وائي چې دا عمل نه کوي نو بيا د هغه اسم فاعل سره به څه چل کوو هغه به څنګه ذکر کوو؟
جواب: **فان كان للماضى وجبت الاضافة معنى:** که چرته وو اسم فاعل متعدي **للماضى** لپاره د زمانه ماضى يعنى بمعنى الماضى وو على الاستقلال يا په ضمن د استمرار کې وو او اراده وکړي دا متکلم د ذکر کولو د مفعول وروستو د دې اسم فاعل نه **وجبت الاضافة** واجب دى اضافت د اسم فاعل مفعول خپل ته لپاره د حصول د ربط او لپاره ذ دې چې نه شي دا ترکيب په شان د ضم د حجر په جنب دشجر کې **معنى** په اضافت معنوى سره د وجې د عدم وجود د شروطو د اضافت لفظى نه چې هغه اضافت د صفت دى خپل معمول ته مثال د اسم فاعل چې بمعنى الماضى على الاستقلال وى او مضاف وى مابعد ته په اضافت معنوى سره نحو قوله تعالى ﴿ ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ فَاطِرِ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ﴾، او مثال د هغه چې بمعنى الماضى فى ضمن الاستمرار وى نحو قوله تعالى ﴿ ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴾ **خلافا للكسائي** خلاف ثابت دى کسائي لره چې په دواړو حکمونو کې خلاف دى د جمهورو نه
(۱): اضافت واجب نه دى ستا خوښه ده که کوى او که نه کوى ځکه شرط د عمل د اسم فاعل لپاره حال او استقبال نه دى بدليل قوله تعالى ﴿ وَكَلْبُهُم بَٰسِطٌ ذِرَاعَيْهِ ﴾
(۲): او اضافت چې کوى دا اضافت لفظى دى نه معنوى ځکه دا اضافت د صفت دى معمول خپل ته چې مفعول به دى ليکن مذهب د کسائي کمزوري دى په نسبت سره مذهب د جمهورو ته ځکه د کسائي په مذهب باندې اعتراض واردېږي په الحمد لله رب العالمين کې چې الله معرفه بالعلم موصوف دى او رب العالمين ورله صفت دى، او ته وائي چې دا اضافت لفظى دى نو اضافت لفظى خو مفيد د تعريف نه وى نو مطابقت رانغى بين الموصوف والصفة او دا باطل دى دارنګې الحمد لله فاطر السموات کې فاطر السموات صفت دى او الله معرفه بالعلم موصوف دى دا هم اضافت لفظى دى مفيد د تعريف دى نو مطابقت نشته، او په مذهب د جمهورو اعتراض نشته ځکه د هغوى په نزد باندې اضافت د **رب العالمين** ته اضافت معنوى دى او اضافت د **فاطر السموات** ته هم اضافت معنوى دى نو مطابقت شته په تعريف کې **فان كان للماضى** کې دا **ماضى** صفت د موصوف محذوف دى چې زمانه ده او په كان کې ضمير مستتر راجع دى اسم فاعل متعدي ته نو دى سره يې احتراز وکړو د اناقائم امس نه ځکه دا اسم فاعل په ضمير مستتر کې عمل کوى بې د اشتراط د زمانې او اشتراط د زمانه شرط دى لپاره د رفع او نصب په اسم ظاهر کې
سوال: يو اسم فاعل دى چې راغلي دى د داسې فعل نه چې هغه متعدي دى مفعولين ته يا مفاعيل ثلاثه ته او اسم فاعل بمعنى الماضى دى نو د دې اضافت چې وکړو مفعول اول ته نو د باقي مفاعيل سره به څه چل کوو؟
جواب: **فان كان له معمول اخر:** که چرته وو د دې اسم فاعل لپاره چې مضاف کړي شوى دى يو مفعول ته معمول بل معمول غير د مفعول نه چې اضافت د اسم فاعل ورته شوي دى **فبفعل مقدر** نو دا معمول دى

په فعل مقدر سره یا انتصاب د دې په فعل مقدره سره دی نه اسم فاعل سره ځکه دا اسم فاعل په معنی د ماضی سره دی او دا عمل د نصب نه شي کولي مثال لکه **زيد معطى عمرو درهما امس** شو چې درهما منصوب دی بنابر مفعول به د فعل مقدر لپاره چې اعطى دی او هغه يې حذف کړې دی جوازا د وجود د قرینې دالی نه په تعین د محذوف باندې چې سوال مقدر دی ځکه کله چې زيد معطى عمرو وویل نو سائل سوال وکړو چې ما اعطاه نو متکلم جواب وکړو چې اعطاه درهما.

**سوال:** فان كان له معمول اخر شرط دی او فبفعل مقدرٍ د جزا ده او جزاء د شرط نه وي مگر جمله وي او فبفعل مقدرٍ خو مفرد دی؟

**جواب:** فبفعل مقدرٍ په اعتبار د متعلق محذوف سره خبر دی د مبتدا محذوف لپاره فيكون التقدير فهو معمول بفعل مقدر، او فا نتصابه بفعل مقدر مبتدا مع الخبر جمله جزاء د شرط ده او جمله اسميه چې جزا واقع شي نو لابدي ده د فاء نه ځکه فاء راغلي ده.

**سوال:** تـه وائي چې اسم فاعل عمل كوى د دې لپاره حال او استقبال شرط دی دا قاعده ستا منقوضه شوه مررت بالضارب ابوه زيدا امس سره دلته ضارب په معنى د ماضى سره دی دليل په دې باندې امس دی او دی عمل کړی دی په ابوه کې د رفع او زيدا کې د نصب؟

**جواب: فان دخلت اللام استوى الجميع:** (۱): الجميع منصوب دی مفعول بـه ده د استوى او ضمير پکې مستتر دی راجع دی لام ته.

**ترجمه:** که چرته داخل شي الف لام موصولي په اسم فاعل باندې برابر دی اسم فاعل په ټولو ازمنو کې په عمل کولو کې ځکه دا اسم فاعل په حقيقت کې فعل دی او عدول شوی دی د صيغې د فعل نه صيغې د اسم فاعل ته د وجې د کراهت د دوی نه ادخال د الف لام لره په فعل باندې او فعل قوی دی په عمل کې مطلقا عمل کوی خواه بمعنى الماضى وی او که بمعنى الحال يا استقبال وی (۲) الجيمع مرفوع دی فاعل دی د استوى لپاره بيا معنى دا ده چې برابر دی ازمنه ثلاثه په دې شان سره چې مانع د اعمال نه نه دی.

**وما وضع منه للمبالغة: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د احكامو د اسم فاعل لغير المبالغه نه نو شروع يې وکړه په احكامو د اسم فاعل للمبالغه کې نو وی ويل وما وضع الخ د دې عبارت دوه ترجمې دی. (۱): **وما** هغه صيغه **وضع** چې وضع کړې شوی ده **منه** د دې اسم فاعل ده (چې دا من من بياني شي) **للمبالغة** د مبالغې لپاره **كضراب وضروب الخ** لكه ضراب الخ شو **مثله** دا په شان د هغه اسم فاعل دی چې د مبالغه لپاره نه دی په عمل او شرائطو کې نو تشبيه د يوی نوعی راغله د بلې نوعی سره نه تشبيه د شئ بنفسه. (۲): **ما** هغه صيغه **وضع** چې وضع کړې شوې ده **للمبالغة** د مبالغې لپاره **منه** دا خارج ده د اسم فاعل نه (چه دا من من ابتدائيه شي) **مثله** دا په شان د اسم فاعل ده په عمل کې او شرائطو کې عندالبصريين او کوفيان وائي عمل نه کوي د وجه د انتفاء د علة د عمل نه چې هغه مشابهة د اسم فاعل دی مضارع سره، او شرائطو کې نو تشبيه د غير راغله د اسم فاعل سره او په دې دوه ترجمو سره دفع د اعتراض وشوه.

**سوال:** معترض د من نه من ابتدائيه اخلي بيا وائي چې د منه نه معلومه شوه چې صيغه د مبالغې د افرادو د اسم فاعل نه ده او **مثله** نه معلوميږي چې صيغه د مبالغي د افرادو د اسم فاعل نه نده ځکه مثل راځي د تشبيه لپاره او تشبيه تقاضه د مغائرت کوي لهذا په کلام د مصنف کې تناقض راغي، يا اعتراض داسې وارد کيږي چې صيغه د مبالغه کې دوه مذهبه دي، بعض وائي دا د افرادو د اسم فاعل نه ده او بعض وائي چې نده، او ستا عبارت د يو سره هم نه لګي؟

**جواب:** په دې اوله ترجمه سره دا عبارت د مصنف ولګيدو د هغه چا د مذهب سره چې مبالغه د افرادو د اسم فاعل نه وائي او په دې دويمه ترجمه د هغه چا د مذهب سره ولګيدو چې د افرادو د اسم فاعل نه يې نه وائي.

**سوال:** اسم فاعل عمل کوي د وجې د مشابهت نه د فعل مضارع سره نو دا چې د مبالغي لپاره راشي نو مشابهت لفظي د دې فوت شو د فعل سره نو بيا دا څنګه عمل کوي په شان د عمل د فعل خپل؟

**جواب:** مبالغه او زيادت د معنى مصدري قائم شوي دي په ځاى د مافات باندې چې هغه فوت د مشابهت لفظي دي.

**سوال:** بيا خو پکار ده چې اسم فاعل هم عمل وکړي په شان د عمل د فعل خپل ځکه هغې کې هم زيادت راغلي دي په معنى مصدري کې هغه دي نائب شي په ځاى د مافات باندې چې هغه فوت د مشابهت لفظي دي؟ **جواب:** زيادت د معنى مصدري دوه قسمه دي (١) يو لذاته او في نفسه دي دا صفت د کمال دي او مانع د عمل نه نهٔ دي (٢) او دويم زيادت د معنى مصدري دي په نسبت سره غير ته او دا مانع د عمل دي.

**پس زده کړه دا خبره** چې اسم فاعل په دوه قسمه دي (١) للمبالغه (٢) لغير المبالغة.

**وجه د حصر:** دا اسم فاعل به خالي نه وي يا به دلالت کوي په هغه ذات باندې چې قائم شوې ده دا معنى مصدري په طريقه د حدوث سره بې د زيادت نه يا سره د زيادت نه مطلقا که دلالت يې کوو بې د زيادت نه نو اسم فاعل لغير المبالغه دي، او که دلالت يې کوو سره د زيادت نه مطلقا نو دا اسم فاعل للمبالغه دي، او که دلالت يې کوو سره د زيادت نه په نسبت سره غيرغه نو دا صيغه د اسم تفضيل ده او اوزان د اسم فاعل للمبالغه لس دي پنځه دلته ذکر دي (١) ضراب (٢) ضروب (٣) مضراب (٤) عليم (٥) حذر، او نور پنځه مصنف نه دي ذکر کړي چې هغه دا دي (٦) مجزم (٧) منطيق (٨) شريب (٩) ضحکة (١٠) قلب. **والمثنى والمجموع مثله** او مثنى د اسم فاعل خوا که د مبالغي لپاره وي او که د غير د مبالغي لپاره وي او جمع د اسم فاعل للمبالغه يا لغير المبالغه.

**سوال:** رجلان او رجال تثنيه او جمع دي دا خو په شان د اسم فاعل نه دي؟

**جواب:** اللام للعهد المراد منه مثنى اسم الفاعل ومجموعه.

**سوال:** ته وائي چې مثنى اسم فاعل او جمع په شان د اسم فاعل دي تشبيه د شئ بنفسه راغله؟

**جواب:** المراد من اسم القاسم اسم فاعل مفرد تشبيه د يو نوعى راغله د بلى نوعى سره.

**سوال:** ته وائي المثنى والمجموع مثله تثنيه دلالت كوي په دوو باندې او جمع دلالت كوي ثلثه او مافوق باندې او واحد دلالت كوي په يو باندې؟ **جواب:** څۀ د مثنى او مجموع تشبيه په دلالت كې نه وركوم بلكه تشبيه وركوم په عمل او اشتراط كې.

**سوال:** تشبيه په اعتبار دوجه شبه سره دوه قسمه وه، مجمل او مفصل دا كوم يو قسم دى؟

**جواب:** دا تشبيه مجمله ده څكه وجه د شبه ئې نده ذكر كړې.

**سوال:** تشبيه مجمله دوه قسمه ده يو خفى دويم ظاهره دا كوم يو قسم ده؟ **جواب:** دا ظاهره.

**سوال:** تشبيه په اعتبار د تعدد د طرفينو سره څلور قسمه ده (۱) تشبيه ملفوف (۲) تشبيه مفروق (۳) تشبيه تسويه (۴) تشبيه الجمع دا كوم قسم ده؟ **جواب:** دا تشبيه التسويه ده، كقول الشاعر:

صدغ الحبيب وحالى كلاهماكالليالى

**سوال:** تشبيه په اعتبار د اداتو د تشبيه سره دوه قسمه ده (۱) مؤكد (۲) مرسل دا كوم يو قسم دى؟

**جواب:** دا تشبيه مرسل ده **مثله** په شان د اسم فاعل مفرد دى په عمل او اشتراط كې د وجې د عدم عروض د خلل نه صيغه د مفرد ته په اعتبار د ذات سره د وجې د الحاق د علاماتو د تثنيه او جمع نه نحو الذيدان ضاربان عمروأ ضاربون عمروأ الان او غدأ او امس، چې مثنى او مجموع د اسم فاعل صله د الف لام موصولي واقع شي نو عمل كوى په شان د عمل د فعل خپل بى د اشتراط د زمانى نه

**ويجوز حذف النون مع العمل والتعريف تخفيفا:** او جائز دى حذف كول د نون د مثنى او مجموع د اسم فاعل نه اللام فى النون للعهد، نون په اتۀ قسمه دي دلته مراد نون المثنى والمجموع دى **مع العمل** سره د عمل كولو د اسم فاعل نه په معمول خپل كې په نصب سره بنابر مفعوليت **والتعريف** او سره د تعريف د الف لام نه **تخفيفا** لپاره د حصول د تخفيف د وجې د طول د صلى نه تخفيفاً منصوب دى بنابر مفعول له د حذفاً لپاره نحو قوله تعالى ﴿وَٱلْمُقِيمِي ٱلصَّلَوٰةِ﴾ په قرات د هغې چا چې الصلوة منصوب وائي بنابر مفعوليت، دا نون د جمع مذكر نه حذف شوى دى بې د اضافت نه لپاره د حصول د خفت د وجې د طول د صلى نه او دا حذف د نون د مثنى او د جمع د اضافت د وجې نه جائز نه دى بلكه واجب دى لكه والمقيمى الصلوة شو بنا په قرأة مشهور باندې څكه دلته ورسره مصنف مع العمل قيد ولګوو، او مراد د عمل نه عمل د نصب دى بنابر مفعول به اما حذف د نون د جمع بدون الاضافت بى د تلبس د اسم فاعل نه په الف لام سره ضعيف دى لكه راغلي دى په دې قول د الله تعالى (وذائقوالعذاب) كې په نصب د العذاب سره او دا قرات د هغې قبيلې نه دى چې لا اعتماد عليه څكه ورسره مصنف التعريف قيد ولګوو.

**سوال:** اسم فاعل چې متلبس باللام وى او مابعد اسم كې يې عمل كړي وى بنابر مفعول به نو دا نون د مثنى او د جمع حذف كول ولي جائز دى؟

**جواب:** تخفيفا لپاره د حصول د تخفيف د وجې د طول د صلې نه لکه صدر د صلې حذف شوی دی د وجې د طول د صلې نه تخفيفا په دې قول د الله تعالى ﴿ وَهُوَ الَّذِي فِي السَّمَاءِ إِلَٰهٌ وَفِي الْأَرْضِ إِلَٰهٌ ﴾ کې دغسې دلته نون د جمع مذکر سالم حذف شوی دی طول د صله د وجه نه بدون الاضافة

## اسم المفعول

**ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د نوع ثاني د اسماء متصله بالفعل نه چې اسم فاعل وو نو شروع يې وکړه په قسم ثالث د اسماء متصلو بالفعل کې چې اسم مفعول دی او هر کله چې لفظ د اسم فاعل دال وو په فاعليت او لفظ د مفعول دال وو په مفعوليت، او مرتبه د فاعل مقدم وی په مفعول نو دال على الفاعليت يې مقدم کړو په دال على المفعوليت باندې نو وی ويل اسم المفعول

**ترجمه:** اسم مفعول په لغت کې نام کار کرده شده را گويند، او په اصطلاح کې **ما** اسم دی او په تنکير د اسم کې اشاره ده موصوفيت د ما ته لانه واقع فى جانب الخبر، داسې اسم **اشتق** چې مشتق کړې شوی دی **من فعل د** مصدر نه، يا د مضارع مجهول نه، په حال کون د دې فعل کې چې دا وضع کړې شوی دی **لمن د** هغه ذات لپاره **وقع** چې واقع شوی وی دا معنی مصدري **عليه** په دغه ذات باندې

**تشريح:** هر تعريف کې لابدي وی د جنس او فصل نه **ما** عبارت دی د اسم نه دا جنس دی خپل پردی ټول پکې داخل شو اشتق من فعل، فصل اول دی په دې سره يې احتراز وکړو د اسماء غير مشتقو نه لکه رجل وغيره شو ځکه اسم غير مشتق ته اسم مفعول نه ويلې کيږي

لمن وقع عليه فصل ثاني دی په دې سره يې احتراز وکړو: باقي ټولو مشتقاتو نه ځکه چې اسم ظرف اسم اشتق لمن وقع فيه دی نه لمن وقع عليه، او اسم آله اسم اشتق من فعل لمن وقع به دی نه لمن وقع عليه، او احتراز يې وکړو د اسم فاعل صفت مشبه اسم التفضيل بمعني الفاعل نه ځکه هغه اسم اشتق من فعل لمن قام به دی نه لمن قام عليه، او احتراز يې وکړو د اسم تفضيل للمفعول نه ځکه هغه اسم اشتق من فعل لمن وقع عليه دی بزيادة على الغير، او اسم مفعول اسم اشتق من فعل لمن وقع عليه دی فقط ځکه دلته لام صله د وضع راغلی دی او لام چې صله د وضع راشي نو بدخول د لام کل معنی موضوع له وی.

**سوال:** دا تعريف د اسم مفعول جامع نه شو خپلو افرادو لره خارج شو د دې نه المرقوءة منشا د اعتراض دا ده چې مصنف من ذکر کړې دی او دا راځي د ذوی العقول لپاره او موقوده غير ذی عقل ده؟ **جواب:** من يې ذکر کړی دی په تعريف کې تغليبا يعنی غلبه يې ورکړې ده ذوی العقول لره په غير ذوی العقول باندې د وجې د شرافت او اصل نه

**وصيغته.** **ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د تعريف د اسم مفعول نه نو شروع يې وکړه په صيغو د اسم مفعول کې او اسم مفعول دوه قسمه دی يو د ثلاثي مجردو نه (۲) د غير د ثلاثي مجردو نه،

**ترجمه:** **وصيغته** صيغه د اسم مفعول **من الثلاثى المجرد** د ثلاثي مجردو نه **على مفعول** په وزن د مفعول

باندې راځي غالبا، او ثلاثي مجرد هغې ته وائي چې په ماضي د هغې کې درې حروف اصلي وي او زياتي حرف پکې نه وي راغلي، او د ثلاثي مجرود شپږ بابونه دي، نصر، ضرب، علم، حسب، منع، کرم، ماسوی د باب کرم يکرم نه د دې نورو بابو نو نه اسم مفعول راځي د مفعول په وزن، او د باب د کرم نه مفعول وزن نه راځي ځکه دا لازم دی بلکه د هغې نه راځي صفت مشبه بروزن فعيل بمعنى الفاعل، مثال د اسم مفعول د ثلاثي مجردو نه د مفعول په وزن لکه مضروب، منصور، معلوم، ممنوع، محسوب، شو.

**سوال:** چې ته وائي اسم مفعول از ثلاثي مجرد په وزن د مفعول باندې راځي دا قاعده ستا منقوضه شوه مرمی او مبيع سره چې دا اسم مفعول د ثلاثي مجردو نه دی او په وزن د مفعول باندې نه دی؟

**جواب:** دا اصل کې مرمی او مبيع وو بيا پکې د قانون صرفي د وجې نه تغير راغلي دی او مرمی او مبيع ترې جوړ شوی دی.

**سوال:** دا قاعده ستا منقوضه شوه **معنی** سره چې دا اسم مفعول د ثلاثي مجردو نه دی او نه په شان د مضروب دی او نه په شان د مرمی دی؟ **جواب:** (۱) معنی صيغه د اسم مفعول نده بلکه صيغه د مصدر ميمي يا صيغه د اسم ظرف ده (۲) او که اومنم چې اسم مفعول دی نو دا اصل کې معنوی وو بيا پکې تصرفات شوی دی بعض موافق د قاعدې سره او بعض مخالف د قاعدې نه او معنی ترينه جوړ شوی دی.

**سوال:** ته وائي چې اسم مفعول د ثلاثي مجردو نه بروزن مفعول راځي دا خبره ستا منقوضه شوه په جريح، ضحکة، قبض، ذبح، دافق، سره دا بروزن مفعول نه دی او صيغې د اسم مفعول دی؟

**جواب:** زه وايم چې وصيغته من الثلاثي المجرد على المفعول غالباً او کله په نورو اوزانو باندې هم راځي لکه دغه مذکور شو، **ومن غيره** او اسم مفعول د غير د ثلاثي مجردو نه چې ثلاثي مزيد رباعي مجرد او مزيد دی **على صيغة الفاعل** دا راځي په وزن د اسم فاعل باندې **بفتح ما قبل الاخر** سره د فتحې د ماقبل اخر نه للفرق بينه و بين اسم الفاعل.

**سوال:** فرق خو عکس سره هم راځي نو عکس يې ولې ونه کړو؟ **جواب:** عکس يې ونه کړو لخفة الفتحة وكثرة المفعول باعتبار الانواع چې هغه مفعول مطلق، مفعول به، مفعول فيه، مفعول له، مفعول معه، دی (۲) لپاره د موافقت د مضارع خپلې سره ځکه اسم مفعول جوړ دی د مضارع نه او مضارع مجهول کې ماقبل اخر مفتوح وی نو دلته به هم مفتوح وی مثال لکه مستخرج شو چې دا صيغه د اسم مفعول ده د باب استفعال نه

**وامره في العمل والاشتراط كامر الفاعل:** **ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د تعريف او د صيغو د اسم مفعول نه نو شروع يې وکړه په احکامو د اسم مفعول کې او دا بيانوی اجمالاً په طريقه د حوالې سره د وجې د اشتراك د اسم مفعول نه د فاعل سره په احکامو کې

ترجمه: شان او حال د اسم مفعول **فی العمل** په عمل کولو کې **والاشتراط** او په اشتراط کې **کامر الفاعل** په شان د حال د اسم فاعل دی په دې شان سره لکه څنګه چې اسم فاعل عمل کوی په شان د عمل د فعل خپل چې هغه رفع ده بنابر فاعلیت او نصب دی بنابر مفعول به باقي مفاعیل لره نور مفاعیل وو نو دارنګې اسم مفعول هم دی (۲): او لکه څنګه چې عمل د اسم فاعل مشروط وو په شروط ثلاثه ؤ سره نو دارنګې عمل د دې هم مشروط دی په شروط ثلاثه ؤ سره (۱) مکبر به وی (۲) معتمد به وی (۳) بمعنی الحال والاستقبال به وی، او لکه څنګه چې اسم فاعل صله د الف لام واقع شي نو استوی الجمیع دی نو دارنګې دا هم دی، او څنګه چې اسم فاعل بمعنی الماضی والدوام وو نو اضافت مابعد ته واجب دی په اضافت معنوی سره عندالجمهور فکذا المفعول، او لکه څنګه چې تثنیه او جمع د اسم فاعل په شان د مفرد د اسم فاعل وو نو دارنګې تثنیه او جمع د اسم مفعول هم په شان د مفرد د اسم مفعول دی په عمل کولو کې، او دومره فرق دی په مابین د اسم فاعل او د مفعول کې:

(۱): چې اسم فاعل جوړیږي د فعل معلوم نه او اسم مفعول جوړیږي د فعل مجهول نه.

(۲): اسم فاعل عمل د رفع بنابر فاعلیت کوی او اسم مفعول عمل د رفع بنابر نائب فاعلیت کوی.

(۳): اسم فاعل د فعل لازم نه راځي او اسم مفعول نه راځي.

(۴): اسم فاعل دلالت کوی په قیام د معنی مصدري باندې او دا دلالت کوی په وقوع د معنی مصدري.

(۵): اسم فاعل از ثلاثی مجرد بروزن فاعل راځي او دا بروزن مفعول راځي.

(۶): اسم فاعل د مبالغې لپاره راځي او اسم مفعول نه راځي مثال د اسم مفعول چې عمل یې کړی دی په شان د عمل د فعل خپل لکه **زید معطی غلامه درهما** معطی صیغه د اسم مفعول ده عمل یې کړي دی په غلامه کې د رفع بنابر نائب فاعل، او درهما کې یې عمل کړي دی د نصب بنابر مفعول به او اعتماد یې کړي دی په مبتدا باندې او په معنی د حال او استقبال سره دی او مکبر دی نه مصغر.

## الصفة المشبهة

ربط: هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د نوع ثالث د اسماء متصلو نه چې اسم مفعول وو نو شروع یې وکړه په نوع رابع د انواع د اسماء متصلو کې چې صفة مشبهه دی نو وی ویل الصفة المشبهة او اسم مفعول یې مقدم کړو په صفة مشبهه باندې د وجې د اشتراك د اسم مفعول نه د اسم فاعل سره په احکامو کې (بالفاظ دیګر) هر کله چې اسم مفعول شریك وو د اسم فاعل سره په احکامو کې نو متصل یې ذکر کړو وروستو د اسم فاعل نه او هر کله چې صفة مشبهه عمل کولو په شان د عمل د فعل خپل د وجې د مشابهت نه د اسم فاعل سره بخلاف اسم التفضیل نو مقدم یې کړو صفة مشبه په اسم تفضیل باندې

ترجمه: صفة مشبه په لغت کې اسم مشتق ته وائي چې مشابه دی د غیر سره، او په اصطلاح د نحویانو کې **ما** اسم دی دا سې اسم **اشتق** چې مشتق کړي شوی دی **من فعل لازم** د فعل لازم نه دا لازم عام دی چې وضعا وی او که په حین د اشتقاق کې وی. مثال د اول لکه کریم، شریف، حسن مثا!

وضع کړي شوي دی لمن د فعل
د ثاني لکه، رحيم، عليم، سميع، په حال کون د دې فعل کې چې
ذات لپاره قام چې قائم شوی دی دا معنی مصدري **به** په دغه ذات پورې **على معنى الثبوت** په معنی
معنی باندې چې هغه دلالت کوي په صفت مشبه ثابته باندې نه په صفت حادثه باندې وضعاً پس
خارج شو د دې نه ضامر طالق ځکه دا دواړه وضع شوي دی د حدوث لپاره او ثبوت پکې راغلي
دی د وجې د عارض استعمال نه او خارج شو د دې نه عالم، خالق، رازق، ځکه دا اصل کې وضع
شوي دی د حدوث لپاره او ثبوت پکې اغلي دی د وجې د موصوف نه چې الله دی لهذا دا اسم
فاعل دی نه صفة مشبه او صفت مشبه اصطلاحي ته صفت مشبه ځکه وائي چې دا مشابه دی د
اسم فاعل سره په افراد تثنيت جمعيت تذکير تانيث کې او په قيام د معنی مصدري کې
**تشريح: سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟
**جواب:** ربط دا دی چې مخکې بيان د قسم ثالث د اسماء متصلو وو او دا بيان د قسم رابع د اسماء
متصلو دی او غرض د مصنف هم معلوم شو چې بيان د انواع د اسماء متصلو دی
**سوال:** اسم مفعول يې ولې مقدم کړو په صفت مشبه باندې؟ **جواب:** هر کله چې اسم مفعول شريك وو
د اسم فاعل سره په احکامو کې په خلاف د صفت مشبه نه نو هغه يې مقدم کړو په صفت مشبه
باندې لپاره د بيان د احکامو د اسم مفعول په طريقه د حوالی سره په اسم فاعل باندې
**سوال:** صفت مشبه يې ولې مقدم کړو په اسم تفضيل باندې؟ **جواب:** هر کله چې صفت مشبه عمل
کوو په شان د عمل د فعل خپل په خلاف د اسم تفضيل نه نو مقدم يې کړو صفت مشبه د اسم
تفضيل نه (٢) يا هر کله چې صفت مشبه مشابه وو د اسم فاعل سره په تذکير تانيث کې نو ذکر يې
کړو صفت مشبه د اسم مفعول نه وروستو متصل بلا فصل، په هر تعريف کې لابدي وی د جنس او
فصل نه، دلته ما عبارت دی د اسم نه دا جنس دی اشتق من فعل، فصل اول دی په دې سره يې
احتراز وکړو د اسماء جامدو نه لکه رجل زيد عمرو، بکر، دی ته صفت مشبه نه وائي **من فعل لازم**
فصل ثاني دی په دې سره يې احتراز وکړو د هغه اسم فاعل او اسم مفعول نه چې هغه جوړ شوي
دي د فعل متعدي نه **لمن قام به بمعنى الثبوت** فصل ثالث دی په دې سره يې احتراز وکړو د هغه اسم
فاعل نه چې هغه جوړ شوي دی د فعل لازم نه لکه قائم او ذاهب شو ځکه دا اګر که اسم مشتق دی
د فعل لازم نه او لمن قام به هم دی خو لمن قام به على معنى الحدوث دی نه على معنى الثبوت
لهذا دا اسم فاعل دی نه صفت مشبه او دا رنګې احتراز يې وکړو د اسم تفضيل او د اسم ظرف نه
ځکه هغه لمن قام به على معنى الثبوت نه دی
**سوال:** ته وائي چې صفت مشبه جوړيږي د فعل لازم نه دا قاعده ستا منقوضه شوه رحيم سميع عليم
سره چې دا صفت مشبه دی جوړ شوي دی د رحم علم سمع فعل متعدي نه، نه د فعل لازم نه؟
**جواب:** لازم عام دی چې ابتداء او وضعاً وي او که په حين د اشتقاق کې وي او رحيم عليم او سميع
جوړ شوي دی د هغه فعل نه چې لازم ګرځيدلی دی په حين د اشتقاق کې ځکه د دې نه چې کله
صفت مشبه جوړيدو نو نقل کړی شو د رحم علم سمع نه رحم علم سمع لازم ته

**سوال:** تعریف د صفت مشبه مانع نه شو د دخول د غیر نه داخل شو پکښې اسم فاعل لکه ضامر وکابر وطالق ځکه دا ما اشتق من فعل لمن قام به علی معنی الثبوت دی نو تعریف د صفت مشبه پرې صادقیږي او د افرادو د صفت مشبه نه ندی ځکه صفت مشبه په وزن د فاعل باندې نه راځي؟
**جواب:** مراد د علی معنی الثبوت نه په دې مقام کې علی معنی الثبوت دي بحسب اصل الوضع او ضامر کابر طالق په اعتبار د اصل وضع سره دلالت علی معنی الحدوث کوي او ثبوت ورته عارض شوی دی بحسب الاستعمال نو وضعاً قید سره د تعریف د صفت مشبه نه ضامر کابر طالق خارج شو.
**سوال:** صفت مشبه ته صفت مشبه ولې وائي؟ **جواب:** ځکه چې دا مشابه دی د اسم فاعل سره افراد تثنیت جمعیت تذکیر او تانیث کې پدې شان سره لکه څنګه چې اسم فاعل مفرد تثنیه جمع راځي نو دا هم راځي **سوال:** په دې افراد تثنیت جمعیت کې چې څنګه دا مشابه دی د اسم فاعل سره نو د اسم مفعول سره هم مشابه دی نو ته یې مشابه د اسم مفعول سره ولې نه وائي؟
**جواب:** مشابهت د دې د اسم فاعل سره زیات دی د اسم مفعول نه (۱) دا شریك دی د اسم فاعل سره په افراد تثنیت جمعیت تذکیر تانیث کې (۲) لمن قام به کې، یعنې دواړه دلالت کوي په قیام د معنی مصدري لیکن دوسره فرق دی چې (۱) دا دلالت کوي په طریقه د ثبوت سره او هغه دلالت کوي په طریقه د حدوث سره (۲) او بل فرق دا دی چې صفت مشبه جوړیږي د فعل لازم نه فقط نه د متعدي او اسم مفعول جوړیږي د فعل متعدي نه فقط او اسم فاعل د دواړو نه جوړیږي لکه قائم او ضارب، (۳) نو مشابهة د اسم فاعل سره زیات شوی دی چې صفت مشبه جوړیږي د فعل لازم نه او اسم فاعل هم جوړیږي بخلاف اسم المفعول فافهم (۴) مشابه دی اسم فاعل سره په اعتماد کې
**وصیغتها مخالفة لصیغة الفاعل:** ربط: هر کله چې فارغ شو مصنف رحمه الله د تعریف د صفت مشبه نه نو شروع یې وکړه په صیغو د صفت مشبه کې نو وې ویل وصیغتها مخالفة الخ.
**ترجمه:** جنس صیغه د صفت مشبه په اعتبار د انواع سره مخالفه ده **لصیغة الفاعل** د صیغې د اسم فاعل سره **علی حسب السماع** او صیغه د صفت مشبه کائنه ده په اندازه د سماع باندې د واضع نه (۲) یا په حال کون د دې صفت مشبه کې چې دا کائن دی په اندازه د سماع باندې د واضع نه یا صیغه د صفت مشبه مخالف ده د صیغې د اسم فاعل نه په مخالفت سره داسې مخالفت چې کائن دی په اندازې د سماع باندې د واضع نه په دې شان سره چې دا صیغه د صفت مشبه تجاوز نه کوي د سماع نه قیاس ته په خلاف د صیغه د اسم فاعل نه چې هغه قیاسي دی، یا صیغه د اسم فاعل راځي په وزن د فاعل په خلاف د صیغو د صفت مشبه نه چې دا په وزن د فاعل باندې نه راځي
**تشریح:** سوال: دا مقام مقام د جمع دی ځکه مصنف بیانوي صیغې د صفت مشبه نه یو د صیغه نو بکاروه چې وصیغها مخالفة یې ویلی وی نو وصیغتها یې ولې وویل؟
**جواب:** وصیغتها یې وویله او وصیغها یې ونه ویله ځکه دلته مراد د صیغې د صفت مشبه نه جنس صیغه ده او د جنس اطلاق کیږي په قلیل او کثیر باندې، یو جنس صفت مشبه دی یو انواع د

صفت مشبه دي او يو افراد د صفت مشبهٔ دي نو انواع د صفت مشبه اوزان د صفت مشبه دي او
افراد د صفت مشبه موزونات دي، او جنس صيغه د صفت مشبه مخالف ده د صيغې د اسم فاعل
نه په اعتبار د انواع سره چې اوزان دي په دې شان سره چې اسم فاعل د ثلاثي مجردو نه راځي بر
وزن فاعل او صفت مشبه بر وزن فاعل نه راځي (۲) يا اسم فاعل د ثلاثي مجردو نه قياساً اطراداً
راځي او صفت مشبه سماعي راځي نه قياسي

**سوال:** ته وائې چې صيغه د صفت مشبه مخالف ده د صيغې د اسم فاعل نه په وزن کې دا خبره سنا منقوضه شوه په ضامر كابر سره دا صفت مشبه دی او بر وزن فاعل دی؟ **جواب:** ضامر او كابر اصل وضع کې صيغه د اسم فاعل ده ليکن صفت مشبه ګرځيدلی دی د وجې د عارض استعمال نه او زه وايم چې صفت مشبه بر وزن فاعل نه راځي اولاً او وضعاً او دا هم اولاً او وضعاً نه دی بلكه استعمالاً راغلی دی

**سوال:** على حسب السماع جار مجرور دی د دې لپاره لابدي ده د اعراب محلي نه دا په تركيب کې څه واقع شوی دی؟ **جواب:** دا مرفوع محلاً دی بنا بر خبريت پدې شان سره چې دا جار مجرور باعتبار المتعلق خبر ثاني دی (۲) يا على حسب السماع منصوب محلا دی بنا بر حاليت د ضمير مستتر د مخالفت نه. يا منصوب محلا دی بنا بر مفعول مطلق د مخالفت دپاره په دې شان سره چې دا په اعتبار د متعلق محذوف سره صفت دی د موصوف محذوف لپاره چې مخالفت دی.

**سوال:** ته وائې چې صيغه د صفت مشبه مخالف راځي د صيغې د اسم فاعل نه ته ما ته صيغې د صفت مشبه وښايه چې راغلي وي مخالف د اسم فاعل نه؟ **جواب:** **كحسن وصعب و شديد** چې دا بر وزن فَعَلٍ فَعْلَ فعيل دی او اوزان د صفت مشبه ډير دي: (۱) صلب (۲) صعب (۳) صفر (۴) حسن (۵) خشن (۲) ندس (۷) زيم (۸) بلز (۹) حطم (۱۰) جنب (۱۱) اكبر (۱۲) كابر (۱۳) جيد (۱۴) جبان (۱۵) هجان (۱۲) شجاع (۱۷) وضاع (۱۸) كبد (۱۹) رحيم (۲۰) رؤف (۲۱) عطشى (۲۲) حبلى (۲۳) حيدى (۲۴) جيوان (۲۵) عريان (۲۲) عشراء (۲۷) قدوس (۲۸) قابوس.

**وتعمل عمل فعلها مطلقاً:** ربط: هر كله چې فارغ شو مصنف د بيان د تعريف د صفت مشبه او د بيان د صيغو د صفت مشبه نه نو شروع يې وكړه په عمل د صفت مشبه كې نو وېي ويل وتعمل الخ

**ترجمه:** عمل كوي صفت مشبه **عمل فعلها** په شان د عمل د فعل خپل چې عمل د رفع دی بنا بر فاعليت نه عمل د رفع بنا بر مفعول فيه، لعدم وجوده **مطلقا** بې د اشتراط د زماني نه په دې شرط سره چې اعتماد د دې راغلی وو په يو د اشياء ستو مذكورو باندې ما سوا د الف لام موصولي نه څكه صله د الف لام موصولي راځي، اسم فاعل او اسم مفعول نه صفت مشبه بالاتفاق **خلافا لشرذمة قليلة**. هغوی وېلي دي: چې اعتماد د صفت مشبه په الف لام موصولي باندې راځي او صفت مشبه صله د الف لام موصولي واقع كيږي خو د دې قول لپاره اعتبار نشته. څكه صله د الف لام موصولي هغه شی راځي چې د هغې نه فعل جوړيږي، او د صفت مشبه نه فعل نهٔ جوړيږي. څكه دا بمعنى الثبوت دی، او فعل دلالت كوي په حدوث باندې

(٢): او دارنگي هغه اسم فاعل او اسم مفعول صله د الف لام موصولي واقع کیږي چې دلالت کوي په معنی مصدري باندې په طریقه د حدوث سره او کوم اسم فاعل او اسم مفعول چې دلالت په معنی مصدري په طریقه د حدوث سره نهٔ کوي، هغه صله د الف لام موصولي نه واقع کیږي، نو صفت مشبه به څنګه صله د الف لام موصولي واقع شي

**تشریح: سوال:** صفت مشبه ولې عمل کوي په شان د عمل د فعل خپل؟ **جواب:** د وجې د مشابهت د صفت مشبه نه د اسم فاعل سره ګردان کې، او په دلالت کولو کې په قیام د معنی مصدري باندې او اسم فاعل عمل کوي د وجې د مشابهت نه د فعل سره لفظا او معنی او صفت مشبه عمل کوي د وجې د مشابهت نه د اسم فاعل سره، څکه مشبه کله کله حکم د مشبه به اخلي

**سوال:** صفت مشبه چې عمل کوي په شان د عمل د فعل خپل، هغه عمل څه شی دی؟

**جواب:** هغه رفع ده بنا بر فاعلیت نه نصب دی بنا بر مفعول به.

**سوال:** صفت مشبه عمل د نصب بنا بر مفعول به ولې نه شي کولی؟

**جواب:** لعدم وجود المفعول به څکه صفت مشبه لازم دی مفعول به نه غواړي.

**سوال:** ته وائې چې صفت مشبه عمل د نصب نه شي کولی بنا بر مفعول به نو «زید حسن وجهه» کې وجهه منصوب ولې راغلی دی؟ **جواب:** دا منصوب دی بنا بر تشبیه بالمفعول نهٔ بنا بر مفعول به.

**سوال:** ته وایې چې صفت مشبه عمل کوي په شان د عمل د فعل خپل مطلقا یعنې بې د اشتراط نه دا خبره صحیح نه ده څکه عمل د صفت مشبه مشروط دی په یو شرط سره چې هغه اعتماد دی په یو د اشیاء مذکورو باندې؟ **جواب:** د مطلقا دا معنی نهٔ ده چې بلا قید و شرط، بلکه د مطلقا معنی دا ده چې بې د اشتراط د زمانې نه.

**سوال:** د صفت مشبه د عمل لپاره زمانه حال یا استقبال ولې نه ده شرط؟

**جواب:** لکونه بمعنی الثبوت، او دا اشتراط د زمانې منافي دی د ثبوت سره.

**سوال:** دا خو مزیت د فرع راغلی چې صفت مشبه دی په اصل باندې چې اسم فاعل دی، څکه صفت مشبه عمل کوي مطلقا که بمعنی الماضي وي او که بمعنی الحال یا استقبال وي، او اسم فاعل هله عمل کوي چې بمعنی الحال والاستقبال وي؟ **جواب:** مزیت د فرع په اصل باندې راغلی دی د وجې د ضرورت نه، څکه اشتراط د زمانې منافي دی د ثبوت سره، او والضروریات تبیح المحظورات.

**سوال:** ته وایې چې صفت مشبه کې اشتراط د زمانې نشته او اعتماد د دې په یو د اشیاؤ مذکوره ؤ باندې شرط دی نو یو د هغه اشیاؤ نه موصول دی او اعتماد د دی په موصول باندې ممتنع دی بالاتفاق؟

**جواب:** مراد د اعتماد نه اعتماد دٔ صفت مشبه دی په یو د اشیاء مذکورو ما سواء د موصول نه.

**سوال:** صفت مشبه صله د الف لام موصولي ولې نه واقع کیږي؟ **جواب:** څکه چې صله د الف لام موصولي هغه شی واقع کیږي چې د هغې نه فعل جوړیږي او هغه نه دی مګر اسم فاعل دی، او د صفت مشبه نه فعل نهٔ جوړیږي «لانه یدل علی الثبوت والفعل یدل علی الحدوث» په مابین کې منافات دی.

**سوال:** ته وائي چې صله د الف لام موصولي صفت مشبه نه واقع کيږي بالاتفاق او بعض نحويانو ويلي دي چې واقع کيږي **جواب:** دغه قول د شرذمه قليله لره او قول د شرذمه قليله لره په مقابل د جمهورو کې هيڅ اعتبار نشته لهذا دا داسې شو لکه چې ټول نحويان متفق دي په دې خبره چې صفت مشبه صله د الف لام موصولي نه واقع کيږي

**سوال:** صفت مشبه او اسم فاعل کې څه فرق دی؟ **جواب:** د دې په مينځ کې شپاړس فرقونه دي
(۱) صفت مشبه راځي د فعل لازم نه بخلاف اسم الفاعل دا د لازم او متعدي دواړو نه راځي
(۲) صيغې د صفت مشبه سماعي دي او صيغې د اسم فاعل قياسي دی
(۳) صفت مشبه د ثلاثي مجردو نه راځي فقط بخلاف اسم الفاعل فانه يجيئ من الثلاثي والرباعي مطلقا (۴) اضافت د اسم فاعل متعدي فاعل ته ممتنع دی او اضافت د اسم فاعل لازم فاعل ته غير حسن دی او اضافت د صفت مشبه فاعل ته حسن دی (۵) صفت مشبه دلالت کوي په قيام د معنی مصدري په طريقه د ثبوت سره او اسم فاعل دلالت کوي په قيام د معنی مصدري په طريقه د حدوث سره (۶) تقديم د معمول د صفت مشبه په صفت مشبه ممتنع دی بخلاف اسم الفاعل (۷) معمول د صفت مشبه نسبي راځي نه اجنبي نحو زيد الحسن وجهه، بخلاف اسم الفاعل، د دې معمول کله نسبي راځي نحو زيد ضارب اباه، او کله اجنبي وي نحو زيد ضارب عمر (۸) اعتماد د اسم فاعل راځي په الف لام باندې بخلاف الصفة المشبهة (۹) اسم فاعل عمل کوي بمعنی الحال والاستقبال او صفت مشبه عمل کوي مطلقا (۱۰) اسم فاعل راځي بمعنی الماضي بخلاف الصفة المشبه (۱۱) صفت مشبه جوړيږي د هغه مادې نه چې دلالت کوي په معنی مصدري در زمانه حال او اسم فاعل عام دی (۱۲) صفت مشبه عمل د نصب کوي بنا بر تميز يا بنا بر تشبيه بالمفعول او اسم فاعل عمل د نصب کوي بنا بر مفعول به (۱۳) اسم فاعل موازن د فعل مضارع وي دائما بخلاف الصفة المشبهه چې دا کله موازن د مضارع وي لکه ضامر او کابر او کله موازن د مضارع نه وي لکه جميل کريم (۱۴) اسم فاعل نه مخالف کيږي د فعل حيل نه په عمل کې بلکه کوم عمل چې فعل کوي هغه دا هم کوي بخلاف الصفة المشبهه دا کله مخالف کيږي د فعل نه په عمل کې په دې شان سره چې فعل عمل د نصب نه کوي او دا عمل د نصب کوي (۱۵) حذف د موصوف د اسم فاعل او اضافت د اسم فاعل هغه اسم ته چې هغه مضاف دی، ضمير د موصوف محذوف ته قبيح نه دی بخلاف الصفة المشبه نحو مررت بقاتل ابيه قبيح نه دی او مررت بحسن وجهه قبيح دی (۱۶) فصل په مابين د اسم فاعل او مرفوع کې جائز دی بخلاف الصفة المشبهة

**و تقسيم مسائلها ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د عمل د صفت مشبه نه، نو شروع يې وکړه په بيان د تقسيم د صفت مشبه کې اتلس صورتونو ته لپاره د بيان د احکامو خمسو د اتلس صورتونو چې حسن احسن ... الخ دی

**ترجمه: وتقسیم مسائلها:** كرځول د متكلم صفت مشبه لره قسم قسم
(۲) یا تقسیم د صفت مشبه اقسامو ته چې هغه مسائل دي او غایه او غرض د تقسیم نه بیان د حکم د هغه مسائلو دی

**تشریح: سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟
**جواب:** ربط دا دی چې مخکې بیان د عمل د صفت مشبه وو دا تقسیم دی په صفت مشبه کې اتلس صورتونو ته، او په دې سره غرض د مصنف هم معلوم شو چې تقسیم د صفت مشبه دی اتلس اقسامو ته
**سوال:** تقسیم د صفت مشبه دې اقسامو ته ولې کیږي؟ **جواب:** لپاره د بیان د احکام خمسو د دې اقسامو، چې هغه حسن، احسن، ممتنع، مختلف فیه او قبیح دی.
**سوال:** اضافت د تقسیم مقسم ته کیږي او مقسم د دې اقسامو صفت مشبه دی نه مسائل، لهذا اضافت د تقسیم مسائل ته باطل دی؟ **جواب:** اضافت د تقسیم مقسم ته کیږي حقیقتا، او ذلته اضافت مسائل ته شوی دی مجازا، علاقه د مجاز سببیت دی اضافت د سبب شوی دی مسبب ته ځکه تقسیم د صفت مشبه سبب دی د اقسامو لپاره
**سوال:** ته وائې چې اضافت د تقسیم شوی دی اقسامو د مسائل ته، ځکه د مسائل نه مراد اقسام دي نو تقسیم اقسامها یې ولې ونه ویلو؟ **جواب:** د اقسامو نه یې تعبیر وکړو مسائل سره، ځکه مسائل جمع د مسئله ده، ځای د سوال ته وائي نو هر یو قسم مسمی کړی شو په مسئله سره، ځکه سوال کولی شي د حکم د هر یو قسم نه چې دا قسم صفت مشبه جائز دی، که مختلف فیه دی، که ممتنع دی، که حسن دی، که احسن دی **ان تکون الصفة باللام او مجردة:** کون د صفت مشبه دی متلبس باللام لکه الحسن **او مجردة** یا مجرد عن اللام لکه حسن شو، دا تقسیم ثنائي دی په صفت مشبه کې **ومعمولها** او معمول د صفت مشبه **مضافا** مضاف به وي **او باللام** یا به متلبس وي په الف لام سره **او مجردا عنهما** یا به مجرد وي د الف لام او اضافت دواړو نه، دا تقسیم ثلاثي دی په معمول د صفت مشبه کې په اعتبار د تلبس باللام والاضافت او عدم تلبس بهما سره **فهذه ستة** دغه اقسام د صفت مشبه شپږ دي چې حاصل شوي دي د ضرب د نوعین د صفت مشبه نه په انواع ثلاثه د معمول د صفت مشبه کې ځکه دوه لره چې په دریو کې ضرب ورکړی شي نو شپږ جوړیږي **والمعمول** دا تقسیم ثالث ثلاثي دی په صفت مشبه کې په اعتبار د اعراب سره، نو معمول د صفت مشبه **في كل واحد منها** په هر واحد د دې اقسام ثلاثه ؤ کې **مرفوع** یا مرفوع راځي **ومنصوب** او کله منصوب راځي **ومجرور** او کله مجرور راځي او في کل واحد کې في بمعنی من ده، او په ومنصوب ومجرور کې واو بمعنی او دی **فصارت ثمانية عشر** دا فا ذلته استنافیه ده او دا جمله مستانفه جواب د سوال ده ځکه کله چې مصنف تقسیم د معمول وکړو ثالثا اقسام ثلاثه ؤ ته په اعتبار د اعراب سره، نو سائل سوال وکړو چې مسائل د صفت مشبه څو قسمه شو نو مصنف جواب وکړو چې فصارت ثمانية عشر وګرځېدل مسائل د صفت مشبه اتلس قسمه دا حاصل شوي دي د ضرب د اقسام ثلاثه د معمول د

صفت مشبه نه من حيث الاعراب په هغه اقسام سته مذکورو کې نو ٣×٢-١٨ نهه صورتونه جوړيږي صفت مشبه مجرد عن اللام کې، صفت مشبه متلبس باللام کې، او نهه صورتونه جوړيږي صفت مشبه مجرد عن اللام کې:

(١): صفت مشبه متلبس باللام او معمول هم متلبس باللام دري صورتونه په دې کې دي:

(ا): الحسن الوجه بالرفع. (ب): الحسن الوجهَ بالنصب. (ج): الحسن الوجهِ بالجر.

(٢): صفت مشبه متلبس باللام چې معمول يې مضاف وي، دري صورتونه په دې کې دي:

(ا): الحسن وجهُهُ بالرفع، (ب): الحسن وجهَه بالنصب، (ج): الحسن وجهِه بالجر.

(٣): صفت مشبه متلبس باللام او معمول مجرد عن اللام والاضافة، دري په دې کې دي:

(ا): الحسن وجهٌ بالرفع، (ب): الحسن وجها بالنصب، (ج): الحسن وجهٍ بالجر.

او نهه صورتونه جوړيږي په صفت مشبه مجرد عن اللام کې: (١): صفت مشبه مجرد عن اللام او معمول متلبس باللام، دري صورتونه په دې کې دي: (ا): حسنٌ الوجهُ، (ب): حسنٌ الوجهَ (ج): حسن الوجهِ. (٢): صفت مشبه مجرد عن اللام او معمول يې مضاف وي، دري صورتونه په دې کې دي: (ا): حسن وجهُه، (ب): حسن وجهَه، (ج) حسن وجهِه. (٣): صفت مشبه مجرد عن اللام او معمول يې مجرد عن اللام والاضافة وو، دري صورتونه په دې کې دي: (ا): حسن وجهٌ. (ب): حسن وجها، (ج): حسن وجهٍ. او بعضې نحويان وائي چې دا صورتونه د صفت مشبه شپږ دېرش جوړيږي، ځکه صفت مشبه اولا دوه قسمه دی: (١): متلبس باللام (٢): مجرد عن اللام، او معمول د متلبس باللام شپږ قسمه دی: (١): مجرد عن اللام والاضافة نحو الحسن وجه. (٢): متلبس باللام نحو الحسن الوجه. (٣): مضاف ضمير ته نحو الحسن وجهه. (٤): مضاف اسم متلبس باللام ته نحو الحسن وجه الاب. (٥): مضاف هغه اسم ته چې مضاف وي ضمير ته نحو الحسن وجه ابيه. (٦): مضاف هغه اسم ته چې مجرد عن اللام والاضافة وي نحو الحسن وجه اب. او هر يو قسم د دې معمول د صفت مشبه نه باعتبار الاعراب دري قسمه دی: (١): مرفوع (٢): منصوب (٣): مجرور، نو دري لره چې په شپږ کې ضرب ورکړی شي نو اتلس جوړيږي، او دغسې اتلس صورتونه جوړيږي صفت مشبه مجرد عن اللام کې نو (١٨× ٢ = ٣٦) شو.

**سوال:** ته وايې چې معمول د صفت مشبه کله مرفوع راځي کله منصوب راځي او کله مجرور راځي دا مرفوع منصوب مجرور ولې راځي؟ **جواب: فالرفع** پس رفع د معمول د صفت مشبه **على الفاعلية** بنا بر فاعليت ده د صفت لپاره په دې شان سره چې معمول د صفت مشبه فاعل د صفت مشبه واقع شوی دی. **والنصب** او نصب د معمول د صفت مشبه **على التشبيه** د وجې د تشبيه د معمول د صفت مشبه نه **بالمفعول** د مفعول سره په وقوع د مرتبه ثالثه کې لکه اول فعل وي بيا فاعل وي بيا مفعول وي، نو دلته هم اول صفت مشبه دی، بيا فاعل دی، او بيا دغه معمول منصوب دی **او على التشبيه** جار مجرور متعلق دی النصب پورې او بالمفعول جار مجرور متعلق دی التشبيه پورې، ځکه النصب او التشبيه مصدر متلبس باللام دی، او عمل د مصدر متلبس باللام په ظرف او جار

مجرور کې صحیح دی نحو قوله تعالی: ﴿لَا يُحِبُّ اللَّهُ الْجَهْرَ بِالسُّوءِ مِنَ الْقَوْلِ﴾. **في المعرفة** په معرفه کې عین مفعول به ورته نه وایو ځکه صفت مشبه لازم دی مفعول به نه غواړي، او تمیز ورته هم نه وایو ځکه تمیز نکره وي او دا معرفه ده. **وعلی التمیز** او دا نصب د معمول د صفت مشبه بنا بر تمیز دی **في النکرة** په نکره کې **عند البصرین** نحو الحسن وجها، او کوفیان وائي چې دا نصب د معمول د صفت مشبه علی التمیز دی مطلقا خواه که معرفه وي او که نکره وي، ځکه کوفیان کون د تمیز معرفه جائز وائي. بعضو نحویانو ویلي دي چې دا نصب د معمول د صفت مشبه بنا بر تشبیه بالمفعول راځي مطلقا خواه معرفه وي او که نکره وي. او شیخ رضی ویلي دي چې تفصیل اولی دی د مطلق حکم کولو نه په دې شان سره چې دا معمول د صفت مشبه چې منصوب راشي نو دا به خالي نه وي، یا به معرفه وی یا به نکره وي، که معرفه وه نو منصوب به راځي بنا بر تشبیه بالمفعول، او که نکره وه نو منصوب علی التمیز به وي، او مختار عند المصنف مذهب د بصریانو دی. **والجر** او جر د مفعول د صفت مشبه بنا دی **علی الاضافة** په اضافت باندې په دې شان سره چې اضافت د صفت مشبه راغلی دی خپل فاعل ته او دا فاعل مضاف الیه دی او مضاف الیه نه وي مګر مجرور وي، او اضافت د صفت مشبه فاعل ته مستحسن دی د عدم اضافت نه.

**وتفصیلها حسن وجهه ثلاثة**: **ربط**: هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د تفصیل د صفت مشبه نه په ضمن د امر کلي کې نو شروع یې وکړه په تفصیل د مسائل د صفت مشبه کې په ضمن د امثله جزئیه ؤ کې.

**ترجمه**: **وتفصیلها** مفصل د دې اتلس اقسامو د صفت مشبه موجود دی په ضمن د امثله جزئیو کې د قبیلې د وجود د کلي نه په ضمن د جزي کې

(۲): د قبیلې د وجود د عام نه په ضمن د خاص کې **حسن وجهه** دا قول زمونږه او ترکیب کذائي بې د جریان د اعراب معین نه په دې باندې **ثلاثه** درې صورتونه جوړېږي د اتلس صورتونو د مسائلو نه (۱): صفت مشبه مجرد عن اللام او معمول مضاف مرفوع حسن وجهُهُ په رفع سره بنا بر فاعلیت (۲): حسن وجهَهُ په نصب سره بنا بر تشبیه بالمفعول (۳): حسن وجهِهِ په جر سره بنا بر اضافت.

**تشریح**: **سوال**: ته وائې چې **وتفصیلها حسن وجهه ثلاثة**، نو تفصیل د مسائلو د صفت مشبه خو مخکې تیر شو **وتقسیم مسائلها** سره نو بیا تفصیل ثانیا ته ضرورت نشته؟

**جواب**: تفصیل دوه قسمه دی: (۱): یو تفصیل د امر کُلي دی من حیث الذات. (۲) او یو تفصیل د امر کُلي دی په ضمن د جزئیاتو کې، دا مخکې تفصیل د امر کُلي من حیث الذات وو او دا تفصیل د امر کُلي دی په ضمن د جزئیاتو کې.

**ترکیب**: تفصیلها مبتدا اول ده او حسن وجهه مبتدا ثاني ده، او ثلاثة خبر د مبتدا ثاني دی، دا جمله خبریه خبر د مبتدا اول دی، مبتدا سره د خبر نه جمله خبریه اسمیه شوه.

**سوال**: خبر محمول وي په مبتدا باندې او دلته حمل نه صحیح کېږي ځکه حسن وجهه تفصیل نه دی بلکه مفصل دی؟ (۲): جمله چې خبر واقع شي د مبتدا لپاره نو هغې کې لابدي وي د رابط نه او دلته رابط نشته؟ (۳): مفصل د مسائلو د صفت مشبه فقط دغه درې نه دي بلکه نور هم شته؟

**جواب:** د اول اعتراض نه جواب دا دی چې دا اعتراض به هله واردیدو چې تفصیل په خپله معنی وی، لیکن دا مصدر مبني للمفعول دی تفصیل بمعنی مفصل دی، او جواب د اعتراض ثاني نه دا دی چې جمله خبر واقع شي د مبتدا لپاره نو لابدي ده د رابط نه او رابط څلور قسمه دی (۱) ضمیر (۲) الف لام (۳) وضع الظاهر موضع المضمر (۴) کون الخبر مفسرا للمبتداء نحو قل هو الله احد دلته څلورم قسم رابط موجود دی، څکه تفصیلها مبتدا او حسن وجهه د هغې تفسیر او بیان دی. او جواب د دریم اعتراض نه دا دی چې مونږ وایو چې دا مفصل مسائل د صفت مشبه په ضمن دا مثله جزئیو کې چې واخلې دا ترکیب زمونږه دی چې **حسن وجهه** د قبیلې د وجود د کلي نه په ضمن د جزئي کې، او د قبیلې د وجود د عام نه په ضمن د خاص کې

**سوال:** ته وائي چې په **حسن وجهه** کې د رې مثالونه جوړیږي د صفت مشبه مجرد عن اللام لپاره نو دا **وجهه** به خالي نه وائي، یا به یې مرفوع وایې یا به یې منصوب وایې، او یا به یې مجرور وائې چې علی التعین یو قسم اعراب په دې کې ووېل شي نو بو مثال جوړیږي نور نه جوړیږي، نو نه څنګه وائي چې درې مثالونه دي؟ **جواب:** مونږ وایو چې په دې کې درې مثالونه جوړیږي بې د اجرا، د اعراب معین نه په دې باندې. او ثلاثه عدد اقل دی تمیز غواړي او تمیز د دې جمع مجرور حذف شوی دی، **ای ثلاثة امثلة من الامثلة المقصودة** او تمیز د عدد اقل چې جمع مذکر راشي نو عدد مؤنث مستعملولی شي، او امثله جمع مذکر دی نو څکه ثلاثه متلبس بالتاء دی.

**سوال:** تفصیل ستا مخالف دی د اجمال نه، څکه اجمال کې دی صفت مشبه متلبس باللام مقدم کړی وو د مجرد عن اللام نه، او په تفصیل کې دی مجرد عن اللام مقدم کړو په دې متلبس باللام باندې؟ **جواب:** صورتونه د صفت مشبه مجرد عن اللام اشرف دی د صورتونو د صفت مشبه متلبس باللام نه، څکه صفت مشبه مجرد عن اللام کې ممتنع صورتونه نشته صرف بو صورة مختلف فیه دی او صفت مشبه متلبس باللام کې دوه صورتونه ممتنع دی.

**وکذلك حسن الوجه** په شان د حسن وجهه دي. حسن الوجه په کون د دې کې امثله ثلاثه په وجوه مذکورو سره او دا مثال د صفت مشبه مجرد عن اللام او معمول متلبس باللام دی، دیکې هم وجوه ثلاثه روا دي. حسنٌ الوجهُ، حسنٌ الوجهَ، حسنُ الوجهِ. اول مرفوع بنا بر فاعلیت ثاني منصوب بنا بر تشبیه بالمفعول ثالث مجرور بالاضافة و **حسن وجه** دا عطف دی په (حسن الوجه) باندې نو معنی دا شوه چې (حسن وجه) هم په شان د (حسن وجهه) دی په کون د دې کې امثله ثلاثه او دا مثال د هغه صفت مشبه دی چې صفت مشبه مجرد عن اللام وي، او معمول یې هم مجرد عن اللام والاضافة وي، په دې کې درې وجې روا دي (۱) حسن وجه مرفوع بنا بر فاعلیت (۲) حسن وجها منصوب بنا بر تمیز (۳) حسن وجه مجرور بنا بر اضافة دا نهه صورتونه جوړ شو په صفت مشبه مجرد عن اللام کې

**الحسن وجهه: ربط:** (۱) هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د نهه صورتونو د صفت مشبه مجرد عن اللام نه، نو شروع یې وکړه په صورتونو د صفت مشبه متلبس باللام کې، او په ترک د عاطف سره یې اشاره وکړه استقلال د توعیت ته

(٢) يا بي په ترك د عاطف سره اشاره وكړه شروع د قسم اخر ته چې هغه اقسام د صفت مشبه متلبس باللام دي. **الحسن وجهه** مثال د صفت مشبه متلبس باللام او معمول مضاف دی، په دې کې دري وجې جوړيږي (١): (الحسن وجهه) مرفوع بنا بر فاعليت (٢): الحسن وجهَهُ منصوب بنا بر تشبيه بالمفعول (٣): الحسن وجهه مجرور بنا بر اضافت. **الحسن الوجه** دا مثال دی د هغې صفت مشبه او معمول چې دواړه متلبس باللام وي په دې كې هم دري وجې روا دي (١): الحسن الوجه مرفوع بنا بر فاعليت (٢): الحسن الوجه منصوب بنا بر تشبيه بالمفعول (٣): الحسن الوجه مجرور بنا بر اضافت. **الحسن وجه** دا مثال د صفت مشبه متلبس باللام او معمول مجرد عن اللام والاضافة دی، ديکې هم دري وجې روا دي (١): الحسن وجهٌ مرفوع بنا بر فاعليت (٢): الحسن وجها منصوب بنا بر تميز (٣): الحسن وجهٍ مجرور بنا بر اضافت.

**اثنان منها ممتنعان: ربط:** هر كله چې فارغ شو مصنف د بيان د تفصيل د مسائل د صفت مشبه نه په ضمن د امثله جزئيه وو کې نو شروع يې وکړه په بيان د احكامو د صفت مشبه کې چې هغه ممتنع، مختلف فيه، حسن، احسن، او قبيح دي، او په دې اتلس صورتونو كې كوم يو صورت ممتنع دی، كوم يو مختلف فيه دی، كوم يو حسن دی، كوم احسن دی، او كوم قبيح دی، نو د هغې بيان كوي.

**ترجمه: اثنان:** دوه مثالونه **منها** د دې اتلس صورتونو د صفت مشبه نه **ممتنعان** ممتنع دي په دې شان سره چې دغسې تركيب نه بليغ مستعملولی شي په كلام د عرب کې او نه غير بليغ.

(١): چې صفت مشبه متلبس باللام مضاف وي معمول خپل ته چې هغه مضاف وي ضمير د موصوف ته بالذات يا بالواسطه مثال د اول لكه **الحسن وجهه** شو، او مثال د ثاني لكه (الحسن وجه غلامه) شو، دا تركيب ممتنع دی ځکه دا اضافت اضافت لفظي دی او دار مدار د اضافت لفظي په تخفيف باندې دی په جانب د مضاف کې په حذف د تنوين او قائم مقام د تنوين سره يا په جانب د مضاف اليه کې په حذف د ضمير د موصوف سره چې دا ضمير حذف شي د مضاف اليه نه، او مستتر شي په صفت کې او يا تخفيف راشي په دواړو کې او دلته تخفيف نه دی حاصل شوی ځکه تنوين د مضاف نه حذف شوی دی، د الف لام د وجې نه، نه د اضافت د وجې نه خلافا للفراء، او نه تخفيف حاصل شوی دی په جانب د مضاف اليه کې په حذف د ضمير د موصوف سره

(٢) دويم هغه تركيب ممتنع دی چې صفت مشبه متلبس باللام وي او مضاف وي معمول مجرد عن اللام والاضافة ته لكه الحسن وجه، او دا تركيب ممتنع دی، اګر چې تخفيف حاصل شوی دی په مضاف اليه کې په حذف د ضمير سره د مضاف اليه نه او په استتار د هغې سره په صفت کې لپاره د دې چې لازم نه شي مخالفت من كل الوجوه په مينځ د اصل کې چې اضافت معنوي دی او فرع کې چې اضافت لفظي دی ځکه په اضافت معنوي کې احتمالات عقليه څلور دي، دوه جائز او دوه ممتنع (١): اضافت د نكرې معرفې ته جائز، نحو غلام زيد (٢): اضافت د نكرې نكرې ته جائز، نحو غلام رجل (٣): اضافت د معرفې معرفې ته ممتنع، نحو الغلام زيد (٤): اضافت د معرفې نكرې ته ممتنع، نحو الغلام رجل

او په اضافت لفظي کې هم احتمالات عقليه څلور دي، درې جائز او يو ممتنع دی: (۱): اضافت د نکرې معرفې ته جائز، نحو ضارب زيد. (۲): اضافت د نکرې نکرې ته جائز، نحو ضارب رجل (۳): اضافت د معرفې معرفې ته جائز، نحو الحسن الوجه. (۴): او اضافت د معرفې نکرې ته ممتنع دی، لکه الحسن وجه شو، ځکه اضافت د معرفې معرفې ته په اضافت معنوي کې ممتنع وو او دلته جائز شو او اضافت د معرفې نکرې ته هم هلته ممتنع دی هم دلته که په اضافت لفظي کې که دا هم جائز شي نو لازميږي مخالفت من کل الوجوه بين الاصل والفرع چې اضافت معنوي او اضافت لفظي دی په دې شان سره چې اضافت معنوي اصل دی او اضافت لفظي فرع ده.

**و اختلف في حسن وجهه** او اختلاف کړی شوی دی د بصريانو او د کوفيانو په صورت واحده کې چې صفت مشبه مجرد عن اللام وي او مضاف وي معمول ته چې هغه مضاف وي ضمير د موصوف ته مثال لکه حسن وجهه شو سيبويه او بصريان وائي چې دا ترکيب جائز دی سره د قبح نه ځکه تخفيف کاملة چې ممکن وي او متکلم اکتفاء وکړي په تخفيف ناقص باندې نو دا جائز دی سره د قبح نه، او کوفيان وائي دا جائز دی بې د قبح نه ځکه دار مدار د اضافت لفظي په تخفيف باندې دی په جانب د مضاف يا مضاف اليه کې او دلته تخفيف حاصل شوی دی په جانب د مضاف کې په حذف د تنوين سره.

**والبواقي ما كان** ... **الخ** او باقي د اتلس صورتونو د صفت مشبه نه چې درې د هغې نه خارج شو چې هغه پنځلس دي، نو د دې پنځلس صورتونو نه **ما** هغه صفت مشبه **كان** چې وي **فيه** په دې صفت مشبه کې **ضمير واحد** ضمير واحد په صفت کې يا په معمول کې **منها** د دې بواقي نه **احسن** احسن دی، د وجې د حصول د ربط نه د موصوف سره بې د زيادت نه په قدر د حاجت باندې او دا نهه صورتونه دي (۱) الحسن الوجه په نصب د معمول سره (۲) الحسن الوجه په جر د معمول سره (۳) حسن الوجه په نصب د معمول سره (۴) حسن الوجه په جر د معمول سره (۵) حسن وجها په نصب د معمول مجرد عن اللام و الاضافة سره (۶) الحسن وجهاً په نصب د معمول سره (۷) حسن وجه په جر د معمول سره چې په دې اووه صورتونو کې راغلی دی ضمير واحد په صفت مشبه کې نه په معمول کې (۸) الحسن وجههُ (۹) حسن وجههُ په رفع د معمول سره، په دې دواړو صورتونو کې ضمير واحد راغلی دی په معمول کې نه په صفت مشبه کې **وما** او هغه صفت مشبه **كان فيه** چې ي نه هغې کې **ضميران** دوه ضميرونه، يو ضمير په صفت کې او بل په معمول کې **حسن** دا حسن دی. وجې د حصول د مقصود نه چې ربط دی د ماقبل موصوف سره او احسن نه دی ځکه زياتي راغلی دی د قدر حاجت نه. دا صرف دوه صورتونه دي: (۱) الحسن وجههُ بنصب المعمول صفت متلبس باللام (۲) حسن وجهه صفت مجرد عن اللام او معمول منصوب مضاف ضمير ته، دلته دوه ضميرونه دي يو معمول کې دی او بل مستتر دی په صفت مشبه کې **و ما لا ضمير فيه** او هغه صورتونه د صفت ... چې ضمير نشته په هغې کې نه په صفت مشبه کې او نه په معمول کې **قبيح**

دا قبیح دی د وجې د عدم حصول د مقصود نه چې ربط د صفت دی د موصوف سره لفظا، او د
قبیح صورتونه څلور دي: (۱) الحسن الوجهُ (۲) حسن ن الوجهُ (۳) الحسن وجه (۴) حسن وجه اوس
مونږ به دا د څه نه معلوموو چې صفت مشبه کې ضمیر شته او که نشته نو مصنف د دې لپاره یوه
قاعده بیانوي **ومتی رفعت بها** کله چې ته رفع ورکړې په صفت مشبه سره معمول لره بنا بر فاعلیت
**فلا ضمیر فیها** نو نشته دی ضمیر مستتر په دې صفت مشبه کې ځکه دا ما بعد معمول اسم ظاهر
فاعل دی د صفت مشبه لپاره نو که ضمیر پکې مستتر ومنو نو لازمیږي تعدد د فاعل او دا نه دی
جائز لکه دا امثله اربعه د قبیح شو **فهي** ځکه دا صفت مشبه **کالفعل** په شان د فعل دی لکه څنګه چې
اسناد د فعل اسم ظاهر ته وشي، نو وُحد الفعل ابدا دی، نو دغسې اسناد د صفت مشبه چې وشي اسم
ظاهر ته نو وحد ابدا دی تثنیت او جمعیت يې نه دی جائز **والا** او که رفع ور نه کړو په دې صفت مشبه
سره معمول لره بلکه نصب یا جر ورکړو **ففیها ضمیر الموصوف** نو کائن دی په دې صفت مشبه کې ضمیر
چې راجع دی موصوف ته: (۱) ځکه صفت مشبه مشتقي دی فاعل غواړي نو ضمیر مستتر به ورله
فاعل شي. (۲) یا لپاره د حصول د ربط د صفت د موصوف سره **فتؤنث** پس مؤنث کوې به ته دغه صفت
لره که موصوف مؤنث وي فاطمة حسنة وجه، ځکه د فعل او صفت اسناد چې وشي مؤنث ته نو تانیث
د فعل او صفت واجب دی **وتثنی** او تثنیه کوې به ته دغه صفت لره که موصوف تثنیه وو نحو (الزیدان
حسنا وجه وحسنان وجها) **وتجمع** او جمع کوې به ته دغه صفت لره که موصوف يې جمع وو نحو
(الزیدون حسنو وجه و حسنون وجها) ځکه د فعل او د صفت اسناد چې وشي ضمیر ته نو وحد للواحد
وثنی للمثنی وجمع للجمع لپاره د موافقت د ضمیر د مرجع سره.
**واسما الفاعل والمفعول: ربط)**: هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د اتلس صورتونو د صفت مشبه او د
احکام خمسه د صفت مشبه نه نو شروع يې وکړه په بیان د اتلس صورتونو د اسم فاعل او اسم
مفعول لازمین کې په طریقه د تشبیه سره لپاره د تعمیم، نو وې ویل **اسما الفاعل والمفعول ... الخ**
**ترجمه**: دوه اسمونه د فاعل او د مفعول چې اسم فاعل او اسم مفعول دي **غیر المتعدیین** په حال کون د
دې دواړو کې چې غیر متعدیین وي اسم فاعل غیر متعدي دی ځکه چې جوړ شوی دی د **فعل لازم**
نه او اسم مفعول غیر متعدي دی، ځکه چې جوړ شوی دی د فعل متعدي الی مفعول واحد نه **مثل
الصفة** دا دواړه په شان د صفت مشبه دي **فیما** په هغه صورتونو کې **ذکر** چې ذکر کړی شوي دي د
اقسام ثماني عشر نه
**تشریح**: اتلس صورتونه لکه څنګه چې صفت مشبه کې جوړیږي نو دا رنګې اتلس صورتونه
جوړیږي اسم فاعل لازم او اسم مفعول لازم کې. په دې شان سره چې اسم فاعل او اسم مفعول دوه
قسمه دي: (۱) مجرد عن اللام (۲) متلبس باللام او معمول د دې درې قسمه دی: (۱) مضاف (۲)
متلبس باللام (۳) مجردا عنهما. هر واحد د دې نه کله مرفوع راځي کله منصوب راځي او کله
مجرور راځي، نو درې له چې په شپږو کې ضرب ورکړی شي نو اتلس شو نهه صورتونه په اسم

فاعل متلبس باللام كي (۱) القائم الابُ (۲) القائم الابَ (۳) القائم الابِ (۴) القائم ابوه (۵) القائم اباه (۶) القائم ابيه (۷) القائم ابٌ (۸) القائم ابٍ (۹) القائم ابا او نهه صورتونه جوړيږي اسم فاعل مجرد عن اللام كي نحو قائم الابُ، قائم الابَ، قائم الابِ، قائم ابوه، قائم اباه، قائم ابيه، قائم ابٌ، قائم ابا، قائم ابٍ او دغسې اتلس صورتونه جوړيږي اسم مفعول كي نحو: مضروب الابُ، مضروب الابَ، مضروب الابِ. الخ په دې كې دوه صورتونه ممتنع دي: القائم ابيه، القائم ابٍ، او يو مختلف فيه دى: قائم ابيه. او باقي چې كوم مشتمل دي په ضمير واحد باندې هغه احسن، او كوم چې مشتمل دي په ضميرين باندې هغه حسن. او كوم چې مشتمل نه دي هغه قبيح اوغير المتعديين سره يې احتراز وكړو د اسم فاعل او اسم مفعول متعديين نه ځكه هغې كې دا اتلس صورتونه نهٔ جوړيږي. ځكه په صورت د نصب كې التباس راځي د منصوب على التشبيه د منصوب بنا بر مفعول به سره، او التباس راځي د منصوب على التميز د منصوب بنا بر مفعول به سره مثال لكه: زيد ضاربٌ اباه زيد معطي اباه. دلته دا پته نه لګي چې اباه منصوب بنا بر مفعول به دى، او كه منصوب بنا بر تشبيه بالمفعول دى.

**سوال:** اسم فاعل كله لازم راځي او كله متعدي راځي ځكه دا مشتق كيږي د فعل لازم او متعدي دواړو نه، او اسم مفعول خو لازم نه راځي ځكه اسم مفعول د فعل نه لازم نه نه مشتق كيږي نو تا اسم مفعول ته غير متعدي يعني لازم ځنګه ويلي دي په دې مقام كې؟

**جواب:** دا خبره منم چې اسم مفعول د فعل لازم نه نهٔ مشتق كيږي فقط د فعل متعدي نه مشتق كيږي، خو دا چې ته جوړ كړې د فعل متعدي الى مفعول واحد نه نو لازم ګرځي ځكه مفعول قائم شو په مقام د نائب فاعل باندې او بل مفعول نشته واسما الفاعل اصل كې اسمان وو، بيا نون حذف شو د وجې د اضافت نه بيا التقا د ساكنين راغله بين الالف واللام على غير حده او اول مده وو حذف شو نو واسما الفاعل شو

## اسم التفضيل

**ربط:** هر كله چې فارغ شو مصنف د بيان د نوع رابع د انواع د اسماء متصلو نه چې صفت مشبه وو نو شروع يې وكړه په نوع خامسه د انواع د اسماء متصلو كې چې اسم التفضيل دى او هر كله چې صفت مشبه مطلق وو په خلاف د اسم تفضيل نه چې دا مقيد دى ځكه دلالت كوي په معنى مصدري باندې سره د زيادت نه پس مقدم يې كړو صفت مشبه په اسم تفضيل باندې، يا هر كله چې صفت مشبه عمل كوو په شان د عمل د فعل خپل په خلاف د اسم تفضيل نه چې دا عمل نه كوي نو ځكه يې مقدم كړو صفت مشبه په اسم تفضيل باندې، او په اسم تفضيل كې لابدي ده د معرفت د امور ثمانيو نه: (۱) مفهوم لغوي (۲) مفهوم اصطلاحي (۳) مناسبت بين المفهومين (۴) وزن (۵) معرفت د شروط د بنا د اسم تفضيل (۶) معرفة د اقسام چې اسم تفضيل دوه قسمه دى (۷) معرفة د طريقه د استعمال د اسم تفضيل (۸) معرفت د عمل د اسم تفضيل

نو اسم تفضيل په لغت کې نام بهتر را گويند ـ اضافت د اسم ـ التفضيل ته اضافت د دال دی مدلول ته يعنی هغه اسم چې دلالت کوي په تفضيل د شيء علی شيء باندې په اصطلاح کې **ما** اسم دی داسې اسم **اشتق** چې مشتق کړی شوی دی **من فعل** د فعل نه په حال کون د دې اسم کې چې دا وضع کړی شوی دی **لموصوف** د هغه ذات لپاره چې دا معنی مصدري قائم شوې ده په هغه پورې يا واقع شوې ده په هغه باندې او لموصوف يې وويلو او لمن قام به يا لمن وقع عليه يې ونه وئيلو لپاره د دې چې دا تعريف د اسم تفضيل شامل شي دواړو نوعين د اسم تفضيل لره چې هغه: (۱) اسم تفضيل بمعنی الفاعل نحو اضرب، (۲) او بمعنی المفعول نحو اشهر، **بزيادة** داسې ذات چې متصف دی په زيادت سره **علی غيره** په غير باندې په دغه معنی مصدري کې. (۲) يا په حال کون د دې موصوف کې چې دا متلبس دی په زيادت سره په غير موصوف باندې په دغه معنی مصدري کې **بزيادة** جار مجرور ظرف لغوه متعلق دی په موصوف پورې يا ظرف مستقر دی او با د تلبس لپاره ده، په اعتبار د متعلق محذوف سره چې متلبس دی صفت دی د موصوف لپاره **او** اسم تفضيل اصطلاحي ته اسم تفضيل ځکه وائي چې اسم تفضيل په لغت کې نام بهتر را گويند او دا اسم تفضيل اصطلاحي هم نوم دی د بهتر لپاره او دلالت کوي په غوره والي او فضيلت د شيء باندې غالبا. په هر تعريف کې لابدي وي د جنس او فصل نه **ما** عبارت دی د اسم نه دا جنس دی **اشتق من فعل** فصل اول دی په دې سره يې احتراز وکړو د جوامدو نه او **لموصوف** فصل ثاني دی په دې سره يې احتراز وکړو د اسم زمان اسم مکان اسم اله نه، ځکه مراد د موصوف نه ذات مبهم دی او اسم زمان اسم مکان اسم اله کې ابهام نشته ځکه نوع د هغې معلومه ده، او **بزيادة** فصل ثالث دی، په دې سره خارج شو اسم فاعل اسم مفعول او صفت مشبه د تعريف د اسم تفضيل نه، ځکه هغه اسم اشتق من فعل دی خو بزيادة نه دی او **علی غيره** فصل رابع دی په دې سره يې احتراز وکړو د صيغه د اسم فاعل للمبالغه نه ځکه اسم فاعل للمبالغه اگر چې بزيادة دی خو علی غيره نه دی، نو تعريف جامع مانع شو.

**تشريح: سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟

**جواب: ربط** دا دی چې مخکې بيان د صفت مشبه وو چې دا يو قسم دی د اسماء متصلو نه او دا بيان د اسم تفضيل دی چې دا بل قسم دی د اسماء متصلو نه او مقصد د مصنف هم معلوم شو چې بيان د اسم تفضيل دی.

**سوال:** صفت مشبه يې ولې مقدم کړو په اسم تفضيل باندې؟ **جواب:** (۱) صفت مشبه مطلق دی او اسم تفضيل مقيد دی ځکه دلالت کوي په معنی مصدري باندې سره د زيادت نه او مطلق مقدم وي په مقيد باندې. (۲) صفت مشبه عمل کوي عمل د فعل خپل د وجې د مشابهت نه د اسم فاعل سره بخلاف اسم التفضيل چې دا عمل نه کوي.

**سوال:** اسم تفضيل په لغت کې څه ته وائي؟ **جواب:** نام بهتر ته وائي، يا اسم تفضيل لغت کې هغه اسم ته وائي چې دلالت کوي په تفضيل د شيء علی شيء، او اضافت د اسم ـ التفضيل ـ ته اضافت د دال دی مدلول ته.

**سوال:** ما په دې مقام کې د څه نه عبارت دی؟ **جواب:** کلمه د ما عبارت دی د اسم نه
**سوال:** کلمه د ما د اسم نه ولې عبارت دی؟ **جواب:** ځکه معتبر په تعریفاتو کې جنس قریب دی او جنس قریب دلته اسم دی او لفظ او شيء اجناس بعیده دي
(۲) یا ما عبارت دی د اسم نه ځکه مطلق اسم مقسم دی د اسم فاعل او مفعول او اسم تفضیل لپاره او مقسم معتبر وي په تعریفات د اقسامو کې او په تنکیر د اسم کې اشاره ده موصوفیت د ما ته **لانه واقع في جانب الخبر اشتق من فعل** جمله صفت د ما دی په دې توصیف د ما بجملة سره یې احتراز وکړو د جوامدو نه ځکه اسم جامد ته اسم تفضیل نه وائي
**سوال:** لموصوف یې وویلو نو **لمن قام به** یا **لمن وقع علیه** یې ولې ونه ویلو؟
**جواب:** لموصوف یې وویلو نه لمن قام به یا لمن وقع علیه لپاره د دې چې دا تعریف شامل شي قسمین د اسم تفضیل ته ځکه اسم تفضیل دوه قسمه دی (۱) للفاعل نحو اضرب (۲) للمفعول نحو اشهر او که لمن قام به یې ویلې وی نو اسم تفضیل بمعنی المفعول ترې خارجېدلو، او که لمن وقع علیه یې ویلې وی نو اسم تفضیل للفاعل خارجېدلو او لموصوف یې چې وویلو نو تعریف صادق شو په تفضیل للفاعل او للمفعول دواړو باندې
**سوال:** لموصوف جار مجرور دی دا په چا پورې متعلق دی؟ **جواب:** د دې په متعلق کې خلاف دی د شارح جامي په نزد باندې دا ظرف مستقر دی او متعلق د دې محذوف دی چې موضوع دی او د نورو شارحینو په نزد باندې دا ظرف لغوه دی او متعلق دی په اشتق پورې
**سوال:** بزیادة جار مجرور په چا پورې متعلق دی؟ **جواب:** په دې کې دوه احتماله دي: (۱) دا ظرف لغوه دی متعلق دی په موصوف پورې (۲) یا ظرف مستقر دی او با د تلبس لپاره ده او متعلق د دې محذوف دی او دا جار مجرور په اعتبار د متعلق محذوف سره صفت دی د موصوف لپاره (فیکون التقدیر لموصوف متلبس بزیادة علی غیره.او علی غیره. جار مجرور ظرف لغوه متعلق دی زیادة پورې
**سوال:** هر تعریف کې لابدي ده د جنس او فصل نه، ما عبارت دی د اسم نه جنس دی مشتقات او غیر مشتقات ټول پکې داخل شول او اشتق من فعل سره جوامد خارج شو او لموصوف سره یې احتراز وکړو د اسم زمان او مکان نه ځکه مراد د موصوف نه ذات مبهمه دی او په دې اسماؤ کې ابهام نشته ځکه نوع د دې معلومه ده ابهام فردي او شخصي دی پکې؟
**جواب:** پس زده کړه دا خبره چې یو مشتق دی او بل صفت دی، مشتق اعم مطلق دی او صفت اخص مطلق دی، مشتق هغه ته وائي چې جوړ شوی وي د فعل نه، او صفت هغه ته وائي چې دلالت کوي په ذات مبهمه باندې او معتبر وي ورسره یو صفت د صفات نه، او مصداقو نه د دې څلور دي: اسم فاعل، اسم مفعول، صفت مشبه، اسم تفضیل او اسم زمان اسم مکان او اسم اله ته صفات نه وائي د دوی په اصطلاح کې ځکه دا دلالت نه کوي په ذات مبهمه باندې او ذات مبهمه دا معنی چې تعین نوعي او تعین فردي پکې نشته مثال لکه ضارب (ذات من له الضرب)، مضروب (ذات من

وقع عليه الضرب) نه تعين نوعي شته او نه فردي، او مضرب خای د وهلو، مضرب اله د وهلو، په دي کي ابهام فردي او شخصي شته او ابهام نوعي نشته بلکه تعيين نوعي دی پکې اوس پاتې شو د مشتقات نه اسم فاعل اسم مفعول صفت مشبه نو بزيادة فصل ثالث دی په دې سره يې احتراز وکړو د اسم فاعل (لغير المبالغه) اسم مفعول صفت مشبه نه. ځکه دا (بزيادة علی غيره) نه دی. باقي پاتې شو اسم فاعل للمبالغه نو علی غيره سره د هغې نه احتراز راغلو

**سوال:** تعريف د اسم تفضيل مانع نه شو د دخول د غير نه داخل شو پکې زائد او کامل ځکه دا اسم دی او مشتق دی من فعل لموصوف او دلالت کوي په زيادت علی غيره باندې او اسم تفضيل نه دی بلکه اسم فاعل دی؟ **جواب:** مراد د زيادت نه زيادت د فاعل دی په دغه فعل کې چې دکوم فعل نه اسم تفضيل جوړ شوی دی او زائد او کامل دلالت نه کوي په زيادت د فاعل : هغه فعل چې زائد او کامل د هغې نه جوړ شوی دی بلکه دلالت کوي په زيادت د فاعل باندې په هغه شي کې چې دا د هغې نه نه دی جوړ شوی.

**وهو افعل:** **ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د تعريف د اسم تفضيل نه نو شروع يې وکړه په بيان د صيغو د اسم تفضيل کې نو وې ويل (**وهو افعل**)

**ترجمه: وهو** او دا اسم تفضيل مذکر په اعتبار د هيئت سره نه په اعتبار د مادی سره راځي په وزن د افعل باندې په اعتبار د اصل وضع سره لکه اضرب شو او مؤنث يې راځي په وزن د فعلی باندې لکه ضربی شو.

**تشريح: سوال:** هو مبتدا ده او افعل ورله خبر دی او خبر محمول وي په مبتدا باندې او دلته حمل نه صحيح کيږي ځکه حمل د خاص راځي په عام باندې ځکه اسم تفضيل عام دی او افعل خاص دی لکه انصرا ضرب وغيره اسم تفضيل دي او افعل نه دی؟ **جواب:** دا اعتراض به هله راتلو چې دلته وزن د افعل مراد وی، ليکن ذکر د وزن او مراد موزون دی نو معنی دا شوه چې دا اسم تفضيل راځي په وزن د افعل باندې نو حمل د عام په عام راغی نه حمل د خاص په عام.

**سوال:** نه وائې چې اسم تفضيل راځي په وزن د افعل باندې نو دا خبره ستا منقوضه شوه په ضربی او فضلی باندې. ځکه دا اسم تفضيل دی او په وزن د افعل نه دی؟

**جواب:** هو ضمير راجع دی اسم تفضيل ته او مراد اسم تفضيل مذکر دی او مؤنث راځي بروزن فعلی

**سوال:** د اسم تفضيل مذکر وزن يې بيان کړو نو د مؤنث وزن يې ولې بيان نه کړو؟

**جواب:** دا يې ترک کړی دی مقائسة (۲) يا صيغه د اسم تفضيل مؤنث يې ذکر نه کړه ځکه معرفت د صيغه د اسم تفضيل مذکر مستلزم د معرفت د صيغې د اسم تفضيل مؤنث لره ځکه مؤنث د دې په وزن د فعلی باندې راځي نه په بل وزن.

**سوال:** دا خبره ستا منقوضه شوه په خير او شر سره چې دا اسم تفضيل مذکر دی او په وزن د افعل باندې نه دی؟ **جواب:** اسم تفضيل راځي په وزن د افعل باندې په اعتبار د اصل وضع سره او دا اصل

کې آخیَر او آشَر وو، بیا پکې تغیر راغلی دی خلاف القیاس نو شر اوخیر ترې جوړ شوی دی او اسم تفضیل مذکر افعل نه په تغیر غیر قیاسي سره راغلی دی په کلام د عربو کې څلور کلمات خیر، شر، حب، شیخ، چې اصل کې اخیر، اشر، احب، اشیخ وو بیا پکې تغیر خلاف القیاس راغی نو خیر، شر، حب او شیخ شو.

**وشرطه ان یبنی من ثلاثي مجرد: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د تعریف او صیغه د اسم تفضیل نه نو شروع یې وکړه په بیانَ د شروطو د بنا د اسم تفضیل کې نو وې ویل وشرطه... الخ

**ترجمه:** شرط لپاره د وجود د اسم تفضیل قاعدةً او اطرادا په استعمال د کلام د عربو کې **ان یبنی** جوړول د اسم تفضیل دی **من ثلاثي** د هغه ما دی چې هغه دلالت کوي په معنی مصدري باندې، داسې ماده ده چې هغه ثلاثي ده یعنې حروف اصلي پکې درې دي **مجرد** داسې ثلاثي چې مجرد دی په دې شان سره چې درې حروف اصلیو نه زائد حرف پکې نه دی راغلی **لیمکن** د دې لپاره چې ممکن شي او جائز شي بنا د افعل **منه** د دې مادې د ثلاثي مجردو نه ځکه بنا د اسم تفضیل بر وزن افعل د رباعي مجردو نه او د رباعي مزید فیه او ثلاثي مزید فیه نه سره د بقاء او محافظت د ټولو حروفو نه ممکن نه ده، ځکه دا وزن د افعل نه شي ځای کولی په خپل ځان کې ټول حروف د ثلاثي مزیدو او د رباعي مطلقا او که افعل جوړ کړی شي د ثلاثي مزید یا رباعي نه په حذف د زائدو سره بیا دا پته نه لګي چې دا اسم تفضیل مشتق د ثلاثي مجردو نه دی که د ثلاثي مزیدو یا د رباعي نه دی مثال لکه زید اخرج من عمرو، اخرج اسم تفضیل ته جوړ کړی د یستخرج نه په حذف د زوائدو سره نو بیا دا پته نه لګي چې دا اخرج بمعنی کثیر الخروج دی او که بمعنی کثیر الاستخراج دی او که اسم تفضیل جوړ کړی شي د ثلاثي مزید یا رباعي مجرد یا مزید نه په طریقه د مکس سره د اصولو او زوائدو نه نو بیا د مشتق منه پته نه لګي چې د څه نه مشتق دی نو لازمیږي التباس د معنی او دا باطل دی.

**ولیس بلون ولا عیب** او نه به وي دا ماده د ثلاثي مجردو دلالت کوونکي په لون او عیب ظاهري باندې او اجهل او ابلد صیغه د اسم تفضیل ده او جوړه شوې ده د جهل او بلادت نه چې هغه عیب باطني دی **لان منهما** ځکه د دې مادې د لون او عیب نه جوړ شوی دی، **افعل** اسم بر وزن افعل **لغیره** د غیر د اسم تفضیل لپاره چې هغه افعل صفتي دی اوس که د دې نه اسم تفضیل جوړ کړی شي بر وزن افعل نو التباس راځي د افعل صفتي او افعل تفضیلي په مینځ کې لکه احمر شو، مثلا چې دا افعل صفتي او تفضیلي دواړو لپاره راشي نو دا پته نه لګي چې دا په معنی د ذو حمرة سره دی او که په معنی د زائد الحمرة سره دی او دا افعل صفتي مقدم دی د افعل تفضیلي نه ځکه دا دلالت کوي په مطلق او افضل تفضیلي دلالت کوي په مقید باندې او مطلق مقدم وي په مقید باندې نو افعل صفتي د مادې د لون او عیب نه جوړ شو او افعل تفضیلي هسې پاتې شو دلته ماتن رح پنځه شرطونه ذکر کړي دي د بنا د اسم تفضیل لپاره او پنځه شرطونه نور دي چې هغه مصنف نه دي ذکر کړي

(۶): چې دا ماده د ثلاثي مجردو به تام وي ناقص به نه وي ځکه د فعل ناقص نه اسم تفضيل نه جوړېږي ځکه اسم تفضيل دلالت کوي په زيادت د فاعل باندې په معنی مصدري کې د مفعول نه او فعل ناقص فاعل نه غواړي (۷): دا فعل تام به متصرف وي او صيغه د اسم تفضيل د فعل غير متصرف نه نۀ جوړېږي لکه نعم، عسی، ليس شو (۸): دا ماده د ثلاثي مجردو به قابل د زيادت او د نقصان وي او که قابل د زيادت او د نقصان نه وه د هغې نه اسم تفضيل نه جوړېږي، لکه موت شو، ځکه اسم تفضيل دلالت کوي په زيادت د معنی مصدري په فاعل کې په نسبت سره غير ته، او دا به هله راځي چې دا ماده د ثلاثي مجردو قابل د زيادت او د نقصان وي (۹): دا ماده د ثلاثي مجردو به مثبت وي نه منفي (۱۰): دا ماده د ثلاثي مجردو به معلوم وي نه مجهول، ځکه که اسم تفضيل جوړ شي د فعل منفي نه يا د فعل مجهول نه نو بيا التباس راځي د اسم تفضيل د فعل مثبت د اسم تفضيل د فعل منفي سره او د اسم تفضيل د فاعل د اسم تفضيل د مفعول سره پس شو بنا د اسم تفضيل مشروط په شروط عشره ؤ سره: (۱): دا ماده به دلالت کوي په حدث باندې (۲): ثلاثي به وي (۳): مجرد به وي (۴): دلالت به نه کوي په لون (۵): او په عيب ظاهري باندې (۶): تام به وي (۷): متصرِّف به وي (۸): قابل د زيادت او د نقصان به وي (۹): مثبت به وي (۱۰): معلوم به وي تلك عشرة کاملة. مثال د اسم تفضيل چې جوړ شوی وي د مادې د ثلاثي مجردو نه او مشروط وي په شروط عشره ؤ سره لکه افضل شو په **زيد افضل الناس** کې، چې دا افضل صيغه د اسم تفضيل جوړه شوې ده د فضل نه او فضل دلالت کوي په معنی مصدري، او ثلاثي مجرد دی او لون او عيب لپاره نه دی تام دی متصرف دی قابل د زيادت او د نقصان دی او مثبت دی او معلوم دی. «واما اولهم واعطاهم واخصر وماءه أبيَض منَ اللبن واشهر واحمق فشاذ».

**تشريح: سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟

**جواب: ربط** دا دی چې مخکې بيان د تعريف او د صيغې د اسم تفضيل وو او دا بيان د شروط د بنا د اسم تفضيل دی او په دې سره غرض د مصنف هم معلوم شو چې بيان د شروطو دی، او بنا د اسم تفضيل مشروط ده په شروط عشره ؤ سره، که دغه شرطونه موجود وو معا نو اسم تفضيل جوړولی شي، والافلا.

**سوال:** من ثلاثي کې ثلاثي منسوب دی او منسوب مشتقي وي حکما دا صفت دی تقاضا د موصوف کوي د دې موصوف کوم دی؟ **جواب:** ای من حدث ثلاثي، د حدث سره يې احتراز وکړو د رجل زيد وغيره نه، ځکه چې دا دلالت نه کوي په معنی مصدري باندې او د دې نه اسم تفضيل نه جوړېږي، او ثلاثي سره يې احتراز وکړو د رباعي نه د هغې نه هم اسم تفضيل نه جوړېږي او مجرد سره يې احتراز وکړو د ثلاثي مزيدو نه د هغې نه هم نه جوړېږي او ثلاثي مزيد عام دی که مطلق وي او که ملحق وي.

**سوال:** د ثلاثي مزيد او رباعي نه اسم تفضيل ولې نه جوړېږي؟ **جواب:** ځکه اسم تفضيل راځي په وزن د افعل باندې او دا وزن د افعل ټول حروف د ثلاثي مزيد و يا د رباعي په ځان کې نه شي ځای کولی.

**سوال:** اسم تفضيل جوړ کړه د رباعي نه يا د ثلاثي مزيدو نه په حذف د زواندو سره؟

التباس په مابين د اسم تفضيل د ثلاثي مجرد او غير د ثلاثي مجردو کې لکه اخرج چې د استخراج نه راشي نو بيا پته نه لگي چې دا بمعنی کثير الاستخراج دی که بمعنی کثير الخروج دی
**جواب:** داسې نه شو کولی ځکه بيا لازميږي
**سوال:** اسم تفضيل جوړ کړه د ثلاثي مزيد رباعي مجرد او مزيد نه په طريقه د مکس سره؟
**جواب:** داسې نه شم کولی ځکه اسم تفضيل چې جوړ شي په وزن د افعل د بعضې اصولو او بعضې زوائدو نه نو بيا د مشتق منه پته نه لگي او تعين د معنی نه راځي او لازميږي فساد د معنی
**سوال:** ته وايې چې اسم تفضيل د ثلاثي مزيدو نه نه راځي، دا قاعده ستا منقوضه شوه په اولهم اعطاهم اخصر سره، دا اسم تفضيل دی او جوړ شوی دی د باب افعال او افتعال نه؟
**جواب:** زه وايم چې قياسا نه راځي او دا راغلی دی خلاف القياس
**سوال:** اسم تفضيل د مادې د لون او عيب نه ولې نه راځي؟ **جواب:** لان منهما افعل لغيره. چې هغه افعل صفتي دی که افعل تفضيلي هم جوړ کړو نو لازميږي التباس لکه احمر افعل صفتي جوړ شوي دي د حمرت نه که احمر تفضيلي هم جوړ کړو نو پته نه لگي چې دا بمعنی ذو حمرة دی که بمعنی زائد الحمرة دی
**سوال:** التباس خو په عکس سره هم دفع کيږي نو عکس يې ولې ونه کړو؟ **جواب:** عکس يې ونه کړو ځکه افعل صفتي مقدم دی د افعل تفضيلي نه نو افعل صفتي يې جوړ کړو او افعل تفضيلي هسې پاتې شو
**سوال:** افعل صفتي ولې مقدم دی؟ **جواب:** ځکه هغه دلالت کوي په مطلق او تفضيلي دلالت کوي په مقيد او مطلق مقدم وي په مقيد باندې
**سوال:** ته وايې چې د مادې د لون نه اسم تفضيل نه جوړيږي بلکه د دې نه افعل صفتي راځي، دا خبره ستا منقوضه شوه په دې قول د نبي صلی الله عليه وسلم سره (مائه ابيض من اللبن)؟
**جواب:** دا شاذ دی
**سوال:** ته وايې چې اسم تفضيل نه جوړيږي د مادې د عيب نه، دا خبره ستا منقوضه شوه په اجهل او ابلد باندې، دا د عيب نه جوړ شوی دی؟
**جواب:** مراد د عيب منفيه نه عيب ظاهري دی او ابلد اجهل عيب باطني دی
**سوال:** احمق د قبيلې د اجهل او ابلد نه دی، ځکه جوړ شوی دی د حماقت نه او حماقت عيب باطني دی او د عيب باطني نه اسم تفضيل جوړيږي قياسا نو احمق ته په (فلان احمق من ابن حبنقة) کې شاذ ولې وائې؟ **جواب:** احمق جوړ شوی دی د حماقت ظاهري نه ځکه ورته شاذ وايو ځکه ابن حبنقه دومره زيات کم عقل وو چې د حماقت اثار يې بهر ظاهر شوي وو چې د چړو نه د تارونو نه او د هډوکو نه يې يو اميل جوړ کړی وو، او هغه به يې غاړې ته غورځولو او گرځېدلو به، چا ترې نه تپوس وکړو چې دا په غاړه باندې ولې گرځوې؟ نو دهٔ وويل (لاعرف بها نفسي ولا اضل)، بيا يوه ورځ د دهٔ ورور د ده اميل غاړې نه اچولی وو نو دهٔ ورته وويل چې (يا اخي انت انا فمن انا؟)، او شارح جامي ويلي

دي چي (ففيه شائبة من حمق ابن حبنقة) اى فى هذ الجواب ځکه د دې نه دا معلومیږي چې که احمق جوړ شي د حماقت باطني نه نو دا صيغه د اسم تفضيل ده قياسا او اطرادا او اجهل ابلد جوړ شي د هغه بلادت او جهالت نه چې هغه ظاهر شوی وي نو دا به اسم تفضيل وي خلاف القياس او په دې باندې هيڅا قول نه دی کړی او شارح رضى احمق ګرځولی دی د قبيلې د ابلد نه چې دا قياسا دی او شاذ نه دی.

**سوال:** بنا د اسم تفضيل چې مشروط ده په شروط عشرو سره نو مصنف دا پنځه شرطونه ذکر کړل باقي پنځه شرطونه يې ولې نه دي ذکر کړي؟

**جواب:** باقي پنځه شرطونه مراد دي او مصنف ترک کړي دي، اکتفاء يې کړې ده په مثال باندې چې (زيد افضل الناس) کې د افضل نه هغه باقي پنځه شرطونه معلوميږي

**سوال:** ته وايې چې بنا د اسم تفضيل مشروط ده په شروطو عشره سره. اوس چې متکلم قصد او اراده وکړي چې زه دا معنى تفضيلي ادا کوم د ماده ممتنعه نه، نو دا ادا کولی شي او که نه‌شي ادا کولی؟

**جواب:** ادا کولی شي

**سوال:** څنګه به يې ادا کوي طريقه د ادا کولو يې څه ده؟ **جواب:** طريقه د ادا کولو يې دا ده **فان قصد غيره** که چرته اراده وکړی شي د ادا کولو د معنى تفضيلي **غيره** د غير د هغه مادې نه چې هغه جامع د دې شروط عشره ؤ وي **توصل** نو رسيدل کولی شي **اليه** دې معنى تفضيلي د غير ثلاثي مجردو ته **باشد** په اشد سره، په دې شان سره چې دا متکلم به وګوري يو ماده د ثلاثي مجردو نه چې هغه دلالت کوي په قوت يا شدت يا زيادت يا کثرت او د هغې نه به اسم تفضيل جوړ کړي په وزن د افعل باندې او مصدر د ماده ممتنعه به ذکر کړي وروستو د هغې نه منصوب بنا بر تميز مثال لکه (هو اشد منه استخراجا) دا مثال د غير ثلاثي مجردو دى (اى اشد استخراجه من زيد) **وبياضا** دا مثال د لون دى **وعمى** دا مثال د عيب دى (اى اشد بياضه من عمرو واشد عميه من عمرو) **وقياسه للفاعل** او قياس او قاعده چې واقع ده په اسم تفضيل کې اشتقاق د اسم تفضيل دى د ثلاثي مجردو نه **للفاعل** د فاعل لپاره نه د مفعول لپاره ځکه که اسم تفضيل جوړ شي د ثلاثي مجردو نه د فاعل او مفعول دواړو لپاره قياسا او اطرادا نو بيا زياتيږي التباس په مابين د اسم تفضيل للفاعل او اسم تفضيل للمفعول کې او کثرت التباس مُخل د مقصود د متکلم دی، پس جوړ کړو دوی اسم تفضيل د فاعل لپاره قياسا او اطرادا نه د مفعول لپاره، ځکه فاعل اشرف دی ځکه عمده د کلام دی او بالعکس يې ونه کړو ځکه بيا ډير افعال به د اسم تفضيل نه پاتې کيدل لکه افعال لازمه شو، ځکه اسم تفضيل للمفعول د فعل متعدي نه راځي نه د فعل لازم نه، او که اسم تفضيل به قياسا جوړ کړی وی د مفعول لپاره نو فعل لازم به د اسم تفضيل نه پاتې کيدو او دا باطل دی **وقد جاء** او لږ لږ راغلی دی اسم تفضيل **للمفعول** د مفعول دپاره خلاف القياس لکه **اعذر** شو (بمعنى المعذور) هغه چا ته وايي چې معذوريت د هغه اشد او اکثر وي **والوم** دا صيغه د اسم تفضيل بمعنى المفعول ده هغه چا ته وائي چې ملوميت يې زيات وي. **اشغل** ډير مشغول **اشهر** زيات مشهور

ويستعمل على احد ثلاثة اوجه: ربط: هر كله چې فارغ شو مصنف د بيان د شروطو د بنا د اسم تفضيل نه نو شروع يې وكړه په بيان د طريقه د استعمال د اسم تفضيل كې نو وې ويل **ويستعمل... الخ**

**ترجمه:** مستعملولى شي اسم تفضيل په كلام د عربو كې **على احد ثلاثة اوجه** په يو د طرق ثلاثه د **مضافا** چې دا اسم تفضيل په اضافت سره مستعمليږي **او بمن** يا په من سره **او معرفا باللام** يا به معرف باللام وي په طريقه د انفصال حقيقي سره په دې شان سره چې خلوه د اسم تفضيل د دې امور ثلاثه نه هم نه ده جائز او جمع د دې امور ثلاثه ؤ هم نه ده جائز بلكه د دې امور ثلاثه ؤ نه به يو موجود وي لپاره د تعين د مفضل عليه، او تعين د مفضل عليه په من او په مضاف كې ظاهر دى څكه مذكور دى لفظا او مفضل عليه د اسم تفضيل مستعمل باللام هغه شى معين دى چې اشاره شوې ده هغې ته په الف لام عهد خارجي سره.

**تشريح: سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دى او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دى؟

**جواب:** ربط د ماقبل سره دا دى چې مخكې بيان د طريقې د اسم تفضيل وو او اوس بيان د طريقې د استعمال د اسم تفضيل دى او غرض د مصنف هم معلوم شو چې بيان د طريقې د استعمال د اسم تفضيل دى چې دا اسم تفضيل مستعمليږي په كلام د عربو كې په يو د طرق ثلاثه ؤ سره:

(۱) په اضافت سره چې مستعمل شوى وى نحو قوله تعالى: ﴿ وَلَتَجِدَنَّهُمْ أَحْرَصَ النَّاسِ ﴾ وكقولك (زيد افضل الناس) (۲) په من سره نحو (زيد افضل من عمرو) (الصلوة خير من النوم)

(۳) په الف لام سره نحو (زيد ن الافضل)

**سوال:** اسم تفضيل ولې مستعمليږي په كلام د عرب كې په يو د طرق ثلاثه ؤ سره؟

**جواب:** لپاره د تعين د مفضل عليه څكه اسم تفضيل واضع وضع كړى دى لپاره د دې چې دلالت وكړي په تفضيل د شيء على غيره باندې، نو لابدي ده د ذكر د غير نه چې مفضل عليه دى او ذكر د مفضل عليه من او اضافت سره ظاهر دى څكه مدخول د من او مضاف اليه مفضل عليه دى، او مفضل عليه سره د الف لام نه په حكم د مذكور كې دى بحسب الظاهر څكه په الف لام سره اشاره كولى شي معين ته په ذكر د مفضل عليه سره مخكې د الف لام نه لفظا يا حكما لكه يو سړى ستا نه معلومات كوي د يو شخص چې هغه افضل وي د زيد نه او ته ورته ووايې چې (عمرو ن الافضل) يعنى عمرو افضل دى د زيد نه، او اسم تفضيل مستعمليږي په يو د طرق ثلاثه ؤ سره په طريقه د انفصال حقيقي سره په دې شان سره چې اجتماع د دې طرق او خلوه دواړه ممتنع دي. (واذا كان الامر كذلك **فلا يجوز زيد ن الافضل من عمرو** څكه لازميږي لغويت او ابطال د احدهما

**سوال:** دا قاعده ستا منقوضه شوه په دې قول د شاعر سره:

ولست بالاكثر منهم حصىً
انما العزة للتكاثر

دلته اكثر صيغه د اسم تفضيل ده چې دا مستعمل شوې ده الف لام او من دواړو سره په شان د زيد ن الافضل من عمرو باندې. **جواب:** (۱) يجوز في الشعر ما لايجوز في غيره.

(٢) الاکثر کې الف لام عهد خارجي نه دي بلکه زائد دي لپاره د تحسين د کلمه.
(٣) او که الف لام عهد خارجي شي نو دا من، من تفضيلي نه دی بلکه من ابتدائي دی.
(۴) يا من تبعيضي دی نه تفضيلي (ای لست من بينهم بالاکثر حصی).
(۵) يا من تفضيلي نه دی بلکه من ظرفي دی (ای لست بالاکثر فيهم) مثل قوله تعالی واذا نودي للصلوة من يوم الجمعة ای في يوم الجمعة.
(۶) او که ومنم چې دا من تفضيلي دی نو دا په الاکثر پورې متعلق نه دی بلکه د دې متعلق اسم تفضيل مقدر دی (ای لست بالاکثر اکثر منهم حصی).
**ولا زيد افضل** او جائز نه دی زيد افضل يعنی جائز نه ده خلوه د اسم تفضيل د طرق ثلاثه ؤ نه د وجې د نوت د مقصود زمونږ نه چې هغه تعين او معلوميت د مفضل عليه دی **الا ان يعلم** دا مستثنی مفرغه ده، معنی دا شوه چې (ولا يجوز زيد افضل في جميع الاوقات) **الا ان يعلم** ای الا وقت معلومية المفضل عليه بيا صيغه د اسم تفضيل مستعمله ولی شي مجرد عن اللام والاضافت ومن نحو الله اکبر چې دلته مفضل عليه (مضاف اليه) محذوف دی، (ای اکبر کل شيء)، يا محذوف مجرور دی په من سره (ای اکبر من کل شيء).
**سوال:** ته وايې چې اسم تفضيل مستعمله ولی شي په يو د طرق ثلاثه ؤ سره دا قاعده ستا منقوضه شوه په دې قول د الله سره ﴿ اَعۡدِلُوۡا هُوَ اَقۡرَبُ لِلتَّقۡوٰی ﴾ وقوله تعالی ﴿ وَهُوَ الَّذِیۡ یَبۡدَؤُا الۡخَلۡقَ ثُمَّ یُعِیۡدُهٗ وَهُوَ اَهۡوَنُ عَلَیۡهِ ﴾ دا اقرب او اهون صيغه د اسم تفضيل ده او نه ده مستعمل په يو د طرق ثلاثه ؤ سره نه لفظا او نه تقديرا؟ **جواب:** دا عبارت د مصنف په حذف د معطوف سره دی (ای الا ان يعلم او يخرج اسم التفضيل عن معنی التفضيلي) يعنی اسم تفضيل مستعمليږي په يو د طرق ثلاثه ؤ سره لفظا يا تقديرا پدی شرط سره چې دا اسم تفضيل مستعمل شوی وو په معنی تفضيلی کې او که نوی مستعمل شوی په معنی تفضيلی کې بلکې په معنی د اسم فاعل سره وو يا په معنی د صفت مشبه سره وو بيا نشی مستعمله ولې په يو د طرقو ثلاثه وو سره نه لفظا او نه تقديرا. (کما في الامثلة المذکورة). **فاذا اضيف فله معنيان: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د طرق ثلاثه ؤ د اسم تفضيل نه اجمالا نو شروع يې وکړه په بيان د استعمال د اسم تفضيل کې په طرق ثلاثه ؤ سره تفصيلا. **فاذا** کې دا فا تفصيليه ده.
**ترجمه: فاذا اضيف** که چرته اضافت وکړی شي د اسم تفضيل معرفې ته او اسم تفضيل په معنی تفضيلي کې مستعمل وي **فله معنيان** نو ثابت دي د دې اسم تفضيل لپاره دوه معاني، او که اضافت د اسم تفضيل نکرې ته راغلی وو نو عدم مطابقت واجب دی، او که مضاف الی المعرفه وو، خو په معنی تفضيلي کې نه وو مستعمل شوی نو هلته مطابقت واجب دی د موصوف سره، او که اضافت د اسم تفضيل راغلی وو معرفې ته او په معنی تفضيلي سره وو، نو هلته دوه معاني دي په يوه معنی باندې مطابقت واجب دی د موصوف سره او په بله معنی باندې جواز د وجهين دی. **احدهما** يو د دې معنيين نه **وهو الاکثر** چې دغه معنی اوله اکثر ده د ثاني نه ان تقصد چې قصد کړی شي **به** په دې اسم

تفضيل سره **الزيادة** زيادت د فاعل د اسم تفضيل په اصل معنی مصدري کې **على من** په هغه چا باندې **اضيف** چې اضافت کړی شوی دی د دې اسم تفضيل **اليه** هغه شي ته فقط، دې ته زيادت مقيد والي خکه زيادت د فاعل د اسم تفضيل راغلی دی په معنی مصدري کې فقط د مضاف اليه نه **احدهما** مبتدا ده (ان تقصد به الزيادة) ورله خبر دی او **هو الاکثر** جمله معترضه واقع شوې ده بين المبتدا والخبر لپاره د بيان د وجه د تقديم د معنی اولی په معنی ثاني باندې (اضيف اليه) کې اليه ضمير راجع دی من ته، او من راغې د ذوي العقولو لپاره او غير ذوي العقول پکې داخل دي على سبيل التغليب **فيشترط ان يكون منهم** شرط دی په استعمال د اسم تفضيل کې په دې معنی اول سره **ان يكون** کيدل د فاعل د اسم تفضيل **منهم** بعض د افرادو د مضاف اليه نه په اعتبار د مفهوم لغوي د لفظ سره لپاره د دې چې اشتراک راشي په اصل معنی مصدري کې د مفضل عليه سره چې مضاف اليه دی او خارج دی د مضاف اليه نه په اعتبار د ارادې سره لپاره د دې چې لازم نه شي اضافت د شي الی نفسه مثال لکه **زيد افضل الناس** دا افضل اسم تفضيل مستعمل شوی دی په اضافت سره او اضافت یې راغلی دی معرفې ته او دا په معنی تفضيلي سره دی او مستعمل دی په معنی اول سره چې هغه زيادت د فاعل د اسم تفضيل دی په معنی مصدري کې فقط د مضاف اليه نه ار شرط پکې هم موجود دی چې دا زيد يو فرد دی د افرادو د ناس نه

**سوال**: ته وايې چې شرط لپاره د اسم تفضيل بمعنی الاول کون د فاعل د اسم تفضيل دی داخل په مضاف اليه کې نو زه ستا نه تپوس کوم چې (زيد افضل الناس) کې فاعل د اسم تفضيل زيد دی دا داخل په الناس کې وايې که نه وايې، که وايې نو اضافت د شي الی نفسه راغی او که داخل یې نه وايې نو فاعل د اسم تفضيل بعض د افرادو د مضاف اليه نه نه شو، نو انتفاء د شرط راغله؟ **جواب**: زيد زه داخل وايم په الناس کې په اعتبار د مفهوم لغوي سره او خارج یې وايم په اعتبار د ارادې د متکلم سره

**سوال**: شرط لپاره د استعمال د اسم تفضيل بمعنی الاول کون د فاعل د اسم تفضيل بعض د افرادو د مضاف اليه نه ولې دی؟ **جواب**: لپاره د دې چې اشتراک راشي د فاعل د اسم تفضيل د مضاف اليه سره په اصل معنی مصدري کې

**سوال**: دا قاعده ستا منقوضه شوه په (زيد اعلم الجدار) سره چې دلته فاعل د اسم تفضيل بعض د افرادو د مضاف اليه نه دی؟ **جواب**: دا عام دی که بعض د افرادو د مضاف اليه نه حقيقة وي او که فرضا وي دلته فرضا دی **فلا يجوز يوسف احسن اخوته**: د دې وجې نه چې شرط په اسم تفضيل مستعمل بمعنی الاول کې کون د فاعل د اسم تفضيل دی داخل په افرادو د مضاف اليه کې نه دی جائز (يوسف احسن اخوته) چې دا اسم تفضيل مستعمل په معنی اول سره واخلې خکه لازميږي اجتماع د نقيضين، او اجتماع د نقيضين خو باطل ده نو دا ترکيب هم باطل شو، وجه د ملازمې اجتماع د نقيضين خکه راځي چې اضافت د اخوه چې ضمير ته شوی دی چې راجع دی يوسف ته دا دلالت کوي په دې خبره چې يوسف خارج دی د اخوه نه، خکه که خارج نه شي نو بيا لازميږي اضافت د شي الی

نفسه او که دې ته ګوري چې شرط په اسم تفضیل مستعمل بمعنی الاول کې دا دی چې فاعل د اسم تفضیل په بعض د افراد د مضاف الیه نه وي، دا دلالت کوي چې یوسف په اخوة کې چې مفضل علیه دی داخل دی، نو لازم شو کون د یوسف داخل په اخوة کي او خارج د اخوة نه، او دا نه ده مګر اجتماع د نقیضین ده لهذا دا ترکیب نه دی جائز (۲) یا دا ترکیب نه دی جائز **لخروجه عنهم** د وجې د خروج د یوسف نه د اخوة نه او شرط لپاره د اسم تفضیل مضاف بمعنی الاول عدم خروج د اسم تفضیل دی د مفضل علیه نه نو شرط منتفي شو او انتفاء د شرط مستلزم ده انتفاء د مشروط لره
**سوال:** یوسف ولې خارج دی د اخوة نه؟ **جواب: باضافتهم الیه** د وجې د اضافت د اخوة نه **الیه** یوسف ته او مضاف الیه خارج وي د مضاف نه نو د اضافت تقاضا دا ده چې د اخوة نه مراد باقي اخوه دي، علاوه د یوسف نه و الا لازمیږي اضافت د شئ الی نفسه نو یوسف احسن اخوته کې فاعل د اسم تفضیل داخل نه شو په مضاف الیه کې نو انتفاء د شرط راغله او انتفاء د شرط مستلزم وي انتفاء د مشروطو لره نو دا ترکیب ممتنع شو
**والثاني ان تقصد به الزيادة مطلقا: بط** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د معنی اول د اسم تفضیل مضاف الی المعرفه نه، نو شروع یې وکړه په بیان د معنی ثاني د اسم تفضیل مضاف الی المعرفه کې او دا معنی اول یې مقدم کړه په ثاني باندې (لانه اکثر من الثاني) نو وې ویل (الثاني ان تقصد.....)
**ترجمه:** معنی ثاني د هغه اسم تفضیل چې مضاف شوی دی معرفې ته **ان تقصد زیادة مطلقة** مقصود د متکلم زیادت د فاعل د اسم تفضیل دی مطلقا په دې شان سره چې دا فاعل د اسم تفضیل زائد نه دی په اصل معنی مصدري کې یواځې په مضاف الیه باندې بلکه لکه څنګه چې فاعل د اسم تفضیل زائد دی په اصل معنی مصدري کې د مضاف الیه نه نو دارنګې د غیر نه هم زائد دی (دا معنی د مطلقا ده). او دې معنی ثاني ته زیادت مطلقه وائي څکه دا زیادت مقصود د متکلم په اسم تفضیل مطلق دی او نه دی مقید په مضاف الیه سره.
سوال: هر کله چې زیادت مقصود د متکلم په اسم تفضیل سره مطلق دی او نه دی مقید په مضاف الیه سره نو بیا اضافت د اسم تفضیل مضاف الیه ته ولې کوي؟
**جواب: ويضاف** اضافت کولی شي د اسم تفضیل مضاف الیه ته **للتوضیح** لپاره د توضیح د اسم تفضیل که دا مضاف الیه معرفه وه یا لپاره د تخصیص د اسم تفضیل که دا مضاف الیه نکره وه لکه چې اضافت کولی شي د باقي صفاتو د تخصیص لپاره نحو (مصارع مصر حسن القوم) چې هلته شرط نه دی کون د موصوف بعض د مضاف الیه نه **فیجوز** پس جائز دی په دې معنی سره چې ته دا اسم تفضیل مضاف کړې یو جماعة ته چې هغه د جنس د فاعل د اسم تفضیل نه وي او دا فاعل داخل نه وي په هغې کې مثال لکه **یوسف احسن اخوته** شو، په دې مثال کې احسن صیغه د اسم تفضیل ده او دا مضاف شوی دی په اضافت الی المعرفه معنی ثاني سره چې هغه زیادت مطلقه دی او اضافت د اسم تفضیل راغلی دی داسې یو جماعة ته چې هغه د جنس د فاعل د اسم تفضیل نه دی او فاعل د اسم

تفضيل چې يوسف دی داخل نه دی په مضاف اليه كې چې هغه اخوة دی لپاره د دې چې لازم نه شي اضافة د شئ الی نفسه.

(۲) يا لازم نه شي كون د شخص اخ لنفسه ځكه اخوته كې ضمير راجع دی يوسف ته او دا چې داخل شي په دې اخوة كې بيا لازميږي كون د يوسف اخ د يوسف او دا نه دی جائز او اضافت شوی دی معرفې ته محض لپاره د توضيح چې د فاعل او د مضاف اليه په مينځ كې علاقه د اخوت ده او دا رنګې اسم تفضيل په دې معنى سره اضافت كولی شي هغه جماعة ته چې فاعل د اسم تفضيل داخل دی په هغه كې لپاره د وضاحت د نسب نحو (نبينا صلى الله عليه وسلم افضل القريش اى افضل الناس من بين قريش) نبي صلى الله عليه وسلم افضل دی د ټولو خلقو نه، نه يواځې د قريش نه او اضافت يې قريش ته شوی دی لپاره د تعين د نسب.

(۳) او كله اضافت د اسم تفضيل كولی شي داسې يو شي ته چې هغه نه دی د جماعة د فاعل د اسم تفضيل نه (نحو فلان اعلم بغداد اى اعلم مما سواه) او اضافت شوی دی بغداد ته لپاره د بيان او د توضيح د مسكن او د منشا.

**ويجوز في الاول: ربط:** هر كله چې فارغ شو مصنف د بيان د طريقې د استعمال د اسم تفضيل او د بيان د معنيين د اسم تفضيل مضاف الى المعرفه نه نو شروع يې وكړه په بيان د مطابقت او عدم مطابقت د اسم تفضيل كې د موصوف خپل سره ځكه اسم تفضيل په اعتبار د مطابقت او عدم مطابقت د موصوف سره په درې قسمه دی: (۱) يو هغه دی چې مطابقت واجب دی د موصوف سره. (۲) چې عدم مطابقت واجب دی د موصوف سره. (۳) دريم كې جواز د وجهين دی، اوس مطابقت كوم ځای كې واجب دی او عدم مطابقت كوم ځای كې واجب دی او جواز د وجهين كوم ځای دی نو هغه صورتونه بيانوي يجوز سره.

**ترجمه: و يجوز** او جائز دی او ممكن دی په امكان خاص سره **في الاول** په نوع اول كې د نوعين د اسم تفضيل مضاف الى المعرفه نه چې قصد زيادته الى من اضيف اليه دی **الافراد** افراد د اسم تفضيل اګر كه موصوف د دې مثنى او مجموع وي يعنى عدم مطابقت د اسم تفضيل د موصوف سره دارنګې جائز دی په دې كې تذكير اګر كه موصوف يې مؤنث وي. الافراد كې الف لام عهد خارجي دي يا عوضي دي مراد افراد د اسم تفضيل دی. **والمطابقة** او جائز دی مطابقت د اسم تفضيل د موصوف سره په افراد تثنيت جمعيت تذكير او تانيث كې المطابقة كې هم الف لام عهد خارجي دي يا عوض د مضاف اليه نه راغلي دي **لمن** د هغه موصوف سره **هو** چې دغه اسم تفضيل صفت واقع شوی دی **له** د دغه موصوف لپاره. مثال د عدم مطابقت نحو قوله تعالى [ ولتجدنهم احرص الناس ] او مثال د مطابقت نحو قوله تعالى [ اكابر مجرميها ].

**سوال:** اسم تفضيل مضاف الى المعرفه بمعنى الاول كې مطابقت او عدم مطابقت دواړه ولې جائز دی؟ **جواب:** دا ذو وجهتين دی من وجه مشابه دی د اسم تفضيل مستعمل بمن سره په تعيين د

مضاف اليه كي دا تقاضا د عدم مطابقت كوي او من وجه مشابه دى د اسم تفضيل مستعمل باللام سره په تعريف كي دا تقاضا د مطابقت كوي او عمل په جهتين چې ممكن وو نو اعمال اولى دى د اعمال نه نو مونږه د دواړو جهتين لحاظ وكړو نو مطابقت او عدم مطابقت دواړه جائز شو **واما الثاني** او هر چې ده نوع ثاني د اسم تفضيل مضاف نه چې مقصود په هغې كې زيادت مطلقه دى **والمعرف باللام** او اسم تفضيل معرف باللام **فلا بد** پس ضروري ده او واجب دى **من المطابقة** مطابقت د اسم تفضيل د موصوف سره په افراد تثنيت جمعيت تذكير او تانيث كې ځكه مطابقت واجب دى په مينځ د صفت او موصوف كې په وقت د عدم وجود د مانع كې او دلته مانع د مطابقت نه نه دى موجود چې هغه مشابهت دى د اسم تفضيل مستعمل بمعنى من سره، ځكه دا دواړه مشابه نه دى د اسم تفضيل مستعمل بمعنى من سره په تعين د مفضل عليه كې مثال لكه زيد ن الافضل الزيدان الافضلان الزيدون الافضلون هندن الفضلى الهنديان الفضليان الهندات فضليات **والذي بمن** او هغه اسم تفضيل چې مستعمله ولې شي په من تفضيلي سره **مفرد مذكر** مفرد مذكر راځي **لا غير** نه بل څه ځكه مطابقت د صفت د موصوف سره راځي په الحاق د علامات د تثنيه او جمع او مؤنث سره اوس دا علامات د تثنيه جمع او مؤنث به خالي نه وي يا به يې د من تفضيلي نه مخكې راوړي يا به يې وروستو راوړي كه مخكې يې راوړې نو لازميږي اجرا د علامه په وسط د كلمه كې حكما او دا نه ده جائز ځكه اصل په استعمال كې استعمال د اسم تفضيل دى په من سره لپاره د فرق د افعل تفضيلي د افعل صفتي سره او د دې اصالت د وجې نه من كالجزا ګرځېدلى دى د اسم تفضيل نه او كه د من نه يې وروستو راوړې نو لازميږي اجراء د علامه په كلمه أخرى كې او دا باطله ده مثال د اسم تفضيل چې مستعمل دى په من سره لفظا او مطابق نه دى د موصوف سره نحو قوله تعالى ﴿ قُلْ إِن كَانَ ءَابَآؤُكُمْ وَأَبْنَآؤُكُمْ وَإِخْوَٰنُكُمْ وَأَزْوَٰجُكُمْ وَعَشِيرَتُكُمْ وَأَمْوَٰلٌ ٱقْتَرَفْتُمُوهَا وَتِجَٰرَةٌ تَخْشَوْنَ كَسَادَهَا وَمَسَٰكِنُ تَرْضَوْنَهَآ أَحَبَّ إِلَيْكُم مِّنَ ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ ﴾ و كقول المؤذن: (الصلوة خير من النوم) او چې مستعمل وي په من سره تقديرا او مطابق نه وي د موصوف سره نحو قوله تعالى ﴿لَيُوسُفُ وَأَخُوهُ أَحَبُّ إِلَىٰٓ أَبِينَا مِنَّا﴾.

بس زده كړه دا خبره چې اسم تفضيل مستعمليږي په كلام د عربو كې په يو د طرق ثمانيو سره:
(۱) مستعمل بمن لفظا نحو الصلوة خير من النوم. (۲) مستعمل بمن تقديرا نحو ليوسف واخوه احب الى ابينا (۳) مضاف الى النكره نحو المجاهدون افضل رجال، وقول صاحب التلخيص لانها اخصر طريق (۴) اسم تفضيل مضاف الى المعرفه قصد زيادته مطلقا نحو محمد افضل القريش.
(۵) مضاف الى المعرفه، خالي د معنى تفضيلي نه (نحو زيد وعمرو اعلما القرية اى عالما القرية
(۶) مستعمل په الف لام سره نحو زيد ن الافضل. (۷) مضاف الى المعرفة قصد زيادته على من اضيف اليه، (نحو: قوله تعالى: ولتجدنهم احرص الناس.
(۸) مجرد عن اللام والاضافة ومن، او عاري د معنى تفضيلي نه كما في قول الشاعر:

ان الذي سمك السماء بنى لنا ... بيتا دعائمه اعز واطول

ای عزیز و طویل
په اول، دویم، دریم صورت کې عدم مطابقت واجب دی د موصوف سره او په څلورم پنځم او شپږم صورة کې مطابقت واجب دی د موصوف سره او په اوم او اتم صورة کې جواز د وجهین دی یعنی مطابقت او عدم مطابقت دواړه جائز دي.

**ولا یعمل في مظهر. الخ ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د طریقه د استعمال د اسم تفضیل نه پس شروع یې وکړه په بیان د عمل د اسم تفضیل کې نو وې ویل (ولایعمل في مظهر)

**(ترجمه) ولا یعمل** عمل نه کوي اسم تفضیل د رفع بنا بر فاعلیت په قرینې د استثناء سره **في مظهر** په اسم ظاهر کې فی وقت من الاوقات **الا** مګر عمل کوی اسم تفضیل د رفع بنا بر فاعلیت په اسم ظاهر

**اذا کان** کله چې دا مشروط وي په شروط ثلاثه ؤ سره:

(۱) چې مسند الیه او ما جری علیه د اسم تفضیل غیر غیر وي.

(۲) او په مابین د مفضل او مفضل علیه کې اتحاد ذاتي او فرق اعتباري وي.

(۳) اسم تفضیل واقع شوی وي وروستو د حرف نفي نه بیا دا عمل کوي د رفع بنا بر فاعلیت په اسم ظاهر کې ځکه دا په معنی د فعل سره دی و الافلا ځکه اسم فاعل او اسم مفعول عمل کوي په شان د عمل د فعل خپل د وجې د مشابهت نه د فعل سره لفظا او معنی او صفت مشبه عمل کوي د وجې د مشابهت نه د اسم فاعل سره په ګردان کې او اسم تفضیل عمل نه کوي په شان د عمل د فعل خپل ځکه دا مشابه نه دی د فعل سره ځکه دا دلالت کوي په زیادت د معنی مصدري باندې بالنسبة الی الغیر بخلاف الفعل او نه مشابه دی د اسم فاعل سره په ګردان کې ځکه اصل په اسم تفضیل کې استعمال د اسم تفضیل دی په من سره لپاره د فرق د افعل صفتي د افعل تفضیلي سره او اسم تفضیل چې مستعمل شي په من سره نو هغه مفرد مذکر ابدا وي ولایثني و لایجمع او اسم تفضیل چې مستعمل شي په اضافت او الف لام سره دا محمول دی په اسم تفضیل مستعمل بمن باندې په رفع سره احتراز راغی د نصب نه ځکه عمل د اسم تفضیل د نصب بنا بر مفعول به او بنا بر مفعول معه نه دی راغلی په استعمال د کلام د عربو کې نه په مظهر کې او نه په مضمر کې او عمل د اسم تفضیل د نصب بنا بر تمیز او بنا بر ظرفیت او بنا بر حالیت راغلی دی په استعمال د کلام د عربو کې بلا قید وشرط ځکه په ظرف او حال کې د عمل کولو لپاره کافي ده رائحه د فعل او په تمیز کې اسم جامد هم عمل کولی شي نو اسم تفضیل خو خامخا عمل کولی شي مثال د اول نحو قوله تعالی ﴿أَنَا أَكْثَرُ مِنكَ مَالًا وَأَعَزُّ نَفَرًا﴾ وقوله علیه السلام: (اکملهم دینا اکثرهم خُلقا)، او مثال د ثاني او د ثالث نحو زید احسن منك الیوم راکبا.

**تشریح: سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟

**جواب: ربط** د ماقبل سره دا دی چې مخکې بیان د طریقه د استعمال د اسم تفضیل او بیان د صورتونو: مطابقت او عدم مطابقت د اسم تفضیل د موصوف سره وو او دا بیان د عمل د اسم تفضیل دی او

غرض د مصنف د دې عبارت نه دوه خبرې دي (۱) اظهار د عمل د اسم تفضيل د رفع بنا بر فاعليت په اسم ظاهر کې (۲) بيان د شروطو ثلاثه ؤ د عمل د اسم تفضيل د رفع بنا بر فاعليت په اسم ظاهر کې

**سوال:** ولايعمل في مظهر کې دا عمل منفيه په خالي نه وايي يا به نفي د عمل مطلقا وايي او يا به نفي د عمل د رفع بنا بر فاعليت وايي. که نفي د عمل مطلقا وايي نو دا باطل دی ځکه اسم تفضيل عمل کوي په اسم ظاهر کې د نصب بنا بر ظرفيت حاليت او تميز او که نفي د عمل د رفع بنا بر فاعليت وائي نو د هغې لپاره لابدې ده د قرينې نه، قرينه څه ده؟

**جواب:** مراد د مصنف په دې مقام کې نفي د عمل مطلقا نه ده بلکه نفي د عمل د رفع ده، بنا بر فاعليت او قرينه په دې باندې وروستو استثناء ده

**پس زده کړه دا خبره** چې عمل د اسم تفضيل دوه قسمه دی (۱) عمل د نصب (۲) د رفع او عمل د نصب د اسم تفضيل دوه قسمه دی (۱) عمل د نصب بنا بر مفعول به يا بنا بر مفعول له يا بنا بر مفعول معه (۲) دويم عمل د نصب دی بنا بر ظرفيت بنا بر حاليت، بنا بر تميز نو عمل د اسم تفضيل د نصب بنا بر مفعول به له معه نه دی راغلی په استعمال د کلام د عربو کې (۱) السند عليه التتبع والاستقراء (۲) عمل د نصب بنا بر مفعول به نه دی راغلی ځکه مفعول به د اسم تفضيل لپاره مفضل عليه دی او مفضل عليه نه راځي مګر مضاف اليه يا مدخول د من او مضاف اليه او مدخول د من مجرور راځي نه منصوب، يا مفضل عليه راځي معهود په الف لام عهد خارجي سره چې هغه مذکور وي مخکې د اسم تفضيل نه صراحتا يا کنايةً يا علما

**سوال:** چې ته وايې اسم تفضيل عمل د نصب بنا بر مفعول به نه کوي دا قاعده ستا منقوضه شوه بقوله تعالى: ﴿ هُوَ أَعْلَمُ مَن يَضِلُّ عَن سَبِيلِهِ ﴾ دلته اعلم اسم تفضيل عمل د نصب کړی دی [ من يضل ] کې بنا بر مفعول به؟ **جواب:** د دې ترکيب دغسې نه دی، بلکه ترکيب دا دی چې معمول د اسم تفضيل مقدر دی او من يضل مفعول به د فعل مقدر دی (فيکون التقدير وهو اعلم من کل واحد يعلم من يضل عن سبيله) او اسم تفضيل عمل د نصب کوي بنا بر مفعول فيه يا حاليت يا تميز بلا قيد و شرط مثال د تميز نحو قوله تعالى: ﴿ أَنَا أَكْثَرُ مِنكَ مَالًا وَأَعَزُّ نَفَرًا ﴾ وقوله عليه السلام (اکملهم دينا لکثرهم خلقا) او مثال د حال او مفعول فيه (نحو زيد احسن منك اليوم راکبا).

**سوال:** اسم تفضيل عمل د نصب بنا بر تميز يا حاليت يا ظرفيت بلا قيد وشرط ولې کوي؟

**جواب:** ځکه د ظرف او حال لپاره کافي ده رائحه د فعل يعنی په دې کې هغه شی عمل کولی شي چې هغې کې بوی د معنی د فعل وي، او تميز کې اسم جامد هم عمل کوي، مثال د حال (هذا زيد قائما) او مثال د ظرف (نحو اسد علی وفي الحروب نعامة) او مثال د تميز (نحو رطل زيتا) نو دا خو صيغه د اسم تفضيل ده دلالت کوي په معنی مصدري باندې په طريق اولی سره عمل کولی شي او عمل رفع د اسم تفضيل دوه قسمه دی (۱) عمل د رفع په ضمير کې (۲) عمل د رفع په اسم ظاهر کې نو اسم تفضيل عمل د رفع بنا بر فاعليت کولی شي په ضمير کې بلا قيد و شرط ځکه دا ضعيف دی

اثر یې نه ظاهرېږي په لفظ کې نو دا محتاج نه دی قوت د عامل ته او اسم تفضیل عمل د رفع بنا بر فاعلیت په اسم ظاهر کې بلا قید وشرط نه شي کولی بلکه عمل د دې مشروط دی په شروط ثلاثه او سره که دا درې واړه معاً موجود وو نو عمل د رفع کوي بنا بر فاعلیت و الافلا.

**سوال:** دا درې واړه شرطونه چې موجود وي نو بیا اسم تفضیل عمل د رفع بنا بر فاعلیت په اسم ظاهر کې ولې کوي؟ **جواب:** دا اسم تفضیل بیا په معنی د فعل سره دی نو ځکه عمل درفع بنا بر فاعلیت کوي په اسم ظاهر کې.

**سوال:** چې دا درې واړه شرطونه موجود نه وو نو بیا اسم تفضیل عمل د رفع بنا بر فاعلیت اسم ظاهر کې ولې نه کوي؟ **جواب:** د وجې د عدم مشابهت د اسم تفضیل نه د فعل او د اسم فاعل سره ځکه اسم فاعل عمل کولو په شان د عمل د فعل خپل د وجې د مشابهت نه د مضارع سره لفظا او معناً او صفت مشبه عمل کولو په شان د عمل د فعل خپل د وجې د مشابهت نه د اسم فاعل سره په ګردان کې او اسم تفضیل نه مشابه دی د فعل سره ځکه دا دلالت کوي په زیادت د معنی مصدري علی غیره باندې بخلاف الفعل، او نه مشابه دی د اسم فاعل سره په ګردان کې ځکه اصل په اسم تفضیل کې اسم تفضیل مستعمل بمن دی لپاره د فرق بین افعل صفتي او افعل تفضیلي او اسم تفضیل چې مستعمل شي په من سره هغه نه تثنیه کیږي او نه جمع کیږي او اسم تفضیل مستعمل باللام و الاضافة محمول دی په اسم تفضیل مستعمل بمن باندې **الا** مګر دا اسم تفضیل عمل د رفع بنا بر فاعلیت کولی شي په اسم ظاهر کې **اذا کان** که چرته وو دا اسم تفضیل **صفة** وصف **لشئ** لپاره د یو موصوف یعنی دا اسم تفضیل جاري وو په ماقبل باندې په لفظ کې په دې شان سره چې دا واقع شوی دی صفت د ماقبل یا حال یا خبر لپاره د دې چې د دې اسم تفضیل لپاره په ماقبل کې معتمد علیه پیدا شي چې دا اسم تفضیل تکیه ولګوي په هغې باندې او عمل وکړي په مابعد اسم ظاهر کې د رفع بنا بر فاعلیت **وهو** او دغه اسم تفضیل **في المعنی** په معنی کې صفت دی او ثابت دی **لمسبب** د ما بعد لپاره چې هغه مسبب دی ځکه چې وجود د ما بعد موقوف دی په وجود د ماقبل پورې لپاره د دې چې ما بعد اسم ظاهر معمول پیدا شي اسم تفضیل لره داسې مسبب چې مشترك دی په مابین د ما جری علیه او غیر کې او داسې مسبب **مفضل** چې مفضل دی **باعتبار الاول** په اعتبار د اول سره چې هغه موصوف دی **علی نفسه** په خپل ځان باندې **باعتبار غیره** او مفضل علیه دی په اعتبار د غیر د اول سره یعنی بین المفضل والمفضل علیه اتحاد ذاتي او فرق اعتباري دی لپاره د دې چې معنی تفضیلي کمزوری شي **منفیا** او داسې اسم تفضیل چې منفي وي په حرف نفي سره.

(٢) یا په حال کون د دې اسم تفضیل کې چې دا منفي وي په حرف نفي سره.

یعنی اسم تفضیل به واقع شوی وي وروستو د حرف نفي نه لپاره د دې چې دا حرف نفي متوجه شي دې قید ته چې زیادت د معنی مصدري دی او قید د دې نه لرې کړي او دا په معنی د اصل فعل سره پاتې شي نو عمل د رفع **به** وکړي بنا بر فاعلیت په اسم ظاهر کې.

**سوال:** منفیا منصوب دی او منصوبات دولس دي دا کوم یو قسم دی په هغه دولسو اقسامو کې؟

**جواب:** (۱) دا خبر بعد الخبر دی د کان لپاره.(۲) یا دا حال واقع شوی دی د اسم د کان نه. (۳) یا دا منصوب دی بنا بر مفعول مطلق د مفضل لپاره.

**سوال:** مفعول مطلق خو مصدر وي او منفیا خو صیغه د اسم مفعول ده او اسم مفعول مفعول مطلق نه واقع کیږي.

**جواب:** زه دېته مفعول مطلق وایم په اعتبار د حذف د موصوف سره ای تفضیلا منفیا بیا موصوف حذف شو او دا قائم شو مقامه او د هغې اعراب یې واخستلو نو دا مفعول مطلق دی مجازا او نیابةً.

**سوال:** ما ته مثال ونبایه چې اسم تفضیل عمل د رفع کړی وي په اسم ظاهر کې بنا بر فاعلیت او جامع دې شروطو وي؟ **جواب:** **ما رایت رجلا احسن في عینیه الکحل منه في عین زید** په دې مثال کې لابدي ده د معرفت د امور ثلاثه نه: (۱) ترکیب (۲) ترجمه (۳) تطبیق بالمثال.

**ترکیب:** دا دی **ما** نافیه **رایت** فعل فاعل **رجلا** موصوف **احسن** اسم تفضیل **في عینه** جار مجرور متعلق دی احسن پورې یا په اعتبار د متعلق سره حال دی د فاعل د احسن نه **الکحل** فاعل د احسن لپاره دی **منه** جار مجرور ظرف لغوه متعلق دی احسن پورې **في عین زید** جار مجرور ظرف لغوه دا هم متعلق دی احسن پورې اسم تفضیل سره د فاعل او سره د متعلقات نه صفت د موصوف چې رجلا دی موصوف مع الصفة مفعول به د رایت فعل سره د فاعل او د مفعول نه جمله فعلیه خبریه منفیه.

**سوال:** رایت فعل دی د افعال قلوب نه دوه مفعوله غواړي دلته رجلا موصوف مع الصفة، مفعول اول دی او مفعول ثاني نشته. **جواب:** رایت دوه قسمه دی (۱) بمعنی علمت (۲) بمعنی ابصرت، بمعنی علمت چې راشي نو دا فعل دی د افعال قلوب نه دوه مفعوله غواړي او بمعنی ابصرت فعل دی د افعال الحواس نه یو مفعول غواړي او دلته بمعنی ابصرت دی نه بمعنی علمت.

**ترجمه:** ما نه دی لیدلی یو سړی داسې سړی چې ښایسته دی په سترګو د دې سړي کې **الکحل** رانجهٔ نه د دې رانجو نه **في عین زید** چې په سترګو د زید کې یې واخلې یعنی دا رانجه چې څومره ښایسته ښکاري په سترګو د زید کې نو د بل چا په سترګو کې دومره ښایسته نه ښکاري او په دې لفظ کې کحل د عین زید مفضل علیه دی او کحل د عین د رجل مفضل دی او په اعتبار د مراد سره بالعکس دی چې کحل د عین زید مفضل او کحل د عین رجل مفضل علیه دی.

**تطبیق بالمثال:** احسن صیغه د اسم تفضیل ده عمل یې کړی دی د رفع بنا بر فاعلیت په اسم ظاهر کې چې الکحل دی او هغه درې واړه شرطونه پکې موجود دی په دې شان سره چې دا صیغه د اسم تفضیل لفظ کې جاري ده په ماقبل باندې چې صفت د رجلا دی او په معنی کې ثابت دی ما بعد لره چې الکحل دی نو ما جری علیه او مسند الیه د اسم تفضیل غیر غیر شو، او په مابین د مفضل او مفضل علیه کې اتحاد ذاتي او فرق اعتباري دی چې دغه یو کحل دی هم مفضل دی او هم مفضل علیه دی په دې شان سره چې دغه کحل په عین زید کې واخلې نو مفضل دی او په عین د رجل کې مفضل علیه او دا احسن منفي دی په حرف نفي سره او صیغه د اسم تفضیل چې عمل د رفع وکړي

بنا بر فاعلیت په اسم ظاهر کې په شروط ثلاثه ؤو سره دېته مسئله د کحل وائي عند النحاة، دا تسمیه د کل ده په اسم د جز اشهر سره برابره خبره ده چې لفظ د کحل پکې وي لکه په دې مثال کې شو او که لفظ د کحل په کې نه وي کقول ابن مالك:

کلن تری في الناس من رفیق اولی به الفضل من الصدیق

وقول الاخر: شعر ما رایت امرأ احب الیه البذ ل منه الیکا یا ابن سنان

بل مثال لکه دا حدیث د نبي علیه السلام شو (ما من ایام احب الی الله فیه الصوم منه في عشرذي الحجة)، (والمراد منه تسعة ایام ذي الحجة لان الصوم في یوم الاضحی حرام بالاتفاق وانما اطلق لفظ العشر بناء علی التغلیب).

**سوال:** (قالت عائشة رضي الله عنها ما رایت النبي صلی الله علیه وسلم صائما في العشر قط)؟

**جواب:** قال الشیخ في.......... قد ثبت في الاحادیث فضیلة الصوم في هذه الایام وعدم رؤیتها لعلها لمرض او للسفر.

**سوال:** دا درې شرطونه د عمل د رفع د اسم تفضیل لپاره په طریقه د اولویت سره دی که په طریقه د جواز سره؟ **جواب:** د جمهورو په نزد باندې دا درې واړه شرطونه د جواز د عمل د اسم تفضیل لپاره دی د رفع بنا بر فاعلیت په اسم ظاهر کې په دی شان سره چې دا درې واړه شرطونه چې موجود وو نو اسم تفضیل عمل د رفع کولی شي اسم ظاهر کې و الافلا، او د اخفش او د سیبویه په نزد باندې دا شرطونه د اولویت لپاره دی نه د جواز لپاره په دې شان سره چې دا درې واړه شرطونه موجود وي نو اسم تفضیل عمل د رفع بنا بر فاعلیت په اسم ظاهر کې په طریق اولی سره کولی شي او که دا نه وو نو بیا عمل کوي خو بدون الاولویت لهذا (مررت برجل خیر منه عمه) دا ترکیب جائز دی د اخفش او سیبویه په نزد باندې او په نزد جمهورو نه دی جائز.

**سوال:** مررت برجل افضل منه ابوه څه ترکیب دی؟ **جواب:** په دې کې دوه ترکیبونه دي: (۱) جمهور وائي چې افضل منه خبر مقدم دی او ابوه مبتدا مؤخره ده دا جمله صفت دی د رجل لپاره ځکه ابوه معرفه ده او افضل منه نکره ده او دا قاعده ده چې نکره او معرفه چې یو ځای راشي نو د معرفې نه به مبتدا جوړه وی او د نکرې نه به خبر جوړه وی اگر چې معرفه وروستو وي د نکرې نه.

(۲) او سیبویه وائي چې افضل منه مبتدا ده او ابوه خبر دی مبتدا سره د خبر نه جمله صفت د رجل دی ځکه اصل په مبتدا کې تقدیم دی نو تر څو چې د ماقبل نه مبتدا جوړیده نؤ د هغې نه به مبتدا جوړه وی او د مابعد نه به خبر جوړه وی او اسم تفضیل مستعمل بمن معرفه ده حکما ځکه (۱) لکه څنګه چې په معرفه باندې دخول د الف لام ممتنع دی نو په دې هم ممتنع دی. (۲) د معرفه اضافت ممتنع دی د دې اضافت هم ممتنع دی. (۳) معرفه دلالت کوي په مصداق معین باندې او اسم تفضیل مستعمل بمن هم دلالت کوي په مصداق معین باندې لیکن مذهب د سیبویه کمزوری دی په نسبت سره مذهب د جمهورو ته ځکه: (۱) دا مخالف دی د قاعدې د علم النحو نه (۲) او د ده په ترکیب باندې لازمیږي اضمار قبل الذکر لفظا او رتبتا

**سوال:** داسې ترکیب ولې نه کوی چې ابوه فاعل دی د اسم تفضیل لپاره چې افضل دی او اسم تفضیل سره د فاعل او متعلق نه شبه جمله صفت د رجل دی او دا اسم تفضیل مجرور بالفتحه دی لانه غیر منصرف؟ **جواب:** داسې ترکیب زه نه شم کولی ځکه چې عمل د اسم تفضیل په اسم ظاهر کې د رفع بنا بر فاعلیت مشروط دی په شروط ثلاثه ؤ سره یو شرط دا دی چې وروستو د حرف نفي نه به وي او دلته دغه شرط نشته.

(۲) مفضل او مفضل علیه کې به اتحاد ذاتي او فرق اعتباري وي او دلته دا نشته البته د اخفش په نزد باندې دغه ترکیب هم جائز دی ځکه د هغه په نزد عمل د اسم تفضیل لپاره دغه شرطونه د اولویت لپاره دی نه د جواز لپاره.

**سوال:** اسم تفضیل چې جامع د دې شروط ثلاثه ؤو وي نو هغه ولې عمل کوي د رفع بنا بر فاعلیت په اسم ظاهر کې؟ **جواب: لانه بمعنی حسن** اسم تفضیل چې کله جامع د شروطو ثلاثه ؤ وي نو دا عمل د رفع بنا بر فاعلیت په اسم ظاهر کې ځکه کوي چې دا په معنی د فعل سره دی چې حسن دی او چې کله مشروط نه وي په شروطو ثلاثه ؤ سره بیا په معنی د فعل سره نه دی نو عمل د رفع بنا بر فاعلیت په اسم ظاهر کې نه شي کولی.

**سوال:** اسم تفضیل چې جامع د دې شروطو ثلاثه ؤ وي نو په معنی د فعل سره ولې دی؟

**جواب:** ځکه اسم تفضیل دلالت کوي په زیادت د معنی مصدري باندې او دا واقع دی وروستو د حرف نفي نه او قاعده دا ده چې حرف نفي چې داخله شي په یو کلام باندې چې هغه مقید وي په یو قید سره نو دا نفي متوجه کیږي قید ته یعنی هغه قید نفي کوي نو دا حرف نفي متوجه شو زیادت د معنی مصدري ته نو اسم تفضیل یې په معنی د اصل فعل سره پاتي کړو.

(۲) یا مخکې د دخول د حرف نفي نه دا اسم تفضیل مجرد کړی وو د معنی د زیادت نه عرفاً او بیا دغې نه وروستو دا حرف نفي په دې باندې داخل کړی شوی دی.

**سوال:** مخکې د دخول د حرف نفي نه یې ولې دا مجرد گرځولی دی د معنی تفضیلي نه؟

**جواب:** ځکه نفي د زیادت په حرف نفي سره مناسب د مدح سره نه ده نو هر کله چې مجرد کړی شو د معنی د زیادت نه عرفا نو اصل حسن پاتې شو دا نفي متوجه شوه حسن د رجل ته چې دا حسن د رجل قیاس کړی شوی دی حسن د زید ته یا په طریقه د مساوات سره او یا په طریقه د دون سره او دا دون خو مناسب نه دی د مقام سره نو دې حرف نفي، نفي د مساوات وکړه نه د دونیت.

**سوال:** ته وایې چې په دې مثال مذکور کې اسم تفضیل عمل کړی دی په اسم ظاهر کې د وجې د ختمیدو د زیادت د معنی تفضیلي نه په نفي سره بیا خو پکار ده چې دا عمل وکړي په ما رایت رجلا افضل ابوه من زید کې ځکه دا حرف نفي داخل شوې دی په اسم تفضیل باندې معنی تفضیلي یې لرې کړې ده او دا په معنی د اصل فعل سره دی؟

**جواب:** فرق دی په مابین د مثالین کې ځکه په مفضل او مفضل علیه په مثال مذکور کې اتحاد ذاتي او فرق اعتباري دی او (ما رایت رجلا افضل ابوه من زید) کې مفضل او مفضل علیه کې اختلاف ذاتي دی نو معنی تفضیلي کمزورې نه شوه نو معاد کیږي حکم د دې پس د نفي د معنی تفضیلي نه چې عدم جواز د عمل د دې دی په مظهر کې په خلاف د مثال مذکور نه چې هلته معنی تفضیلي کمزورې شوې ده یو ځل چې ظاهر شي په نفي سره زائل کیږي بالکلیه نو هغه حکم بیا نه معاد کیږي چې هغه عدم جواز د عمل د دې دی په مظهر کې **مع انهم لو رفعوا لفصلوا** دا د ماقبل لپاره تائید هم دی او جواب د سوال هم دی.

**سوال:** داسې ترکیب ولې نه کوې چې **احسن** صیغه د اسم تفضیل ده ضمیر پکې مستتر دی راجع دی کحل ته هغه ورله فاعل، اسم تفضیل سره د فاعل نه شبه جمله، خبر مقدم، **الکحل** مبتدا مؤخره دا بیا دا جمله صفت واقع شوې دی د رجلا لپاره؟

**جواب:** دا ترکیب زه نه شم کولی ځکه **مع انهم** سره دد ې نه په تحقیق سره دا نحویان **لو رفعوا** که دوی رفع ورکړي اسم تفضیل له بنا بر خبریت او اسم ظاهر له بنا بر ابتدائیت **لفصلوا** نو خامخا دغه نحویان جدائي راولي **بینه** په مینځ د اسم تفضیل کې چې احسن دی **و بین معموله** او په مینځ د معمول د دې کې چې منه دی **باجنبي** په اجنبي سره **وهو الکحل** چې هغه اجنبي کحل دی په دې معنی سره چې معمول د ما قبل نه دی او معمول د احسن هم نه دی او فصل په مینځ د اسم تفضیل او معمول د اسم تفضیل کې نه دی جائز د دې وجې نه په دې قول د شاعر کې چې (فخیر نحن عند الناس منکم) دی اخفش نحن ته فاعل د خیر وائي او منکم متعلق دی خیر پورې او عمل د صفت جائز وائي بې د اعتماد نه ځکه که دا ترکیب ونه کړو نو خیر خبر مقدم او نحن مبتدا مؤخره ده نو فصل راځي بین اسم التفضیل ومعموله باجنبي وذا لایجوز، هر کله چې دا ترکیب ممتنع شو پس متعین شو عمل د اسم تفضیل د رفع بنا بر فاعلیت په اسم ظاهر کې.

**سوال:** سیبویه (مع انهم لو رفعوا... الخ) دلیل ګرځولی دی د ماقبل لپاره او (لانه بمعنی حسن) یې ورله مؤید ګرځولی دی د دې دلیل لپاره او سیبویه امام دی په نحوه کې د هغه خبره منل پکار دي نو تا د هغه نه خلاف ولې وکړو چې (لانه بمعنی حسن) دې دلیل وګرځولو او (مع انهم) دې مؤید وګرځوو؟

**جواب:** دا دی چې مصنف **لانه بمعنی حسن** دلیل ګرځولی دی (او مع انهم لو رفعوا) یې مؤید ګرځولی دی، ځکه که (مع انهم... الخ) یې دلیل ګرځولی وی او (لانه بمعنی حسن) یې مؤید ګرځولی وی نو دا چې څنګه دلیل د منفي لپاره ګرځي نو د مثبت لپاره هم ګرځي یعنی **ما** لرې کړه او (رایت رجلا... الخ) ووایه نو بیا هم دې احسن صیغه د اسم تفضیل عمل کړی دی په الکحل کې د رفع بنا بر فاعلیت ځکه که دا ترکیب ونه کړو نو احسن به خبر مقدم شي او الکحل به مبتدا مؤخر شي نو بیا هم فصل په اجنبي سره راغی او قید د نفي معتبر دی بالاجماع نو که دا (مع انهم لو رفعوا) یې دلیل ګرځولی وی نو قید د نفي لغوه کیدو.

**سوال:** (ما رايت رجلا احسن... الخ) په دې مثال کې مصنف الكحل مقدم کړی دی په (في عين زيد) باندې داسې يې ولې ونه ويل چې (ما رايت رجلا احسن في عينه منه في عين زيد الكحل) بيا چې مونږه احسن ته خبر مقدم او الكحل ته مبتدا مؤخره ويلی وی نو فصل په اجنبي سره نه راتلو نو دغسې يې ولې ونه ويل؟ **جواب:** (منه في عين زيد) په دې مثال کې مصنف مقدم نه کړو په الكحل باندې ځکه د دې په معنی کې تعقيد راتلو او د تعقيد د وجې نه بيا دا کلام د فصاحت نه خارجيدو ځکه کلام فصيح هغې ته وايې چې خالي وي د ضعف تاليف تنافر د کلمات او د تعقيد نه سره د فصاحت د کلمات نه او تعقيد عند البلغاء هغه کلام ته وائي چې نه وي ظاهر الدلالة په معنی مراد د متکلم باندې لخلل او دا په دوه قسمه دی: تعقيد لفظي، تعقيد معنوي، ځکه دا خلل چې په کلام کې راغلی دی دا به خالي نه وي يا به په نظم کې راغلی وي او يا به په انتقال کې وي که په نظم کې وو نو تعقيد لفظي ورته وائي او که په انتقال کې راغلی وو نو تعقيد معنوي ورته وائي. نو تعقيد لفظي دې ته وائي چې دا متکلم په خپل کلام کې څه تصرفات وکړي چې د هغه تصرفات د وجې نه صعوبت د معنی مراد د متکلم راشي په نسبت سره سامع او مخاطب ته: او تعقيد معنوي دېته وائي چې انتقال نه کوي ذهن د سامع او مخاطب د معنی موضوع له د دې لفظ نه معنی مراد د متکلم ته او تعقيد مطلقا منافي دی د فصاحت الكلام سره مثال د هغه کلام چې خارج شوی دی د دائرې د فصاحت نه د وجې د تعقيد لفظي نه دا قول د فرزدق شو: شعر:

وَمَا مِثلُهُ فِي النَّاسِ الا مُمَلَّكاً — اَبُواُمِه حَيٍ اَبُوهُ يُقَارِبُهُ

او مثال د هغه کلام چې خارج شوی وي د دائرې د فصاحت نه د تعقيد معنوي د وجې نه لکه دا قول د شاعر شو: شعر:

سَاَطْلُبُ بُعْدَ الدار عنكم لتقربوا — وتسكب عيناي الدموع لتَجمُدَا

**ولك ان تقول: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د اثبات د مسئلې د کحل نه او د بيان د شرائطو د مسئلې د کحل نه پس اراده وکړه دې مصنف چې تنبيه راکړي مونږ ته په دې خبره باندې چې دا مسئله د کحل نه ده منحصره په دې عبارت مذکوره پورې بلکه ممکنه ده چې تعبير وکړی شي د دې نه په عبارت قصيره او عبارت اقصره سره. يعني په دې مسئله د کحل کې درې قسمه عبارتونه جائز دي (۱) مطول (۲) مختصر (۳) اخصر.

عبارت طويله خو بيان شو او (ولك ان تقول... الخ) سره عبارت قصيره بيانوي **ولك** جائز دي ستا لپاره **ان تقول** چې ته وايې په دې مثال مذکور کې **ما رايت رجلاً احسن في عينه الكحل من عين زيد** په اقامت د من عين زيد سره په مقام د منه في عين زيد کې نو دا عبارت مختصر دی د هغه عبارت مذکوره نه په قدر د ضمير د منه او کلمه د في باندې چې دا ضمير د منه او کلمه د في په هغه عبارت کې شته او دلته نشته نو ديکې اختصار راغی. دا عبارت قصيره د ماتن دی او يو عبارت قصيره د شارح جامي دی چې هغه وائي چې دا لفظ د عين هم لرې کړی او (ما رايت رجلا احسن في عينه الكحل من زيد) ووايې نو بنه اختصار راځي په عبارت کې سره د ظهور د معنی مقصود نه ځکه

معنی د عبارت طویله او عبارت قصیره یوه ده مصداقا لکه مصداق د حیوان ناطق او د انسان چې یو دی، او دا عبارت په حذف د مضاف سره نه دی چې د عین نه مخکې مضاف مقدر راوباسي چې (من کحل عین زید) ووایې ځکه چې دا عبارت په حذف د مضاف سره شي نو تفضیل د شئ علی نفسه نه راځي او فرق اعتباري نه راځي په مابین د مفضل او مفضل علیه کې بلکه تعدد د کحل راځي او په دې سره فرق ذاتي راځي په مفضل او مفضل علیه کې نو مسئله دکحل پکې نه جوړیږي.
**فان قدمت ذکر العین: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د عبارت قصیره نه نو شروع یې وکړه په بیان د عبارت اقصر کې نو وې ویل: **فان قدمت** که چرته مخکې کړې ته په دې مسئله د کحل کې **ذکر العین** لفظ د عین لره په ذکر کې په اسم تفضیل باندې هغه عین چې کحل په هغې کې مفضل علیه دی **العین** کې الف لام عهد خارجي دي مراد هغه عین دی چې کحل پکې مفضل علیه دی **قلت** وایې به ته **ما رایت کعین زید احسن فیها الکحل** چې دا عبارت اخصر دی د هغه عبارت طویله د ماتن نه ځکه دا اصل کې (ما رایت عینا احسن فیها الکحل منه في عین زید) وو نو هر کله چې ذکر کړی شو لفظ د عین مخکې د صیغې د اسم تفضیل نه نو استغناء راغله د ذکر د عین نه ثانیا.
**سوال:** په دې عبارت اخصر کې احسن ته مرفوع ووایه بنا بر خبریت او الکحل ته مرفوع ووایه بنا بر ابتدائیت ځکه فصل نه راځي په مابین د اسم تفضیل او معمول د اسم تفضیل کې په اجنبي سره؟
**جواب:** دغسې ترکیب زه نه شم کولی ځکه دا عبارت اخصر فرع د عبارت اولی ده چې عبارت طویله دی لهذا من تفضیلي سره د مجرور نه مقدر دی او مراد دی په دې کې او که دغسې ترکیب وکړو نو لازمیږي فصل په مابین د اسم تفضیل او معمول د اسم تفضیل کې چې هغه منه دی تقدیرا په اجنبي سره چې هغه الکحل دی.
**مثل ولا اری في قطعة: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د عبارات ثلاثه د مسئلې د کحل نه نو شروع یې وکړه په یو شعر کې لپاره د اثبات د مسئلې د کحل په عبارات ثلاثه ؤ سره ځکه دا علم نحو یو علم دی د علوم نقلیو نه په دې کې لابدي ده د نقل نه مثل (ولا اری) په دې کې دوه ترکیبه دي: (۱): مثل مرفوع دی ځکه دا خبر دی د مبتدا محذوف لپاره (فیکون التقدیر وهو مثل لا اری في قطعة). (۲): یا مثل منصوب دی بنا بر مفعول مطلق په اعتبار د موصوف محذوف سره د فعل مقدر لپاره (فیکون التقدیر: قلت ما رایت کعین زید... الخ، قولا یماثل قول الشاعر). او ترک کړو ماتن صدر د بیت چې هغه مررت علی واد السباع دی او شروع یې وکړه د مینځ د بیت نه چې هغه ولا اری دی ځکه مثال د مسئلې د کحل د مینځ نه شروع کیږي نه د ابتدا د کلام نه:

مررت علی وادی السباع ولا اری — کوادی السباع حین یظلم وادیا
اقل بـه رکـب اتـوه تـایـة — واخـوف الا ما وقـی الـلـه ساریـا

په دې شعر کې لابدي ده د معرفت د امور ثلاثه ؤ نه (۱) معرفت د ترکیب. (۲) معرفت د معنی. (۳) تطبیق بالمثال.

**ترکیب: مررت** فعل فاعل فاعل **علی** جار **وادی السباع** مضاف مضاف الیه مجرور، او اضافت د وادي سباع ته شوی دی د وجې د کثرت د سباع نه په دې وادي کې او سباع جمع د سبع ده بفتح الباء و ضمها و سکونها او سبع ویلی کیږي حیوان مفترس ته، جار سره د مجرور نه متعلق دی په مررت پورې **واو** اعتراضیه یا حالیه **لا** نافیه **اری** صیغه واحد متکلم فعل مضارع معلوم محتمل د احتمالین: (۱) یو احتمال دا دی چې دا د رؤیت بصري نه دی. (۲) دویم احتمال دا دی چې دا د رؤیت قلبي او رؤیت علمي نه دی، بنا په اول باندې **وادیا** مفعول به دی د **اری** لپاره او **کوادی السباع** حال مقدم دی ځکه رؤیت بصري یو مفعول غواړي او په احتمال ثاني باندې (وادیا) مفعول اول او (کوادی السباع) مفعول ثاني دی د (اری) لپاره او تقدیم د مفعول ثاني راغلی دی په اول باندې او دا جائز دی او **حین یظلم** مفعول فیه دی د فعل معنوی لپاره چې هغه مستفاد دی د کاف د (کوادی السباع) نه او لفظ د **حین** په دې مقام کې محتمل د احتمالین دی.

(۱): یا مبني علی الفتحه او منصوب محلا دی ځکه ظروف معربه چې مضاف شي جملې ته نو بنا علی الفتحه پکې جائز ده (نحو: ﴿ قَالَ اللّٰهُ هٰذَا يَوۡمُ يَنۡفَعُ الصّٰدِقِيۡنَ صِدۡقُهُمۡ ﴾ من عذاب یومئذ من خزي یومئذ علی قراة) (۲): دویم احتمال دا دی چې حین معرب منصوب دی بنا بر مفعول فیه او (وادیا) موصوف **اقل** صیغه واحد مذکر اسم تفضیل صفت د واد یا لپاره **به** جار مجرور متعلق دی په اقل پورې او با په معنی د في دی ای اقل فیه او ضمیر مجرور راجع دی (وادیا) ته **رکب** فاعل د اقل لپاره موصوف **اتوه** جمله صفت د رکب لپاره او رکب اسم جمع ده نه جمع کما مر جماعة د راکبین ته وایې او دا مختص دی په راکبین د ابل پورې یعنی راکبین د ابل ته ویلی کیږي نه راکبین د افراسو ته. **تایة** (۱) منصوب دی بنا بر تمیز (۲) یا بنا بر مفعول له (۳) یا بنا بر مفعول مطلق په اعتبار د حذف د مضاف سره ای اتیان تایة (۴) یا بنا بر حالیت په اعتبار د حذف د مضاف سره ای ذوی تایة (۵) یا بنا بر مفعول فیه په تقدیر د في سره ای في زمان تایة او **اخوف** منصوب دی ځکه عطف دی په اقل باندې او ضمیر پکې مستتر دی چې راجع دی (وادیا) ته، هغه نائب فاعل دی د اخوف لپاره ځکه اسم تفضیل للمفعول دی **الا** حرف استثناء **ما** مصدریه (۲) ظرفیه مصدریه حینیه **وقی** صیغه فعل ماضي معلوم **الله** ورله فاعل او **ساریا** په اعتبار د موصوف محذوف سره چې رکبا دی مفعول به، وقی فعل سره د فاعل او مفعول به نه په تاویل د مصدر سره مستثنی مفرغه او مستثنی منه مقدر دی، **(فیکون التقدیر: واخوف في کل وقت الا في وقت وقایت الله ساریا)**.

**ترجمه: مررت** زه تیر شوم **علی وادی السباع** په هغه کنده باندې چې ځنګلي حیوانات او غلۀ په هغې کې دېرزیات دي په داسې حال کې چې ما نه ده لیدلې یوه کنده **کوادی السباع** په حال کون د دې کنده کې چې دا په شان د وادی السباع وي، یا ما ته نه ده معلومه یوه کنده په شان د (وادی السباع) په وقت د تیارو کې داسې کنده **اقل** چې ډېر کم دي **به** په دې کنده کې **رکب** سورلی د اوښانو **اتوه** چې راغې دغه کندې ته **تایة** لپاره د دمې کولو، نو هر کله چې قافلې د اوښانو کم دمه کوونکې دي نو پیاده

خلق خو بالکل دمه نه کوي د ډاکوانو او درنده ګانو د ویرې د وجې نه **واخوف** او داسې کنده چې ډیره زیاته یره کړی شوې ده په هر وقت کې **الا** مګر یره کړی شوې نه ده او خوف او خطره نه شي کیدی ما
وقت د حفاظت د الله تعالی کې د شپې سفر کوونکو لره.
**وقی الله ساریا** په
**تطبیق بالمثال:** په دې قول د شاعر کې (اقل) صیغه د اسم تفضیل راغلی ده او عمل یې کړی دی د رفع بنا بر فاعلیت په اسم ظاهر کې چې رکب دی او جامع د شروطو ثلاثه ؤ دی:
(۱): اقل په لفظ کې ثابت دی ماقبل لره چې (وادیا) دی او په معنی کې مابعد لره چې (رکب) دی نو مسند الیه او ما جری علیه غیر غیر شو (۲): او په مابین د مفضل او مفضل علیه کې اتحاد ذاتي او فرق اعتباري دی چې رکب مفضل هم دی او مفضل علیه هم دی په دې شان سره چې دا رکب په دې وادی السباع کې چې واخلې نو مفضل دی او غیر د وادی السباع نه چې یې واخلې نو مفضل علیه دی او واقع شوی دی وروستو د حرف نفي نه چې لا دی په لا اری کې او دې اقل عمل د رفع بنا بر فاعلیت په اسم ظاهر کې کړی دی لانه بمعنی قل ځکه حرف نفي چې داخل شي په یو کلام باندې چې هغه مقید وي په یو قید سره نو هغه متوجه کیږي قید ته او زیادت یو قید دی په اسم تفضیل کې دی حرف نفي هغه لري کړو نو دا په معنی د اصل فعل سره پاتې شو.
**سوال:** اقل ته مرفوع ووایه بنا بر خبریت او (رکب) ته مرفوع ووایه بنا بر ابتدائیت او دا جمله به صفت واقع شي د (وادیا) لپاره او فصل په مابین د اسم تفضیل او معمول د اسم تفضیل کې نه راځي په اجنبي سره؟ **جواب:** معمول د اسم تفضیل چې منه دی د (رکب) نه وروستو لفظا نشته خو معنی مراد دی ځکه دا عبارت اخصر دی د عبارت طویله نه، اصل کې عبارت داسې وو: (ولا اری وادیا اقل به رکب اتوه منه بوادی السباع) بیا مقدم کړی شو (وادی السباع) نو استغناء راغله د ذکر د دې نه ثانیا او عبارت قصیره دا دی (ولا اری وادیا اقل به رکب اتوه من وادی السباع) نو لکه څنګه چې درې قسمه عبارتونه مصنف جوړ کړي وو په (ما رایت رجلا) کې نو دغسې درې قسمه عبارتونه طویل، قصیر، اقصر، په دې شعر کې هم جوړ شول لیکن دومره فرق دی چې دلته مذکور عبارت اقصر دی او په مثال د متن کې مذکور عبارت طویله دی.

# الفعل

په فعل کې لابدي ده د معرفة د امور سبعه ؤ نه (۱) معنی لغوي (۲) وجه تسميه (۳) معنی اصطلاحي (۴) معرفة د مثال (۵) معرفة د علامات (۶) معرفة د اقسام.

ربط: هر کله چې فارغ شو مصنف د تعريف او د بيان د احکامو د قسم اول د کلمه نحويه نه چې اسم وو، نو شروع يې وکړه په بيان د تعريف او احکامو د قسم ثاني د کلمه نحويه کې چې فعل دی نو وي ويل: (الفعل)، او هر کله چې تقسيم وکړو مصنف د کلمه نحويه اقسام ثلاثه ؤ ته په داسې طريقې سره چې د دليل د انحصار نه معلوم شوی وو، تعريف جامعه مانعه د هر واحد په نسبت سره ذکي ته او بيا يې تنبيه ورکړه په تعريف جامعه مانعه د هر واحد په (قد علم) سره په نسبت سره متوسط ته او بيا يې تعريف د هر واحد وکړو خانله خانله، تفصيلا په نسبت سره غبي ته.

نو هر کله چې فارغ شو د بيان د تعريف او احکامو د قسم اول د کلمه نحويه نه چې اسم وو، نو شروع يې وکړه په قسم ثاني د کلمه نحويه کې چې فعل دی فعل په لغت کې حدث ته وائي.

او په اصطلاح کې **ما کلمه** ده، او تذکير د ضمير د دل په اعتبار د لفظ د ما سره دی، او لفظ د ما عبارت دی د کلمة نه، نه د فعل او لفظ او شئ نه، ځکه معتبر په تعريفات د اقسام کې جنس قريب دی او جنس قريب د فعل لپاره کلمه ده او لفظ او شئ اجناس بعيده دي.

(۲): يا (ما) عبارت دی د کلمة نه، ځکه کلمه مقسم دی او اسم فعل حرف اقسام دي، او مقسم معتبر وي په تعريفات د اقسام کې او په تنکير د کلمة کې يې اشاره وکړه موصوفيت د ما ته (لانه واقع في جانب الخبر) **دل** داسې کلمه چې دلالت کوي **علی معنی** په يو معنی باندې **في نفسه** داسې معنی چې کائنه ده په نفس د دې کلمه کې په دې شان سره چې دا کلمه په دلالت خپل کې په دې معنی باندې محتاجه نه ده انضمام د کلمه اخری ته ځکه دا معنی مستقل بالمفهوميت ده، او معنی مستقل بالمفهوميت دې ته وائي چې دا معنی په فهم کې د دې لفظ نه محتاج نه وي غير ته او تذکير د ضمير په اعتبار د لفظ د ما سره دی او مخالفت نه لازميږي په مابين د ماخوذ او ماخوذ منه کې ځکه کينونيت د معنی في نفس الکلمه او کينونيت د معنی في نفس المعنی مآل او مرجع د دې امر واحد دی چې استقلال بالمفهوميت دی او مقابله د حرف سره هم صحيح شوه ځکه کينونيت د معنی في نفس الکلمه په تعريف د فعل کې عبارت دی د استقلال بالمفهوميت نه او کينونيت د معنی في غير الکلمه په تعريف د حرف کې عبارت دی د عدم استقلال بالمفهوميت نه او په تقدير د کائن کې شارح اشاره کړې ده دېته چې في نفسه ظرف مستقر دی نه ظرف لغوه، په دې کې شارح جامي رد وکړو په هغه شارحينو باندې چې هغوی في نفسه ته ظرف لغوه وائي چې دا متعلق دی په دلت پورې ځکه تعلق د في نفسه په دلت پورې نه دی صحيح ځکه د دلالت په صله کې يا علي راځي نحو دل عليه، يا باء راځي نحو دل به او في چرته په استعمال د کلام د عربو کې نه ده راغلې په صله د دلالت کې او که تاسو وايئ چې في په معنی د باء ده نو لازميږي مجاز په تعريف کې او دا خلاف دی د تبادر نه او که تاسو وايئ چې ظرف مستقر هم خلاف الاصل دی نو جواب دا دی چې ظرف مستقر اګر چې خلاف الاصل دی

خو شائع او کثير دی په استعمال د کلام د عربو کې، او په جر د کائن سره يې اشاره وکړه چې دا في نفسه جار مجرور په اعتبار د متعلق سره صفت واقع شوی دی د معنی لپاره په دې کې يې رد وکړو په هغه شارحينو باندې چې هغوی دا ظرف مستقر حال واقع کوي د معنی نه، ځکه دا قاعده ده چې جار مجرور واقع شي وروستو د معرفې نه نو په اعتبار د متعلق سره به يې حال واقع کوي ځکه حال کې تقليل في الحذف راځي او صفت کې تکثير في الحذف راځي او تقليل في الحذف اولی دی د تکثير في الحذف نه او وروستو د نکرې نه چې واقع شي نو صفت به يې واقع کوي نه حال د وجې د جزالت د معنی صفتي نه، او دلته واقع شوی دی وروستو د نکرې نه. (۲): او که حال يې ووايو د معنی نه نو تقييد د دلالت راځي في نفسه سره نو اخراج د حرف راځي د تعريف د فعل نه په جنس سره او دا باطل دی ځکه جنس عام وي تول پکې داخل وي او اغيار خارجولی شي په فصولو سره، او که دا صفت شي د معنی لپاره نو بيا دلالت په خپل عموم باندې باقي پاتې شو او حرف خارج شو په فصل سره نه په جنس سره. (۲) يا فعل اصطلاحي: **ما** يوه کلمه ده **دل** داسې کلمه چې دلالت کوي **علی معنی** په يو معنی باندې هسې معنی چې دا معنی کائنه ده **في نفسه** په نفس د دې معنی کې په دې شان سره چې دغه معنی په مفهوميت خپل کې د دې کلمې نه محتاج نه ده انضام د کلمه اخرى ته بلکه دا ذهن د سامع ته راځي يواځې د دغه کلمې نه بې د انضمام د کلمه اخرى نه او مخالفت نه لازميږي بين الاجمال والتفصيل ځکه کينونيت د معنی في نفس الکلمه، او کينونيت د معنی في نفس المعنی مآل او مرجع دد ي امر واحد ته دی، چې استقلال بالمفهوميت دی او مقابله د حرف سره هم صحيح شوه ځکه کينونيت د معنی في نفس المعنی په تعريف د فعل کې عبارت دی د استقلال بالمفهوميت نه او کينونيت د معنی في غير المعنی په تعريف د حرف کې عبارت دی د عدم استقلال بالمفهوميت نه او فعل اصطلاحي عبارت دی د معاني ثلاثه ؤ نه: (۱): حدث چې معنی مصدري ده. (۲): زمانه. (۳): نسبت فاعل ما ته.

ليکن په دې مقام کې معنی اصطلاحي نه ده مراد بلکه معنی تضمني مراد ده چې حدث دی ځکه هر کله چې توصيف د معنی يې وکړو في نفسه سره نو نسبت ترې خارج شو ځکه نسبت معنی حرفي ده اله ده لپاره د ملاحظه د طرفين د نسبت چې هغه منسوب او منسوب اليه دي او مستقله بالمفهوميت نه ده او هر کله چې توصيف د معنی يې په اقتران سره وکړو نو خارج شوه د دې نه زمانه ځکه که زمانه خارج نه کړو نو لازميږي اقتران د زمان په زمان پورې او دا باطل دی نو فعل په اعتبار د معنی اصطلاحي سره غير مستقل دی ځکه دا مرکب دی د نسبت حدث زمان نه او نسبت غير مستقل دی او قانون دا دی چې غير مستقل چې مرکب شي د مستقل سره نو د هغې نه غير مستقل جوړوي ځکه نتيجه تابع د اخص ارزل وي او مستقل دی په اعتبار د معنی تضمني سره چې هغه حدث دی **مقترن باحد الازمنة الثلاثة** هسې معنی تضمني چې مقترن به وي وضعا نه استعمالا په يو زمانه پورې د ازمنه ثلاثه مخصوصو نه چې هغه ماضي او حال او استقبال دی په فهم کې د لفظ د اله نه په دې معنی باندې او اقتران د زمانين مستلزم دی اقتران د زمانه واحدې لره.

(۲): یا ذکر د واحد لپاره د بیان د ادنی مرتبې دی نه لپاره د حصر پس داخل شو، صیغه د مضارع په تعریف د فعل کې او په قید د وضعا سره خارج شو اسماء افعال د تعریف د فعل نه ځکه اسماء افعال یا منقول دي د مصادرو نه یا د غیر مصادرو نه (کما مر في بحث الاسم)، او داخل شو په تعریف د فعل کې افعال منسلخه عن الزمان ځکه دا په اصل وضع کې مقترن وو باحد الازمنة الثلاثة خو د عارض استعمال د وجې نه زمانه منسلخ شوې ده د دې نه ځکه ورته افعال منسلخه عن الزمان وائي او لفظ د مقترن مثلث الاعراب دی مقترن یا مجرور دی ځکه صفت بعد الصفة دی د معنی لپاره په دې شان سره چې في نفسه صفت اولی او مقترن صفت ثاني دی.

(۲): یا مقترن مرفوع دی خبر د مبتداء محذوف دی (ای هو مقترن).

(۳): یا منصوب دی مفعول به دی د فعل مقدر (ای اعنی مقترنا)، او موصوف د اسماء عدد په منزله د تمیز دی او تمیز د عدد اقل چې جمع مذکر راشي نو عدد مؤنث مستعمولي شي او دغسې جمع مذکر چې موصوف واقع شي د عدد اقل دپاره نو عدد مؤنث مستعمولي شي ځکه باحد الازمنة الثلاثة کې صفت د الازمنة چې جمع مذکر مکسر دی جمع د زمان ده اسم عدد متلبس بالتاء راغلی دی.

هر تعریف کې لابدي وي د جنس او فصل نه **ما دل علی معنی** جنس دی، خپل پردي ټول پکې شامل شو **في نفسه** فصل اول دی په دې سره یې احتراز وکړو د حرف نه ځکه معنی د حرف مستقل بالمفهومیت نه ده، پاتې شو اسم ځکه دا (ما دل علی معنی في نفسه) دی، **مقترن** فصل ثاني دی، په دې سره یې احتراز وړو د اسم نه ځکه د اسم معنی مقترن نه ده باحد الازمنة الثلاثة نو تعریف د فعل جامع مانع شو.

**سوال:** فعل اصطلاحي ته فعل ولې وائي؟ **جواب:** ځکه فعل په لغت کې حدث ته وائي او دا فعل اصطلاحي هم دلالت کوي په حدث باندې دا شوه تسمیه د کل په اسم د جز سره تسمیه د مشتمل په اسم د مشتمل سره تسمیه د متضمن په اسم د متضمن سره.

**ومن خواصه دخول قد: ربط:** هر کله چې د فعل لپاره وجودین وو: (۱) وجود ذهني (۲) وجود خارجي. (وجود ذهني د فعل مونږه وپیژندلو په تعریف سره پس لابدي شوه د معرفت د وجود خارجي نه نو لپاره د معرفت د وجود خارجي ذکر کړه مصنف بعض علامات نو وې ویل: (ومن خواصه....).

**ترجمه:** بعض د خواص معظمه مکبره د فعل نه **دخول قد** قد دی په اعتبار د دخول سره ځکه لفظ د قد مستعملیږي لپاره د تقریب د زمانه ماضي الی الحال یا د تقلیل د فعل لپاره، یا د توقع د فعل لپاره یا د تحقق د فعل لپاره، یا د تکثیر د فعل لپاره او دا معاني خمسه دقد نه متحقق کیږي مگر په فعل کې او اختصاص د مدلول مستلزم دی اختصاص د دال لره، پس دغه دال چې قد دی هم مختص شو په فعل پورې په دې شان سره چې په فعل داخلیږي او په اسم او حرف باندې نه داخلیږي او په من تبعیضي سره یې اشاره وکړه چې مذکور په دې کتاب کې بعض دي نه ټول او صیغه د جمع تکثیر کې یې اشاره وکړه چې په واقع او نفس الامر کې ډیر دي.

**تشریح: سوال:** تعریف د فعل وشو اوس مصنف لپاره پکار وه چې شروع یې کړی وی په تقسیم د فعل کې نو د تعریف نه وروستو او د تقسیم نه مخکې دا علامات د څه لپاره بیانوي؟

**جواب:** د فعل لپاره وجودين دي: (۱) وجود ذهني (۲) وجود خارجي، وجود ذهني د فعل معلوم شو په تعريف سره، پس لابدي شوه د معرفت د وجود خارجي د فعل نه او دا راځي په علامات سره لهذا مصنف د تعريف د فعل نه وروستو بعض علامات د فعل بيان کړل لپاره د معرفت د وجود خارجي د فعل، لپاره د دې چې دا فعل موښ ته معلوم شي هم په وجود ذهني کې او هم په وجود خارجي کې.

**سوال:** خواص جمع تکثيره ده د دې اطلاق کيږي په مافوق د احد عشر باندې او تا دلته علامات د يولس نه کم ذکر کړي دي نو دا مقام، مقام د جمع قلتې دی، نو په مقام د جمع قلته کې دې جمع کثرته ولې مستعمل کړې ده؟ **جواب:** په من تبعيضي سره يې اشاره وکړه چې دا مذکور بعض دی نه ټول علامات د فعل او په صيغه د جمع کثرت کې يې اشاره وکړه چې دا په واقع او نفس الامر کې ډير دي؟

**سوال:** خواص جمع د خاصة ده او خاصة ويلی کيږي (ما يوجد فيه ولا يوجد في غيره) ته، او ته وايې چې قد خاصه د فعل ده، يعنی موجوديږي په فعل کې نه په اسم او حرف کې نو امر حاضر معلوم فعل دی، او قد وريانديې نه داخليږي، نو قد ته څنګه خاصه د فعل وايې؟

جواب: خاصه دوه قسمه ده: (۱) شامله (۲) غير شامله.

**وجه د حصر:** دا خاصه په خالي نه وي يا به ثابته وي ټولو افرادو د ذوالخاصی لره او يا به نه وي، که ثابته وه نو شامله ورته وائي لکه ضحك بالقوه چې دا خاصه د انسان ده، او که ثابته نه وه ټولو افرادو د ذو الخاصی لره بلکه بعض لره وه نو دا غير شامله ده لکه ضحك بالفعل شو، د انسان لپاره او دلته مراد د خاصې نه خاصه غير شامله ده.

**سوال:** ته وايې چې بعض د خواص د فعل نه دخول د قد دی نو دخول قد مرکب اضافي دی او په مرکب اضافي کې مقصود بالحکم مضاف وي او مضاف اليه خارج عن الحکم وي لکه جاءني غلام زيد کې مجئيت غلام کړی دی نه زيد نو معنی دا شوه چې خاصه دخول دی نه قد او دا معنی باطله ده څکه دخول يو امر معنوي دی نسبت دی بين الداخل والمدخول په خارج کې وجود نه لري نو ديته څنګه خاصه وائې؟

**جواب:** د دې معنی دا ده چې بعض د خواص د فعل نه قد دی په اعتبار د دخول سره په دې شان سره چې اصل کې مرکب توصيفي وو بيا يې هغه وران کړی دی او اضافت د صفت يې کړی دی موصوف ته، دې کې اشاره ده دې ته چې په دې مرکب توصيفي کې دا موصوف مقصود وو په اعتبار د صفت سره نه بالذات څکه مرکب اضافي کې مقصود مضاف وي نه مضاف اليه.

**سوال:** (ومن خواصه دخول قد) څه ترکيب دی؟ **جواب:** دې کې تراکيب ستبه دي:

(۱): (من خواصه) جار مجرور متعلق دی په ثابت مقدر پورې دا شبه جمله خبر مقدم او (دخول قد) مبتدا مؤخره. (۲): دا جار مجرور متعلق دی په ثبت مقدر پورې دا جمله فعليه. خبر مقدم او (دخول قد) مبتدا مؤخره. (۳): (من خواصه) متعلق دی ثابت پورې او (دخول قد) فاعل دی د ثابت لپاره، نو دا شبه جمله شوه په شان د (فائز اولو الرشد) او په شان د (فخير نحن عند الناس منکم)، بنا په مذهب

د اخفش باندې، ځکه د هغه په نزد باندې د عمل د مشتقې لپاره اعتماد شرط نه دی. (۴): (من خواصه) متعلق دی ثبت پورې او (دخول قد) فاعل د ثبت دی، دا جمله فعلیه خبریه شوه. (۵): (من خواصه) ظرف دی او دخول قد فاعل د ظرف دی نو دا جمله ظرفیه شوه، بنا په مذهب د اخفش باندې ځکه د دهٔ په نزد باندې د ظرف د عمل لپاره هم اعتماد شرط نه دی.

(۶): (من خواصه) کې (من) بمعنی بعض مضاف، ای بعض خواصه دا مبتدا او (دخول قد) ورله خبر دی، مبتدا سره د خبر نه جمله اسمیه خبریه شوه.

**سوال:** دخول د قد خاصه د فعل ولې ده؟ **جواب:** ځکه قد راځي په استعمال د کلام د عربو کې کله د تقلیل د فعل لپاره او کله د تحقیق دپاره... الخ، او دا ټولې معاني متحقق کیږي په فعل کې نو دا قد هم مختص شو په فعل پورې ځکه اختصاص د مدلول مستلزم دی اختصاص د دال لره.

**والسین وسوف** بل د خواص د فعل نه سین او سوف دی په اعتبار د دخول سره ځکه سین دلالت کوي په استقبال قریب باندې، یعنی په هغه زمانه باندې چې قریبه ده زمانې د تکلم ته، او سوف دلالت کوي په استقبال بعید باندې، یعنی هغه زمانه چې بعیده ده د زمانې د تکلم د متکلم نه، ځکه سین کې حروف کم دي او قلت د حروف دلالت کوي په قلت د معنی باندې، او سوف کې حروف زیات دي او زیادت د حروف دلالت کوي په زیادت د معنی باندې، او استقبال قریب او بعید نه موجودیږي مگر په فعل کې نو سین او سوف هم مختص شو په فعل پورې ځکه اختصاص د مدلول مستلزم دی اختصاص د دال لره.

**سوال:** اصل په عبارت کې عبارت دی په نمط واحده سره نو تا السین متلبس باللام او سوف مجرد عن اللام ولې ذکر کړو، پکار وه چې یا دواړه متلبس باللام وی یا دواړه مجرد عن اللام وی چې دواړه یو شان وی؟ **جواب:** هر کله چې سین متنوع وو په خلاف د سوف نه چې دا غیر متنوع دی، پس ذکر کړو مصنف دا سین متلبس په الف لام عهد خارجي سره او په دې الف لام کې یې اشاره وکړه خاص یو نوعې ته چې سین د استقبال دی او احتراز یې وکړو د باقي انواع د سین نه ځکه سین د استقبال خاصه د فعل ده نه باقي انواع د سین. او سین په استعمال د کلام د عربو کې په اته قسمه دی: (۱): للطلب نحو استغفر الله. (۲): للوجدان. (۳): والحسبان: نحو استعظمت زیدا ای وجدت زیدا عظیما، حسبت زیدا عظیما. (۴): للتحول نحو استنوق الجمل- ای صار الجمل کالناقة، وقول الشاعر:

ان البغاث في ارضنا تستنسر  والاتن في اسواقنا تستحمر

(۵): زائده نحو اسطاع یسطیع. (۶): سین کسکسه نحو مررت بکس، چې دا متصلیږي په ضمیر د مؤنث مخاطبې پورې په حالت د وقف کې لپاره د دې چې التباس رانه شي د ضمیر مذکر مخاطب د مؤنث مخاطبې سره په حالت د وقف کې. (۷): للتاکید نحو قوله تعالی ﴿ فَسَيَكۡفِيكَهُمُ ٱللَّهُ ﴾ وقوله تعالی: ﴿ سَنَكۡتُبُ مَا قَالُواْ ﴾ او سین په قران کې په کثرت سره راغلی دی د تاکید لپاره او د استقبال لپاره راغلی دی په طریقه د قلت سره بل مثال کقول الشاعر:

ساطلب بعد الدار عنكم لتقربوا وتسكب عيناى الدموع لتجمدا

(٨): للاستقبال نحو سيضرب زيدا، وهو المراد ههنا، او دا خاصه د فعل ده داخليږي په فعل نه په اسم او نه په حرف او بيا په فعل مستقبل باندې نه په فعل ماضي او امر حاضر باندې. لغات ثلاثه في سوف: سو، سی، سف. افعل.

**والجوازم** او بل د خواص د فعل نه جوازم دي په اعتبار د دخول سره، او جوازم عام دي كه حروف وي او كه اسماء وي، د دې دخول مختص دی په فعل پورې، په اسم او حرف باندې نه داخليږي، ځكه دا جوازم واضع وضع كړي دي د نفي د فعل لپاره لكه لم او لما شو، يا د طلب د فعل لپاره لكه لام امر، يا د طلب د ترك د فعل لپاره لكه لاي نهی، يا د تعليق د شئ بالفعل لپاره لكه ادوات الشرط شو، او دا معاني مذكوره كلها نه موجوديږي مگر په فعل كې نو د و ال يې هم مختص شو په فعل پورې ځكه اختصاص د مدلول مستلزم دی اختصاص د دال لره.

**ولحوق تاء التانيث** بل د خواص د فعل نه اتصال د تاء التانيث دی **ساكنة** په حال كون د دې تاء كې چې ساكنه يې واخلې نو په دې سره يې احتراز وكړو د تاء تانيث متحركه نه ځكه هغه مختص ده په اسم پورې په فعل كې نه راځي.

**سوال:** اتصال د تاء تانيث ساكنه خاصه د فعل ولې ده؟ **جواب:** ځكه تاء تانيث ساكنه نه متصل كيږي مگر هغه شئ پورې چې د هغې لپاره فاعل وي او فاعل نه وي مگر دفعل لپاره وي او هر چې دی صفت، نو هغه اگر چې تقاضا د فاعل كوي خو هغه مستغني دی د اتصال د تاء التانيث ساكنه نه په تاء متحركه سره چې هغه دلالت كوي په تانيث د فاعل باندې.

**سوال:** اتصال د تاء التانيث ساكنه په اخير د فعل پورې ولې كولی شي؟

**جواب:** لپاره د دې چې دلالت وكړي په تانيث د فاعل داول وهلت نه.

**سوال:** تاء التانيث ساكنه يې علامه د فعل وگرځوله او تاء التانيث متحركه يې علامه د فعل ونه وگرځوله نو عكس يې ولې ونه كړو؟ **جواب:** عكس يې ونه كړو ځكه فعل ثقيل دی په اعتبار د مفهوم سره ځكه مركب دی د امور ثلاثه ؤ نه چې حدث نسبت زمان دی دا تقاضا د تخفيف كوي او اسم خفيف دی په اعتبار د مفهوم سره او تاء التانيث ساكنه خفيفه ده او متحركه ثقيله ده نو خفيف ثقيل لره وركړی شو، او ثقيل خفيف لره لپاره د رعايت د تعادل او د انصاف.

(٢): عكس يې ونه كړو ځكه اصل په افعال كې بنا ده او اصل په بنا كې سكون دی او اصل په اسماؤ كې اعراب دی او اصل په اعراب كې حركت دی، او لحوق د تاء التانيث ساكنه خاصه د فعل ده يعنی متصل كيږي په فعل پورې نه په اسم او حرف پورې او په فعل كې خاصه د ماضي ده يعنی متصل كيږي په اخير د ماضي پورې نه مضارع او امر پورې ځكه مضارع كې استغناء راغلې ده د دې نه په تاء التانيث علامه د مضارع سره او امر حاضر معلوم كې استغناء راغلې ده د دې نه په ضمير د مؤنث مخاطب سره لكه اضربي.

**ونحو تاء فعلت** بل د خواص د فعل نه اتصال او لحوق د تاء د فعلت دی او مراد د تاء د فعلت نه ضمیر بارز مرفوع متحرك دی، هغه عام دی چې تاء د متکلم وي لکه فعلتُ او که مخاطب مذکر وي لکه ضربتَ او که مخاطب مؤنث وي نحو ضربتِ، یا نون ضمیري وي نحو ضربن.

**سوال:** اتصال د ضمیر بارز مرفوع متحرك خاصه د فعل ولې ده؟

**جواب:** ځکه ضمیر بارز مرفوع متحرك فاعل دی دا نه متصلیږي مگر په هغه شئ پورې چې هغه تقاضا د فاعل کوي او تقاضه د فاعل نه کوي مگر فعل یې کوي او هر چې دی صفت نو هغه اگر چې تقاضا د فاعل کوي لیکن فاعل د هغې لپاره ضمیر مرفوع متصل مستتر راځي نه بارز، لپاره د دې چې لازم نه شي مساوات په مابین د فرع کې چې صفت دی او اصل کې چې فعل دی.

**سوال:** انحطاط د فرع د اصل نه خو په عکس سره هم راځي نو عکس یې ولې ونه کړو، چې ضمیر بارز عام شوی وي او مستتر خاص شوی وي؟ **جواب:** عکس یې ونه کړو ځکه ضمیر مستتر اخف دی او اخصر دی د ضمیر بارز نه نو دا په تعمیم سره اولی دی.

(۷): بل د خواص د فعل نه تصریف دی. (۸): بل امر دی. (۹): نهي ده. (۱۰): دخول د حرف اتین. (۱۱): عوامل ناصبه. (۱۲): اتصال د نون تاکید ثقیله. (۱۳): اتصال د نون تاکید خفیفه.

(۱۴): کون د شئ مسند نه مسند الیه په استعمال د کلام د عربو کې. (۱۵): دخول لو.

(۱۶): دخول حرف عرض. (۱۷): دخول حروف التحضیض.

**قاعده:** خاصتین د نوع به خالي نه وي. یا به متحد وي په معنی کې یا به نه وي، که متحد في المعنی وو د هغې جمع جائز نه ده لکه الف لام او اضافة او سین او سوف شو، او که متحد في المعنی نه وو بیا به خالي نه وي، یا به متضادین وي یا به نه وي، که متضادین وو د هغې جمع جائز نه ده لکه الف لام اضافت شو، او که متضادین نه وو بیا جمع جائز ده لکه قد او تاء التانیث شو په قد قامت الصلاة کې. (۱): فعل په اعتبار د زمانې سره درې قسمه دی: ماضي، مضارع، امر حاضر معلوم. (۲): فعل په اعتبار د تصرف سره دوه قسمه دی: متصرف، غیر متصرف چې هغه افعال دي: عسی ونعم وبئس وحبذا و فعل التعجب وقلما وطالما ویذر ویدع وتبارر وحری اخلولق و مادام. (۳): فعل په اعتبار د نقصان او تام سره په دوه قسمه دی: تام او ناقص.

(۴): فعل په دوه قسمه دی: متعدي او لازم. (۵): فعل په دوه قسمه دی: معرب او مبني.

## الـمـاضـي

ماضی کې لابدي ده د معرفة د امور سبعه ؤ نه: (۱) معنی لغوي (۲) اصطلاحي (۳) وجه تسمیه (۴) معرفت د اوزان د ثلاثي مجرد نه (۵) معرفة د حکم (۶) معرفة د خاصه چې هغه اتصال د تای تانیث ساکنه دی (۷) معرفة د اقسام.

**ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د تعریف او د بعض علامات د فعل اصطلاحي نه نو شروع یې وکړه په بیان د تقسیم د فعل اصطلاحي کې لپاره د اتمام د تعریف د فعل اصطلاحي ځکه تقسیم

د متمماتو او مكملاتو د تعريف نه دى، ځكه په تعريف سره معلوميږي معنى او مفهوم د شي او تقسيم سره معلوميږي افراد او مصداق د شئ نو پس د تقسيم نه مونږ ته دا فعل معلوم شو مفهوما او مصداقا او د تقسيم نه مخكې مونږ ته فعل معلوم وو مفهوما نه مصداقا او فعل اصطلاحي په اعتبار د زماني سره درې قسمه دى: ماضي، مضارع، امر.

• **وجه د حصر:** (۱): دا فعل به خالي نه وي يا به اخباري وي يا به انشائي وي كه انشائي وو نو امر او كه اخباري وو نو بيا به خالي نه وي، يا به په اول د دې كې يو حرف د حروف اتين نه راغلى وي، يا به نه وي راغلى، كه راغلى وو نو مضارع او كه نه وو راغلى نو فعل ماضي (۲): حرف اخير د دې فعل به خالي نه وي يا به مرفوع وي يا به مفتوح وي يا به موقوف وي، كه مرفوع وو نو مضارع نحو يضرب، كه مفتوح وو نو ماضي نحو ضرب، كه موقوف وو نو امر نحو اضرب (۳): دا فعل به خالي نه وي يا به دلالت كوي په زمانه گذشته باندې فقط يا به دلالت كوي په زمانه موجوده باندې فقط او يا به دلالت كوي په زمانه موجوده او آينده دواړو باندې كه اول وو نو ماضي كه ثاني وو نو امر حاضر او كه ثالث وو نو مضارع (۴): دا فعل به خالي نه وي يا به معرب وي يا به مبني وي كه معرب وو نو مضارع او كه مبني وو نو بيا به خالي نه وي، يا به تعلق لري د زمان گذشته سره يا نه، كه لري نو ماضي والا امر حاضر.

او هر كله چې ماضي اصل ده د مضارع او د امر حاضر نه ځكه مضارع جوړيږي د ماضي نه او امر حاضر جوړيږي د مضارع نه، پس مقدم يې كړه فعل ماضي د فعل مضارع او امر حاضر نه، يا هر كله چې ماضي دلالت كوو په زمانه گذشته بخلاف الامر والمضارع چې دا دلالت كوي په زمانه موجوده يا اينده باندې او زمانه د ماضي مقدم ده د حال او استقبال نه نو دال د زمانه ماضي يې هم مقدم كړو په دال د زمانه د حال او استقبال باندې لپاره د دې چې ترتيب ذكري موافق شي د ترتيب خارجي سره.

ماضي په لغت كې زمانه گذشته را گويند، يا صيغه د اسم فاعل ده د مضى يمضي مضيا نه مضى كننده ته وائي.

او په اصطلاح كې **ما** فعل دى داسې فعل **دَل** چې دلالت كوي په اعتبار د اصل وضع سره ځكه شئ چې مطلق ذكر شي نو صيرورت يې كيږي فرد كامل ته او كامل په دلالت كې دلالت بحسب الوضع دى **على زمان** په زمانه باندې، داسې زمانه **قبل زمانك** چې هغه مخكې ده د زمانې د تكلم ستا نه په تقدم بالذات سره ځكه په اجزاؤ د زمانه كې تقدم راځي بالذات او په مظروفاتو كې تقدم بالواسطه راځي په اعتبار د تقدم د زمانې سره.

**تشريح:** الماضي صيغه د اسم فاعل ده صفت دى تقاضه د موصوف كوي نو موصوف د دې مقدر او محذوف دى چې الفعل دى په قرينې د مقام سره نو هر كله چې توصيف د فعل وشو په ماضي سره نو احتراز يې وكړو د فعل مضارع او فعل امر نه ځكه دا تعريف د فعل ماضي دى او تعريف د مضارع او امر حاضر وروستو راروان دى.

**سوال:** ماضي مضارع او امر درې واړه سواسي دي په قسميت د فعل کې نو تا ماضي ولې مقدم کړو په امر او مضارع باندې؟ **جواب:** لاصالت الماضي من المضارع والامر ځکه دا مشتق منه د فعل مضارع لپاره دی او مضارع مشتق منه د امر حاضر لپاره دی. (۲) لتقدم زمان الماضي

**سوال:** تعريف د ماضي مانع نه شو د دخول د غير نه. داخل شو پکې لفظ د امس ځکه امس يو لفظ دی چې دلالت کوي على زمان قبل زمانك او دا يو فرد د افراد د معرف نه نه دی او کوم تعريف چې مانع نه وي هغه باطل وي نو دا تعريف هم باطل دی؟ **جواب:** دا اعتراض به تا هله کولی چې ما عبارت د (لفظ) نه نيکړ ما عبارت دی د فعل نه. نه د لفظ نه او امس فعل نه دی بلکه اسم دی.

**سوال:** ما د الفاظ عامو نه دی او ته وايې چې دا عبارت دی د فعل نه. په دې څه دليل دی؟

**جواب:** معتبر په تعريفات د اقسام کې جنس قريب وي او د ماضي مضارع امر لپاره جنس قريب فعل دی (۲) ماضي يو قسم دی د مطلق فعل نه او فعل مقسم دی او مقسم معتبر وي په تعريفات د اقسام کې او په تنکير د فعل کې اشاره ده دې ته چې دا ما موصوفه دی لانه واقع في جانب الخبر

**سوال:** دا تعريف د ماضي باطل دی ځکه تعريف کې لابدي وي د جامعيت او مانعيت نه او دا تعريف جامع نه دی خپلو افرادو لره خارج شو د دې نه (ان ضربت ضربت)، ځکه دا دلالت نه کوي على زمان قبل زمانك بلکه دلالت کوي په زمانه د استقبال باندې او داخل شو پکې لم يضرب او لما يضرب دا دلالت کوي على زمان قبل زمانك؟ **جواب:** ماضي هغې ته وائي چې دلالت کوي على زمان قبل زمانك بحسب الوضع، نو ان ضربت ضربت پکې داخل پاتې شو، ځکه دا بحسب الوضع دلالت کوي على زمان قبل زمانك او دلالت کوي په استقبال د امر عارض د وجې نه چې دخول د ان دی، او لم يضرب لما يضرب خارج شو ځکه دا بحسب الوضع دلالت نه کوي على زمان قبل زمانك بلکه د عارض د وجې نه دلالت کوي چې لم او لما دی.

**سوال:** ماتن خو دلالت مطلق ذکر کړی دی نو ته دلالت بحسب الوضع د کوم ځای نه اخلې؟

**جواب:** شئ چې ذکر شي مطلق نو صيرورت يې کيږي فرد کامل ته او کامل په دلالت کې دلالت بحسب الوضع دی نه بحسب الاستعمال.

**سوال:** تعريف د ماضي جامع نه شو خپلو افرادو لره خارج شو د دې نه ضربت زيداً بالامس ځکه ته وائې چې ماضي هغې ته وايې چې دلالت کوي په هغه زمانه چې مخکې وي د زمانې د وجود ستا نه او دلته ضربت دلالت ونه کړو په هغه زمانه چې مخکې ده د زمانې د وجود د متکلم نه؟

**جواب:** دلته زمانه د وجود د متکلم نه ده مراد بلکه مراد دا دی چې دلالت به کوي په زمانې مخکې د زمانې د تکلم ستا نه

**سوال:** ته وايې چې ماضي دلالت کوي على زمان قبل زمانك د وجې د تقدم د زمانې نه نو ثبوت د زمانې د زمانې دپاره راغی؟ **جواب:** دلته مراد د تقدم نه تقدم بالذات دی نه تقدم بالواسطه ځکه تقدم په اجزاؤ د زمانه کې بالذات وي نه بالواسطه او تقدم په مظروفاتو کې بالواسطه وي لکه امام ابو

حنيفه رحمه الله مخکې دی د امام شافعي رحمه الله نه ځکه چې زمانه د امام ابو حنيفه مخکې وه او زمانې د امام شافعي نه.

په هر تعريف کې لابدي وي د جنس او فصل نه، **ما دل على زمان** جنس دی او **قبل زمانك** فصل دی، دې سره خارج شو فعل مضارع او امر حاضر او د دلالت نه چې مونږه دلالت بحسب الوضع واخستو (ان ضربت ضربت) داخل پاتې شو او (لم يضرب او لما يضرب) خارج شو.

**مبني على الفتح:** ربط: (۱): هر کله چې فارغ شو مصنف د تعريف د فعل ماضي نه نو شروع يې وکړه په حکم د فعل ماضي کې (۲): يا هر کله چې فارغ شو د تعريف بالمفهوم او د تعريف حقيقي د ماضي نه نو شروع يې وکړه په تعريف بالعلامه کې نو وې ويل (**مبني على الفتح**) دا فعل ماضي به مبني وي په فتحې سره د وجې د عدم وجود د علت د اعراب نه په دې کې چې معاني معتوره دي او مشابهت تامه دی د اسم معرب سره او مبني على الحرکت ده نه على السکون د وجې د مشابهت د دې نه د مضارع سره په وقوع د دې کې موضع الاسم يا په وقوع د دې کې شرط او جزا (نحو: ان ضربتني ضربتك)، او مبني على الفتحه ده د خفت د وجې نه، دا فتحه عامه ده که لفظا وي او که تقديرا وي **مع غير الضمير المرفوع** په حال کون د دې ماضي کې چې معې وي د غير د ضمير مرفوع متحرك سره **والواو** او غير د واو سره چې هغه څلور صيغې دي (ضرب، ضربا، ضربت، ضربتا)، او که سره د ضمير مرفوع متحرك نه وه نو مبني على السکون به وي (نحو: ضربت ضربتما) شو. لپاره د دې چې لازم نه شي توالي د اربع حرکات فيما هو کالکلمة الواحدة، ځکه دا ضمير مرفوع ګرځېدلی دی بمنزلة الجزء، او که سره د واو نه راشي نو مبني على الضمه به وي از براى مناسبت واو دا ضمه عامه ده که لفظا وي او که تقديرا وي.

**تشريح:** **سوال:** مبني په ترکيب کې څه واقع شوی دی؟ **جواب:** دا خبر د مبتدا محذوف دی ای هو مبني يا خبر بعدالخبر دی د الماضي لپاره په دې شان سره چې الماضي باعتبار الموصوف مبتدا ده او ما دل... الخ يې خبر اول دی او مبني يې خبر ثاني دی.

**سوال:** هر کله چې مصنف تعريف د ماضي وکړو نو پکار وه چې شروع يې کړې وی په تعريف د مضارع کې نو مبني الخ څه له وائي؟ **جواب:** (۱) مخکې يې تعريف د ماضي وکړو او دا حکم د ماضي بيانوي (۲) يا مخکې تعريف بالمفهوم وو او دا تعريف بالعلامه دی.

**سوال:** ماضي مبني ولې ده او اصل په بناء بناء على السکون دی دا مبني على الحرکت ولې ده او بيا مبني على الفتحه ولې ده؟ **جواب:** (۱): دا مبني ده د وجې د عدم وجود د علت د اعراب نه په دې کې چې هغه دوه دي: معاني معتوره، مشابهت تامه د اسم معرب سره، ځکه دا نه فاعل واقع کيږي نه مفعول به، نه مضاف اليه او نه يې مشابهت تامه شته د اسم معرب سره، او مبني على الحرکة شوه نه على السکون د وجې د مشابهت د دې نه د مضارع سره په وقوع د دې کې موقع الاسم لکه زيد ضرب کې ضرب واقع دی په ځای د ضارب باندې په شان د: زيد يضرب.

(۲): دا رنګې د وجې د مشابهت نه د مضارع سره په وقوع د دې کې شرط او جزاء (نحو: ان ضربت ضربت) او مبني على الفتحه ده د وجې د خفت د فتحې نه

**سوال:** ته وايې چې مبني على الفتحه به وي نو دا قاعده ستا منقوضه شوه ضربت ضربتما الخ سره، دلته مبني على السكون ده او ضربوا کې مبني على الضمه ده؟

**جواب:** ماضي مبني على الفتحه راځي په دې شرط سره چې ضمير مرفوع متحرك او واو ضميري ورپورې نه وو متصل شوى او که مرفوع متحرك ورپورې متصل شوى وو نو مبني على السكون به وى لپاره د دې چې لازم نه شي توالي د اربع حركات فيما هو كالكلمة الواحدة او که واو ورپورې متصل شي نو مبني على الضمه به وي از براى مناسبت واو لان الواو شفوية والضمة ايضا شفوية

**سوال:** رمى فعل ماضي دى او ضمير مرفوع متحرك او واو ورپورې نه دى متصل شوى او مبنى على الفتحه نه ده؟ **جواب:** دا فتحه عامه ده که لفظا وي او که تقديرا وي، دلته تقديرا ده

**سوال:** ته وايې چې سره د واو نه به مبني على الضمه وي دا قاعده ستا منقوضه شوه په رموا باندې؟

**جواب:** دا ضمه عامه ده که لفظا وي او که تقديرا وي، دلته لفظا نشته ليکن تقديرا ده، او توصيف چې ضمير مرفوع سره وشو نو احتراز راغى د ضمير منصوب نه لکه ضربك شو دلته مبني على الفتحه ده ځکه نه لازميږي توالي د اربعه حرکاتو فيما هو كالكلمة الواحدة، ځکه ضمير منصوب ځان له کلمه ده او متحرك سره يې احتراز وکړو د الف ضميري نه ځکه هلته هم مبني على الفتحه وي (نحو: ضربا ضربتا).

**پس زده کړه** دا خبره چې ماضي به خالي نه وي يا به ورپورې ضمير متصل شوى وي او يا به نه وي، که نه وو متصل شوى نو مبني على الفتحه به وي (نحو: ضرب ضربت)، او که متصل شوى وو نو بيا به خالي نه وي، يا به متحرك وي او يا به ساکن وي، که متحرك وو نو مبني على السكون به وي (نحو: ضربت ضربتما الخ)، او که ساکن وو نو بيا به خالي نه وي يا به الف وي او يا به واو وي، که واو وو نو مبنى على الضمه به وي نحو ضربوا او که الف وو نو مبني على الفتحه به وي نحو ضربا ضربتما.

## المضارع

**ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د قسم اول د فعل اصطلاحي نه چې ماضي وو نو شروع يې وکړه په بيان د قسم ثاني د فعل اصطلاحي کې چې فعل مضارع ده او هر کله چې فعل مضارع اصل وه دا امر نه ځکه دا مشتق منه د امر حاضر دى نو مقدم يې کړو فعل مضارع په امر حاضر باندې نو وي

**وبل: المضارع** په مضارع کې لابدي ده د معرفة د امور عشرو نه: (١) مفهوم لغوي (٢) مفهوم اصطلاحي (٣) وجه تسميه (٤) معرفت د علامه د مضارع (٥) معرفة د خاصه د مضارع چې هغه وقوع د فعل دې وروسته د لم نه (٦) معرفة د اقسام (٧) معرفة د حکم (٨) معرفة د عامل رافع د مضارع (٩) معرفة د عوامل ناصبه د مضارع (١٠) معرفة د عوامل جازمه د مضارع (تلك عشرة كاملة).

نو مضارع په لغت کې: مشابه ته وائي او په اصطلاح کې **ما** فعل دى د داسې فعل **اشبه الاسم** چې مشابه دى د اسم سره **باحد حروف نايت** (١) په سبب د زيادت د يو حرف د حروف نايت نه په اول د مضارع

کې (۲) یا په حال کون د دې فعل مضارع کې چې دا متلبس دی په یو حرف د حروف د نأیت سره د تبیلو د تلبس د کل نه په جزء باندې **لوقوعه** او مشابه دی د اسم سره د وجې د وقوع د دې فعل مضارع نه **مشترکا** مشترك په مابین د حال او استقبال کې بنا په مذهب صحیح باندې په شان د اسم چې واقع کیږي مشترك په مابین د معاني متعددو کې لکه عین شو **وتخصیصه بالسین** او د وجې د تخصیص د مضارع نه په سین سره چې دا راځي د استقبال قریب لپاره **او سوف** یا سوف سره چې دا راځي د استقبال بعید لپاره، یا په حال پورې په لام ابتدائیه تاکیدیه سره لکه اسم چې خاص کیږي د معاني متعددو نه په یوه معنی پورې په واسطې د قرینې سره نحو رایت العین في راس زید، دلته د عین نه مراد سترګه ده نه بله معنی په قرینه د (في راس زید)، او عدول وکړو مصنف د مشهور تعریف د مضارع نه دې تعریف ته چې (ما اشبه الاسم الخ) دی، ځکه په دې تعریف سره وضاحت د معرف هم راځي او وجه د تسمیه هم معلومیږي په خلاف د باقي تعریفونو نه چې هغې سره وجه د تسمیه نه معلومیږي او مضارع ته مضارع ځکه وائي چې دا په لغت کې مشابه ته وائي ځکه دا ماخوذ دی د مضارعت نه او مضارعت مشابهت ته وائي، یا دا ماخوذ دی د ضرع نه نو ګویا چې هر واحد د دې شبیهین نه شودهٔ څکلې دي، من ضرع واحد (یعنی دواړه رضاعي وروڼه دي) او دا مضارع اصطلاحي هم مشابه ده د اسم سره په اشتراك او تخصیص کې.

**تشریح: سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟
جواب: ربط د ماقبل سره دا دی چې مخکې نوع اول د فعل بیان شوه او دا نوع ثاني ده او په دې سره غرض د مصنف هم معلوم شو چې بیان د نوع ثاني د فعل دی.

**سوال:** مضارع یې ولې مقدم کړو په امر حاضر باندې؟ **جواب:** فعل مضارع اصل وه د امر حاضر نه نو ځکه یې مقدم کړو ځکه دا مشتق منه ده د امر لپاره او امر جوړیږي د مضارع نه.

**سوال:** (ما) په دې تعریف کې د څه نه عبارت دی؟ **جواب:** کلمه د (ما) په دې مقام کې عبارت دی د فعل نه ځکه معتبر په تعریفات کې جنس قریب وي او جنس قریب د مضارع لپاره فعل دی او لفظ او شئ اجناس بعیده دی. (۲) یا عبارت دی د فعل نه ځکه فعل مقسم دی د ماضي مضارع امر لپاره او مقسم معتبر وي په تعریفات د اقسام کې او په تنکیر د فعل کې اشاره ده موصوفیت د ما ته (لانه واقع في جانب الخبر)

**سوال:** (باحد حروف نأیت) جار مجرور دی او په اصطلاح د نحویانو کې دیته ظرف وائي او ظرف دوه قسمه دی: ظرف لغوه، ظرف مستقر، دا کوم یو دی؟

**جواب:** په دې کې دوه مذهبه دي یو مذهب د شارح جامي دی او بل مذهب د صاحب غاية التحقيق دی، د صاحب د غاية التحقيق مذهب دا دی چې دا ظرف لغوه متعلق دی اشبه پورې او دا باء سببي ده او عبارت په حذف د مضاف سره دی (فیکون المعنی اشبه الاسم بسبب زیادة احد حروف نأیت) او شارح جامي وائي چې دا ظرف مستقر دی او متعلق یې محذوف دی چې متلبسا دی ځکه دا با د

تلبس لپاره ده او دا جار مجرور په اعتبار د متعلق سره حال دی د ضمير د اشبه نه (فيكون المعنى المضارع ما اشبه الاسم حال كونه متلبسا باحد حروف نأيت)

**سوال:** دا فعل مضارع متلبس باحد حروف نأيت ولې ده؟ **جواب:** هر كله چې مضارع مخالف وه د ماضي نه معنى پس لابدي شوه د مخالفت د مضارع د ماضي نه لفظا هم د دې لپاره چې لفظ د مضارع موافق شي د معنى سره په مخالفت كې او مخالفت د مضارع د ماضي نه راځي په دوه طريقو سره: (۱) په طريقې د نقصان سره. (۲) په طريقې د زيادت سره. ليكن مونږ دا مخالف ونه ګڼلو په نقصان سره لپاره د دې چې لازم نه شي نقصان د كلمه د قدر صالح نه پس متعين شو مخالفت د مضارع د ماضي نه په زيادت سره او متعين كړی شو د زيادت لپاره حروف د نايت ځكه دا حروف مده او حروف لين دی او دا اولی دی په زيادت سره د وجې د كثرت استعمال د دې نه په كلام د عرب كې الف بدل كړی شو همزې سره لپاره د دې چې ابتدا بالساكن رانه شي او واو بدل كړی شو په تاء سره لپاره د دې چې لازم نه شي اجتماع د ثلاثه واوات په مثال واوي كې په حالت د عطف كې (لكه توجل شو، دلته يو واو فا كلمه ده او يو واو به د مضارع شي او بل به د عطف شي نو ووَوجل جوړيدو) لپاره د دې چې لازم نه شي مشابهت د صوت د ثعلب سره او زياتي كړی شو حروف لين د وجې د مشابهت د دې نه د حرف علت سره په لينيت كې

**سوال:** حروف علامه د مضارع په اول سره د مضارع كې راځي په اخير يا په مينځ كې ولې نه راځي؟

**جواب:** په مينځ كې يې نه ذكر كوو ځكه دا علامه ده او علامه په مينځ كې نه راځي بلكه اول يا اخير كې راځي او اخير كې نه راځي لپاره د دې چې لازم نه شي التباس د ماضي د مضارع سره نحو ضربت ضربنا، او لپاره د دې چې لازم نه شي التباس د مصدر مضاف الى ياء المتكلم نحو ضربی پس متعين شو زيادت د دې په اول سر د مضارع كې او دا حروف علامه د مضارع لكه څنګه چې جمع كولی شي په لفظ د نأيت سره نو دارنګې جمع كولی شي په لفظ د أتين او نأتی سره.

**سوال:** مصنف اتين لفظ ولې ذكر نه كړو چې نأيت يې ذكر كړو؟

(۲) يا عام صرفيانو علامات د مضارع جمع كوي په اتين سره نه په نايت او ناتی سره نو مصنف ولې عدول وكړو د اتين نه نايت ته؟ **جواب:** مصنف عدول كړی دی د اتين نه نايت ته لپاره د دې چې تفريق رانه شي په مابين د حرفين د تكلم كې چې همزه او نون دی.

او بل لپاره د دې چې تقديم د حرف خطاب رانه شي په حرف غيبت باندې په خلاف د اتين نه هلته تفريق راغلی دی په مابين د حرفين د تكلم كې او تقديم د حرف خطاب راغلی دی چې تاء دی په حرف غيبت باندې چې ياء دی، او دا خلاف دی د وجود خارجي نه ځكه غائب متوسط دی بين المتكلم والمخاطب نو نأيت كې يا راغلې ده په مينځ د حرف تكلم او حرف خطاب كې او مخاطب منتهی اليه د كلام وي او دا تاء لفظ په اخير كې ذكر شو، ليكن ذكر كول د اتين وروستو د دې حروف نه مناسب دي د دې مقام سره لفظا او معنى هر چې دی لفظا نو د وجې د اشتمال د دې لفظ نه

دغه حروف اربعه ؤ لره او هر چي دی معنیٰ د وجې د صلاحیت د اتین نه صفت د حروفو لپاره یعني هغه حروف چې راځي په اول سر د مضارع کې نو توصیف صحیح شو او هر چې دی نایت نو دا مناسب دی لفظا د وجې د اشتمال د دې لفظ نه حروف اربعه ؤ لره نه معنی د وجې د عدم صلاحیت د نایت نه صفت لپاره د حروف ځکه نایت ماخوذ دی د نأي نه او نائي بعد ته وائي نو توصیف د حروفو نایت سره نه دی صحیح معنی.

**سوال:** مشهور تعریف د مضارع دا دی چې ما دل علی زمان الحال والاستقبال.
(۲): ما دل علی زمان یترقب. (۳): المضارع ما في اوله احد حروف نایت او احد حروف اتین نو مصنف ولې عدول وکړو د تعریف مشهور نه غیر مشهور ته؟ **جواب:** عدول یې کړی دی تعریف غیر مشهور ته د یو نکتې د وجې نه هغه دا ده چې په دې تعریف سره دوه خبرې معلومې شوې معنی حقیقي د مضارع، وجه د تسمیه په خلاف د دغه باقي تعریفونو نه چې په هغې سره معنی حقیقي معلومیده او وجه د تسمیه نه معلومیده.

**سوال:** مضارع اصطلاحي ته مضارع ولې وائي؟ **جواب:** ځکه مضارع په لغت کې مشابه ته وائي او دا مضارع اصطلاحي مشابه ده د اسم سره په اشتراک او تخصیص کې.

**سوال:** ته وائي چې مضارع مشابه ده د اسم سره بوقوعه مشترکا نو مضارع خو مشترکه نه ده بین الحال والاستقبال بلکه دا مشترك فیه ده او حال او استقبال مشترك دی؟

**جواب:** دا عبارت په حذف د صلې سره دی ای مشترك فیه، او په مضارع کې درې مذاهب دي: (۱): یو مذهب د شیخ رضی دی هغه وائي چې دا حقیقت ده په استقبال کې او مجاز ده په حال کې.
(۲): دویم مذهب د ابن طراده دی هغه یې بالعکس وائي.
(۳): دریم مذهب د ابن حاجب دی، دی وائي چې مضارع مشترك ده بین الحال والاستقبال.

**او بالسین** یې متلبس باللام ذکر کړو او سوف یې مجرد عن اللام ذکر کړو ځکه سین متنوع دی او سوف غیر متنوع دی نو السین یې معرف باللام په الف لام عهدي خارجي سره ذکر کړو مراد د سین نه سین د استقبال دی ـ نه مطلق سین ـ او سین او سوف چې داخل شي په مضارع پورې نو خاص کوي یې په استقبال پورې خو فرق دومره دی چې سین دلالت په قرب کوي او سوف دلالت کوي په بعد باندې ځکه کثرت د حروف دلالت کوي په کثرت د مسافت باندې او سوف یضرب کې سویضرب هم جائز دی چې دا یو لغت دی په سوف کې.

**فالهمزة للمتکلم: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د تعریف د مضارع نه نو شروع یې وکړه په بیان د معاني د حروف مضارعت کې او هر کله چې ګردان د صیغو د مضارع شروع کیدو د صیغې د متکلم نه او ختمیږي په صیغه د غائب باندې پس شروع یې وکړه د همزه د متکلم نه او رعایت یې ونه کړو د ترتیب د حروف نایت **فالهمزة** پس همزه د علامات د مضارع نه **للمتکلم** راځي د متکلم لپاره **مفردا** په حال د کون د دې متکلم کې چې مفرد یې واخلې بیا برابره خبره ده چې مذکر وي او که مؤنث وي نحو اضرب

**والنون** او نون د علامات د مضارع نه **له** د مفرد متكلم لپاره دی **مع غيره** سره د غير نه دا غير عام دی چې مذكر وي او كه مؤنث وي واحد وي كه تثنيه وي او كه جمع وي مثال لكه نضرب شو او دا همزه او نون د متكلم ماخوذ دی د انا او نحن ضمير مرفوع منفصل نه. (و اما قوله تعالى نحن نقص عليك). دا نون **مستعمل** شوی دی په واحد متكلم كې تعظيما او اطلاق د واحد غائب او مخاطب په جمع باندې تعظيما نه دی راغلی په كلام د متقدمين كې **والتاء للمخاطب** او تا د علامات د مضارع نه راځي د مخاطب لپاره **مطلقا** برابره خبره ده چې واحد وي كه مثنى وي او كه مجموع وي مذكر وي او كه مؤنث وي نحو تضرب تضربان... الخ **وللمؤنث والمؤنثين غيبة** او دارنگې دا تا راځي د واحد مؤنث او تثنيه مؤنث لپاره په حال كون د دې واحد مؤنث او تثنيه مؤنث كې چې غائب يې واخلې

**سوال:** غيبة منصوب دی او منصوبات دولس دا كوم يو دی د مغې نه؟

**جواب:** دا منصوب دی بنا بر حاليت

**سوال:** د چا نه حال واقع شوی دی؟ **جواب:** د مؤنث او مؤنثين نه

**سوال:** حال محمول وي په ذو الحال او دلته حمل نه صحيح كيږي ځكه حمل د صرف وصف راځي په ذات باندې ځكه مؤنث او مؤنثين خو غيبت نه دی **جواب:** دا محمول دی په اعتبار د حذف د مضاف سره ای ذوی غيبة (٢): يا مصدر مبنى للفاعل دی ای غائبات. او دا غيبة نه تعبير كوو په غائبات جمع مؤنث سره په نظر سره معنى د مؤنث او مؤنثين نه او تثنيه مضاف يې مقدر راوړستو ذوی غيبة په نظر سره لفظ د مؤنث او مؤنثين نه **والياء للغائب** او يا د علامات د مضارع نه وضع كړی شوې ده د غائب لپاره **غيرهما** داسې غائب چې غير دی د مؤنث او مؤنثين نه يا په حال كون د دې غائب كې چې غير دی د مؤنث او مؤنثين نه چې هغه څلور صيغې دي د دې مذكر غائب او يوه د جمع مؤنث غائبات

**سوال:** غيرهما مجرور بنا بر صفتيت او بنا بر بدليت دواړه نه دي صحيح ځكه الغائب معرفه باللام ده او غيرهما نكره ځكه غير د وجې د كمال توغل نه په ابهام كې نه معرفه كيږي په اضافت سره معرفي ته نو كله دا صفت شي نو مطابقت نشته په مابين د موصوف او صفت كې او كه بدل يې روايې نو نكره چې بدل واقع شي د معرفي نه نو فالنعت نحو قوله تعالى (بالناصية، ناصية كاذبة) او دلته نعت نشته. **جواب:** (١) دا صفت واقع شوی دی د للغائب لپاره او كه ته وائې چې مطابقت نه راځي نو جواب دا دی چې الف لام په الغائب كې زائد دی.

(٢) يا دا غيرهما بدل دی د الغائب نه او دغه قاعده په نكره محضه كې ده او دا نكره مخصصه ده تخصيص پكې راغلی دی د اضافت د وجې نه نحو قوله تعالى (خلقهن سبع سماوات) دلته سبع سماوات بدل دی د هن نه او توصيف يې نه دی شوی ځكه نكره مخصصه ده

(٣) يا غيرهما منصوب دی بنا بر حاليت او حال واقع شوی دی د الغائب نه او دا دريم تركيب غوره دی د تركيب اول او د ثاني نه لموافقته السابق چې هغه مفردا او غيبة دی. همزه د ابتدا د مخارجو نه ده او متكلم هغه دی چې د هغه نه ابتداء د كلام كيږي نو د دوی په مينځ كې مناسبت وو په ابتداء كې

نو همزه متکلم لره ورکړی شوه، او واو د انتهاء د مخارجو نه دی او مخاطب هغه ته وائي چې انتهاء د کلام ورته کيږي نو د دې مناسبت د وجې نه واو ورکړی شو مخاطب ته بيا واو بدل کړی شو په تاء سره لپاره د دې چې لازم نه شي اجتماع د ثلاث واوات په حالت د عطف کې په مضارع مخاطب مثال واوي کې او يا د وسط د مخارجو نه ده او غائب هغه چا ته وائي چې واقع شوی وي بين المتکلم والمخاطب نو د دې مناسبت د وجې نه ياء غائب لره ورکړی شوه واحده مؤنثه غائبه او تثنيه مؤنث غائبتين صيغې د غائب دي او علامه د مضارع ياء ورله نه ده ورکړی شوي بلکه تا ورکړی شوې ده ځکه په دې کې دوه اعتباره دي يو اعتبار د غيبت دی د دې سره مناسب يا ده لتناسبهما في التوسط او بل اعتبار د تانيث دی دا مناسب دی د تاء سره لتناسبهما في النوعية ځکه تانيث فرع د تذکير ده او تا فرع د واو ده او عمل په جهتين چې ممکن وي نو اعمال اولی دی د اهمال نه نو موږ په دواړو جهتينو باندې عمل وکړو چې تا مو ورکړه واحد او تثنيه مؤنث ته او يا مو ورکړه جمع مؤنث ته لپاره د دې چې عمل راشي په جهتين باندې باقي پاتې شوه صيغه د متکلم مع الغير نو هغې لره نون ورکړی شو

**و حروف المضارع: ربط**: هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د ذات د حروف المضارعة نه نو شروع يې وکړه په صفات د حروف مضارعة کې. (۲): هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د امحله دهٔ حروف المضارعة نه نو شروع يې وکړه په بيان د حرکاتو د حروف مضارعة کې.

(۳): يا دا جمله مستانفه جواب د سوال دی ځکه هر کله چې بيان کړو مصنف امحله د حروف د مضارع اوس حروف المضارعة ساکن خو نه راځي بلکه متحرك راځي ځکه که ساکن راشي نو لازميږي ابتداء بالساکن، نو متحرك چې راځي نو کوم يو حرکت راځي په علامه د مضارع باندې نو مصنف جواب وکړو چې وحروف المضارعة الخ حروف مضارعة چې دا يو حرف دی د حروف اتين نه او راغلی دی په اول سر د مضارع کې **مضمومة** مضموم راځي **في الرباعي** په هغه افعالو کې چې ماضي د هغې مشتمل وي په څلورو حروفو باندې بيا برابره خبره ده چې اصلي وي لکه يدحرج او که اصلي نه وي لکه يکرم شو او ماضي علی اربعة احرف چې راځي هغه څلور بابونه دي: افعال، تفعيل، مفاعله، فعلل. **ومفتوحة** او علامه د مضارع مفتوح راځي **فيما** په هغه افعالو کې **سواه** چې سوا د رباعي نه وي چې هغه درې قسمه دی (۱): ثلاثي مجرد. (۲): ثلاثي مزيد فيه ما سوا د دې درې بابونو نه. (۳): رباعي مزيد فيه

**سوال**: ته وائي چې حروف مضارعة مضموم راځي په رباعي کې دا قاعده ستا منقوضه شوه په يکرم سره دلته علامه د مضارع مضموم ده او دا رباعي نه دی بلکه ثلاثي مزيد دی ځکه رباعي هغې ته وائي چې حروف اصلي يې څلور وي او دلته حروف اصلي څلور نه دي دارنګې دا خبره ستا منقوضه شوه په يتدحرج سره د دې حروف اصلي څلور دي او حرف مضارعة يې مضموم نه دی؟

**جواب**: رباعي دوه قسمه دی: لغوي، اصطلاحي. لغوي څلور حرفيز ته وائي او اصطلاحي هغې ته وايي چې حروف اصلي پکې څلور وي او دلته مراد د رباعي نه رباعي لغوي دی نه اصطلاحي يعنی

حروف مضارعة مضموم راځي په هغه فعل کې چې ماضي يې مشتمله وي على اربعة احرف او هغه
څلور بابونه دي کما مر په دې څلورو بابونو کې علامه د مضارع مضموم راځي او د دې نه علاوه هر
ځای کې مفتوح راځي.
**سوال:** په دې کې مضموم او په غير کې مفتوح ولې راځي؟ **جواب:** د دې څلورو بابونو نه علاوه ثلاثي
مجرد کثير الاستعمال دی او ثلاثي مزيد او رباعي مزيد کثير الحروف دی نو کثرت استعمال او
کثرت د حروفو تقاضه د تخفيف کوي نو تخفيف ورته ورکړی شو په فتحې سره او دغه څلور نه کثير
الاستعمال دي په شان د مجردو او نه کثير الحروف دي په شان د باقي ثلاثي مزيد او رباعي مزيد نو
دا تقاضه د تخفيف نه کوي ځکه علامه د مضارع مضموم راځي په دې کې. والله اعلم
**ولا يعرب من الفعل غيره: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د تعريف د فعل مضارع نه نو شروع
يې وکړه په بيان د حکم د مضارع کې نو وې ويل (ولا يعرب الخ)
**ترجمه: ولا يعرب** نه شي معرب کولی **من الفعل** د جنس فعل نه **غيره** غير د مضارع نه د وجې د عدم
وجود د علت د اعراب نه په هغې کې چې هغه معاني معتوره او مشابهت تامه دي د اسم سره، او
معرب کولی شي فعل مضارع **اذا لم يتصل به** په دې شرط سره چې نه وي متصل شوی په دې مضارع
پورې **نون تاکيد** نو د تاکيد برابره خبره ده که نون تاکيد ثقيله وي او که خفيفه وي **ولا نون جمع مؤنث** او
نه نون د جمع مؤنث د وجې د وجود د علت د اعراب نه په دې کې چې هغه مشابهت تامه د فعل
مضارع دی د اسم فاعل سره او که نون تاکيد ثقيله يا خفيفه متصل شوی وو په اخير د مضارع پورې
نو په دې کې درې مذاهب دي
(۱) بعض وائي چې دا معرب دی مطلقا (۲) او بعض وائي چې دا مبني دی مطلقا
(۳) او بعض وائي چې دا نون به خالي نه وي يا به مباشر وي د فعل مضارع سره او يا به نه وي که
مباشر وو نو مبني و الا نو معرب. کما قال ابن مالك رحمه الله: واعربوا مضارعا ان عريا

من نون تاكيد مباشر ومن نون اناث كيرعن من فتن

او مختار عند المصنف مذهب ثاني دی.
**تشريح: سوال:** د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی؟
جواب: ربط دا دی چې مخکې بيان د تعريف د مضارع وو او دا بيان د حکم د مضارع دی او غرض
د مصنف هم معلوم شو چې بيان د حکم مضارع دی.
**سوال:** اذا ظرف لغوه دی متعلق دی په لايعرب پورې نو معنی دا شوه چې نه شي معرب کولی غير د
مضارع نه کله چې نه وي متصل شوی په دې غير د مضارع پورې نون تاکيد او دا معنی باطله ده
ځکه غير د مضارع نه فعل ماضي او امر حاضر مطلقا مبني دی برابره خبره ده چې نون تاکيد
ورپورې متصل شوی وي او که نه وي نو دې تقيد ته څه حاجت نشته؟
**جواب:** اذا ظرف لغوه نه دی بلکه ظرف مستقر دی متعلق د دې محذوف دی فيکون التقدير ولا
يعرب من الفعل غيره ويعرب المضارع اذا لم يتصل به نون تاکيد.

**سوال:** په دې تقدير د يعرب باندې دليل څه دی؟
**جواب:** دليل په دې باندې دا دی چې د دې مصنف په کلام کې حصر دی ځکه غير په معنی د الا مره دی ای و لايعرب من الفعل الا المضارع او په کوم کلام کې چې حصر وي په هغې کې دوه نسبتونه وي يو نسبت ايجابي وي او دويم سلبي وي مذکور ته منطوق وائي او غير مذکور ته مفهوم وائي مذکور دلته نسبت سلبي دی او تسبت ايجابي مفهوم دی د حصر د کلام نه.
**سوال:** غير د مضارع نه ولې مبني دی؟
**جواب:** لعدم وجود علة الاعراب چې هغه معاني معتوره او مشابهت تامه دی.
**سوال:** اصل په افعال کې بنا ده نو فعل مضارع مجرد عن نون التاكيد ونون جمع المؤنث ولې معرب ده؟ **جواب:** لوجوده علة الاعراب چې هغه مشابهت تامه دی د اسم فاعل سره.
**سوال:** نون التاكيد چې متصل شي نو بيا مبني ولې ده؟ **جواب:** نون تاكيد د وجې د شدت اتصال نه گرځيدلی دی په منزله د جز د کلمه باندې او چې متصل شي اعراب مخکې د دې نه نو لازميږي اجراء د اعراب په وسط کې او که اعراب په نون تاكيد باندې راشي نو لازميږي اجراء د اعراب په کلمه اخرى کې او دا نه ده جائز نو پس د اتصال د نون تاكيد نه د اعراب لپاره گنجائش پاتې نه شو هم دغه وجه ده چې د اتصال د نون تاكيد د وجې نه نون اعرابي حذف کيږي.
**سوال:** نون د جمع مؤنث چې متصل شي په مضارع پورې نو دا مضارع ولې مبني ده؟
**جواب:** د اتصال د نون ضمير د جمع مؤنث د وجې نه لام کلمه د مضارع ساکن کيږي د وجې د مشابهت د دې نون نه د نون د جمع مؤنث د ماضي سره نو هر کله چې ساکن شو نو محل د اعراب پاتې نه شو او دا مضارع قابله د اعراب نه ده نو ځکه مبني شوه. او د دې عبارت د مصنف نه چې (ولا يعرب الخ) دی درې مسئلې معلومې شوې (١): غير د مضارع نه ټول افعال مبني دي (٢): مضارع معرب ده. (٣): په دې شرط سره چې خالي وي د نون تاكيد او نون د جمع مؤنث نه، ليكن فعل ماضي مبني ده مطلقا بالاتفاق، او فعل مضارع چې خالي وي د نون تاكيد نه او د نون د جمع مؤنث نه معرب ده بالاتفاق. او فعل مضارع پورې چې نون د جمع مؤنث متصل شي دا هم مبني ده بالاتفاق، او په اخير د مضارع پورې چې نون د تاكيد متصل شي نو ديکې خلاف دی، درې مذاهب دي پکې: (١): بعض وائي مبني ده مطلقا (٢): بعض وائي معرب ده مطلقا (٣): او بعض وائي که مباشر وو نو مبني ده الا فمعرب. او په امر حاضر کې خلاف دی عند البصريين مبني دی او عند الكوفيين معرب دی.
**واعرابه رفع ونصب و جزم: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د حکم د مضارع نه چې دا معرب ده پس شروع يې وکړه په اعراب د مضارع کې. (٢): يا دا جمله مستانفه جواب د سوال دی ځکه هر کله چې مصنف وويل چې دا معرب ده نو معترض اعتراض وکړو چې د معرب لپاره خو لابدي ده د اعراب نه د دې اعراب راته وښايه نو مصنف وويل چې واعرابه رفع و نصب وجزم او جر په فعل مضارع کې نه راځي لپاره د دې چې لازم نه شي مزيت د اعراب د فعل مضارع په اعراب د اسم باندې.

**پس زده کړه** دا خبره چې نفس اعراب څلور قسمه دی: رفع، نصب، جر، جزم او اعراب بیا دوه قسمه دی: اعراب د اسم، اعراب د فعل مضارع اعراب د اسم درې قسمه دی: رفع، نصب، جر او اعراب د مضارع هم درې قسمه دی: رفع، نصب، جزم رفع او نصب مشترك دي او جر خاص دی په اسم پورې ځکه جر اثر د حرف جر دی او حرف جر مختص وو په اسم پورې نو دا جر هم مختص شو په اسم پورې لپاره د دې چې لازم نه شي مخالفت په مابین د اثر او د مؤثر کسبي کې او جزم خاص دی په فعل پورې ځکه دا اثر د عامل جازم دی او عامل جازم خاص دی په افعالو پورې نو دا هم خاص شو لپاره د دې چې لازم نه شي مخالف په مابین د اثر او مؤثر کسبي کې.

**سوال:** دخول د حرف جر ولې مختص دی په اسم پورې او دخول د جازم ولې مختص دی فعل پورې؟

**جواب:** د دې وجه تیره شوې ده په بیان د علاماتو داسم او د فعل کې.

**فالصحيح: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د اعراب د مضارع نه نو شروع یې وکړه په تقسیم د مضارع کې اقسام اربعه ؤ ته په اعتبار د اعراب سره.

**ترجمه: فالصحيح:** دلته یې اعراب لفظي او تقدیري دواړه بیان کړي دي ځکه دا محصور دی په خلاف د اعراب لفظي او تقدیري د اسم نه چې هلته یې اعراب لفظي نه وو بیان کړی لعدم حصره دلته یې اعراب لفظي مقدم کړو لاصالته هلته تقدیري لقلته. فعل مضارع صحیح چې لام کلمه کې یې حرف علت نه دی راغلی داسې مضارع صحیح **المجرد** چې مجرد ده **عن ضمير بارز مرفوع** د ضمیر بارز مرفوع نه **للتثنية** چې هغه راځي د تثنیه لپاره بیا برابره خبره ده که مذکر وي او که مؤنث وي **والجمع** او د جمع لپاره او دا جمع عام ده که مذکر وي او که مؤنث وي **والمخاطب المؤنث** او د واحدې مؤنثې مخاطبې لپاره او دا څلور صیغې دي: یضرب، تضرب، اضرب، نضرب. دا معرب کولی شي **بالضمة** په ضمې سره په حالت رفعي کې **والفتحة** او په فتحې سره په حالت نصبي کې لفظا **والسكون** او په سکون سره په حالت جزمي کې **مثل يضرب** دا مرفوع بالضمه دی لفظا **ولن يضرب** دا منصوب بالفتحه دی لفظا **ولم يضرب** دا مجزوم دی په سکون او حذف د حرکت سره. **المجرد** سره یې احتراز وکړو د تثنیه او جمع مذکر نه جمع مؤنث او د واحد مؤنث مخاطب نه ځکه د هغې حکم وروستو راروان دی او مرفوع سره یې احتراز وکړو د ضمیر منصوب نه نحو یضربك ځکه اتصال د ضمیر منصوب چې راشي په اخر د مضارع پورې نو دا معرب کولی شي حالت رفعي کې ضمې سره په نصبي کې فتحې سره او جزمي کې سکون سره، او د صحیح نه مراد صحیح د نحویانو دی چې هغه لفظ ته وائي چې د هغې حرف اخیر حرف علة نه وي پس اعتراض وارد نه شو په یقول تقول اقول نقول سره، ځکه دا صحیح نحوي دی د وجې د عدم کون د حرف اخیر د دې نه حرف علت **والمتصل به** او هغه فعل مضارع چې متصل شوی وي په اخیر د هغې پورې **ذلك** د غه ضمیر مرفوع متصل او دا اووه صیغې دي، څلور تثنیې او دوه جمعې او یوه واحده مؤنثه مخاطبه لکه تضربین شو او هر چې ده جمع مؤنث غائبات او مخاطبات هغه د قبیلې د مبنیات نه دی اعراب پکې نه راځي **بالنون** دا به په ثبوت د نون سره وي په

حالت رفعي کې **وحذفها** او په حذف د نون سره به وي په حالت نصبي او جزمي کې او حالت نصبي
دلته تابع د حالت جزمي دی مثال لکه **يضربان يضربون وتضربين** مضارع مرفوع ده او علامه د رفع
ثبوت د نون دی (لن يضربا ، لن يضربوا ، لن تضربي) کې مضارع منصوب ده او علامه د نصب حذف
د نون دی (لم يضربا لم يضربوا لم يضربي) کې مجزوم ده او علامه د جزم حذف د نون دی.

**سوال:** عامل جازم چې داخل شي په تثنيه او جمع باندې نو نون ولې غورځوي؟

**جواب:** ځکه دا نون اعرابي په منزله د حرکت اعرابي دی په مفرد کې او عامل جازم چې داخل شي په مفرد نو حرکت غورځوي نو کله چې داخل شو په تثنيه او په جمع باندې نو په اخير کې يې حرکت ونه موندلو بلکه د هغې په ځای باندې نون راغلی وو نو دا يې وغورځولو.

**سوال:** عامل جازم چې داخل شي په مفردات کې نو حرکت غورځوي نو تثنيه او جمع کې يې نون وغورځوو ځکه دا قائم مقام د حرکت دی نو عامل ناصب چې داخل شي په تثنيه او جمع نو دا نون اعرابي ولې غورځوي او حال دا دی چې غورځول د لن کار نه دی ځکه که د دې کار غورځول وی نو د مفرد نه به يې حرکت غورځولی وی او فتحه به يې نه ورکولی؟

**جواب:** حملا للنواصب علی الجوازم يعنی عامل ناصب محمول دی په عامل جازم باندې او عامل جازم خو نون غورځوو ځکه دا د دې عمل دی او عامل ناصب يې غورځوي حملا.

**سوال:** په مابين د محمول او محمول عليه کې لابدي وي د مناسبت نه دلته څه مناسبت دی؟

**جواب:** ځکه جزم په افعال کې په شان د جر دی په اسماؤ کې په اختصاص اختصاص کې او نصب تابع د جر وو په تثنيه او جمع د اسماؤ کې نو جزم دی دې نصب ته وائي چې ته به په تثنيه او جمع د افعال کې زما تابع يې ځکه زه د جر نه څه کم نه يم لکه څنګه چې هغه خاص وو په اسم پورې نو زه خاص يم په فعل پورې.

**سوال:** مضارع مرفوع په ثبوت د نون سره ولې ده؟ **جواب:** هر کله چې ضمير بارز مرفوع د مضارع سره متصل شو نو د وجې د شدت اتصال نه کالجزء وګرځيدو او اخير د مضارع وسط وګرځيدو او اعراب پکې ممتنع شو بيا د حرکت رفعي مفرد په عوض کې نون په اخير کې راوړی شو ځکه دا نون مشابه دی د رفع سره في الحذف في حالة الجزم.

**سوال:** اعراب پکې تقديرا ووايه لکه غلامي کې اخير د مضاف په وسط کې واقع دی او اعراب پکې تقديرا دی؟ **جواب:** قياس د دې په غلامي باندې قياس مع الفارق دی په دې شان سره چې هلته مضاف اليه جز لازم نه دی ځکه اعراب تقديرا شو.

**سوال:** دا حرکت اعرابي په واو الف او ياء کې ولې نه جاري کوي؟ **جواب:** په دې ضمير کې سکون واجب دی قابل د حرکت نه دی.

**والمعتل بالواو** او فعل مضارع چې معتل دی په واو سره يعنی معتل واوي لکه يدعو **والياء** او فعل مضارع چې معتل دی په ياء سره يعنی معتل يائي لکه يرمي شو **بالضمة تقديرا** په ضمې سره راځي په

حالت رفعي كې تقديرا ځکه چې ضمه ثقيله ده او واو او يا حرف علة ضعيفه دي برداشت د ضمې نه شي كولى **والفتحة لفظا** او فتحې سره راځي په حالت نصبي كې لفظا لكه لن يدعو ولن يرمي ځكه فتحه خفيفه ده **والحذف** او په حذف سره راځي په حالت جزمي كې لكه لم يدع لم يرم ځكه جازم چې داخل شي په مضارع باندې نو حركت غورځوي او هر كله چې يې حركت ونه موندو نو وې غورځوو هغه حرف علة چې حركت د هغې د وجې نه نه دى راغلى **والمعتل بالالف** او مضارع معتل الفي **بالضمة** په ضمې سره راځي په حالت رفعي كې **والفتحة** او په فتحې سره حالت نصبي كې تقديرا لكه هو يرضى ويخشى ولن يرضى ولن يخشى ځكه الف ساكن وضعي دى قابل دحركت نه دى حركت عام دى كه ثقيل وي او كه خفيف وي او په حذف د الف سره راځي په حالت جزمي كې ځكه هر كله چې دې جازم حركت ونه موندو نو الف يې حذف كړو ځكه حركت نه دى راغلى د ده د وجې نه

**ويرتفع اذا تجرد عن الناصب: ربط:** هر كله چې فارغ شو مصنف د بيان د اعراب د مضارع نه نو شروع يې وكړه په بيان د عوامل د مضارع كې او عوامل د مضارع درې دي: رافع، ناصب، جازم اول بيانوي عامل رافع د مضارع او بيا عامل ناصب او عامل جازم بيانوي

**ترجمه: ويرتفع** او رفع قبلوي فعل مضارع **اذا تجرد عن الناصب** په هغه وقت كې چې نه وو موجود په دې كې عامل ناصب او عامل جازم برابره خبره ده چې عامل پكې دغه تجرد او خلوه ده لكه د امتبادر ده د عبارت د مصنف نه او دا مذهب د كوفيانو دى يا عامل پكې وقوع د مضارع ده په مقام د اسم كې لكه دا مذهب د بصريانو دى او د دې وقوع د وجې نه وركړى شو فعل مضارع لره رفع ځكه دا اشرف او اقوى د اعراباتو د اسم نه دى لپاره د دې چې ترجيح بلا مرجح رانه شي

**تشريح:** فعل مضارع كله مرفوع راځي كله منصوب راځي او كله مجزوم راځي فعل مضارع مرفوع هله راځي چې خالي وي د عامل ناصب او د جازم نه اوس رافع د فعل مضارع څوك دى نو دې كې مذاهب اربعه دي: (١): كسائي وائي چې رافع د فعل مضارع حروف المضارعة دي.

(٢): زجاج او ثعلب وائي چې رافع د فعل مضارع مشابهت د فعل مضارع دى د اسم فاعل سره.

(٣): او بصريان وائي چې رافع د مضارع وقوع د مضارع ده په موضع د اسم كې نحو زيد يضرب دا يضرب واقع شوى دى په مقام د ضارب كې ځكه دا خبر د مبتدا دى او اصل په خبر كې مفرد دى او مررت برجل يضرب كې يضرب واقع دى په موضع د ضارب كې ځكه دا صفت د نكرې دى او اصل په صفت كې افراد دى.

**سوال:** هر كله چې فعل مضارع واقع شوه په مقام د اسم كې نو د دې وقوع د فعل مضارع نه په مقام د اسم كې خاص دا رفع ولې وركړه فعل مضارع لره. نصب او جزم يې ولې ورنكړو؟

**جواب:** هر كله چې دا رفع اسبق او اشرف او اقوى او عمده د اعراباتو د اسم نه ده نو وركړى شوه رفع لپاره د دې چې لازم نه شي ترجيح بلا مرجح

(۴): کوفیان وائي چې رافع د فعل مضارع خلوه او تجرد د فعل مضارع دی د ناصب او د جازم نه او مذهب د کوفیانو راجح دی د مذهب د کسائي، او زجاج او د بصریانو نه، ځکه مذهب د کسائي منقوض دی په لم یضرب، لم یضربا سره چې دلته حروف مضارعت شته او عمل د رفع یې نه دی کړی او مذهب د زجاج منقوض دی په (**لو یطیعکم في کثیر من الأمر لعنتم**) سره چې دلته مضارع بمعنی الماضي ده او مرفوع ده او مشابهت د دې د اسم سره نشته او مذهب د بصریانو منقوض دی په الذي یضرب، سیقوم، سوف یقوم، کاد زید یقوم، یقوم الزیدان سره په دې شان سره چې په دې مواضع خمسو کې مضارع مرفوع راغلې ده او دا نه ده واقع شوې په مقام د اسم باندې او بصریان د دې نه جواب کوي چې په الذي یضرب کې مضارع واقع ده په موضع د اسم کې ځکه دا اصل کې الذي ضارب هو وو، چې ضارب خبر مقدم او هو مبتدا مؤخره ده او یقوم الزیدان اصل کې قائمان الزیدان وو او سیقوم سوف یقوم مجموعه په معنی د قائم سره دی او کاد زید یقوم اصل کې کاد زید قائما وو بیا د مفرد نه عدول شوی دی صیغې د مضارع ته. بهر حال مذهب د کوفیانو غوره دی د مذهب د بصریانو نه ځکه د دوی مذهب بنا دی په تکلفات بعیده وو باندې او متبادر د عبارت د مصنف نه مذهب د کوفیانو دی ځکه (۱): تجرد یې ذکر کړی دی او عامل یې نه دی ذکر کړی نو معلومه شوه چې تجرد عامل دی. (۲): وروستو مصنف وائي وینتصب بان نو مدخول د باء یې عامل ګرځولی دی د هغې نه معلومه شوه چې مدخول د اذا عامل دی په قرینې د مقابلې سره، مثال د مضارع مرفوع لکه یقوم زید شو چې یقوم مضارع مرفوع ده کوفیان وائي دا مرفوع ده د وجې د تجرد د عامل ناصب او جازم نه او بصریان وائي (لوقوعه موقع الاسم) او کسائي وائي د یاء د وجې نه او زجاج وائي د وجې د مناسبت د یقوم نه د اسم سره.

**وینتصب: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د عامل رافع د فعل مضارع نه نو شروع یې وکړه په عامل ناصب د فعل مضارع کې نو وې ویل **و ینتصب** نصب قبلوي فعل مضارع **بان** په ان ناصبه مصدریه ملفوظه سره **ولن واذن و کی** او په لن اذن او کی سره **و بان مقدرة** او دا مضارع نصب قبلوي په ان سره (۱): په حال کون د دې کې چې دا مقدر واخلې (۲): داسې ان چې مقدر دی مقدرة یا منصوب دی بنا بر حالیت د ان نه، یا مجرور دی صفت د ان دی او ان ناصبه مصدریه مقدر کیږي **بعد حتی ولام کی ولام الجحود** وروستو د حتی لام کی او لام الجحود نه او لام جحود هغه لام جاره زائده دی چې راځي په خبر د کان منفیه کې لپاره د تاکید د نفي. مثال د حتی لکه (سرت حتی ادخلها) مثال د لام کی (سرت لادخلها) او مثال د لام الجحود نحو قوله تعالی (**وما کان الله لیعذبهم**) او د دې حتی او لام کی او لام الجحود نه وروستو ان مقدر کیږي او مضارع لره نصب ورکوي ځکه دا د حروف جاره ؤ نه دی او حروف جاره داخلیږي په اسم باندې اسم عام دی که حقیقة وي او که تاویلا وي او اسم تاویلي په هله شي چې ان مقدر شي او که ان مقدر نه شي او اسم تاویلي نه شي نو دخول د حرف جر راځي په **فعل** باندې او دا ممتنع دی **والفاء والواو** او ان مقدر کیږي وروستو د فاء عاطفه او واو عاطفه نه مثال د فا (ذرني فاکرمك) مثال د واو لکه (لاتاکل السمك وتشرب اللبن) ځکه دا واو او فاء عاطفه دي

واقع شوي دي وروستو د انشاء نه د دې نه وروستو په تقدير د ان سره مضارع لره نصب ورکوو لپاره د دې چې عطف د مفرد تاويلي راشي په مفرد مفهومي باندې او که ان مقدر نه شي نو عطف د جمله خبريه راخي په انشائيه باندې او دا نه دی جائز.

**سوال:** عطف د مفرد تاويلي په مفرد مفهومي باندې څنګه راخي؟

**جواب:** (ذرني فاكرمك) د دې معنی دا ده چې (ليکن زيارة منك فاكرام مني اياك) فاكرام مني عطف دی په زيارة نو عطف د مفرد په مفرد راغی او د (لا تاكل السمك وتشرب اللبن) معنی دا ده چې (لا يکن منك اكل السمك وشرب اللبن معه) نو عطف د شرب اللبن راغلی دی په اكل السمك نو عطف د مفرد په مفرد راغی د ان د وجې نه **واؤ** او ان مقدر کيږي وروستو د او نه هغه او چې بمعنی الايا بمعنی الی دی، مثال لکه (لالزمنك او تعطيني حقي) او په معنی د الی سره دی يا بمعنی الادی که بمعنی الی سره شي نو دا د حروف جاره ؤ نه دی داخليږي په اسم باندې، اسم عام دی که حقيقة وي او که تاويلا وي او د او نه وروستو چې ان مقدر شي نو دخول د حرف جر راغی په اسم تاويلي باندې او که مقدر نه شي نو دخول د حرف جر په فعل باندې راخي او دا نه دی جائز او که او په معنی د الا سره شي نو دا ما بعد د الا مستثنی دی او مستثنی منه يې مقدر دی، او په مستثنی کې لابدي ده د اسميت نه چې استثناء د اسم د اسم نه راشي، اسم عام دی چې حقيقة وي او که تاويلا وي د دې نه وروستو چې ان مقدر شي نو دا اسم شو استثناء د اسم د اسم نه راغله او که مقدر نه شي نو استثناء د فعل د اسم نه راخي او دا نه ده جائز.

**پس زده کړه** دا خبره چې ان چې مقدر شي وروستو د يو امر د دې امور ستة ؤ نه نو مضارع لره نصب ورکوي قياسا او اطرادا، او که د دې نه علاوه بل ځاى کې مقدر شوى وو نو هغه عمل د نصب په لفظ کې نه شي کولی قياسا او اطرادا كما في قول الشاعر:

تسمع بالمعيدى خير من ان تراه وستعرف قدره ان فتح فاه

دلته تسمع بالمعيدى مبتدا ده په تاويل د مصدر سره څکه په دې کې ان مقدر دی او دې ان تاثير په لفظ کې نه دی کړی څکه دا يو د مواضع ستة ؤ نه ندی او خير من ان تراه خبر دی د مبتدا لپاره.

او که ان مقدر شوی وو علاوه د دې مواضع ستة ؤ نه او عمل د نصب يې کړی وو نو دا به شاذ وي كما في قول الشاعر: الا ايهذا اللائمي احضر الوغى وان اشهد اللذات هل انت مخلدي

**فان:ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د عوامل ناصبه د مضارع نه اجمالا نو شروع يې وکړه په عوامل ناصبه د مضارع کې تفصيلا.

**ترجمه:فان:** س کلمه د ان ناصبه مصدريه ملفوظه چې داخله شوي وي په فعل مضارع باندې او عمل د نصب يې کړی وي لکه اريد ان تحسن الي او ان تصوموا خير لكم شو چې دلته ان داخل شوی دی په تحسن او عمل د نصب يې کړی دی بالفتحه او په تصوموا باندې داخل شوی دی او عمل د نصب يې کړی دی په حذف د نون سره نو تعدد د مثال بنا دی په تعدد د ممثل اول مثال د منصوب بالفتحه او

ثاني مثال د منصوب بحذف النون او د مصنف دا قاعده ده چې د ممثل نه مبتدا جوړ وي او د مثال نه خبر جوړ وي ځکه په دې مقام کې ان مراد اللفظ علم دی د هغه ان لپاره چې واقع کيږي په تراکيبو کې دا مبتدا ده او مثل الخ يې خبر دی ارید صيغه د واحد متكلم فعل مضارع معلوم ضمير پکې مستتر دی هغه ورله فاعل دی او تحسن الي جمله په تاويل د مصدر سره مفعول به د ارید لپاره ای ارید احسانك الى او مفعول به اسم راځي حقيقة وي او كه تاويلا وي او دلته اسم تاويلي دی. تصوموا فعل سره د فاعل نه جمله په تاويل د مصدر سره مبتدا او خير لکم يې خبر دی ای صيامکم خير لكم او مبتدا کې لابدي ده د اسميت نه اسم عام دی چې حقيقة وي او كه تاويلا وي دلته اسم تاويلي مبتدا واقع شوې ده.

**والتي تقع بعد العلم:** **ربط:** دا جمله مستانفه واقع شوې ده جواب د سوال، هر کله چې مصنف وويل (وينتصب بانَ) مضارع منصوب کيږي په دخول د ان سره نو معترض اعتراض وكړو چې ته وائې چې ان داخل شي په مضارع نو مضارع لره نصب وركوي دا قاعده ستا منقوضه شوه په، علم ان سيكون او ان لايرون او ان لايرجون، چې دلته انَ داخل شوی دی په مضارع او عمل د نصب يې نه دی کړی نو مصنف جواب وكړو چې **والتي** هغه كلمه د ان **تقع** چې واقع کيږي **بعد العلم** وروستو د هغه افعالو نه چې دلالت کوي په يقين باندې **هي المخففة من المثقلة** دا ان مخفف دی د مثقل نه **وليست هذه** او نه دی ان ناصبه مصدريه د وجې د منافات د ان ناصبه مصدريه نه د علم سره ځکه علم دلالت کوي په يقين باندې او ان مصدريه راځي لپاره د طمع او د رجاء او په مابين د دې کې منافات دی او ان مخفف من المثقل مناسب دی د علم سره ځکه علم هم دلالت کوي په يقين باندې او ان مخفف من المثقل هم دلالت کوي په يقين باندې مثال د ان مخفف من المثقل لکه **علمت ان سيقوم وان لا يقوم** په سيقوم او لا يقوم مضارع باندې ان داخل شوی دی او عمل د نصب يې نه دی کړی ځکه دا واقع دی وروستو د علم نه دارنګې په علم ان سيكون کې واقع دی وروستو د فعل قلب نه چې دلالت کوي په يقين باندې.

**سوال:** ته وائې چې (والتي تقع الخ) دا قاعده ستا منقوضه شوه په رايت ان سيقوم او وجدت ان سيقوم سره دا واقع دی وروستو د رايت او وجدت نه – نه وروستو د علمت نه او دا ان مخفف من المثقل دی او ته وايې چې وروستو د علم نه راشي نو ان مخفف من المثقل به وي **جواب:** دلته مراد د علم نه ماده د علم نه ده بلکه مراد هغه افعال قلوب دي چې دلالت کوي په يقين باندې.

**سوال:** علمت ان سيقوم وان لايقوم کې د ان او يقوم په مينځ کې دا فصل په سين او لا سره ولې راوستو علمت ان يقوم يې ولې ونه وئيلو سره د دې نه چې فرض منصبي د مصنف اختصار بما هو الاختصار دی؟ **جواب:** ان سيقوم او ان لايقوم يې ووئيلو او ان يقوم يې ونه وئيلو ځکه ان مخفف من المثقل چې پس د تخفيف نه داخل شي په فعل متصرف باندې نو لازم دی فصل په مينځ د فعل او ان کې په سين سوف حرف نفي يا لو سره لپاره د دې چې لازم نه شي التباس د ان مخفف من المثقل د ان ناصبه مصدريه سره نو کله چې فصل راغی نو موږ ته معلومه شوه چې دا ان مخفف من المثقل دی او ان ناصبه مصدريه نه دی.

**والتي تقع بعد الظن: ربط:** دا جمله مستانفه جواب د سوال دی خکه هر کله چې مصنف وویل چې (**والتي تقع بعد العلم هي المخففة**) نو معترض اعتراض وکړو چې دا ان چې کله واقع شي وروستو د هغه افعال قلوب نه چې هغه دلالت کوي په شك باندې نو دا کوم ان دی نو مصنف جواب وکړو چې **ففيها وجهان** دیکې دوه وجې روا دي: دا هم جائز دي چې دا ان مخفف من المثقل شي، او دا هم جائز دي چې دا ان ناصبه مصدریه شي که ان مخفف من المثقل شي نو ظننت ان سيقوم او ان لايقوم به وائي او که ان ناصبه مصدریه شي نو ظننت ان يقوم به وائي.

**سوال:** ان چې واقع شي وروستو د هغه افعال قلوب نه چې دلالت کوي په ظن باندې نو جواز د وجهين ولې دی؟ **جواب:** دغه افعال قلوب چې دلالت کوي په ظن دا ذو جهتين دی که دې ته ګورې چې دا افعال قلوب دلالت کوي په غلبه د وقوع په جانب راجح نو ان مخفف من المثقل ورسره مناسب دی خکه دا دلالت کوي په تحقيق باندې او که دېته ګورې چې دلالت نه کوي په تيتن باندې نو ان ناصبه مصدریه ورسره مناسب دی. **ولن مثل لن ابرح: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د مثال د ان ناصبه مصدریه نه نو شروع یې وکړه په بیان د لن ناصبه کې نو وې ویل (ولن الخ).

**ترجمه: ولن** مثال د لن چې داخل شوی دی په فعل مضارع او نصب یې ورکړی دی لکه لن شو په مثل د لن ابرح کې چې ابرح صيغه د مضارع ده او لن وربانديې داخل شوی دی او عمل د نصب يې کړی دی **ومعناها** او معنی د لن ناصبه **نفي المستقبل** نفي د مستقبل ده نه نفي د حال په طريقه د تاکید سره لکه دا مذهب د جمهورو دی، (۲) او معنی د دې نفي د مستقبل ده په طريقه د تابید سره لکه دا مذهب د معتزلو دی. (۳) یا معنی د دې نفي د مستقبل ده مطلقا برابره خبره ده چې په طريقه د تاکید سره وي او که په طريقه د تابید سره وي.

**تشريح:** په لن کې درې تحقيقه دي: یو په اعتبار د لفظ سره، دويم په اعتبار د معنی سره، دريم په اعتبار د عمل سره. تحقيق په اعتبار د لفظ سره دا دی چې لن اصل کې څنګه وو نو په دې کې مذاهب دي: (۱): فراء وائي چې لن اصل کې لا وو الف بدل شو په نون سره نو لن ترينه جوړ شو خکه دا دواړه شريك دي په لينيت کې لکه نون تاکید خفيفه بدليږي په الف سره په حالت د وقف کې نو دغسې دلته الف بدل شو په نون سره. (۲): خليل وائي: دا اصل کې لاان وو بيا همزه حذف کړی شوه تخفيفا د وجې د کثرت استعمال نه بيا التقاء ساکنين راغله بين الالف واللام اول مده وو حذف شو نو لن شو په شان د ايش په اي شئ کې (۳): سيبويه وائي: چې دا کلمه موضوعه براسها ده نه اصل کې لا وو او نه لاان وو خکه دا حرف دی او اصل په حرف کې عدم تصرف دی.

او تحقيق په اعتبار د معنی سره دا دی چې لن داخليږي په فعل مضارع باندې بالاتفاق او د مضارع مثبت نه مستقبل منفي جوړوي بيا په دې کې مذاهب ثلاثه دي: (۱) معتزله وائي چې د مضارع مثبت نه مستقبل منفي جوړوي په طريقه د تابيد سره نحو قوله تعالى لَن تَرَانِي دلته نفي د رؤيت د الله کړې ده په طريقه د تابيد سره خکه دوی انکار کوي د ديدار الهي نه هم دنيا کې او هم اخرت کې

(۲): او جمهور وائي چې نفي کوي په طريقه د تاکيد سره نه په طريقه د تابيد سره، دليل د دوی لپاره دا قول د الله تعالی دی: ﴿فَلَنْ أَبْرَحَ الْأَرْضَ حَتَّىٰ يَأْذَنَ لِي أَبِي﴾ دلته نفي په طريقه د تاکيد سره شوي ده نه په طريقه د تابيد سره او که نفي په طريقه د تابيد سره شي نو لازميږي تناقض د صدر د کلام د عجز سره ځکه دا لن تقاضه د عدم د انتهاء کوي او حتی تقاضا د انتهاء کوي او د دې په مابين کې منافات دی. او بعض وائي چې لن د مضارع مثبت نه مستقبل منفي جوړوي مطلقا او تاکيد او تابيد به معلوميږي د قرائن خارجيو نه.

او تحقيق په اعتبار د عمل سره دا دی چې دا لن يو حرف دی د حروف ناصبه ؤ نه داخليږي په فعل مضارع باندې نه په ماضي باندې. او په مضارع باندې چې داخل شي نو عمل د نصب کوي بلا قيد وشرط او دا نصب عام دی چې بالفتحه وي لکه (لن ابرح) او که منصوب په حذف د نون اعرابي سره وي نحو (لن يخرجوا). **واذن: ربط**: هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د مثال د لن ناصبه نه نو شروع يې وکړه په بيان د مثال او شرطونو د اذن ناصبه کې نو وې ويل وا ذن الخ

**ترجمه**: مثال د کلمه د اذن چې داخل شوی وي په فعل مضارع او عمل د نصب يې کړی وي لکه اذن تدخل الجنة شو په جواب د قول د هغه چا کې چې ووايي **اسلمت** او مضارع نصب قبلوي په دخول د اذن سره **اذا لم يعتمد** (۱) په دې شرط سره چې اعتماد نه وو راغلی **ما** د هغه مضارع **بعدها** چې وروستو د اذن نه راغلې ده **على ما** په هغه شي باندې **قبلها** چې مخکې د دې اذن نه راغلی دی يعنی دا ما بعد د اذن متمم او مکمل لپاره د ماقبل نوی او مابعد د اذن معمول د ماقبل نه وي بلکه مابعد د اذن خان له مستقل کلام وي بيا اذن عمل د نصب کوي و الافلا ځکه اذن ضعيف العمل دی په مابعد کې عمل کوي او په ماقبل کې عمل نه شي کولی او هر کله چې ما بعد د اذن مکمل لپاره د ماقبل شو نو دا حکما مخکې شو. لپاره د دې چې لازم نه شي توارد د عاملين چې هغه اذن او ما قبل د اذن دی په معمول واحد باندې چې مضارع ده ځکه دا باطل دی. (۲): **وکان الفعل مستقبلا** دويم شرط دا دی چې دا فعل به مستقبل وي ځکه اذن راځي د جواب لپاره يا د جزا لپاره او جواب او جزا نه متحقق کيږي مګر په استقبال کې

(۳): او دريم شرط دا دی چې فصل به نه وي راغلی په مابين د اذن او فعل مستقبل کې ما سوی د قسم نه په بل يو شي سره لکه دا مذهب د ابن مالك صاحب دی، يا ما سوی د لااو د ندا نه بل شي سره لکه دا مذهب د بعض دی. يا فصل به نه وي راغلی په ماسوا د ظرف او جار مجرور سره او دا شرط ماتن نه دی ذکر کړی ځکه دا معلوميږي د مثال نه او اکتفاء بالمثال يې کړې ده.

**تشريح**: په اذن کې دوه تحقيقه دي: يو په اعتبار د لفظ سره، دويم په اعتبار د عمل سره

تحقيق په اعتبار د لفظ سره دا دی چې اذن کې دوه مذهبه دي: (۱): جمهور وائي چې دا حرف دی.

(۲): او بعض وائي چې دا اسم دی اذن اکرمك، اصل کې اذا جئتني اکرمك وو بيا جمله شرطيه حذف شوه او عوض کې يې تنوين راغلی نو اذن جوړ شو او ان مقدر کړی شو وروستو د دې نه نو مضارع منصوب وګرځيده او څوك چې ورته حرف وائي. هغه بيا دوه ډلې دي:

(۱) بعض وائي دا بسيط دی يعنی مرکب د غير نه ندی.
(۲) او بعض وائي دا مرکب دی د اذ او ان نه، څوك چې ورته بسيط وائي هغه بيا دوه ډلې دي
(۱) بعض وائي چې دا په خپله ناصب د مضارع دی. (۲) او بعض وائي چې د دې نه وروستو ان مقدر دی او هغې عمل کړی دی والصحيح انها الناصبة.
د تحقيق په اعتبار د عمل سره دا دی چې په عوامل ناصبه د مضارع کښې ان کی او لن عمل د نصب کوي په مضارع کښې بلا قيد و شرط او عمل د اذن د نصب په مضارع کښې مشروط دی په شروط ثلاثه سره. **اول شرط:** دا فعل به مستقبل وي.
**دويم شرط:** دا اذن به د کلام په اول سر کښې وي يعنی ما بعد د اذن به متمم د ماقبل نه وي او د اتمام صورتونه دري دي: (۱) چې مابعد د اذن خبر وي او ماقبل مبتدا وي نحو (انا اذن احسن اليك).
(۲) چې ماقبل قسم وي او مابعد جواب د قسم وي نحو (والله اذن لاضربنك).
(۳) چې مابعد جزاء وي او ماقبل شرط وي نحو (ان تاتني اذن احسن اليك).
دريم شرط: فصل به نه وي راغلی په مابين د اذن او فعل کښې ما سوا د قسم نه، مثال د اذن چې عمل د نصب يې کړی وي او جامع د شروط ثلاثه وي لکه اذن تدخل الجنة شو په جواب د هغه چا کښې چې اسلمت ووايي، اذن دلته جامع د شروطو ثلاثه ؤ دی ځکه تدخل فعل مستقبل دی ځکه دخول الی الجنة په استقبال کښې راځي.
او په اول د کلام کښې دی يعنی متمم د ماقبل نه دی، نه خبر د مبتدا دی، نه جزاء د شرط، او نه جواب د قسم او فصل په اذن او مدخول د اذن کښې نه دی راغلی، او که فعل مستقبل نه وو بلکه بمعنی الحال وو بيا اذن عمل د نصب نه کوي بلکه مضارع به مرفوع وائي نحو (اذن اظنك صادقا في جواب من قال انا احبك) او که اذن په اول سر د کلام کښې نه وو راغلی بيا هم عمل نه کوي نحو (انا اذن احسن اليك والله اذن لاحسن اليك ان تاتني اذن احسن اليك) او که فصل راغلی وو په مابين د فعل او اذن کښې ماسوا د قسم نه بيا هم عمل نه کوي نحو (اذن هم يقومون بالواجب في جواب من قال يجود الاغنياء بالمال في سبيل العلم)، ابن مالك فصل په مابين د اذن او فعل کښې فقط په قسم سره مغتفر ګرځولی دی او بعض نحويانو فصل په لا او نداء سره هم مغتفر ګرځولی دی، او ابن عصفور فصل په ظرف او جار مجرور سره مغتفر ګرځولی دی، مجموعه شرطونه د اعمال د اذن او فواصل جائزه په مابين د اذن او په مدخول د اذن کښې راغلی دی په دې قول د شاعر کښې:

اعمل اذن اذا اتتك اولا ... وسقت فعلا بعدها مستقبلا
واحذر اذا اعملتها ان تفصلا ... الا بحلف او نداء او بلا
وافصل بظرف او بمجرور على ... رای ابن عصفور رئيس النبلا

**سوال:** اذن مبتدا ده او مثل اذن الخ مضاف مضاف اليه ورله خبر دی نو اذا لم يعتمد الخ په ترکيب کښې څه واقع شوی دی؟ **جواب:** اذا ظرف دی متعلق دی په فعل معنوي پورې چې هغه مستفاد دی د

اذن نه اي ينتصب المضارع اذا لم يعتمد بيا فعل سره د فاعل ـ سره د متعلق نه جمله فعليه معترضه واقع شوې ده بين المبتدا والخبر

**سوال:** جمله معترضه ذكر كولى شي په مابين د شيئين متلازمين كې د يو غرض لپاره نو دلته جمله معترضه ذكر ده بين المبتدا والخبر نو دا د څه لپاره ذكر كړې ده غرض يې څه دى؟

**جواب:** جمله معترضه يې ذكر كړې ده بين المبتدا والخبر لپاره د بيانولو د شروطو د عمل د اذن په شان سره اذن چې عمل د نصب كوى په مضارع كې دا مشروط دى په شروط ثلاثه ؤ سره كما مر.

**سوال:** دوه شرطونه دې ماتن بيان كړي دي نو دا دريم شرط يې ولې نه دى ذكر كړى؟

**جواب:** دريم شرط يې نه دى ذكر كړى ځكه دا معلوميږي د مثال نه نو اكتفاء بالمثال يې كړې ده.

**سوال:** ان او لن سره يې د مبتدا او خبر مينځ كې جمله معترضه نه ده ذكر كړې نو د اذن مبتدا او د خبر په مينځ كې يې ذكر كړه دا ولې؟ **جواب:** ان او لن سره د مبتدا او خبر مينځ كې جمله معترضه نه ده ذكر ځكه چې هغه عمل كوي په مضارع كې بلا قيد و شرط په خلاف د اذن نه چې عمل د دې مشروط دى په شروط ثلاثه ؤ سره نو دلته يې جمله معترضه ذكر كړه لپاره د بيان د شرطو

**واذا وقعت بعد الواو والفاء: ربط:** دا هم جمله مستانفه ده واقع شوې ده جواب د سوال ځكه هر كله چې مصنف ووېل چې اذن داخل شي په مستقبل او واقع شي په سر د كلام كې نو مضارع لره نصب وركوي نو معترض اعتراض وكړو چې دا خبره ستا منقوضه ده په دې قول د الله سره چې وَإِذًا لَا يَلْبَثُونَ خِلَافَكَ دلته اذن داخل شوى دى په مضارع او په سر د كلام كې راغلى دى او عمل د نصب يې نه دى كړى نو مصنف جواب وكړو چې واذا وقعت كله چې واقع شي اذن وروستو د واو عاطفه او د فاء عاطفه نه **فالوجهان** نو دوه وجې جائز دي: (١): نصب چې دا مضارع منصوب ووايې د وجې د ضعف اعتماد نه په حرف عطف باندې د وجې د استقلال د معطوف نه ځكه دا جمله ده.

(٢): او رفع جائز ده د وجې د اعتماد نه په عطف اګر چې ضعيف دى مثال د واو نحو قوله تعالى وَإِذًا لَا يَلْبَثُونَ خِلَافَكَ دلته واذن لا يلبثوا هم جائز دى او مثال د فاء نحو قوله تعالى أَمْ لَهُمْ نَصِيبٌ مِّنَ الْمُلْكِ فَإِذًا لَّا يُؤْتُونَ النَّاسَ نَقِيرًا. د دې ځاى نه معلومه شوه چې عمل د نصب وجوبا مشروط دى په شروط اربعه ؤ سره: (١): مابعد به معتمد نه وي په ماقبل باندې (٢): مدخول د اسم به فعل مستقبل وي (٣): فصل به نه وي راغلى بين اذن و مدخوله. (۴): اذن به وروسته د واو يا فا عاطفه نه نوي راغلى كه راغلى وو بيا عمل د نصب وجوبا نه كوي بلكه جوازا كوي كما مر (فافهم).

**وكى: ربط:** هر كله چې فارغ شو مصنف د بيان د مثال او د شرطونو د اذن نه نو شروع يې وكړه په مثال د كى كې نو وې ويل وكى الخ

**ترجمه:** مثال د كى چې هغه داخليږي په مضارع باندې او مضارع لره نصب وركوي لكه اسلمت كى ادخل الجنة شو په دې مثال كې ادخل صيغه د مضارع راغلي ده او دا منصوبه ده د وجې د دخول د

کې ناصبه نه **ومعناها** او معنیٰ د کی ناصبه **السببية** سببیت دی په دې شان سره چې دا کی ګرځوي ماقبل سبب لپاره د مابعد لکه سببیت د اسلام شو د دخول الی الجنة لپاره په مثال مذکور کې.

**سوال:** اسلام خو سبب نه دی د دخول الی الجنة لپاره بلکه سبب لپاره د دخول الجنة رضا الهي ده نو نو څنګه وایې چې اسلام سبب دی د دخول الی الجنة لپاره؟ **جواب:** سبب دوه قسمه دی یو سبب حقیقي دی او بل سبب مجازي ادعائي او عرفي دی نو سبب حقیقي د دخول الی الجنة لپاره رضا الهي ده او اسلام د دخول الی الجنة لپاره سبب مجازي سبب عرفي او سبب ادعائي دی. او په کی کې خلاف دی (۱) کوفیان وائي چې دا بالذات عامل ناصب دی فعل مضارع لره او د دې نه وروستو ان نه دی مقدر دلیل په دې خبره باندې چې کی ناصب دی بنفسه او جاره نه دی دخول د لام دی په کی باندې په دې قول د الله تعالی کې لِكَيْ لَا يَكُونَ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ حَرَجٌ څکه چې یو حرف جر په بل حرف جر باندې نه داخلیږي (۲) او بصریان وائي چې دا کی جاره دی او د دې نه وروستو مضارع منصوبه ده په تقدیر د ان سره، دلیل د بصریانو لپاره دخول د کی دی په ما استفهامیه باندې مثال لکه کیم شو څکه کة دا کی ناصب د مضارع وی نو په اسم به نه داخلیدی او دا خو په اسم داخلیږي نو معلومه شوه چې جاره دی او په مضارع چې داخل شي نو دا منصوبه ده په تقدیر د ان سره وروستو د دې نه لپاره د دې چې دخول د کی جاره راشي په اسم تاویلي باندې او مختار عند المصنف مذهب د کوفیانو دی، څکه دهٔ ګرځولی دی کی د عوامل ناصبه د فعل مضارع نه او جواب د دلیل د بصریانو نه دا دی چې کی دوه قسمه دی یو کی ناصبه دی او بل کی جاره دی، کی ناصبه داخلیږي په مضارع او مضارع لره نصب ورکوي او کی جاره داخلیږي په اسم استفهام او هغې لره جر ورکوي او دلته مراد د کی نه کی ناصبه د مضارع دی نو دې سره یې احتراز وکړو د کی جاره نه.

**تنبیه:** اسلمت کی ادخل الجنة کې ادخل الجنة ویل پکار دي په صیغې د مجهول د باب افعال سره یعنې اسلام مې راوړو دې لپاره چې زه داخل کړی شم جنت ته او صیغه د واحد متکلم مضارع معلوم د ثلاثي مجردو سره ویل نه دي پکار څکه دخول الی الجنة د چا اختیار کې نشته.

**وحتى اذا كان مستقبلا (ربط)** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د عوامل ناصبه د فعل مضارع نه پس شروع یې وکړه په بیان د تفصیل د هغه مواضع کې چې ان مقدر کیږي په هغې کې (عند البصريين اما عند الكوفيين دا حتی ناصب دی پخپله)، او مضارع لره نصب ورکوي قیاسا او اطرادا

**(ترکیب) حتی** مبتدا مُثل اسلمت الخ مضاف مضاف الیه خبر د مبتدا **اذا** ظرف متعلق دی په فعل معنوي پورې چې هغه مستفاد دی د دې حتی نه چې هغه ینصب دی فعل مضارع سره د فاعل او د متعلق نه جمله خبریه فعلیه معترضه واقع شوې ده بین المبتدا والخبر لپاره د یو غرض چې هغه بیان د شروطو دی لپاره د تقدیر د ان وروستو د حتی نه.

**(ترجمه) وحتى** او کلمه د حتی چې نصب قبلوي فعل مضارع د حتی نه وروستو په تقدیر د ان سره **اذا كان مستقبلا** که چرې وو فعل مضارع چې واقع شوی وي وروستو د حتی نه مستقبل **بالنظر الى ما**

**قبلها** په نظر سره هغه شي ته چې هغه مخکې د حتی نه ذکر شوی دی، لپاره د جصول د معنی د ان او په نظر سره زماني د تکلم ته مستقبل وي او که نه وي، (۲) **بمعنی کی** په حال کون د دې حتی کې چې دا به په معنی د کی سره وي چې هغه راځي دپاره د سببيت د اول لپاره د مابعد (او الی) يا په معنی د الی سره وي هغه الی چې د انتهاء د غايه لپاره راځي لپاره د تاکيد او تحقق د معنی د ان او يا به په معنی د الاسره وي او دا مصنف نه دی ذکر کړی د وجې د قلت نه او که مدخول د حتی مضارع په نظر سره ماقبل ته مستقبل نه وو بلکه حال وو نو بيا مضارع منصوب په تقدير د ان سره نه ده جائز بلکه مضارع به مرفوع راځي او حتی به حتی ابتدائيه وي او که حتی په معنی د کی يا الی يا الاسره نه وو بيا د حتی نه بعد ان نه مقدر کيږي مثال د حتی چې په معنی د کی سره وي فقط او مابعد مستقبل وي حقيقة لکه **اسلمت حتی ادخل الجنة** شو په دې مثال کې ادخل فعل مضارع ده منصوب په تقدير د ان سره وروستو د حتی نه ځکه حتی بمعنی کی دی او مدخول د حتی ادخل فعل مستقبل دی حقيقة ځکه دخول الی الجنة په زمانه استقبال کې راځي نه في الحال او دا حتی په معنی د الی سره نه دی ځکه اسلام د متکلم منتهي نه دی د دخول الی الجنة پورې بلکه لکه څنګه چې دی مخکې د دخول الی الجنة نه مسلمان وو نو وروستو به هم مسلمان وي

او مثال د حتی چې هغه په معنی د کی سره هم دی او په معنی د الی سره هم دی او مدخول د حتی مضارع مستقبل ده په نظر سره ماقبل ته نه په نظر سره زماني د تکلم ته لکه **وکنت سرت حتی ادخل البلد** په دې مثال کې ادخل مضارع منصوب ده په تقدير د ان سره وروستو د حتی نه او د حتی مدخول فعل مضارع مستقبل دی په نظر سره ماقبل ته او په نظر سره زماني د تکلم ته دا احتمال لري چې ماضي ده او دا احتمال هم لري چې حال دی او دا احتمال هم لري چې مستقبل دی او حتی محتمل د احتمالين دی يا بمعنی کی دی يا په معنی د ابتهاء الغاية دی او مثال د حتی چې په معنی د الی سره دی فقط او مابعد د حتی مستقبل دی حقيقة لکه واسير حتی تغيب الشمس شو په دې مثال کې تغيب مضارع منصوب ده په تقدير د ان سره وروستو د حتی نه او مدخول د حتی مستقبل دی حقيقة او حتی په معنی د الی سره دی فقط نه په معنی د کی سره ځکه د اسير د متکلم سبب نه دی لپاره د غيبوبيت د شمس بلکه نمر غائب کيږي په خپل وقت باندې که متکلم سير کوي او که نه يې کوي، او مثال د حتی چې بمعنی الاوي او ان مقدر وي وروستو د هغې نه کقول الشاعر

ليس العطاء من الفضول سماحة    حتی تجود وما لديك قليل

**فان اردت الحال** (ربط) هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د هغه حتی نه چې د هغې نه وروستو ان مقدر کيږي او مضارع لره نصب ورکوي پس شروع يې وکړه په بيان د هغه حتی کې چې وروستو د هغې نه ان مقدر نه وي او مضارع منصوب نه وي وروستو د هغه حتی نه بلکه مرفوع وي

(۲) هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د حتی جاره نه چې د هغې نه وروستو ان مقدر کيږي نو شروع يې وکړه په بيان د حتی ابتدائيه کې چې د هغې نه وروستو ان نه مقدر کيږي

(ترجمه) **فان اردت** که چرته تا اراده وکړه هغه فعل سره چې په هغې باندې داخل شوی دی حتی **الحال** زمانه حالي **تحقيقا** حقيقة په دې شان سره چې دا زمانه حالي بعينه زمانه د تکلم ده **او حکاية** یا په طریقه د حکایت سره په دې شان سره چې مدخول د حتی ماضي ده په وقت د تکلم کې لیکن اراده کړې شوې دی حکایت د هغې د حال د ماضي نه په وقت د تکلم کې **کانت حرف ابتداء** کیږي دا حتی حرف ابتدا نه حرف جر په دې شان سره چې مدخول د دې ځان له مستقل کلام دی او متمم او مکمل لپاره د ماقبل نه دی **فترفع** نو مرفوع کولی شي دا مضارع چې واقع ده وروستو د حتی نه د وجې د عدم وجود د ناصب او جازم نه. او ان ناصبه مصدريه نه دی مقدر وروستو د حتی نه ځکه هغه راځي د استقبال لپاره او دلته مدخول د حتی په معنی د حال سره دی نو ان ناصبه مصدريه منافي دی د زمانه حالي سره **وتجب السببية** او واجب دی سببيت د ماقبل لپاره د مابعد لپاره د حصول د اتصال معنوي اګر که فوت شوی دی اتصال لفظي والا دا کیږي په شان د وضع د حجر په جنب د شجر کې مثال د حتی چې مدخول د هغې فعل مضارع دی په معنی د حال سره حقيقة او مضارع مرفوع راغلي ده لکه **مرض حتی لا يرجونه** شو دلته لايرجون مضارع مرفوع ده په ثبوت د نون سره واقع شوې ده وروستو د حتی نه ځکه مضارع په معنی د حال سره ده حقيقة او حتی = حتی ابتدائيه او حتی استنافيه دی. دا مابعد ځان له مستقل کلام دی او ماقبل ځان له مستقل کلام دی لیکن مضمون د جمله اولی سبب دی لپاره د مضمون د جمله ثاني مثال د حتی چې د هغې نه وروستو مضارع راغلي وي په معنی د حال سره حکاية او دا مضارع مرفوع وي لکه سرت اليوم حتی ادخل البلد امس. دلته مضارع مرفوع ده او حتی ابتدائيه دی او مضارع بمعنی الحال ده حکاية نه حقيقة ځکه تا سير کړی دی پرون او داخل شوی يې کلي ته پرون لیکن قصد د اخبار دی کړی دی نن ورځ د حال د ماضي نه نو دا حتی ابتدائيه شو او مابعد ځان له مستقل کلام دی.

پس زده کړه دا خبره چې حتی درې قسمه ده: جاره، عاطفه، ابتدائيه فرق دی په مابین د دې اقسام ثلاثه ؤ کې لفظا او معنی فرق لفظي خو ظاهر دی چې د حتی جاره مدخول مجرور راځي که چرې مفرد وو او مدخول د دې منصوب راځي په تقدير د ان سره که چرې مضارع وو بمعنی الاستقبال او د حتی عاطفه مدخول په اعتبار د اعراب د معطوف عليه سره دی او د حتی ابتدائيه مدخول راځي جمله مستانفه، او فرق معنوي دا دی چې مدخول د حتی جاره درې قسمه راځي (۱) جز قويه د ماقبل (۲) جز ضعيفه د ماقبل (۳) جز ملاصق او مجاور د ماقبل او مدخول د حتی عاطفه دوه قسمه راځي جز قويه جز ضعيفه او جز ملاصق او مجاور نه راځي.

او مدخول د حتی ابتدائيه فعل ماضي راځي نحو قوله تعالی حَتّٰى عَادَ كَالْعُرْجُوْنِ الْقَدِيْمِ او فعل مضارع مرفوع راځي بمعنی الحال، یا مدخول د دې اسم مرفوع راځي او خبر به د هغې لپاره محذوف او مقدر راوباسي، مثال د دې درې واړه اقسامو د حتی لکه (اکلت السمكة حتی راسها) په دې مثال کې حتی محتمل د احتمالات ثلاثه ؤ دی (۱) دا احتمال هم شته چې حتی جاره دی بيا رأسها مجرور

دی (۲): یا حتی عاطفه دی نو رأسها منصوب دی ځکه عطف دی په السمکة او معطوف په اعراب د معطوف علیه سره وي (۳): دا احتمال هم شته چې دا حتی ابتدائیه دی نو راسها به مرفوع وائي بنا بر ابتدائیت او خبر به ورله محذوف رااوباسي، ای حتی رأسها ماکول ځکه د حتی ابتدائیه مدخول ځان له مستقل کلام وي متم او مکمل نه وي لپاره د ماقبل او دا به مستقل کلام هله جوړیږي چې راسها مبتدا محذوف الخبر شي والافلا، او فرق او امتیاز په مابین د دې اقسام ثلاثه ؤ کې متعسر دی په دې شرط سره چې د دې اقسام ثلاثه ؤ علامات ونه پیژندی شي او که علامات وپیژندی شي بیا متعسر نه دی د دې وجې نه فراء ویلي دي (اموت وفي قلبي من حتی لانها ترفع وتنصب وتجر)

**ومن ثم امتنع الرفع الخ (ربط)** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د حتی ابتدائیه نه نو شروع یې وکړه په بیان د تفریح د مسائلو کې په حتی ابتدائیه باندې

(**ترجمه**) **ومن ثم** او د وجې د استئناف د مابعد د حتی ابتدائیه نه **امتنع الرفع** ممتنع دی رفع لوستل د مضارع په مابعد د حتی کې **فی کان سیری حتی ادخلها** په دې مقوله ستا کې چې (کان سیری حتی ادخلها) دی **فی الناقصة** په وقت د حصول د کان ناقصه کې ځکه لازمیږي وجود د کان ناقصه بلا خبر ځکه هر کله چې حتی ابتدائیه شو نو منقطع شو مابعد د ماقبل نه ځکه ما بعد ځان له مستقل کلام دی او د ماقبل لپاره په ترکیب کې څه نه دی واقع شوی نو دا کان ناقصه پاتې شو بلا خبر او دا محال دی او د وجې د سببیت د ماقبل نه لپاره د مابعد ممتنع دی، رفع لوستل په مضارع کې وروسته د حتی نه په دې مقوله ستا کې چې **اسرت حتی تدخلها** دی ځکه لازمیږي حکم په سبب باندې سره د شك نه په سبب باندې او دا باطل دی ځکه دا قاعده ده چې سبب او مسبب د جنس واحد نه وي په اعتبار د شك او یقین سره په دې شان سره که سبب شکي وو نو مسبب هم شکي وي او که سبب یقیني وي نو مسبب به هم یقیني وي او دلته سبب شکي دی چې دا فعل دی ځکه همزه داخله شوې ده په دې فعل باندې او حتی چې ابتدائیه شي نو مابعد ځان له مستقل کلام دی او یقیني ده وقوع د هغې نو لازم شو حکم په وقوع د مسبب سره د شك نه په وقوع د سبب کې او دا محال دی ځکه دا ترکیب ممتنع دی **وجاز** او جائز دی رفع لوستل په مضارع کې وروستو د حتی نه **فی التامة** په وقت د تحقق د کان تامه کې لکه **کان سیری حتی ادخلها** ځکه دا کان تامه دی او د حتی نه مابعد ځان له مستقل کلام دی نو وجود د کان ناقصه بلا خبر نه لازمیږي او دارنګې جائز دی رفع لوستل په مضارع کې وروستو د حتی نه په **ایهم سار حتی ادخلها** کې ځکه لازمیږي حکم په وقوع د مسبب سره د شك نه په وقوع د سبب باندې ځکه مشکوك فیه دلته فاعل دی نه فعل بلکه فعل په دې مقام کې محقق دی.

**سوال:** دا به مونږ د څه نه معلوموو چې د متکلم شك په فعل کې دی که په فاعل کې دی که په مفعول به کې دی؟ **جواب:** کوم شی چې مسئول عنه د متکلم وي هغه مشکوك فیه وي او مسئول عنه د همزه ما یلي د همزه دی که د متکلم شك په فعل کې وو نو همزه به داخلوي په فعل باندې نو (اضربت زیدا) به وایې او که د متکلم شك په فاعل کې وو نو همزه به په فاعل باندې داخلوي او (اانت ضربت زیدا)

په وائي او که شك د متكلم په مفعول به كې وو نو همزه به په مفعول به باندې داخلوې نحو (ازيد ضربت) اسرت حتى تدخلها كې رفع لوستل د مضارع پس د حتى نه ممتنع وو ځکه شك د متكلم په فعل كې دى ځكه ما يلي د همزه دى او ايهم سار حتى يدخلها كې رفع لوستل جائز دي په مضارع كې وروستو د حتى نه ځكه مسئول عنه فاعل دى او (ايهم سار حتى يدخلها) عطف دى په تقدير د جاز سره په جاز في التامة باندې نه په كان سيرى حتى ادخلها باندې ځکه که ايهم سار حتى يدخلها عطف شي په (كان سيرى حتى ادخلها) باندې بيا تقييد د دې راځي په تامه سره ځکه دا قاعده ده چې ماقبل د معطوف عليه نه واجب الاعاده وي په معطوف كې او (ايهم سار حتى يدخلها) چې عطف شي په (كان سيرى حتى ادخلها) باندې نو ماقبل جاز في التامة دى هغه به معاد كوې نو تقدير به دا شي وجاز في التامة ايهم سار حتى يدخلها او دا معنى باطله ده ځكه دلته كان تامه نشته دى.

**ولام كى (ربط)** هر كله چې فارغ شو مصنف د بيان د مثال د تقدير د ان بعد حتى نه پس شروع يې وكړه په بيان د مثال د تقدير د ان كې وروستو د لام كى نه.

**(ترجمه) ولام كى** منصوب كيږي مضارع وروستو د لام كى نه په تقدير د ان سره د بصريانو په نزد باندې او كوفيان وائي دا مضارع منصوب ده په لام كى سره ځكه دا قائم مقام د كى دى، مثال لكه اسلمت لادخل الجنة په دې مثال كې ادخل مضارع منصوب ده ځکه دا لام لام كى دى او لام كى هغه لام ته وائي چې راځي بمعنى كى چې هغه سببيت د اول دى لپاره د ثاني لكه سببيت د اسلام شو لپاره د دخول الى الجنة په دې مثال كې.

**سوال:** د لام كى نه وروستو ان ولې مقدر كيږي؟ **جواب:** لام كى د حروف جاره وو نه دى دخول د دې خاص دى په اسم پورې اسم عام دى چې صراحتا وي او كه تاويلا وي دلته ان مقدر كيږي د دې لپاره چې دخول د حرف جر راشي په اسم تاويلي باندې **ولام الجحود** او مضارع منصوب كيږي په تقدير د ان سره وروستو د لام الجحود نه عند البصريين او كوفيانو په نيز باندې دا ناصب دى پخپله او تقديم د معمول د فعل په دې باندې جائز دى خلافاً للبصريين او لام الجحود عند النحاة هغه لام جاره زائده ته وائي چې راځي زائده د تاكيد د نفي لپاره وروستو د كان منفيه نه او دا كان منفيه عام دى چې لفظا وي نحو ما كان الله ليعذبهم يا تقديرا وي (نحو لم يكن ليفعل) **او لام جحود** ته لام جحود ځكه وائي چې جحود انكار ته وائي او دغه لام هم مستعمليږي په مقام د انكار كې.

**سوال:** [ ما كان الله ليعذبهم ] څه تركيب دى؟ **جواب:** (ما) نافيه (كان) فعل از افعال ناقصه (الله) اسم د كان (لام) الجحود (يعذب) مضارع منصوب بتقدير ان بعد اللام الجحود لام جاره دى او لام جاره داخليږي په اسم باندې اسم عام دى چې حقيقتا وي او كه تاويلا وي او د دې نه وروستو چې ان مقدر شو نو د مضارع نه اسم تاويلي جوړ شو نو دخول د حرف الجر راغلو په اسم تاويلي باندې والا دخول د حرف جر په فعل راځي او دا نه دي جائز (يعذب) كې ضمير مستتر راجع دى (الله) ته فاعل.

(هم) مفعول به فعل سره د فاعل او مفعول به نه جمله په تاویل د مصدر سره خبر د کان ایکرو
التقدیر و ما کان الله تعذیبهم.
**سوال:** دا خو حمل د صرف وصف راغی په ذات باندې؟ **جواب:** (۱): دا محمول دی په اعتبار د حذف د مضاف سره په جانب د اسم کې (ای ما کان صفة الله تعذیبهم) (۲): بحذف المضاف في جانب الخبر ای (ما کان الله ذا تعذیبهم) (۳): مصدر مبني للفاعل دی ای (ما کان الله معذبهم)
(۴): فرق دی په مابین د شیٔ او مؤول بالشیٔ کې
**سوال:** د لام کی او لام الجحود په مینځ کې څه فرق دی؟ **جواب:** دې کې څلور فرقونه دي
(۱): لام کی دلالت کوي په تعلیل باندې بخلاف لام الجحود (۲): په حذف د لام کی سره لازمیږي فساد د معنی بخلاف لام الجحود چې د دې وجود او حذف دواړه یو شان دي ځکه دا زائد دی
(۳): تقدیر د ان واجب دی وروستو د لام کی نه بخلاف لام الجحود
(۴): لام الجحود وروستو د کان منفیه نه راځي بخلاف لام کی
**والفاء (ربط)** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د لام الجحود نه چې وروستو د هغې نه ان مقدر کیږي او مضارع لره نصب ورکوي نو شروع یې وکړه په بیان د فاء کې تفصیلا چې وروستو د هغې نه ان مقدر کیږي او مضارع لره نصب ورکوي دا د بصریانو مذهب دی کوفیان وائي د دېنه وروسته مضارع منصوب علی الخلاف دی ځکه جواب د دې مخالف دی د ماقبل نه
ابو عمر الجرمي وائي چې دا مضارع منصوب دی بالفاء ځکه دا خارج شوی دی د باب د عطف نه یعنی عاطفه نه دی بلکه دا فا ناصبه د فعل مضارع دی دا مذهب کمزوری دی ځکه که دا عطف لپاره نه وي په دې باندې به حرف عطف داخلیده لکه واو القسم باب د عطف نه خارج شوی دی په هغې باندې حرف عطف داخلیږي.
(**ترجمه**) **والفاء** هغه فاء چې مضارع نصب قبلوي په تقدیر د ان سره وروستو د هغې نه او دا تقدیر د ان وروستو د فاء نه لپاره د انتصاب د مضارع مشروط **بشرطین** دی که دا دوه شرطونه موجود وو معانو ان مقدر کیږي وروستو د فاء نه او مضارع لره نصب ورکوي و الافلا **احدهما** یو د دې شرطین نه **السببية** سببیت د ماقبل د فاء دی لپاره د مابعد. لپاره د دې چې دا تغیر لفظي موافق شي د تغیر معنوي سره او دا تغیر لفظي دال شي په تغیر معنوي باندې ځکه رفع اصل ده چې دا دلالت کوي په استقلال باندې او نصب خلاف الاصل دی ځکه دلالت کوي په عدم استقلال باندې نو کله چې متکلم عدول وکړو د اصل نه خلاف الاصل ته دا دلالت کوي په تغیر معنوي باندې چې سببیت د اول دی لپاره د ثاني ځکه که دا سببیت د اول لپاره د ثاني مقصود د متکلم نه وی نو عدول به یې نه وی کړی د اصل نه خلاف الاصل ته **والثاني** او شرط ثاني **ان یکون قبلها** کیدل دی مخکې د فاء نه یو امر د امور سته ؤ نه لپاره د بعد د معنی عطفي او لپاره د دفع د توهم د عطف په ذهن د مخاطب کې **امر** (۱) دا فاء عاطفه به راغلی وي وروستو د امر نه نحو زرني فاکرمك ای لیکن منك زیارة فاکرام مني عطف

د مفرد تاویلي راغی په مفرد مفهومي باندې نه عطف د جمله خبریه په انشائیه باندې **او نهي** (۲) یا په واقع وي وروستو د نهي نه (نحو لاتشتمني فاضربك ای لایکن منك شتم فضرب مني). **او استفهام** (۳) یا واقع وي وروستو د استفهام نه نحو (هل عندکم ماء فاشربه ای هل یکون منکم ماء فشرب مني) **او نفي** (۴) یا واقع وي وروستو د نفي نه نحو ما تأتينا فتحدثنا ای لیس منك اتیان فتحدیث مني (**او تمنی** (۵) یا واقع وي وروستو د تمني نه نحو (لیت لي مالا فانفقه ای لیت لي ثبوت مال فانفاق مني) **او عرض** (۲) یا وروستو د عرض نه نحو (الاتنزل بنا فتصیب خیرا ای لایکون منك نزول فاصابة خیر مني) په دې مواضع سته ؤ کې په فاء کې معنی د سببیت مقصود ده چې سببیت د ماقبل دی لپاره د مابعد او دا ما بعد صیغه د مضارع په تاویل د مصدر سره عطف ده په مصدر اخر باندې چې مفهومیږي د ماقبل نه

**سوال:** فاء عاطفه چې واقع شي وروستو د یو امر د امور سته ؤ نه او د دې نه بعد ان مقدر شي نو ان او د مضارع نه مفرد جوړ وي نو دا خو عطف د مفرد راغی په جمله باندې او دا نه دی جائز

**جواب:** فاء عاطفه چې واقع شي وروستو د یو امر د امور سته ؤ نه نو مضارع منصوب راځي بتقدیر ان نو ان د مضارع نه مصدر جوړ وي نو دغه مصدر مفرد په دې مخکې جمله باندې نه دی عطف بلکه عطف د مفرد تاویلي کوو په مفرد مفهومي باندې

**سوال:** ته وایې چې فا واقع شي وروستو د یو امر د امور سته ؤ نه نو وروستو د دې نه ان مقدر کیږي او مضارع لره نصب ورکوي، دا خبره ستا منقوضه شوه په اللهم اغفر لي فافوز ولا تواخذني فاهلك سره دلته د فا نه وروستو ان مقدر دی مضارع لره یې نصب ورکړی دی او دا فاء واقع نه ده وروستو د یو د امور سته ؤ نه ځکه اغفر او لاتواخذ د عاده نه امر او نهي دارنګې دا قاعده ستا منقوضه شوه په ﴿لَوْلَآ أُنزِلَ إِلَيْهِ مَلَكٌ فَيَكُونَ مَعَهُۥ نَذِيرًا﴾ دلته فا نه ده واقع وروستو د یو امر د امور سته ؤ نه بلکه پس د لولا تحضیضیه نه ده او وروستو د دې نه ان مقدر دی عمل د نصب یې کړی دی دارنګې دا قاعده ستا منقوضه شوه په دې قول د الله جل جلاله سره لَّعَلِّيٓ أَبۡلُغُ ٱلۡأَسۡبَٰبَ ﴿٣٦﴾ أَسۡبَٰبَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ دلته مضارع منصوب ده په تقدیر د ان سره وروستو د فاء نه او دا واقع ده وروستو د لعل نه نه د یو د امور سته ؤ نه، دارنګې دا قاعده ستا منقوضه شوه په (لو تاتیني فتحدثنا) سره دلته ان مقدر دی بعد الفاء او فا نه ده واقع وروستو د یو امر د امور سته ؤ نه **جواب:** هر چې دی (اللهم اغفر لي فافوز) داخل دی په امر کې او لا تواخذني فاهلك داخل دی په نهي کې ځکه اګر چې حقیقت کې دا امر او نهي نه دی خو صورت یې صورت د امر او نهي دی او لو لا تحضیضیه داخل دی په نفي کې او لَّعَلِّيٓ أَبۡلُغُ ٱلۡأَسۡبَٰبَ او لو تاتیني فتحدثني داخل دی په تمني کې ځکه لعل او لو دلته د تمني لپاره دی نه د ترجي او شرط لپاره

**سوال:** ته وائې د فا نه وروستو ان مقدر کیږي او مضارع لره نصب ورکوي په دې شرط سره چې واقع شي وروستو د یو امر د امور ستو نه دا قاعده منقوضه شوه بقول الشاعر:

ساترك منزلي ببنی تمیم والحق بالحجاز فاستریحا

دلته وروستو د فا نه ان مقدر دی نصب یې ورکړی دی فعل مضارع لره او دا فاء نه ده واقع شوې وروستو د یو امر د امور سته ؤ نه

جواب: هذا محمول علی ضرورة الشعر ویجوز في الشعر ما لایجوز في غیره

**والواو (ربط)** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د فاء نه تفصیلا نو شروع یې وکړه په بیان د واو کې تفصیلا چې د هغې نه وروستو ان مقدر کیږي او مضارع لره نصب ورکوي

(**ترجمه**) **والواو** او ان مقدر کیږي وروستو د واو نه او مضارع لره نصب ورکوي **بشرطین** او دا تقدیر د ان وروستو د واو نه لپاره د انتصاب د مضارع مشروط دی په شرطین سره **الجمعیة وان یکون قبلها مثل ذلك** الجمعیة خبر د مبتدا دی ای الاول، او ان یکون الخ هم خبر د مبتدا دی چې الثاني دی، یعنې یو د هغه شرطین نه **الجمعیة** جمعیت دی یعنی دا واو به بمعنی مع وي چې هغه مصاحبت د مابعد دی د ماقبل سره، سره د اتحاد د زمان او د مکان نه. او دویم شرط دا دی **ان یکون** چې وي به **قبلها** مخکې د دې واو بمعنی مع نه **مثل ذلك** په شان د یو امر د امور سته ؤ مذکورو باندې یعنی دا واو بمعنی مع چې واقع شوی وي وروستو د یو امر د امور سته ؤ نه نو ان مقدر کیږي مضارع لره نصب ورکوي و الا فلا لپاره د دې چې لازم نه شي عطف د جمله خبریه په جمله انشائیه باندې بلکه عطف د مفرد تاویلي به راشي په مفرد مفهومي باندې او مثالونه د واو بمعنی مع چې واقع وي وروستو د یو امر د امور مذکورونه او مضارع لره یې نصب ورکړی وي بعینه مثالونه د فاء دي صرف دومره فرق دی چې د فاء په ځای باندې واو راوړه نحو زرني واکرمك، لاتاکل السمك وتشرب اللبن الخ

**واو: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د واو نه تفصیلا چې وروستو د هغې نه ان مقدر کیدو نو شروع یې وکړه په بیان د او کې چې وروستو د هغې نه ان مقدر کیږي او مضارع لره نصب ورکوي

**ترجمه: واو** هغه او چې نصب قبلوي مضارع وروستو د دې نه په تقدیر د ان سره **بشرط** او دا تقدیر د ان وروستو د او نه لپاره د انتصاب د مضارع مشروط دی په یو شرط سره **معنی الی** هغه شرط دا دی چې وي به دا او بمعنی الی هغه الی چې داخل دی په ان مقدر باندې عند الجمهور.

(۲): یا وي به دغه او بمعنی الا هغه الا چې داخل شوی دی په ان ناصبه مقدره باندې عند السیبویه مثال لکه (لالزمنك او تعطیني حقي) عند الجمهور تقدیر دا دی (لالزمنك الی اعطاءك حقي ایاي) او عند السیبویه تقدیر دا دی (لالزمنك في کل وقت الا وقت اعطاءك حقي ایای) چې او بمعنی الا دی او مابعد جمله په تاویل د مفرد سره په اعتبار د حذف د مضاف سره مستثنی ده او مستثنی منه حذف ده چې في کل وقت دی او دا مستثنی متصل او مفرغ ده، او په نز د جمهورو باندې او بمعنی الی دی او مابعد جمله په تاویل د مصدر سره مجرور د جار، جار سره د مجرور نه متعلق دی لالزمن پورې نو فعل سره د فاعل نه جمله فعلیه شوه. **والعاطفة: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د تقدیر د ان نه وروستو د فاء او واو عاطفه نه نو شروع یې وکړه په بیان د تقدیر د ان کې وروستو د

مطلق حروف عاطفو نه والعاطفة يا مجرور دی او عطف دی په حتی باندې چې ذکر دی په جانب د
اجمال کې په دې قول د مصنف کې وبان مقدر بعد حتی. دا اگر چې ابعد دی په اعتبار د لفظ سره د
وجې د طول د مسافت نه بين المعطوف والمعطوف عليه ليکن اقرب دی باعتبار المعنی
(۲) يا والعاطفة مرفوع دی او عطف دی په اول د معدودات ناصبه بتقدير ان باندې چې هغه دا قول
ماتن دی و حتی اذا کان مستقبلا او يا عطف دی په اخير د معدودات ناصبه بتقدير ان باندې چې
هغه او بشرط معنی الی ان دی او الف لام په العاطفة کې الف لام جنسي دی نه عهد خارجي نو کيږي
معنی دارنگې والعاطفة حروف عاطفه مطلقا برابره خبره ده چې د حروف عاطفه مذکورو نه وي او
که د غير مذکورو نه وي بې د شرط مذکورو نه مضارع منصوب کيږي په تقدير د ان سره وروستو د
دې مطلق حروف عاطفو نه **اذا کان المعطوف عليه اسما** په دې شرط سره چې که چرې وو معطوف عليه
اسم صريحي نحو اعجبني ضربك و تشتم او فتشتم ثم تشتم لپاره د دې چې عطف د مفرد په مفرد
باندې راشي او لازم نه شي عطف د جمله په مفرد ځکه دا نه دی جائز
**تشريح: سوال:** د العاطفة په اول سر کې واو راغلی دی دا تقاضه د معطوف عليه کوي د دې معطوف
عليه راته وښايه؟ **جواب:** والعاطفة مجرور ځکه دی دا عطف دی په حتی باندې چې ذکر شوی دی په
جانب د اجمال کې فيکون المعنی وبان مقدرة بعدها حتی والعاطفة
(۲) يا والعاطفة مرفوع دی عطف دی په حتی باندې چې ذکر شوی دی په جانب اول د تفصيل کې،
يا عطف دی په او باندې چې ذکر شوی دی په جانب اخير د تفصيل کې
**سوال:** والعاطفة چې مرفوع شي نو په جانب اول يا اخير د تفصيل باندې يې ولې عطف کوې په وسط
يې ولې نه عطف کوې؟ **جواب:** دا قاعده ده په عطف کې چې معطوف بالواو چې پس د معطوف عليه
متعدد نه وو نو طريقې د عطف يې دوه دي يا يې په اول باندې عطف کوه ځکه اوليت د اسبابو د
ترجيح نه دی يا يې په اخير باندې عطف کوه د وجې د قرب نه (لان الحق للقريب ثم للبعيد) او په
وسط باندې به يې نه عطف کوې لپاره د دې چې لازم نه شي ترجيح بلا مرجح
**سوال:** العاطفة چې عطف شي په هغه حتی باندې چې مذکور دی في جانب الاجمال نو معطوف په
حکم د معطوف عليه کې وي نو دا هم اجمال شو او اجمال تقاضا د تفصيل کوي نو مصنف خو
تفصيل نه دی ذکر کړی او که دا عطف شي په هغه حتی چې ذکر شوی دی په جانب اول د تفصيل کې
يا عطف شي په او باندې چې مذکور دی په جانب اخير د تفصيل کې نو معطوف په حکم د معطوف
عليه کې وي نو دا تفصيل شو تقاضا د اجمال کوي او اجمال خو مخکې نشته نو تفصيل ځنګه کوې.
(۲) او لازميږي تناقض په مابين د کلام د مصنف کې د مخکې عبارت نه معلومه شوه چې دفاء او د
واو نه وروستو ان مقدر کيږي دا مشروط دی په شرطين سره او دلته وائي چې دا مشروط دی په شرط
واحد سره؟ **جواب:** والعاطفة مجرور دی عطف دی په هغه حتی چې مذکور دی په جانب د اجمال کې، او
که ته وايې چې دا اجمال لپاره تفصيل پکار دی او تفصيل ماتن نه دی کړی نو جواب دا دی چې

تفصيل د هغه اجمال لپاره پکار دی چې محتاج وي تفصيل ته او دا داسې اجمال دی چې تفصيل ته محتاج نه دی ځکه دا ټول حروف د يو بل سره شريك دي په يو شرط کې چې هغه کون د معطوف عليه دی اسم صريحي نو دا تفصيل نه غواړي

(۲): يا العاطفة مرفوع دی او عطف دی په هغې حتی چې ذکر دی په جانب اول د تفصيل کې يا عطف دي په او چې ذکر دی په جانب اخير د تفصيل کې او که ته وائې چې د دې دپاره اجمال پکار دی نو جواب دا دی چې حروف عاطفه دوه قسمه دي يو هغه دي چې ځان له ځان شرطونه غواړي لکه فاء، واو، او ثم او دويم قسم هغه دی چې ځان ځان له شرطونه نه غواړي نو اجمال کې هغه شی ذکر کول پکار دي چې ځان له ځان له شرطونه نه غواړي لکه واو او فاء ثم، او دا مطلق حروف عاطفه ځان له ځان له شرطونه نه غواړي بلکه دا ټول شريك دي په يو شرط کې چې کون د معطوف عليه دی اسم صريحي نو ځکه په اجمال کې ذکر نه کړی شو بلکه ذکر شو د تفصيل په اخير کې او تناقض په مابين د کلامين د مصنف کې نشته ځکه شرط لپاره د تقدير د ان وروستو د حروف عاطفو نه کون د معطوف عليه دی اسم صريحي بې د شروط مذکورو نه.

**ويجوز اظهار ان مع لام کی: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د مواضع د تقدير د ان نه نو شروع يې وکړه په بيان د مواضع د اظهار د ان کې وجوبا يا جوازا.

**ترجمه:** جائز دي ښکاره کول د ان ناصبه مصدريه سره د لام کی نه (نحو جئتك لتکرمني) وائي او (لان تکرمني) وائي دواړه جائز دي **والعاطفة** او سره د حروف عاطفو نه (نحو اعجبني قيامك وتذهب) وائې او که (اعجبني قيامك وان تذهب) وائې ځکه لام کی او حروف عاطفه داخليږي په اسم صريحي باندې (نحو اعجبني ضرب زيد وغضبه) نو جائز دی اظهار د ان لپاره د دې چې واړوي مضارع لره اسم صريحي ته په خلاف د حتی او د لام الجحود او د او او د فاء او د واو نه چې وروستو د يو امر د امور ستة ؤ نه راغلی وي هلته اظهار د ان جائز نه دی ځکه دا نه داخليږي په اسم صريحي باندې بلکه داخليږي په اسم تاويلي باندې **ويجب** او واجب دی اظهار د ان **مع لا** سره د لای نفي نه **في اللام** په وقت د دخول د لام جاره کې چې بمعنی کی دي **عليها** په دې لای نفي باندې لپاره د دې چې لازم نه شي توالي د لامين چې هغه لام کی او لام د لای نفي دی نحو قوله تعالی لِئَلَّا يَعْلَمَ أَهْلُ الْكِتَابِ

پس د دې ځای نه معلومه شوه چې ان ناصبه په اعتبار د اظهار او د تقدير سره درې قسمه دی:

(۱) واجب الاظهار (۲) جائز الاظهار (۳) ممتنع الاظهار.

(۱): لام کی چې داخل شي په لای نفي باندې هغه لای نفي چې داخل شوی دی په فعل مضارع باندې نو بيا اظهار د ان واجب دی

(۲): او که لام کی داخل شوی نه وو په لای نفي باندې، او وروستو د حروف عاطفو نه چې عطف د مضارع په اسم صريحي راغلی دی په دې کې اظهار د ان جائز دی.

۲. او د دې نه علاوه په نورو کې ممتنع دی عند البصريين. اما د کونیانو په نزد د حتی نه وروسته هم اظهار د ان جائز دی.
**وينجزم: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د عوامل ناصبه د مضارع نه نو شروع یې وکړه په بيان د عوامل جازمه د مضارع کې نو وې ويل (وينجزم)
**ترجمه:** جزم قبلوي فعل مضارع **بلم ولما ولام الامر** په دخول دلم لما لام امر سره **ولا** او په دخول د لا سره داسې **لا في النهي** چې مستعمل شوی دی په نهي کې، في النهي جار مجرور په اعتبار د متعلق محذوف سره چې المستعمله دی صفت دی لپاره د لا او په دې سره یې احتراز وکړو د لاي نفي نه ځکه هغه چې داخل شي په مضارع نو په معنی کې عمل کوي او په لفظ کې عمل نه کوي او دا کلمات اربعه جزم ورکوي فعل واحد لره **وكلم المجازات** او جزم قبلوي فعل مضارع په کلمة الشرط والجزاء سره او تعبير یې وکړو په وکلم المجازات سره ځکه بعض اسماء دي او بعض حروف دي او دا جزم ورکوي فعل مضارع لره **وهي** او دا کلم المجازات **ان ومهما واذا ما و اذ ما وحيثما** ان مهما الخ دی او اذا وحیث جزم ورکوي مضارع لره سره د ما نه او بغیر د ما نه جزم نه ورکوي نحو اذ ما تاتني ناكرمك، حيثما تجلس اجلس **واين و متى** بل د کلم المجازات نه این او متی دی او دا جزم ورکوي مضارع لره مطلقا برابره خبره ده که سره د ما نه وي او که بغیر د ما نه وي نحو این تذهب اذهب متی تخرج اخرج **وما** او بل د کلم المجازات نه ما دی نحو ما تصنع اصنع **ومن** او بل من دی نحو من یاتني اكرمه **وای** او بل اي دی نحو [ ايا ما تدعوا فله الاسماء الحسنى ] **واني** او بل انی نحو اني تذهب اذهب **واما مع كيفما** او هر چې دی جزم قبلول د مضارع په کیفما سره او په **اذا** سره **فشاذ** دا شاذ دی او قلیل دی ځکه کیفما راځي لپاره د مساوات في جميع الاحوال وفي جميع الكيفيات او دا هر ځای کې نه شي کیدلی او هر چې دی اذا نو ځکه دا کلمات الشرط جزم ورکوي فعل مضارع لره د وجې د تضمن د دې کلمات الشرط نه معنی د ان شرطيه لره چې هغه وضع کړی شوی دی د شك او ابهام لپاره او اذا وضع شوی دی د یقین لپاره نو غالبا اذا نه راځي بمعنی ان ځکه په ما بین د شك او یقین کې منافات دی **وبان مقدرة** او جزم قبلوي فعل مضارع په ان سره په حال کون د دې ان کې چې مقدر دی یا داسې ان چې مقدر دی. **فلم: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د عوامل جازمه نه اجمالا نو شروع یې وکړه په عوامل جازمو کې تفصيلا نو وې ويل (فلم) الخ
**(تركيب) فاء** تفصيليه **لم** مراد اللفظ علم دی لپاره د هغه لم چې واقع کیږي په تراكيب کې مبتدا او لقلب المضارع جار مجرور په اعتبار د متعلق محذوف سره چې موضوع دی خبر د مبتدا. مبتدا سره د خبر نه جمله خبريه اسميه.
**ترجمه: فلم** پس لم د عوامل جازمه د فعل مضارع نه **لقلب المضارع** وضع کړی شوی دی لپاره د اړولو د مضارع **ماضيا** ماضي ته **ونفيه** او لپاره د نفي مضارع عند الجمهور
(۲). یا لپاره د نفي د ماضي په نزد د شارح جامي بانډې

(تشريح) **سوال**: د دې عبارت ربط د ماقبل سره څه دی، او غرض د مصنف د دې عبارت نه څه دی او دا فاء په فلم الخ کې کومه فاء ده؟

**جواب**: ربط د ادی چې مخکې اجمال وو او دا تفصیل دی او غرض د مصنف تفصیل د عوامل جازمه د فعل مضارع دی او په دې سره معنی د فاء هم معلومه شوه چې فاء په دې مقام کې تفصیلیه ده.

**سوال**: فلم مبتدا ده او لقلب المضارع ورله خبر دی او په مبتدا کې لابدي وي د اسمیت نه فعل او حرف مبتدا نه واقع کیږي او لم خو حرف دی نو دا څنګه مبتدا واقع شوې ده؟ **جواب**: دا لم په دې مقام کې مراد اللفظ علم دی د هغه لم لپاره چې واقع کیږي په تراکیب کې نو ځکه مبتدا واقع شوې ده.

**سوال**: ضمیر د نفیه چا ته راجع دی؟ **جواب**: دا راجع دی مضارع ته عند الجمهور او شارح جامي وېلي دي چې دا راجع دی ماضي ته ځکه اصل په مرجع کې قرب د مرجع دی مثال لکه لم یضرب شو دا په معنی د ما ضرب سره دی نو لم یضرب مخکې د دخول د لم نه مضارع مثبت وو دلالت یې کوو په وجود د معنی مصدري در زمانه حال یا استقبال او کله چې لم داخل شو نو د دې نه یې ماضي منفي جوړه کړه دلالت کوي په عدم وجود د معنی مصدري در زمانه ګذشته د دې وجې نه دې لم ته حرف قلب هم وائي ځکه ذا مضارع اړوي ماضي ته او مثبت اړوي منفي ته

**سوال**: دا خبره ستا منقوضه شوه بقوله تعالی ﴿فَإِن لَّمْ تَفْعَلُوا وَلَن تَفْعَلُوا﴾ په دې ایت کې لم داخل شوی دی په فعل مضارع باندې او مضارع یې په معنی د ماضي سره نه ده ګرځولی؟

**جواب**: په دې ایت کې چې په دې مضارع لم داخل شو نو د مضارع مثبت نه یې ماضي منفي جوړه کړه او کله چې په دې باندې ان شرطیه داخل شو نو هغه راخې د استقبال لپاره نو د ماضي نه یې مستقبل جوړ کړو. **ولما مثلها**: **ربط**: هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د معنی د لم جازمه نه نو شروع یې وکړه په بیان د لما جازمه کې په طریقه د تشبیه سره نو وې ویل ولما مثلها

**ترجمه**: لما جازمه جحدیه په شان د کلمه د لم دی په قلب او نفي کې په دې شان سره لکه څنګه چې لم داخل شي په مضارع مثبت باندې نو د هغې نه ماضي منفي جوړوي دارنګې لما هم دی.

**تشریح**: **سوال**: ته وایې چې لما په شان د لم دی په قلب او نفي کې دا خبره ستا منقوضه شوه بقوله تعالی [ فلما ان جاء البشیر ] چې دلته لما راغلی دی او په شان د لم نه دی ځکه لم داخلیږي په مضارع او ذا داخل شوی دی په ماضي باندې او د نفي او د قلب لپاره هم نه دی راغلی.

**جواب**: لما او لا دوه قسمه دی: اسمي، حرفي

اسمي بیا دوه قسمه دی: ظرفیه شرطیه بمعنی اذ، د هغې علامه دا ده چې دا داخلیږي په ماضي باندې ماضي عام ده چې لفظا وي او که معنی وي مثال لکه ﴿فَلَمَّا أَن جَاءَ الْبَشِيرُ﴾، وقول الشاعر

فلما ان جری سمن علیها  كما طینت بالفدن السیاعا

(۲): بمعنی جمعا نحو قوله تعالی وَتَأْكُلُونَ ٱلتُّرَاثَ أَكْلًا لَّمًّا ای اکلا جمعا او لما حرفیه هم دوه قسمه دی: (۱): بمعنی الانحو قوله تعالی إِن كُلُّ نَفْسٍ لَّمَّا عَلَيْهَا حَافِظٌ ای الاعلیها حافظ.
(۲): مرادف د لم جازمه جحدیه نحو لم یضرب وهو المراد ههنا او په لما ان جاء البشیر کې لما جحدیه نه دی بلکه ظرفیه شرطیه دی.

**وتختص بالاستغراق: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د ما به الاشتراك نه په مابین د لم او لما کې نو شروع یې وکړه په مابه الامتیاز د لم او لما کې نو وې ویل **وتختص الخ.** مختص ده کلمه د لما **بالاستغراق** په استغراق د ازمنه د ماضي پورې په دې شان سره چې دا نفي شامله ده تولو ازمنه ؤ د ماضي لره د وقت د انتفاء نه تر وقت د تکلم پورې نحو ندم فلان ولما ینفعه الندم په خلاف د لم نه چې دا کله دلالت په استغراق باندې کوي نحو قوله تعالی لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُولَدْ او کله نه کوي نحو ندم زید ولم ینفعه الندم. **وجواز حذف الفعل** دویم مختص دی لما په جواز د حذف د فعل پورې.
(۲): یا ممتاز دی لما د لم نه په جواز د حذف د فعل سره په دې شان سره چې حذف د فعل چې مدخول د لما دی جائز دی په وقت د وجود د قرینې د الی کې په تعین د محذوف باندې نحو شارفت المدینة ولما ای ولما ادخلها او حذف د فعل مدخول د لم نه دی جائز.

**(تشریح): (ما به الاشتراك بین لم ولما)**

(۱): لم داخلیږي فقط په فعل مضارع باندې نه په ماضي او امر حاضر او لما هم دغسې دی.
(۲): لم چې داخل شي په فعل مضارع عمل د جزم کوي لما هم عمل د جزم کوي په مضارع کې.
(۳): لم چې داخل شي په مضارع باندې نو ماضي منفي ترې جوړوي و لما کذلك.

## (ما به الامتیاز درمیان لم ولما)

(۱): لما د استغراق د نفي لپاره راځي بخلاف لم.
(۲): حذف د فعل مدخول د لما جائز دی په وقت د وجود د قرینه داله کې په تعین د محذوف باندې بخلاف لم. (۳): لما نفي د فعل متوقع کوي غالبا بخلاف لم.
(۴): لما فاصل نه واقع کیږي په مابین د حرف شرط او فعل شرط کې فلا یقال ان لما یضرب بخلاف لم چې دا واقع کیږي نحو قوله تعالی: فَإِن لَّمْ تَفْعَلُوا ځکه په لما کې حروف زیات دي دا فاصل قویه دی بین العامل والمعمول بخلاف لم په دې کې حروف کم دي نو فصل په دې سره کلا فصل دی.
(۵): لما اسمي راځي بخلاف لم. (۶): منفي د لما قریب وي حال ته غالبا بخلاف لم.
(۷): لم کله کله عمل د جزم نه کوي حملا علی لو بخلاف لما.
(۸): لم کله کله عمل د نصب کوي نحو الم نشرح علی قراءة بخلاف لما.

**ولام الامر: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د لم او د لما جازمه نه نو شروع یې وکړه په بیان د لام الامر کې **ولام الامر** لام الامر په اصطلاح کې هغه لام دی **المطلوب بها** چې طلب کړې شوی دی په

استعانت د دغه لام سره **الفعل** وجود د معنی مصدري بيا عام دی چې په طريقه د استعلاء سره وي که په طريقه د مساوات سره وي او که په طريقه د خضوع سره وي نو لام الدعا پکې داخل شو نحوا ليغفر لنا الله ] او اضافت د لام چې يې الامر ته وکړو نو په دې سره يې احتراز وکړو د باقي يوولس اقسامو د لام نه **وهي** او دا لام الامر **مكسورة** په کسرې سره راځي **ابدأ** هميشه د عامو عربو په لغت کې اما فتحه د لام دا لغت د سليم قبيلې دی او کله کله لام الامر ساکن کولی شي د واو او فاء او ثم عاطفه نه وروستو چې راشي نحو قوله تعالى وَلۡتَأۡتِ طَآئِفَةٌ أُخۡرَىٰ لَمۡ يُصَلُّواْ فَلۡيُصَلُّواْ ثم ليقضوا ځکه دا واو او فاء چې کله متصل شي د لام امر سره نو د وجې د شدت اتصال نه دا د نفس کلمې نه وګرځېدل نو وګرځېدل دا په شان د کتف باندې او اسم چې په وزن د فعل باندې راشي نو سکون د عين پکې جائز دی دارنګې دلته ولې او فلې هم د کتف په شان دی نو ځکه دا لام ساکن کړی شو او ثم محمول دی په واو او فاء عاطفه باندې.

**سوال:** لام الامر مسکور ولې راځي؟ **جواب:** لپاره د دې چې لازم نه شي التباس په مينځ د لام الامر او لام ابتدائيه کې ځکه هغه مفتوح راځي.

**سوال:** التباس خو په عکس سره هم دفع کيږي نو عکس يې ولې ونه کړو؟

**جواب:** عکس يې ونه کړو ځکه لام ابتدائيه تاکيديه کثير الاستعمال دی ځکه چې په اسم فعل او حرف درې واړو باندې داخليږي او کثرت استعمال تقاضه د تخفيف کوي نو تخفيف ورله ورکړی شو په فتحې سره په خلاف د لام الامر نه چې دا فقط په فعل باندې داخليږي نه په اسم او حرف باندې دا تقاضا د تخفيف نه کوي نو کسره ورله ورکړی شوه.

(۲): عکس يې ونه کړو ځکه لام الامر مشابه دی د لام جاره سره په اختصاص کې لام جاره خاص دی په اسم پورې او دا خاص دی په فعل پورې او لام جاره خو مکسور وي (نحو المال لزيد، الحمد لله) نو دا هم مکسور وګرځولی شو د دې مشابهت د وجې نه.

**ولا النهي** او لا داسې لا چې مستعمل دی په نهي کې **المطلوب** چې مطلوب د متکلم **بها** په دغه لای نهي سره **الترك** ترک د فعل دی او دا داخليږي په ټولو انواعو د فعل مضارع باندې مضارع عامه ده چې مبني للفاعل وي او که مبني للمفعول وي، که متکلم وي که مخاطب وي او که غائب وي په خلاف د لام امر نه چې هغه په مضارع مخاطب معلوم باندې نه داخليږي ځکه د هغې فعل امر حاضر معلوم جوړ شوی دی او په فعل مضارع مخاطب مجهول باندې داخليږي او توصيف د لا چې يې النهي سره وکړو نو په دې سره يې احتراز وکړو د باقي اقسامو د لا نه ځکه ځينې په هغو کې نه داخليږي په فعل مضارع باندې او ځينې داخليږي خو عمل د جزم نه کوي لکه لای نفي شو.

**سوال:** د لای نفي او لای نهي په مينځ کې څه فرق دی؟ **جواب:** لای نفي داخليږي په ماضي او مضارع دواړو باندې او لای نهي داخليږي فقط په مضارع باندې.

(۲): لای نفي عمل نه کوي په لفظ کې او لای نهي عمل کوي په شان د لم.

(۲) لای نفي د قبیلې د اخبار نه دی دلالت کوي په اخبار د فعل در زمانه حال یا استقبال کما هو رای ابن مالك. او لای نهي د قبیلې د انشاءاتو نه دی دلالت کوي په طلب د ترك د فعل باندې.
**وكلم المجازات** او كلمات الشرط والجزاء **تدخل على الفعلين** داخليږي په جملتين فعليتين باندې غالبا ذکر د جز دی چې فعل دی او مراد ترېنه کل دی چې جمله فعليه ده.
**لسببية الاول** لپاره د سببيت د فعل اول **ومسببية الثاني** او لپاره د مسببيت د فعل ثاني يعنی ګرځوي متكلم فعل اول لره سبب لپاره د فعل ثاني په كلم المجازات سره او دا سببيت عام دی که نفس الامري وي او كه اعتباري وي لکه دا مذهب د جمهورو دی یا ګرځوي ملزوميت د اول لپاره د ثاني لکه دا مذهب د شيخ رضي دی.
**تشريح: سوال:** نه وايې چې كلم المجازات ګرځوي فعل اول لره سبب لپاره د ثاني دا خبره ستا منقوضه شوه په ان تشتمني اكرمك سره په دې شان سره چې شتم سبب نه دی لپاره د اكرام بلکه سبب د اهانت دی؟ **جواب:** سببيت عام دی که نفس الامري وي او که جعلي او اعتباري وي دا شتم اګر چې سبب نه دی لپاره د اكرام په واقع او نفس الامر کې ليکن دې متكلم سبب ګرځولی دی د اكرام لپاره د اظهار د مكارم الاخلاق.
**سوال:** نه وايې چې كلم المجازات ګرځوي فعل اول لره سبب لپاره د ثاني دا خبره ستا منقوضه شوه په دې تركيب سره ان تكرمني الان فقد اكرمتك امس وبقوله تعالى إِن تُعَذِّبْهُمْ فَإِنَّهُمْ عِبَادُكَ وَإِن تَغْفِرْ لَهُمْ فَإِنَّكَ أَنتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ وبقوله تعالى وَإِن يُكَذِّبُوكَ فَقَدْ كُذِّبَتْ رُسُلٌ مِّن قَبْلِكَ په دې امثله مذكورو کې فعل اول سبب لپاره د ثاني نه دی او دا ثاني مرتب نه دی په مضمون د اول باندې؟
**جواب:** دلته دا مذكوره جزاء نه ده بلکه دا دال بالجزاء دی او علت دی د جزا محذوف لپاره او جزاء د شرط محذوف او مقدره ده فيكون التقدير: (ان تكرمني الان فقد اديت حقي لاني قد اكرمتك امس)، (وان تعذبهم فلا تظلم بشئ لانهم عبادك وان تغفر لهم فانك حقيق به لانك انت العزيز الحكيم)، (وان يكذبوك فاصبر) يا (فلا تحزن لانه قد كذب رسل من قبلك).
**زده کړه دا خبره** چې جزا په اعتبار د حذف سره درې قسمه ده: جائز الحذف، واجب الحذف، ممتنع الحذف. جزا حذف كولی شي وجوبا په دې شرط سره چې جملې متقدمې دلالت كولو په حذفيت د جزاء باندې نحو انت ظالم ان فعلت، بنا په مذهب د هغه چا باندې چې هغه تقديم د جزاء په شرط باندې جائز نه وائي لکه بصريان شو او که جمله متقدمه دليل په حذفيت د جزاء باندې موجود نه وو نو بيا به خالي نه وي يا به قرينه موجود وي په تعين د محذوف باندې او يا به نه وي، که قرينه داله په تعين د محذوف باندې موجود نه وه نو حذف د جزاء نه دی جائز نحو ان ضربت ضربت او که قرينه داله په تعين د محذوف باندې موجوده وه نو بيا جزاء حذف كولی شي جوازا. دا بيا په دوه قسمه ده: (۱): يو هغه ده چې جزا حذف كولی شي بې د سد مسد نه نحو قوله تعالى وَإِن كَانَ كَبُرَ عَلَيْكَ إِعْرَاضُهُمْ جزاء محذوف ده ای

فافعل، وقوله تعالى وَلَوْ تَرَىٰٓ إِذْ وُقِفُوا۟ عَلَى ٱلنَّارِ جزاء محذوف ده اى لرايت امرا فظيعا وقوله تعالى وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ ٱتَّقُوا۟ مَا بَيْنَ أَيْدِيكُمْ وَمَا خَلْفَكُمْ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ جزاء محذوف ده اى (اعرضوا بدليل ما بعده)

او كله جزاء حذف كولى شي سره د سد مسد نه نحو قوله تعالى وَإِن يُكَذِّبُوكَ فَقَدْ كُذِّبَتْ رُسُلٌ مِّن قَبْلِكَ جزاء د دې حذف شوې ده چې فاصبر دى يا لاتحزن دى او دا فقد كذبت دال بالجزاء دى او قائم دى په مقام د جزاء باندې وقول الشاعر

فان تفق الانام وانت فيهم     فان المسك بعض دم الغزال

(فان تفق الانام) شرط دې او جزاء د دې حذف شوې ده چې فلا تعجب دى او دا (فان المسك الخ) علت دى د جزاء محذوف او مقدر لپاره.

**ويسميان شرطا و جزاء** او مسمى كولى شي دغه فعلان چې واقع شوى دى ورزوستو د كلم المجازات نه په شرط او جزاء سره په دې شان سره چې فعل اول ته شرط وائي ځكه دا مشروط دى او موقوف عليه دى لپاره د تحقق د ثاني او فعل ثاني ته جزاء وائي ځكه دا مرتب دى او بنا دى په اول باندې په شان د ترتب د جزاء په فعل باندې او د منطقيانو په اصطلاح كې اول ته مقدم وائي، لوقوعه مقدما في الكلام او ثاني ته تالي وائي لوقوعه ثانيا في الكلام.

(١): او دا شرط او جزاء كله راځي ماضيين نحو قوله تعالى وَإِنْ عُدتُّمْ عُدْنَا.

(٢): او كله راځي مضارعيين نحو قوله تعالى وَإِن يَكُن مِّنكُمْ أَلْفٌ يَغْلِبُوٓا۟

(٣): او كله راځي متخالفين په دې شان سره چې شرط ماضي ده او جزاء مضارع ده نحو قوله تعالى مَن كَانَ يُرِيدُ ٱلْحَيَوٰةَ ٱلدُّنْيَا وَزِينَتَهَا نُوَفِّ إِلَيْهِمْ

(۴): او كله بالعكس راځي كقوله عليه السلام (**من يقم ليلة البدر ايمانا واحتسابا غفر له**).

**فان كانا مضارعين: ربط:** هر كله چې فارغ شو مصنف د بيان د مدخول د كلم المجازات او د بيان د معنى د كلم المجازات نه نو شروع يې وكړه په بيان د عمل د كلم المجازات كې **فان كانا** كه چيرې وو دا فعلان چې شرط او جزاء دي **مضارعين** دواړه مضارع وو نحو ان تضرب اضرب **او الاول** يا اول مضارع وو او ثاني ماضي وو نحو ان تضرب ضربتك **فالجزم** پس جزم واجب دى په مضارع كې د وجې د دخول د جازم نه او عامل جازم طلب د جزم كوي او مضارع قابل او صالح د جزم ده او مانع نشته

**سوال:** فعل شرط د پاره جازم كلمة الشرط دى د جزاء لپاره جازم څوك دى؟

**جواب:** دا مجزوم دى على الجوار اكثر بصريان وايي جازم په دې كې كلمة الشرط دى، (٢) بعضې بصريان وائي عامل په جزاء كې حرف شرط او فعل شرط دواړه دي، (٣) بعضې بصريان وايي په جزاء كې فعل شرط دى فقط، ابو عثمان مازني ويلې دي دا مبني على الوقف دى،

**سوال:** دا قاعده ستا منقوضه شوه بقوله تعالى [ فمن يومن بربه فلا يخاف بخسا ولا رهقا ] دلته شرط او جزاء دواړه فعل مضارع دي او دې من شرطيه په جزاء د فعل مضارع كې عمل د جزم نه دى كړى؟

**جواب:** من شرطيه عمل نه دی کړی په جزاء کې د جزم د وجې د کمال انفصال نه په مابين د من شرطيه او د جزاء کې. (٢): يا فلا يخاف جزاء د شرط نه ده واقع شوې بلکه دا جمله خبر واقع شوې دی د ان محذوفه مع الاسم لپاره فيكون التقدير (فمن يؤمن بربه فانه لا يخاف بخسا ولا رهقا)، د دې وجې نه (فمن يؤمن بربه فلا يخاف بخسا ولا رهقا) کې عمل د جزم نه دی کړی عدم مجاورة د وجې نه.

**سوال:** هذا منقوض بقول عائشة رضي الله عنها ، وانه (ابوبكر) متى يقوم مقامك لا يسمع الناس. لاعتذار لابيها عن امامته المسلمين في الصلاة؟

**جواب:** اهمال متى ههنا حملاً على اذا كاعمال اذا حملاً على متى في قول الشاعر: واذا تصبك خصاصة فتجمل، فافهم.

**وان كان الثاني** او که چېرې وو فعل ثاني چې جزاء ده فعل مضارع او شرط فعل ماضي وو نحو ان ضربت اضرب **فالوجهان** په دې کې دوه وجې جائز دي: (١): جزم د وجې د عدم وجود د مانع د عمل نه ځکه جزاء فعل مضارع ده او دا صالحه او قابله د عمل ده.

(٢): رفع جائز ده د وجې د ضعف د تعلق د جزاء نه د جازم سره ځکه فصل راغلی دی په مابين د جازم او مضارع کې په فعل ماضي سره او دې ان حرف شرط په دې فعل ماضي کې عمل نه دی کړی لهذا په مضارع کې يې عمل ونه کړو او که شرط او جزاء دواړه فعل ماضي وو نو بيا ممتنع الجزم دی حرف شرط په دې کې عمل د جزم نه شي کولی.

او په عامل د شرط او جزاء کې مذاهب خمسه دي:

(١): سيرافي وائي په شرط او جزاء دواړو کې حرف شرط عامل دی لکه ابتداء چې عامل دی په مبتدا کې او خبر دواړو کې. (٢): خليل او مبرد وائي چې حرف شرط عامل دی په شرط کې او بيا دا دواړه عامل دي په جزاء کې لکه ابتداء عامل دی مبتدا کې او مبتدا او ابتداء دواړه عامل دي په خبر کې.

(٣): اخفش وائي چې جازم د شرط حرف شرط دی او جازم د جزاء شرط دی لکه ابتداء عامل دی مبتداء او مبتدا عامل دی په خبر کې.

(٤): او کوفيان وائي چې شرط مجزوم دی د ادات الشرط د وجې نه او جزاء مجزوم ده د مجاورت د وجې نه دېته جزم الجوار وائي په شان د جر الجوار باندې في قوله عليه السلام (من ملك ذا رحم محرم عتق عليه).

(٥): مازني وائي شرط او جزاء دواړه مبني على السكون دي ځکه دا دواړه مشابه دي د امر حاضر معلوم سره په عدم وقوع موضع الاسم کې.

**واذا كان الجزاء ماضيا بغير قد** غالبا په جزاء د شرط کې فاء جزائيه راځي او دا جزاء په اعتبار د فاء سره درې قسمه ده: (١) جائز الفاء. (٢) واجب الفاء. (٣) ممتنع الفاء.

اوس واجب الفاء کوم ځای ده جائز الفاء کوم ځای ده او ممتنع الفاء کوم ځای ده نو مصنف د هغې مواضع بيانوي: **واذا كان الجزاء ماضيا** که چرې وه جزاء د شرط فعل ماضي متصرف او په مقام د دعا کې نه وه واقع شوې **لفظا او معنا** تفصيل د ماضي دی، دا ماضي عامه ده که لفظا وي او که معنی وي

ماضي لفظا لكه صيغه د ماضي شوه نحو ان خرجت خرجت، او ماضي معنى هغې ته وائي چې په صيغه د مضارع باندې لم او لما داخل شوی وي نحو ان خرجت لم اخرج

(۲): او دا احتمال هم شته چې لفظا او معنى تفصيل د قد دی په دې شان سره چې دا جزاء د شرط ماضي وي بغير د قد نه دا قد عام دی كه لفظا وي نحو قوله تعالى: إِن يَسْرِقْ فَقَدْ سَرَقَ أَخٌ لَّهُ مِن قَبْلُ يا تقديرا وي نحو قوله تعالى: إِن كَانَ قَمِيصُهُ قُدَّ مِن قُبُلٍ فَصَدَقَتْ اى فقد صدقت. **لم يجز الفاء** بيا جائز نه دی فاء راوړل په جزاء د دې شرط كې د وجې د كمال تاثير د ادوات د شرط نه په مابين د جملتين كې چې هغه نقل د ماضي دی مضارع ته بل رابط ته ضرورت نشته او كه دا ماضي متصرفه نه وه بلكه غير متصرفه وه يا متصرفه وه خو خالي نه وي د قد نه بلكه قد پكې راغلی وو لفظا يا تقديراً يا خالي د قد نه هم وه خو مستعمل شوې ده په مقام د دعا كې بيا فاء جزائيه راوړل لازم دي په جزاء د شرط كې نحو ان اكرمتني فجزاك الله. **وان كان مضارعا مثبتا** او كه چرې جزاء فعل مضارع مثبته وه خالي وه د سين او د سوف نه **او منفيا بلا** يا منفي وه په لای نفي سره نو دې سره يې احتراز وكړو د فعل مضارع منفي بلم نه ځكه د هغې حكم مخكې تير شو دی او احتراز يې وكړو د مضارع منفي بلن نه د هغې حكم وروستو راروان دی **فالوجهان** بيا دوه وجې روا دي په جزاء د دې شرط كې يعنې فاء جزائيه راوړل هم جائز دي او نه راوړل هم جائز دي كه دېته ګورې چې ان شرطيه تاثير كړی دی چې فعل مضارع يې خاص كړې ده استقبال پورې نو بيا فاء جزائيه مه راوړه او كه دېته ګورې چې ان شرطيه كامل تاثير نه دی كړی بيا فاء جزائيه راوړه مثال د اول چې جزاء فعل مضارع مثبته واقع شوې دی او فاء جزائيه نه ده راغلې نحو قوله تعالى [ وان يكن منكم مائة يغلبوا ] او مثال د مضارع مثبت چې فاء جزائيه پكې راغلې وي نحو قوله تعالى [ ومن عاد فينتقم الله ] مثال د فعل مضارع منفي بلا چې جزاء واقع شوې ده او فاء جزائيه پكې راغلې وي قوله تعالى: فَمَن يُؤْمِن بِرَبِّهِۦ فَلَا يَخَافُ بَخْسًا وَلَا رَهَقًا.

**والا** او كه چرته جزاء فعل ماضي او مضارع مذكورين نه وو **فالفاء** بيا فاء جزائيه راوړل لازم دي په جزاء د دې شرط كې د وجې د عدم تاثير د حرف شرط نه په جزاء كې. او د الاصورتونه لس دي: (۱) چې جزاء د شرط امر وي. (۲): نهي. (۳): مضارع منفي بلن. (۴): مضارع منفي بما. (۵): مضارع مثبت سره د سين او سوف نه. (۶): ماضي غير متصرف. (۷): ماضي متصرف سره د قد نه لفظا يا تقديرا. (۸): ماضي متصرف خالي د قد نه لفظا او تقديرا چې مستعمل شوی دی په مقام د دعا كې. (۹): استفهام. (۱۰): جمله اسميه په دې كې فاء جزائيه لازم ده د جزاء سره.

**سوال:** ته وايې چې جمله اسميه چې جزاء د شرط واقع شي نو فاء جزائيه راوړل لازم دي هذا منقوض بقوله تعالى وَإِنْ أَطَعْتُمُوهُمْ إِنَّكُمْ لَمُشْرِكُونَ په دې ايت كې ان اطعتموهم شرط دی او انكم لمشركون جمله اسميه جزاء ده او فاء جزائيه پكې نشته؟

جواب: إِنَّكُمْ لَمُشْرِكُونَ جمله اسميه جزاء د شرط نه ده بلكه دا جواب د قسم دى چې هغه مقدر دى مخكې د حرف شرط نه اى [ والله ان اطعتموهم انكم لمشركون ] او قاعده دا ده چې شرط او قسم يو ځاى راشي او قسم مقدم وي په شرط باندې بيا برابره خبره ده چې قسم لفظا وي او كه تقديرا وي نو مابعد كلام جواب د قسم گرځولى شي او جواب د جزاء د شرط حذف كولى شي.

سوال: نه وائې چې جمله اسميه چې جزاء واقع شي نو فاء جزائيه راوړل واجب دي دا قاعده ستا منقوضه شوه په دې قول د الله سره وَإِن تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌۢ بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ إِذَا هُمْ يَقْنَطُونَ دلته هم يقنطون جمله اسميه جزاء ده او فاء جزائيه ورسره نشته؟

جواب: **ويجيئ اذا مع الجملة الاسمية موضع الفاء: ترجمه**: كله كله راځي اذا سره د جمله اسميه نه په محل او موضع د فاء جزائيه باندې ځكه معنى د اذا مفاجاتي په ځاى د فاء جزائيه باندې راځي په جمله اسميه كې نه په جمله فعليه كې د وجې د اختصاص د اذا مفاجاتي نه په جمله اسميه پورې **وان** او ان شرطيه چې جزم قبلوي فعل مضارع د دې ان شرطيه د وجې نه **مقدرة** (۱) په حال كون د دې ان كې چې مقدر بې واخلې. (۲) يا هسې ان چې مقدر دى مقدرةً منصوب لوستل هم جائز دي ځكه حال دى د ان نه او مرفوع لوستل هم جائز دي ځكه صفت دى د ان لپاره كه چرې مقدرة صفت واقع شي د ان لپاره نو بيا متلبس باللام وېل پكار وو ځكه ان معرفه بالعلم دى خو مصنف متلبس باللام نه دى ذكر كړى د وجې د كيدو د مقدرة نه محتمل د احتمالين. **بعد الامر** ان مقدر كيږي وروستو د امر نه نحو قوله عليه السلام (**قولوا لا اله الا الله تفلحوا**) اى ان تقولوا لا اله الا الله تفلحوا **والنهي** او مقدر كيږي وروستو د نهي نه نحو لاتفعل الشر يكن خيرا لك اى ان لم تفعله يكن خيرا لك **والاستفهام** او مقدر كيږي وروستو د استفهام نه نحو هل عندكم ماء اشربه اى ان يكن عندكم ماء اشربه. **والتمني** او واقع كيږي وروستو د تمني نه نحو ليت لي مالا انفقه اى ان يكن لي مالا انفقته **والعرض** او مقدر كيږي وروستو د عرض نه نحو الاتنزل بنا فتصيب خيرا دا تصيب خيرا جزاء ده د شرط مقدر لپاره اى ان تنزل تصب خيرا او ان مقدر كيږي وروستو د يو امر د دې امور خمسو نه او مضارع لره جزم وركوي **اذا قصد السببية** په دې شرط سره چې قصد كړى شوى وو سببيت د ماقبل لپاره د مابعد په دې شان سره چې مضارع واقع وي وروستو د يو امر د دې امور خمسو نه او دا صالح د مسببيت وو د ما تقدم لپاره.

سوال: تقدير د ان شرطيه ولې منحصر دى په دې امور خمسو پورې او قصد د سببيت د اول لپاره د مابعد ولې شرط دى؟ **جواب**: قصد د سببيت د ماقبل لپاره د مابعد ځكه شرط دى چې ان د كلم المجازات نه دى دلالت كوي په سببيت د اول لپاره د ثاني او تقدير د دې وروستو د امور خمسو نه ځكه شرط دى چې په دې امور خمسو كې معنى طلبي ده او هر طلب مطلوب غواړي او مطلوب دوه قسمه دى. مطلوب لذاته او مطلوب لغيره. ځكه دا امور خمسه به خالي نه وي يا به وروستو د دې امور خمسو نه بل شى ذكر وي او يا به نه وي كه چرته وروستو د دې امور خمسو نه بل شى ذكر نه وو نو مطلوب لذاته دى او كه بل شى ذكر وو نو مطلوب لغيره دى ځكه كه دا مطلوب لذاته وى نو بل

امر د دې يو امر د دې امور خمسو نه مثال د شي به يې نه وو ذکر کړی، ځکه هغه مطلوب لذاته معلوميږي د يو امر نحو اسلم تدخل الجنة تدخل الجنة کې مضارع مجزوم ده او کسره په لام باندې راغلې ده د وجې د التقاء د ساکنين نه او مضارع مجزوم ده ځکه دا جزاء د شرط لپاره ده چې مقدر دی وروستو د امر نه ای ان تسلم تدخل الجنة مثال د ان شرطيه چې مقدر وي وروستو د نهي نه او مضارع لره يې جزم ورکړی وي لکه لاتکفر تدخل الجنة شو چې دلته تدخل مضارع مجزوم ده او کسره د لام راغلې ده د وجې د التقاء د ساکنين نه او مضارع مجزوم ده ځکه دا جزاء د شرط ده چې مقدر دی وروستو د نهي نه ای ان لاتکفر تدخل الجنة او دا ترکيب صحيح دی ځکه نهي قرينه د فعل منفي ده نه د فعل مثبت **وامتنع** او ممتنع دی دا ترکيب لاتکفر تدخل النار عند الجمهور **خلافا للکسائي** خلاف ثابت دی کسائي لره د هغه په نزد باندې دا ترکيب جائز دی او ممتنع نه دی

**سوال:** د جمهورو په نزد دا ترکيب ولې ممتنع دی او د کسائي په نزد باندې ولې جائز دی؟

**جواب: لان التقدير ان لا تکفر** دا دليل د جمهورو دی ځکه تقدير د شرط بنا په هغې چې مخکې تا وپيژندو په لاتکفر تدخل الجنة کې ان لاتکفر دی او دا تقدير باطل دی ځکه عدم کفر سبب نه دی لپاره د دخول الی النار بلکه عدم کفر سبب دی د دخول الی الجنة لپاره او کسائي وائي دا جائز دی او دليل د کسائي لپاره عرف دی او معنی د دې په اعتبار د عرف سره دا ده چې ان تکفر تدخل النار او قرينه په دې باندې عرف ده.

يعنی کسائي شرط مثبت راوباسي نه منفي، او قرينه په دې باندې لفظ دلالت نه کوي ځکه نفي دلالت نه کوي په اثبات باندې او ان شرطيه مقدر کيږي وروستو د يو امر د امور خمسو نه او مضارع لره جواب د طرفه د جمهورو نه دا دی چې په تقدير د کسائي باندې جزم ورکوي په دې شرط چې قصد کړی شوی وو سببيت د اول لپاره د مابعد او که قصد د سببيت د اول لپاره د مابعد نه وو کړی نو بيا دا فعل مضارع مرفوع راځي وجوبا.

(۱): بنا بر صفتيت د ماقبل لپاره نحو قوله تعالی فَهَبْ لِي مِن لَّدُنكَ وَلِيًّا ۝ يَرِثُنِي ای وليا وارثا

(۲): حال واقع کيږي د ماقبل نه نحو قوله تعالی: فِي طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُونَ ای عامهين]

(۳): يا دا جمله مستانفه وي کقول الشاعر:

وقال رائدهم ارسو نزاولها    فکل حتف امراء يجری بمقدار

**قاعده:** فعل مضارع چې واقع شي وروستو د جزاء د شرط نه او مقترن وو د واو او فاء عاطفه سره په هغې کې درې اعرابونه جائز دي:

(۱): رفع لانها جملة مستانفة (۲): جزم لانها معطوف على الجزاء.

(۳): نصب بتقدير ان نحو قوله تعالی وَإِن تُبْدُوا مَا فِي أَنفُسِكُمْ أَوْ تُخْفُوهُ يُحَاسِبْكُم بِهِ اللَّهُ فَيَغْفِرُ لِمَن يَشَاءُ

او که دا مضارع واقع وه په مينځ د شرط او جزاء کې نو په هغې کې دوه وجې روا دي:

(۱) نصب بتقدير ان. (۲): جزم على العطف نحو ان تستقم تجتهد يکرمك.

او شرط په اعتبار د حذف سره درې قسمه دی: (١): واجب الحذف. (٢): جائز الحذف. (٣): ممتنع الحذف. شرط وجوبا حذف کيږي په دې شرط سره چې واقع شوی وو وروستو د لا نه.
(٢): او قرينه د اله په تعين د محذوف باندې موجوده وه كما في قول الشاعر:

فطلقها فلست لها بكفو والا يعل مفرقك الحسام

او شرط حذف کيږي وروستو د يو امر د امور خمسو نه كما مر. او د دې نه علاوه په نورو ځايونو کې حذف د شرط نه دی جائز.

## (الامـــر)

(**ربط**) هر كله چې فارغ شو مصنف د بيان د قسم ثاني د فعل نه چې مضارع وو نو شروع يې وکړه په قسم ثالث د فعل کې چې امر حاضر معلوم دی. الامر کې الف لام عهدي خارجي دی مراد د دې نه امر حاضر معلوم دی. (٢): يا امر چې مطلق ذکر شي نو عند النحاة والاصوليين مراد د امر نه امر حاضر معلوم وي او امر حاضر معلوم ته امر بې لام امر مخاطب او امر بالصيغه هم وائي. او په امر کې لابدي ده د معرفت د امور اربعه ؤ نه: (١): مفهوم لغوي. (٢): مفهوم اصطلاحي. (٣): حكم. (٤): طريقه او كيفيت د بنا د امر د مضارع نه.

نو امر په لغت کې فرمودن كاری ته وائي او په اصطلاح کې **صيغة** دا يوه صيغه ده داسې صيغه **يطلب بها** چې طلب كولی شي په دې صيغې سره **الفعل** وجود د معنی مصدري **من الفاعل المخاطب** د فاعل مخاطب نه **بحذف حرف المضارعة** په حال كون د دې صيغه کې چې دا به متلبس وي په حذف د حرف مضارعة سره.

په هر تعريف کې لابدي وي د جنس او فصل نه **صيغة يطلب بها الفعل** جنس دی تول پکې داخل شو متكلم مخاطب غائب معلوم مجهول. **او من الفاعل** سره يې احتراز وکړو د امر غائب مجهول نه ځكه په هغې سره طلب د فعل كولی شي د مفعول به نه، نه د فاعل نه او توصيف د فاعل چې بې په مخاطب سره وکړو نو په دې سره يې احتراز وکړو د امر غائب معلوم او امر متكلم نه ځكه امر غائب معلوم سره طلب د فعل كولی شي د فاعل غائب نه، نهٔ د مخاطب نه امر متكلم سره طلب د فعل كولی شي د فاعل متكلم نه، نه د فاعل مخاطب نه. **وبحذف حرف المضارعة** سره يې احتراز وکړو د امر باللام مخاطب معلوم نه لكه فلتفرحوا شو په يو قراءة باندې او احتراز يې وکړو د صه اوريد اسم فعل نه ځكه اكر چې په دې سره طلب د فعل كولی شي ځكه دا متلبس نه دی په حذف د حرف مضارعة سره نو تعريف د امر حاضر بالكل جامع مانع شو. **وحكم اخره** او حكم د اخير د امر په حقيقت کې عند البصريين وقف دی او بناء على السكون دی د وجې د عدم وجود د علت او مقتضی د اعراب نه چې هغه حرف مضارعت دی او حكم د اخير د مضارع صورةً. **حكم المجزوم** په شان د حكم د مضارع مجزوم دی په اسكان د صحيح او سقوط د نون اعرابي او حرف علة کې ځكه هر كله چې امر حاضر معلوم مشابه شو د فعل مضارع مجزوم بلام سره معنی چې هغه طلب د فعل دی او مشبه

حکم د مشبه به اخلي پس وريې کړو امر حاضر معلوم لره حکم د امر باللام نحو اضرب دلته سکون په حذف د حرکت سره دی او اضربا اضربوا کې سکون په حذف د نون اعرابي سره دی اخش اغز ارم کې سکون په حذف د حرف علت سره دی په شان د لم يضرب لم يضربا لم يخش لم يغز لم يرم.

او کوفيان وائي چې دا امر حاضر معرب دی او مجزوم دی په لام مقدره سره او دليل د هغوی لپاره دا قول د الله دی [ فلتفرحوا ] نو دا اضرب اصل کې ولتضرب وو نو په دې افعالو کې فعل ماضي مبني ده مطلقا بالاتفاق او فعل مضارع معرب ده بالاتفاق په دې شرط سره چې خالي وي د نون تاکيد او نون ضمير د جمع مؤنث نه او په امر حاضر معلوم کې خلاف دی عند البصريين مبني على السکون دی او عند الکوفيين معرب مجزوم دی په لام مقدره سره.

**فان کان بعده ساکن: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د حکم د امر حاضر معلوم نه نو شروع يې وکړه په بيان د طريقه او کيفيت د امر حاضر معلوم کې او امر حاضر معلوم جوړيږي د مضارع مخاطب معلوم نه په حذف د علامه د مضارع سره **فان کان بعده** پس که چرته وروستو د حذف د حرف مضارع نه **ساکن** ساکن په دې سره يې احتراز وکړو د متحرك نه ځکه که مابعد د حرف مضارعة نه متحرك وو بيا فقط اخر ساکن کولو سره امر جوړيږي خو دا يې نه دی ذکر کړی د وجې د ظهور نه لکه عد شو په تعد کې. **وليس برباعي** او حال دا دی چې نه وي مضارع مشتمل على اربعة احرف او مراد د رباعي لغوي دی چې څلور حرفيز ته وائي نه رباعي اصطلاحي. او رباعي اصطلاحي هغې ته وائي چې حروف اصلي پکې څلور راغلي وي **زدت همزة وصل** زياتي کوه ته همزه وصليه چې مضمومه به وي **ان کان بعده ضمة** که چرته وه پس د حرف ساکن نه ضمه لپاره د اتباع د عين کلمه، يا لپاره د دې چې التباس رانه شي د امر حاضر معلوم د واحد متکلم مضارع معلوم سره په تقدير د فتحه د همزې باندې او د وجې د تحرز د خروج من الکسره الى الضمه نه په تقدير د کسرې باندې **ومکسورة فيما سواه** او دا همزه وصليه به مکسوره وي په سوا د ساکن بعد ضمة کې بيا برابره خبره ده چې پس د ساکن نه مکسور وي يا مفتوح کې نو لپاره د دې چې لازم نه شي التباس د امر حاضر معلوم د واحد متکلم فعل مضارع معلوم سره په تقدير د فتحه د همزه کې او که ضمه ورکړو نو بيا لازميږي التباس. مثال لکه: **اقتل** شو اصل کې تقتل وو تا حرف مضارعت را حذف کردند مابعد ساکن پاتې شو عين کلمه د دې مضمومه وه نو همزه وصليه مضمومه په اول کې راوړی شوا وپه اخير کې وقف کړی شو نو د تقتل نه اقتل جوړ کړی شو او مثال د ثاني لکه **اضرب** اصل کې تضرب وو تا حرف مضارعت حذف کړی شو مابعد ساکن وو او عين کلمه مکسروه وه نو همزه وصليه مکسوره مو په اول کې راوړه او اخير کې وقف کړی شو نو اضرب شو. **اعلم** اصل کې تعلم وو تا حرف مضارعة حذف کړی شو مابعد ساکن وو عين کلمه مفتوحه وه همزه وصليه مکسوره په اول کې راوړی شوه او اخير کې وقف کړی شو نو اعلم شو.

**وان كان رباعيا** او كه چرته وه دغه مضارع چې حذف کړی وي ده علامه د مضارع د هغې رباعي چې ماضي د دې مشتمله وه على اربعة احرف **فمفتوحة** بيا دا همزه مفتوحه راځي ځكه دا همزه علامه د باب افعال ده حذف شوې وه د وجې د اجتماع د همزتين نه په واحد متكلم كې او كله چې علامه د مضارع حذف شوه نو علت د حذفيت د همزه لاړو او دا همزه وصليه نه ده **مقطوعة** بلكه دا همزه قطعيه ده.

**سوال:** ته وايې چې علامه د مضارع چې حذف شي مابعد ساكن پاتي شي او عين كلمه مكسوره وي نو همزه وصليه مكسوره په اول كې راوړى شي دا قاعده ستا منقوضه شوه په اكرم سره پدې شان سره چې اكرم اصل كې تكرم وو تا حرف مضارعة حذف شوه مابعد ساكن وو او عين كلمه مكسوره ده او همزه وصليه مكسوره اول كې نه ده راوړې بلكه مفتوحه راوړې ده؟

**جواب:** اكرم اصل كې تكرم وو بيا تكرم نقل شو اصل خپل ته تاكرم شو تا حرف مضارعت حذف شوه ما بعد متحرك پاتې شو او اخير كې وقف وكړو نو د تاكرم نه اكرم جوړ شو.

حكم د همزه قطعيه دا دى چې تثبت في الابتداء وفي الدرج او حكم د همزه وصليه دا دى چې تثبت في الابتداء وتسقط في الدرج او همزه وصليه ته همزه وصليه ځكه وايي (١): چې دا د حرف ساكن سره وصل كيږي. (٢): يا همزه وصليه ورته ځكه وائي چې دا متكلم د وجې د تعذر د ابتداء بالساكن نه مقصد د تكلم ته نه رسېدو كله چې همزه وصليه زياته شوه نو مطلوب خپل ته ورسېدو.
(٣): يا دې ته همزه وصليه ځكه وائي چې دا په مينځ كې غورځيږي او مابعد د ماقبل سره يو ځاى كيږي او همزه قطعيه ته قطعيه ځكه وائي چې دا په مينځ كې نه غورځيږي بلكه دا مابعد قطع كوي د ماقبل نه.

## (فعل ما لم يسم فاعله)

**ربط:** هر كله چې فارغ شو مصنف د بيان د اقسام ثلاثه ؤ د فعل نه چې ماضي مضارع او امر حاضر معلوم وو نو شروع يې وكړه په تقسيم د ماضي او مضارع كې په دې شان سره چې هر واحد د ماضي او مضارع نه دوه قسمه دى معلوم او مجهول، يا فعل **مطلقا** دوه قسمه دى: فعل معلوم دى او بل فعل مجهول دى.

**وجه د حصر:** (١): فاعل د دې فعل به خالي نه وي يا به معلوم وي او يا به نه وي كه فاعل معلوم وو نو دې ته فعل معلوم وائي د وجې د معلوميت د فاعل نه او كه فاعل يې معلوم نه وو دېته فعل مجهول وائي د وجې د جهالت د فاعل نه.

(٢): دا فعل به خالي نه وي يا به وروسره فاعل ذكر شوى وي او يا به نه وي ذكر، كه ذكر وو نو فعل معلوم (نحو قام زيد)، او كه فاعل ورسره نه وو ذكر نو فعل مجهول نحو ليبك يزيد ضارع، يبك فعل مجهول دى ځكه فاعل ورسره نه دى ذكر بلكه په ځاى د فاعل ورسره مفعول به ذكر دى.

**ترجمه**: (۱): فعل د هغه مفعول **لم يسم** چې نه دی ذکر شوی **فاعله** فاعل نحوي د دې مفعول او اضافت فاعل مفعول ته د ادنی ملابست د وجې نه شوی دی چې هغه (کونه فاعلا لفعل وقع علی المفعول دی. (۲): یا عبارت په حذف د مضاف سره دی ای لم یسم فاعله فعله الواقع علی المفعول (۳): یا فعل مجهول په اصطلاح کې **فعل ما** فعل د هغه فعل دی **ما لم یسم فاعله** چې نه دی ذکر کړی شوی فاعل نحوي د دې فعل او اضافت د فعل ما ته اضافت بیاني دی.

**تشریح:سوال**: دا ما به خالي نه وي یا به یې عبارت وایې د مفعول نه او یا د فعل نه دواړه نه دي صحیح که عبارت یې وایې د مفعول نه نو اضافت د فعل ما ته صحیح کیږي وروستو لم یسم فاعله کې اضافة د فاعل ضمیر ته صحیح نه دی چې راجع دی ما ته او ما عبارت دی د مفعول نه ځکه فاعل د فعل لپاره وي نه د مفعول لپاره او که عبارت یې وائې د فعل نه نو اضافت د فاعل ضمیر ته صحیح دی خو اضافت د فعل ما ته باطل دی ځکه لازمیږي اضافت د شئ الی نفسه؟

**جواب**: معترض چې اعتراض وکړي په شقوق مختلفو سره او مجیب چې جواب کوي نو طریقې د جواب دوه دي: (۱): یا شق ثالث اخلي که احتمال وو او که نه وو نو د شقوق مذکورو نه یو راواخلي او جواب کوي دلته مونږ دواړه شقین اخلو او جواب کوو: (۱): زه ما عبارت د مفعول نه وایم او که ته وایې چې اضافت د فاعل ضمیر ته نه دی صحیح نو د دې نه دوه جوابونه دي: (۱): اضافت د فاعل ضمیر ته اضافت لامي دی او اضافت لامي ادنی ملابست غواړي، او دلته هم اضافت د فاعل الی المفعول راغلی دی د ادنی ملابست د وجې نه چې هغه کون د دې دی فاعل د هغه فعل دپاره چې واقع شوی دی په مفعول به باندې یا جواب دا دی چې دا عبارت په حذف د مضاف سره دی ای لم یسم فاعله فعله الواقع علی المفعول یا جواب دا دی چې دا ما عبارت دی د فعل نه او که ته وایې چې اضافت د فعل ما ته نه دی صحیح ځکه اضافت د شئ الی نفسه راځي نو جواب دا دی چې اضافت د فعل ما ته اضافت بیاني دی.

**سوال**: اضافت بیاني خو د هغه وائي چې مضاف به متخذ وي د مضاف الیه نه او مضاف الیه به متخذ منه وي، او د مضاف او مضاف الیه په مینځ کې به نسبت د عموم خصوص من وجه وي نحو خاتم فضة، نو دلته خو اضافة بیاني نه جوړیږي ځکه دا فعل نه دی متخذ د فعل اخر نه او د دې فعلین په مینځ کې نسبت د عموم خصوص مطلق هم نشته دی بلکه اضافت د عام راغلی دی خاص ته؟

**جواب**: دا اضافت بیانی دی د هغه چا په نزد باندې چې هغه اضافت د عام الی الخاص ته اضافت بیاني وائي ځکه خاص بیان د عام واقع شوی دی.

**سوال**: سمی یسمی تسمیة متعدي کیږي مفعولین ته، مفعول اول ته بالذات او ثاني ته کله بالذات نحو سمیته تخلیص المفتاح او کله بالواسطه نحو سمیته بهدایة النحو او قاعده دا ده چې کوم فعل چې متعدي الی المفعولین وي او د هغې نه فعل مجهول جوړ شي نو هغه متعدي مفعول واحد ته پاتې کیږي او د اول مفعول نه نائب فاعل جوړیږي نو فاعل د لم یسم لپاره نائب فاعل شو نو مفعول ثاني څه شو؟

**جواب:** سمي يسمي تسمية دوه معنو سره راځي: (۱): بمعنی ذکر (۲): بمعنی نام نهادن، که په معنی د نام نهادن سره وي نو متعدي وي مفعولين ته او که په معنی د ذکر سره وي نو بيا متعدي وي مفعول واحد ته او دلته په معنی د ذکر سره دی او قاعده دا ده چې کوم فعل متعدي وي فعل واحد ته او د هغې نه مجهول جوړ شي نو لازم ګرځي نو ځکه لازم شو.

**سوال:** فعل ما لم يسم فاعله په اصطلاح د نحويانو کې څه ته وائي؟

**جواب:** وهو ما حذف فاعله واقيم المفعول مقامه

**(ترجمه) وهو** او فعل ما لم يسم فاعله په اصطلاح کې **ما** فعل دی داسې فعل **حذف** چې پرېښودی شوی دی **فاعله** فاعل نحوي د دې او قائم کړی شوی وي مفعول په مقام د فاعل باندې په اسناد کې نه په صدور کې ځکه حذف د فاعل بې د سد مسد نه ندی جائز او دا قيد دلته مراد دی په تعريف د فعل ما لم يسم فاعله کې، ليکن ماتن نه دی ذکر کړی اکتفاء يې کړې ده په ذکر د دې قيد سره په تعريف د مفعول ما لم يسم فاعله کې

**سوال:** حذف اسقاط عن اللفظ ته وائي نو ستا د تعريف نه معلومه شوه چې متکلم به اول فاعل ذکر کړی وي او بيا به يې لرې کړی وي او مفعول به يې قائم کړی وي په مقام د هغې باندې نو دا تعريف د فعل ما لم يسم فاعله جامع نه شو افرادو خپلو لره خارج شو د دې نه (خلق الانسان ضعيفا) دا رنګې ضرب زيد چې دلته متکلم فاعل لره په کلام کې د سره ذکر کړی نه دی نو اسقاط د فاعل عن اللفظ رانغی؟

**جواب:** دا اعتراض به ستا هله وارديدو چې دا عبارت د مصنف بنا وی په حقيقت باندې ليکن دا عبارت د مصنف بنا دی په مجاز باندې چې ذکر د خاص دی چې حذف دی او مراد ترېنه عام دی چې ترک دی.

**سوال:** تعريف د فعل ما لم يسم فاعله مانع نه شو د دخول د غير نه داخل شو پکې انبت الربيع البقل ځکه انبت يو فعل دی او فاعل يې ترک شوی دی چې الله دی او مفعول قائم شوی دی په مقام د فاعل باندې چې الربيع دی نو تعريف د فعل مجهول په دې باندې صادقيږي او دا فعل مجهول نه دی؟

**جواب:** فاعله کې دا اضافت اضافت عهدي خارجي دی مراد د فاعل نه فاعل نحوي دی نه فاعل حقيقي په معنی د موجد سره نو تعريف صادق نه شو په انبت الربيع البقل باندې ځکه دلته فاعل نحوي نه دی ترک شوی بلکه فاعل نحوي يې ذکر دی چې الربيع دی.

**سوال:** فعل ما لم يسم فاعله په اصطلاح کې هغه فعل ته وائي چې فاعل حذف شوی وي او مفعول يې قائم شوی وي په مقام د هغې باندې ځکه حذف د فاعل بغير د سد مسد نه ندی جائز نه واقيم المفعول مقامه فيه مراد دی نو مصنف ولې نه دی ذکر کړی؟

**جواب:** منم چې دا قيد مراد دی خو مصنف نه دی ذکر کړی ځکه اکتفاء يې کړې ده په ذکر د دې قيد سره په تعريف د مفعول ما لم يسم فاعله کې.

**ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د تعريف د فعل ما لم يسم فاعله نه نو شروع يې وکړه په بيان د کيفيت او طريقه د فعل ما لم يسم فاعله کې **فان کان ماضيا** کې دا فاء تفصيليه ده ان حرف شرط دی

كان ماضيا جمله شرطيه ده او جزاء يې مقدره ده چې غيرت دى او ضم اوله وكسر ماقبل اخره..الخ
دا بيان د تغير دى او دال دى په جزا مقدره باندې
**ترجمه:فان كان** پس كه چرته وي هغه فعل معلوم چې اراده كړى شوې ده د حذف د فاعل نحوي د هغې او اقامت د مفعول په مقام د فاعل باندې **ماضيا** فعل ماضي نو تغير كولى شي په صيغه د ماضي معلوم كې لپاره د دې چې التباس رانه شي د صيغه د فعل معلوم د صيغې د فعل مجهول سره هغه تغير دا دى چې **ضم اوله** ضمه وركولى شي حرف اول د ماضي معلوم لره **وكسر** او كسره وركولى شي **ما** هغه حرف لره **قبل اخره** چې مخكې د حرف اخير د ماضي معلوم نه راغلى وي چې هغه عين كلمه ده په دې شرط سره چې هغه مكسور نه وو او كه ماقبل اخير د ماضي معلوم مكسور وو لكه عَلِمَ نو بيا كسره په خپل حال باندې باقي پاتې كولى شي او ضمه د حرف اول او كسره د ماقبل اخير په درې مادو كې راځي:
(۱): ثلاثي مجرد نحو يضرب (۲): رباعي مجرد نحو دحرج (۳): باب افعال نحو اكرم. ځكه شارح جامي درې مثالونه ذكر كړي دي
**سوال:** (فان كان ماضيا) شرط دى او (ضم اوله او كسر ماقبل اخره) جزا ده او جزاء مرتبه وي په شرط باندې او دلته ترتب د جزاء په شرط باندې نه دى صحيح؟ **جواب:** (فان كان ماضيا) شرط دى او جزاء د دې محذوفه ده چې غيرت صيغته دى او (ضم اوله) دال بالجزاء دى.
**سوال:** د فعل ما لم يسم فاعله لپاره دا وزن ولې مختار كړى شو؟ جواب: ځكه چې معنى د فعل مجهول غريبه ده يعنى مخالفه ده د عقل نه ځكه د عقل تقاضه دا ده چې اسناد د فعل فاعل ته كوه او دې متكلم اسناد د فعل مفعول ته كړى دى او دا وزن هم غريب دى ځكه اولاً په دې وزن باندې په استعمال د كلام د عرب كې اسم نه دى راغلى نو د فعل ما لم يسم فاعله لپاره دا وزن غريبه وګرځولى شو لپاره د دې چې دلالت وكړي غرابت د وزن په غرابت د معنى باندې.
**سوال:** لكه څنګه چې فُعِلَ وزن غريب دى درانګې فعَلَ وزن غريب دى نو فعُلَ وزن ورله ولې ونه ګرځولى شو چې په غرابت د معنى يې دلالت كړى وى؟ **جواب:** فعُلَ وزن اګر چې غريب دى دلالت كوي په غرابت د معنى باندې ليكن خروج د كسرې نه ضمې ته اثقل دى نو نشته دى ضرورت په اختيار د دې وزن كې پس د حصول د مقصود د متكلم نه په هغه وزن سره چې هغه اخف دى، د دې نه.
**سوال:** ته وايې چې ماضي مجهول كې حرف اول لره ضمه او ماقبل اخير لره كسره وركولى شي دا خبره ستا منقوضه شوه په عُلِم سره چې مجهول د علَم دى په دې شان سره چې دلته فقط حرف اول لره ضمه وركړې ده او ماقبل اخير لره كسره نه وركوي ځكه هغه مكسور دى او مكسور لره كسره نه شي وركولى؟
**جواب:** (كسر ما قبل اخره ان لم يكن مكسورا) **ويضم الثالث مع همزة الوصل** او ضمه وركولى شي حرف ثالث لره په حال كون د دې حرف ثالث كې چې دا معى وي د همزه وصليه سره، يعنې د كومې ماضي په اول سر كې چې همزه وصليه راغلې وه نو حرف اول او ثالث لره ضمه وركولى شي نحو انطلق

اقتدر استخرج، لپاره د دې چې التباس رانه شي د ماضي مجهول د امر د دې باب سره په حالت د وقف او درج کې **والثاني مع التاء** او ضمه ورکولی شي حرف ثاني لره په حال کون د دې حرف ثاني کې چې دا مقرون وي سره د تاء نه چې هغه راغلې ده په اول سر د ماضي کې چې هغه د رې بابونه دي دوه د ثلاثي مزيد باب تفعل او تفاعل او يو رباعي مزيد چې باب تفعلل دی چې دوی په اول کې تاء زائده راغلې ده د دې د ماضي معلوم نه چې مجهول جوړ وی نو تا لره ضمه ورکولی شي سره د حرف ثاني نه نحو تعلم و تجومل و تدحرج، لپاره د دې چې لازم شي التباس د ماضي مجهول د باب تفاعل د مضارع معلوم د باب مفاعلې سره او لازم نه شي التباس د ماضي مجهول د باب تفعلل د مضارع معلوم د باب فعلل سره خوف اللبس دا منصوب دی بنا پر مفعول لره.

**اللبس** بفتح اللام ويكسر اللام مصدر دی د لبس يلبس د باب ضرب يضرب نه راخي په معنی د التباس سره نحو قوله تعالی وَلَا تَلْبِسُوا الْحَقَّ بِالْبَاطِلِ او **اللبس** بضم اللام مصدر دی د لبس يلبس د باب علم يعلم نه په معنی د جامو اغوستلو سره ومعتل العين ماضي مجهول د اجوف د ثلاثي مجردو چې عين كله د هغې کې اعلال کړی شوی وي لغات ثلاثه دي او که عين کلمه کې يې اعلال نه وو شوی په هغې کې لغات ثلاثه نه راځي په طُوِيَ او رُوِيَ عُوِرَ اوسُوِدَ شو په طوی او روی کې اعلال نه دی کړی لپاره د دې چې لازم نه شي توالي د اعلالين په مضارع د دې کې او عور او سود کې اعلال نه دی کړی ځکه دا محمول دی په اعْوَرَ او اسْوَدَ باندې لاتحاد المعنی او اعور اسود کې اعلال نه دی کړی د وجې د عدم وجود د قاعدې د اعلال نه.

**الافصح** افصح لغت په دې ماضي مجهول کې **قيل او بيع** دی په نقل د حرکت سره په دې شان سره چې قيل اصل کې قول وو كسره بر واو ثقيل بود نقل كرده بما قبل دادند بعد از سلب حركت او تا قُوِلَ گشت قولَ شد بعده واو ساكن مظهر ما قبلش مكسور بنا بر ان واو را به يا بدل كردند تا قولَ گشت قيل شد. بِيعَ اصل کې بُيِعَ وو كسره بر يا ثقيل بود نقل كرد به ماقبل دادند بعد از سلب حركت او تا بُيعَ گشت بيعَ شد. **وجاء** او راغلی دی په ماضي مجهول او اجوف د ثلاثي مجردو کې چې عين كلمه کې يې اعلال شوی دی **الاشمام** اشمام:

اشمام کې لابدي ده د معرفة د امور خمسو نه: (۱): مفهوم لغوي. (۲): اقسام. (۳): تعريف د اقسامو. (۴): غرض د اشمام. (۵): معرفة د شرط د اشمام.

نو اشمام صيغه د مصدر ده د باب افعال نه په لغت کې بويانيدن چيزی را گويند او په اصطلاح کې دوه قسمه ده: وقفي، صرفي. اشمام وقفي ضم د شفتين ته وائي فقط عند الوقف. او اشمام صرفي مائل كول د كسرې د فاء كلمه دي طرف د ضمې ته په دې شان سره چې نيمه كسره ووايې او نيمه ضمه ووايې او وريسې ياء مائله كړې طرف د واو ته په دې شان سره چې نيمه ياء ووايې او نيم واو ووايې، او غرض د اشمام ايذان او اعلام دی په اصل باندې چې اصل کې اول حرف د دې په ضمې باندې وو او شرط لپاره د اشمام كسره د فاء كلمه ده او كون العين ياء دی.

**والواو** او دریم لغت راغلی دی په ماضي مجهول د اجوفو د ثلاثي مجردو کې په واو سره نو ویلی کیږي قُولَ او بُوعَ په انداخت سره بې د نقل د حرکت نه په دې شان سره چې قول اصل کې قُولَ وو، کسره بر واو ثقیل بود انداختن قُول گشت قول شد، بوع اصل کې بیع وو کسره بر یا ثقیل بود انداختن بعده یا ساکن مظهر ما قبلش مضموم بنا بر ان یاء را به واو بدل کردند تا بیع گشت بوع شد او دا ارده د لغاتو نه دي پس شو په ماضي مجهول د اجوف د ثلاثي مجردو کې لغات ثلاثه (۱) قیل وبیع افصح (۲) اشمام فصیح (۳) قول وبوع ضعیف. **ومثله** او په شان د ماضي مجهول د اجوف د ثلاثي مجردو نه چې عین کلمه د هغې کې اعلال شوی وي باب اختیر وانقید ماضي مجهول د اجوف ده د باب افتعال او باب انفعال نه په جریان د وجوه ثلاثه ؤ کې ځکه چې تیرَ او قید په شان د قیل او بیع باندې دي بلا تفاوت لهذا اختیر او انقید کې لغات ثلاثه دي. افصح اختیر انقید دی په نقل د حرکت سره چې اختیر اصل کې اختیرَ وو کسره په یاء باندې ثقیله وه نقل شوه ما قبل ته بعد از سلب حرکت او تا اختیر گشت اختیر شد او انقید اصل کې انقُوِد وو کسره بر واو ثقیل بود نقل کرده به ما قبل دادند بعد از سلب حرکت او بعده واو ساکن مظهر ما قبلش مکسور بنا بر ان واو را به یا بدل کردند تا انقود گشت انقید شد.

(۲): دویم لغت اشمام دی. (۳): او دریم اختور او انقود دی په انداخت د حرکت سره بې د نقل د حرکت نه په دې شان سره چې اختور اصل کې اختیر وو کسره بر یا ثقیل بود انداختن بعده یا ساکن مظهر ما قبلش مضموم بنا بر ان یاء را به واو بدل کردند اختور شد. انقود اصل انقود وو کسره بر واو ثقیل بود انداختند انقود گشت انقود شد. **دون استخیر واقیم** او نه دی ماضي مجهول د اجوف د باب استفعال او باب افعال نه په شان د ماضي مجهول د اجوف ثلاثي مجردو په جریان د وجود ثلاثه ؤ کې بلکه په ماضي مجهول د اجوف د باب استفعال او باب افعال کې متعین دی نقل د حرکت، او اشمام او انداخت پکې نه دی جائز ځکه دا درې لغات په هغه ځای کې راځي چې واو او یا مکسور وي او ما قبل مضموم وي او په استخیر او اقیم کې د واو او یا مکسور نه مخکې مضموم نه دی ځکه استخیر اصل کې استخیر وو په سکون د ماقبل سره کسره بر یا ثقیل بود نقل کرده بماقبل دادند تا استخیر گشت استخیر شد. اقیم اصل کې اقوم وو کسره بر واو ثقیل بود نقل کرده به ماقبل دادند تا اقوم گشت اقوم شد بعده واو ساکن مظهر ما قبلش مکسور بنا بر ان واو را به یا بدل کردند اقوم گشت اقیم شد. **وان کان مضارعا** او که چرته وو هغه فعل چې اراده کړی شوې ده د حذف د فاعل د هغه او د اقامت د مفعول مقام الفاعل فعل مضارع، نو جزاء محذوفه ده چې غیرت الصیغة مغائر کولی شي صیغه لپاره د دې چې لازم نه شي التباس په مابین د مضارع معلوم او مجهول کې هغه تغیر دا دی چې **ضم اوله** ضمه ورکولی شي حرف اول د فعل مضارع لره چې هغه علامه د مضارع ده لپاره د موافقت د فرع چې مضارع ده د اصل سره چې فعل ماضي ده **وفتح ما قبل اخره** او فتحه ورکولی شي هغه حرف لره چې هغه مخکې د حرف اخیر د مضارع نه وي چې هغه عین کلمه ده لپاره

د حصول د خفت د وجې د ثقل د مضارع نه په زيادت سره که چرې مفتوح نه وو او که مفتوح وو نو
يا په خپل حال باندې باقي پاتې کولى شي نحو يضرب يكرم يستخرج يتدحرج.
**ومعتل العين** او مضارع مجهول د اجوب **ينقلب فيه العين الفا** ګرځي په ماضي مجهول د اجوفو کې عين
کلمه چې واوا او ياء دي الف د وجې د تحرك د واو او ياء نه حقيقتا يا حكما او د انفتاح د ماقبل نه
في المال نحو يقال ويباع ويختار وينقاد ويستخار. يقال که در اصل يقول بود واو متحرك ماقبلش
حرف صحيح ساكن بنا بران حركت واو را نقل كرده به ما قبل دادند بعد از سلب حركت او، واوې كه
مفتوح بود اكنون ساكن ګشت بعده واو او را به يا بدل كردند تا يقول ګشت يقال شد.

## المتعدي وغير المتعدي

**ربط:** هر كله چې فارغ شو مصنف د تقسيم د فعل نه اقسام ثلاثه ؤ ته باعتبار الزمان نو شروع يې وكړه په
تقسيم اخر د فعل كې نو عين ته په اعتبار د تعديت او د لزوم سره نو وې ويل المتعدي وغير المتعدي.
**ترجمه:** دا ما سياتي تر يو حده پورې بحث او بيان د فعل متعدي او غير متعدي دى په دې تقسيم د
فعل كې په اعتبار د تعديت او لزوم سره اختلافات د نحويانو دي جمهور وائي چې فعل په اعتبار د
تعديت او دلزوم سره دوه قسمه دي (١) فعل متعدي (٢) فعل لازم فقط او بل: قسم پكي نشته يعني
داسي فعل نشته په استعمال د كلام د عرب كښې چې هغه نه لازم وي او نه متعدي وي (٣) او بعض
نحويان وائي چې فعل په اعتبار د تعديت او د لزوم سره په درې قسمه دي. (١) متعدي نحو ضرب
(٢) لازم نحو قام (٣) چې نه متعدي وي او نه لازم وي لكه كان او اخوات دهغه شو څكه دا نصب نه
وركوي مفعول به لرې او نه متعدي كيږي په واسطې د حرف جر سره نو معلومه شوه چې نه لازم دي او
نه متعدي دي (٢) يا لكه شكر، او نصح شو دا كله نصب وركوي اسم لره با الذات او كله متعدي
كيږي په واسطې د حرف جر سره نحو شكرته وشكرت له ونصحته ونصحت له، نو معلومه شوه چې
نه لازم دي او نه متعدي دي (جواب) د طرفه د جمهورو نه دادي چې فعل او لا دوه قسمه دي (١) يو
فعل تام دي (٢) فعل ناقص دي فعل تام دوه قسمه دي (١) متعدي (٢) لازم، نو كان او اخوات د كان
خود سره په مقسم كښې ندي داخل او هر چې دي شكر، او نصح دا دواړه خارج ندي د قسمين نه
بلكې شان سره چې دا دواړه يا خو متعدي دي او شكرت له او نصحت له كښې لام زائد دي په شان د
ردف لكم باندې يا دواړه لازم دي متعدي كيږي په واسطې د لام سره او شكرته او نصحته كښې دا
ضمير منصوب دي په نزع د حافض سره په شان د وَاخْتَارَ مُوسَىٰ قَوْمَهُ باندې. او كه ومنم چې مقسم د
متعدي او لازم لپاره مطلق فعل دي بيا فاعل او مفعول عام دي كه عين فاعل او مفعول به وي او كه
شبه د فاعل او مفعول به وي نو بنا پدې افعال ناقصه په فعل متعدي كښې داخل دي نو فعل دوه
قسمه شو (١) متعدي (٢) غير متعدي (وجه د حصر) په مابين ددې قسمين كښې داده چې دا فعل به
خالي نوي يا به په فهم كښې محتاج وي متعلق ته او يا به نوي كه محتاج وو نو متعدي او كه نه وو
محتاج نو غير متعدي. (٢) دا فعل به خالي نوي يا به پس د صدور ددې فعل د فاعل نه واقع شوي

وي په مفعول به باندي او يا به نوي واقع شوي که واقع شوي وو نو فعل متعدي او که نه وو واقع شوي نو فعل لازم. (۳) دا فعل به خالي نوي يا به عمل د نصب بنا بر مفعول به کوي او يا به نکوي که کوو يې نو متعدي او که نه يې کوو نو لازم. (۴) دا فعل به خالي نوي يا به متصل کيږي پدي پوري هاء ضميري غير مصدري يا به نه متصل کيږي که متصل کيده نو فعل متعدي او که نه متصل کيده نو فعل غير متعدي.

**فالمتعدي: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د فعل متعدي او غير متعدي نه اجمالاً نو شروع وکړه په بيان ددي نو عين کښي تفصيلاً نو وي ويل فالمتعدي الخ نو دا فا په فالمتعدي کښي تفصيلي ده او هر کله چې مفهوم د فعل متعدي وجودي وو او مفهوم د غير متعدي عدمي وو نو مقدم يې کړو متعدي په غير متعدي باندي هم په جانب د اجمال کښي او هم په جانب د تفصيل کښي. په متعدي کښي لابدي ده د معرفت د امور خمسونه (۱) مفهوم لغوي (۲) مفهوم اصطلاحي (۳) وجه د تسميه (۴) معرفت د علامه (۵) معرفت د اقسامو. نو متعدي په لغت کښي متجاوز ته وائي او په اصطلاح کښي ما يتجاوز الفعل من الفاعل الى المفعول بالذات به ته وائي (۲) يا په اصطلاح کښي **ما** هغه فعل ته وائي **يتوقف** چې موقوف وي **فهمه** فهم ددي فعل (**على متعلق**) په يو معمول پوري ما سوى د فاعل نه.

**سوال:** تعريف د فعل متعدي مانع نه شو ددخول د غير نه داخل شو پکښي فعل لازم لکه قام شو دا موقوف دي په فهم د معنى ددي کښي په متعلق باندي چې فاعل دي.

**جواب:** متعلق په اصطلاح د نحويانو کښي هغې معمول د فعل ته وائي چې غير د فاعل نه وي ځکه د فعل او د فاعل په مينځ کښي چې کوم نسبت دي هغې ته اسناد وائي او فاعل ته مسند اليه وائي نه متعلق او نسبت د فعل چې وشي د فاعل نه علاوه بل معمول ته هغې ته تعلق وائي او هغه معمول ته متعلق وائي نو فعل لازم خارج شو د تعريف د متعدي نه ځکه هغه په فهم کښي متعلق ته ندي محتاج بلکه محتاج دي فاعل ته.

**سوال:** تعريف د فعل متعدي مانع نه شو ددخول د غير نه داخل شو پکښي فعل لازم ځکه دا په فهم کښي موقوف دي په مفعول فيه ظرف زمان او مفعول فيه ظرف مکان پوري او دا غير د فاعل نه دي.

**جواب:** مراد د توقف نه توقف في الفهم دي نه توقف في الوجود او فعل لازم په وجود کښي موقوف دي په مفعول فيه پوري نه په فهم کښي او فعل متعدي هغې ته وائي چې هغه په فهم کښي موقوف وي متعلق ته چې هغه مفعول به دي. او متعدي ته متعدي ځکه وائي چې متعدي په لغت کښي متجاوز ته وائي او کوم فعل چې په فهم کښي محتاج وي متعلق ته دا هم تجاوز کوي د فاعل نه مفعول به ته. او علامه د فعل متعدي داده چې متصل کيږي پدي پوري هاء ضميري چې نوي راجع مصدر ته نو پدي سره احتراز راغي د قمته نه ځکه دا ضمير چې متصل دي په قمت پوري دا ضمير د مصدر دي ځکه راجع دي مصدر د فعل مذکور ته چې قيام دي فيکون معنى قمته قمت القيام.

**سوال:** د قمته څه ترکيب دي؟ **جواب:** قمت فعل فاعل (ه) ضمير منصوب متصل راجع بسوئي مصدر فعل مذكور منصوب محلا بنا بر مفعول مطلق فعل سره د فاعل او سره د مفعول مطلق نه جمله فعليه خبريه **كضرب**، مثال د فعل متعدي لكه ضرب شو، دا فعل متعدي دي څكه معنى د ضرب چې زدن دي په فهم كښې محتاج ده متعلق ته چې مضروب دي او پدي ضرب پوري هاء ضميري غير مصدري متصل كيږي نحو زيد ضربته. **(وغير المتعدي بخلافه)** او فعل غير متعدي په اصطلاح كښې هغه فعل ته وائي چې دا كائن وي په خلاف د فعل متعدي باندي يعني لايتوقف فهمه على متعلق غير الفاعل (**كقعد**) مثال د فعل غير متعدي لكه قعد شو، دا قعد فعل لازم دي څكه معني ددي نه دا موقوف په فهم كښې د فاعل نه علاوه په بل شي پوري بلكه معنى د قعد سره د فاعل نه فهم د سامع او مخاطب ته راځي بي د ذكر د امراخر نه او پدي قعد پوري ها ضميري غير مصدري نه متصل كيږي. بل مثال د فعل لازم لكه افعال السجايا شو يعني هغه افعال چې هغه دلالت كوي په طبيعت باندي لكه نهم شرف كرم وغيره شو او دارنګي هغه افعال چې دلالت كوي په نظافت يا په د نس باندي هغه لازم راځي او هغه فعل چې واقع كيږي مطاوع د فعل متعدي الى مفعول واحد لازم راځي او فعل د رباعي مزيد فيه او ملحقات د رباعي مزيد فيه لازم راځي.

**والمتعدي يكون الى واحد: ربط:** هر كله چې فارغ شو مصنف د تعريف د فعل متعدي او غير متعدي نه نو شروع يې وكړه په تقسيم د فعل متعدي كې اقسام ثلاثه ؤ ته نو وې ويل (**والمتعدي الخ**)، فعل متعدي دري قسمه دى: (١): **يكون الى واحد** كله فعل متعدي كيږي مفعول واحد ته **كضرب** لكه ضرب شو دارنګي افعال الحواس شو چې هغه ابصرت شممت، ذقت، سمعت، لمست دي دا متعدي كيږي مفعول واحد ته يقال ابصرت زيداً، ذقت العسل، شممت الريح، وسمعت الكلام، لمست الجلد. **والى اثنين** او متعدي كيږي دوه مفعولو ته او كوم فعل چې متعدى كيږي مفعولين ته دا دوه قسمه دى: (١) يو هغه دى چې مفعول ثاني غير دى د اول نه لكه **اعطى** شو، نحو قوله تعالى: إِنَّآ أَعۡطَيۡنَٰكَ ٱلۡكَوۡثَرَ.

(٢): بل هغه دى چې هغه متعدي وي مفعولين ته او مفعول ثاني عين مفعول اول وي، دا بيا دوه قسمه دي: يو افعال قلوب دي لكه علم شو، او بل افعال التحويل والتصيير دي، دا اووه دي: صير، رد، ترك، تخذ، اتخذ، جعل، وهب. دا شپږ وروستني افعال متعدي كيږي مفعولين ته په دې شرط سره چې په معنى د صَيرَ سره وو مثال د رَد كقوله تعالى وَدَّ كَثِيرٞ مِّنۡ أَهۡلِ ٱلۡكِتَٰبِ لَوۡ يَرُدُّونَكُم مِّنۢ بَعۡدِ إِيمَٰنِكُمۡ كُفَّارًا مثال د ترك: قوله تعالى وَتَرَكۡنَا بَعۡضَهُمۡ يَوۡمَئِذٖ يَمُوجُ فِي بَعۡضٖ وقول الشاعر:

كم عاقل عاقل اعيت مذاهبه — وجاهل جاهل تلقاه مرزوقاً

هذا الذي ترك الاوها حائرة — وصير العالم النحرير زنديقا

او مثال د تخذ كقول الشاعر:

واخوان تخذتهم دروعا — فكانوها ولكن للاعادي

مثال د اتخذ: قوله تعالى وَاتَّخَذَ اللَّهُ إِبْرَاهِيمَ خَلِيلًا. مثال د جعل: قوله تعالى: فَجَعَلْنَاهُ هَبَاءً مَّنثُورًا مثال د وهب: نحو وهبي الله فداء المخلصين.

**والى ثلاثة** او كله فعل متعدي كيږي درې مفاعيل ته او تنوين د ثلاثه تنوين عوضي دى عوض د مضاف اليه نه راغلى دى او مضاف اليه تميز د دې حذف شوى دى اصل کې والى ثلاثة مفاعيل وو، او هغه افعال چې متعدي كيږي مفاعيل ثلاثه ؤ ته هغه اووه دي **اعلم، ارى، انباء... الخ** او انباء متعدي كيږي مفاعيل ثلاثه ؤ ته په دې شرط سره چې بمعنى اعلم وو او كه په معنى د اعلم سره نه وو بلكه بمعنى اخبر وو بيا نه متعدي كيږي مفاعيل ثلاثه ؤ ته نحو قوله تعالى: أَنبِئْهُم بِأَسْمَائِهِمْ او ارى دوه قسمه دي يو هغه دى چې جوړ شوى دى د رايت بمعنى علمت نه دا متعدي دى مفاعيل ثلاثه ؤ ته نحو قوله تعالى: يُرِيهِمُ اللَّهُ أَعْمَالَهُمْ حَسَرَاتٍ عَلَيْهِمْ. دويم هغه ارى دى چې جوړ شوى دى د رايت بمعنى ابصرت نه دا متعدي دى مفعولين ته نحو قوله تعالى وَيُرِيكُمْ آيَاتِهِ، او داسې فعل په استعمال د كلام د عربو کې وجود نه لري چې هغه متعدي شوي وي مفاعيل اربعه ؤ ته بلكه فعل متعدي كيږي مفعول واحد ته يا اثنين ته يا ثلاثه ؤ ته. ولا يتجاز ثلاثا. لهذا كه يو سړى ووايې په سوال کې چې ما ته يو فعل وښايه چې متعدي وي مفاعيل اربعه ؤ ته نو ته به ورته په جواب کې ووايې چې داسې فعل په كلام د عربو کې وجود نه لري نو زه به مثال څنګه ذكر كړم.

**قاعده:** (۱): كوم فعل چې متعدي وو مفعول واحد ته او د هغې نه مجهول جوړ شي نو لازم ګرځي. (۲): او كوم فعل چې متعدي وو مفعولين ته او د هغې نه مجهول جوړ شي نو متعدي مفعول واحد ته پاتې كيږي. (۳): او كوم فعل چې متعدي وو مفاعيل ثلاثه ؤ ته او د هغې نه مجهول جوړ شي نو هغه متعدي مفعولين ته پاتې كيږي ځكه چې فاعل چې ترك شو نو يو مفعول قائم شو په مقام د فاعل باندې او دوه پاتې شو. او طرق د تعديت د فعل لازم شپږ دي:

(۱): فعل لازم متعدي كولى شي په زيادت د همزه د باب افعال سره نحو اذهب زيد عمرا.

(۲): په واسطې د حرف جر سره نحو قوله تعالى ذَهَبَ اللَّهُ بِنُورِهِمْ.

(۳): په تضعيف سره نحو فرحت زيدا. (۴): په نقل سره باب مفاعلې ته نحو ماشيت زيدا.

(۵): په نقل سره باب استفعال ته نحو استخرجت زيدا.

(۶): فعل لازم متعدي كيږي كله چې متضمن شي معنى د فعل متعدي لره نحو رحبتك الدار.

او طرق د لزوم د فعل متعدي هم شپږ دي: (۱): چې فعل متعدي باب انفعال ته وخېژولى شي نو لازم ګرځي. (۲): چې فعل متعدي باب افعال ته وخېژولى شي نو كله كله لازم ګرځي نحو احمد، واكب، واقشعت. (۳): فعل متعدي لازم ګرځي چې متضمن شي معنى د فعل لازم لره.

(۴): چې فعل متعدي وي مفعول واحد ته او د هغې نه مجهول جوړ شي نو لازم ګرځي نحو ضربت زيدا.

(۵): باب مفاعله متعدي مفعول واحد ته چې باب تفاعل ته وخيژي نو لازم ګرځي نحو تقاتل زيد وعمرو.

(١) فعل متعدي لازم گرځي په تنزيل سره نحو [ هل يستوي الذين يعلمون والذين لايعلمون ] . دېته لازم تنزيلي وائي.

بيه او دا افعال چې متعدي دي مفاعيل ثلاثه ۇ ته **مفعولها الاول** مفعول اول د دې افعال **كمفعول اعطيت** په شان د مفعول د اعطيت دی په جواز د اختصار کې په دې شان سره چې مفعول اول د اعلم حذف كول هم جائز دي او ذكر كول هم جائز دي **والثاني والثالث** او مفعول ثاني او ثالث د دې افعال متعدي الى ثلاثة مفاعيل **كمفعول علمت** په شان د مفعولين علمت دی په عدم جواز د اختصار کې په دې شان سره چې يا به دواړه ذكر كوې او يا به دواړه حذف كوې او ذكر د احدهما او حذف د اخر ممتنع دی.

## افعال القلوب

بيه: هر كله چې د افعال قلوبو لپاره احكام مختصه وو په دې شان سره چې دغه احكام مختص دي په افعال قلوب پورې او مجاوز نه دی نورو افعال ته چې هغه متعدي دي مفعولين ته پس ذكر يې كړه افعال قلوب لپاره د بيان د احكام مختصو الاپدي عنوان كښې لابدي ده د معرفت د امور عشرونه (١) معرفت د ذات (٢) اسم (٣) وجه د تسميه (۴) تعداد (۵) مصداق (۶) مدخول (٧) غايه ددخول (٨) عمل (٩) شرط د عمل (١٠) احكام مختصه ددي نوع.

نو دا نوع په اعتبار د ذات سره افعال دي نه اسماء او نه حروف. او نوم ددي افعال قلوب دي او افعال اليقين والشك ورته هم وائي. او افعال الدواخل والنواسخ ورته هم وائي.

افعال قلوب ورته وائي لصدورها عن القلب ولادخل فيها في للجوارح او افعال اليقين والشك ورته ځكه وائي چې بعض دلالت كوي په يقين باندي او بعض دلالت كوي په شك باندي او افعال الدواخل ورته ځكه وائي چې دا افعال داخليږي په مبتدا او خبر باندي او افعال النواسخ ورته ځكه وائي چې دا مخكې عمل منسوخ كوي اودا افعال اوه دي په نزد ابن حاجب باندي او څوارلس دي په نزد ابن مالك باندي اوه دا مذكور دي (**ظننت حسبت الخ**) او ددي نه علاوه نور اوه ۀادي (حجا، دری، غد، جعل، هب، تعلم، اتقول) او مدخول ددي مبتدا او خبر دي او داخليږي په مبتدا او خبر باندي ليفيد العلم والظن للحكم الواقع في الجملة الاسمية مثال لكه زيد فاضل مطلق دي ندي مقيد په يقين سره او كله چې اوئلي شي علمت زيدا فاضلا، نو معلومه شوه چې فضيلت د زيد پيدا شوي دي د يقين نه او عمل ددي نصب دي په مبتدا او خبر دواړو كښې بنا بر مفعوليت پدي شان سره چې د مبتدا نه مفعول اول جوړوي او د خبر نه مفعل ثاني جوړوي او شرطونه دعمل يې دوه دي (١) يو دا چې دا افعال به وروسته د مفعولين نه يا په مينځ د مفعولين كښې نوي (٢) دا به مخكې د حرف نفي حرف استفهام، لام تاكيد، او قسم نه نوي راغلي، او اضافت د افعال چې بې القلوب ته وكړي نو پدې سره بې احتراز وكړو د افعال الجوارح نه ځكه افعال دوه قسمه دي (١) يو افعال الجوارح دي او افعال العلاج ورته هم وائي او (٢) بل افعال قلوب دي.

**وجه د حصر**: دا فعل به خالي نوي يا به په صدور ددي کښي د فاعل نه جوارحو لره دخل وي او يا به نوي که دخل وو نو افعال الجوارح والعلاج او که دخل نه وو نو افعال قلوب، او دغه افعال القلوب ته عند النحات افعال اليقين والشك هم وائي ځکه بعض افعال ددوي نه راځي د يقين دپاره لکه علمت رايت وجدت شو او بعضي رازي د شك لپاره لکه ظننت حسبت او خلت شو او شك دلته په معنی د ظن سره دي نه په معنی د تساوي د طرفين سره.

پدي سره دفع د اعتراض وشوه **اعتراض** دادي چې ته وائي چې بعض افعال قلوب رازي د شك لپاره نو شك خو استواء د طرفين ته وائي او دا افعال خو د استواء د طرفين لپاره نه رازي. **جواب**: شك دلته په معنی منطقي سره ندي بلکه مرادف د ظن دي جانب راجح ته وائي. او زعمت مشترك دي بين اليقين و الشك. **تدخل على الجملة الاسمية** داخليږي دا افعال قلوب په جمله اسميه باندي.

**سوال**: افعال قلوب په جمله اسميه باندي ولي داخليږي؟

**جواب**: **لبيان** لپاره د اظهار د متکلم **ما** هغه علم او هغه ظن لره (**هي**) چې دغه جمله من حيث الاخبار دمتکلم په مضمون ددي جملي سره ناشي دي (**عنه**) ددغه علم او ظن نه. مثال لکه کله چې ته ووائي علمت زيدا قائما منشا لپاره د اخبار د متکلم په مضمون د جملي اسمي سره چې قيام زيد دي دغه علم دي، او ظننت زيدا قائما چې ووائي نو منشا لپاره د اخبار د متکلم په مضمون ددي جملي سره ظن دي او که د متکلم ظن نه وي نو اخبار به يي په مضمون ددي جملي سره نه وي کړي.

**سوال**: افعال قلوب چې داخل شي په جمله اسميه باندي نو څه عمل کوي؟

**جواب**: (**فتنصب الجزئين**) نصب ورکوي دا افعال قلوب جزئين د جملي اسمي لره چې هغه مبتدا او خبر دي بنا بر مفعوليت پدي شان سره چې د مبتدا نه مفعول اول او د خبر نه مفعول ثاني جوړوي.

**ومن خصائصها**: **ربط**: هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د مصداق، مدخول او عمل د افعال قلوب نه نو شروع يي وکړه په بيان د احکام مختصه د افعال قلوب کښي ځکه داي ذکر کړي دي پس د بيان د اقسام د فعل متعدي نه لپاره د بيان د احکام مختصو.

**ترجمه**: **ومن خصائصها**: بعض د احکام مختصه د افعال قلوب نه. خصائص جمع د خصيصة ده او خاصه او خصيصة ما يوجد فيه ولا يوجد في غيره ته وائي او يو حکم د هغه احکام نه چې موجوديږي په افعال قلوب کښي نه په غير کښي (**انه**) شان د خبري دا دي (**اذا ذكر احد هما**) چې کله ذکر کړي شي يو مفعول (**ذكر الاخر**) نو ذکر کولي به شي مفعول اخر يعني اقتصار على احد المفعولين نه دی جائز ځکه مفعول به په حقيقت کي مضمون د جملي دی او مضمون د جملي جوړيږي د مفعول اول او ثاني دواړو نه اوس که موږ احدهما حذف کړو بې د اخر نه نو لازميږي حذف د بعض اجزاؤ د کلمه سره د بقاء د بعض نه لکه رؤيت جعفر کي رايت جع اوايي په حذف د فر سره او دا نه دی جائز لهذا په افعال قلوب کې به يا دواړه مفعولين ذکر کوي او علمت زيدا فاضلا به وايي يا به حرف علمت وائې په حذف د مفعولين سره ليکن علمت زيدا په حذف د فاضلا سره يا علمت فاضلا په حذف د زيد سره

په دی جائز او هر چې دی دا قول د الله ﴿وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِينَ يَبْخَلُونَ بِمَا آتَاهُمُ اللَّهُ مِن فَضْلِهِ هُوَ خَيْرًا لَّهُم﴾ مفعول اول د دې حذف شوی نه دی چې بخلهم دی، بلکه مفعول اول د دې هو دی او دا ضمير مرفوع منفصل دی واقع شوی دی په موضع د منصوب کې او هر چې دی دا قول د شاعر:

ولا تخلنا على غراتك انا طالما قد وشى بنا الاعداء

نو دلته مفعول ثاني حذف دی ای جازعين: (۱) دا شاذ دی. (۲) يجوز في الشعر ما لايجوز في غيره، يعني مونږ وايو چې افعال قلوب کې اقتصار على احد المفعولين نه دی جائز په نثر د کلام کې او په نظم کې جائز دی د وجې د ضرورت شعري نه **بخلاف باب اعطيت** په خلاف د باب د اعطيت نه چې په دغې کې اقتصار على احد المفعولين جائز دی او مراد د باب د اعطيت نه هر هغه فعل دی چې متعدي وي مفعولين ته او مفعول ثاني يې غير وي د اول نه بيا عام دی که اعطيت وي او که بل فعل وي لکه کسوت او البست شو **او** اعطيت راغلی په کلام بليغ کې په طرق اربعهٔ سره:

(۱): په ذکر د مفعولين سره نحو قوله تعالى: ﴿إِنَّا أَعْطَيْنَاكَ الْكَوْثَرَ﴾

(۲): په حذف د مفعولين سره نحو قوله تعالى: ﴿فَأَمَّا مَنْ أَعْطَىٰ وَاتَّقَىٰ﴾ وقوله عليه السلام (**من احب لله وابعض لله واعطى لله ومنع لله فقد استكمل الايمان**).

(۳): په حذف د مفعول اول او بقاء د ثاني سره نحو قوله تعالى: ﴿حَتَّىٰ يُعْطُوا الْجِزْيَةَ عَن يَدٍ وَهُمْ صَاغِرُونَ﴾ اى يعطوكم الجزية.

(۴): په حذف د مفعول ثاني او بقاء د مفعول اول سره نحو قوله تعالى ﴿وَلَسَوْفَ يُعْطِيكَ رَبُّكَ فَتَرْضَىٰ﴾.

**سوال:** په باب د اعطيت کې اقتصار على احد المفعولين ولې جائز دی؟

**جواب:** د وجې د عدم وجود د نقصان نه هغه نقصان چې لازميدو په اقتصار على احد المفعولين د افعال قلوب کې ځکه په باب د اعطيت کې مفعول د اعطيت لپاره په حقيقت کې مضمون د جمله نه دی بلکه مفعول اول او ثاني ځان له ځان له مفعول به دی.

**ومنها** او بعض د خصائص د افعال قلوب نه **جواز الالغاء** ابطال د عمل د افعال قلوب دی لفظا او معنی جوازا **اذا توسطت** کله چې واقع شي دا افعال قلوب په مابين د مفعولين کې نحو زيد ظننت قائما **او تاخرت** يا واقع شي افعال قلوب وروستو د مفعولين نه نحو زيد قائم ظننت په خلاف د باب د اعطيت نه چې دا واقع شي بين المفعولين يا وروستو د معمولين نه نو ابطال د عمل د دهٔ جائز نه دی.

**سوال:** الغاء خاصه د افعال قلوب ولې ده؟ **جواب: لاستقلال الجزئين كلاما** د وجې د صلاحيت د مفعولين د افعال قلوب نه کلام لره په وقت د ابطال د عمل د افعال قلوب کې يعنې مفعولين د افعال قلوب صالح دي چې دا مبتدا او خبر شي او د مبتدا او خبر نه کلام تام جوړيږي سره د ضعف د عمل د افعال قلوب نه په سبب د توسط او تاخر د وجې د وقوع د دې افعال نه په توسط او تاخر کې ځکه په دې افعال کې ضعف ذاتي دی په نسبت سره افعال جوارح ته او په تقديم د معمولين سره کلا يا بعضا تاکيد د ضعف

راغی یعني ضعف ښه زیات شو لهذا که عمل افعال قلوب لره نه ورکوي نو مه ورکوه، او په تقدیر د الغاء د افعال قلوب کې دا معمولین د افعال قلوب معنیٰ ظرف دی د افعال قلوب لپاره، لکه زید قائم ظننت د دې معنی دا ده چې زید قائم في ظني او بعض شارحین ویلي دي چې دا افعال قلوب چې واقع شي په مینځ د معمولین کې نو اعمال اولی دی د الغاء نه، او که وروستو د معمولین نه واقع شي نو الغاء اولی ده د اعمال نه، دارنګې عمل د افعال قلوب باطل کولی شي کله چې واقع شي بین الفعل والفاعل نحو ضرب احسب زید او په مابین د اسم فاعل او د فاعل کې نحو: او په مابین د سوف او مدخول د دې کې نحو سوف احسب یقوم زید مصنف دا به دی ذکر کړی د وجې د قلت نه.

**و منها** او بعض د خصائص د افعال قلوب نه د ادی **انها** چې دغه افعال قلوب **تعلق** منع کولی شي د عمل لفظي نه وجویا نه د عمل معنوي نه **قبل الاستفهام** چې واقع شي مخکې د استفهام نه استفهام عام دی چې حرف استفهام وي او که اسم استفهام وي مثال د فعل قلب چې مخکې د حرف استفهام نه راغلی وي قوله تعالی: إِنْ أَدْرِىٓ أَقَرِيبٌ مَّا تُوعَدُونَ او مثال د اسم استفهام قوله تعالی وَسَيَعْلَمُ ٱلَّذِينَ ظَلَمُوٓا۟ أَىَّ مُنقَلَبٍ يَنقَلِبُونَ ، أَلَمْ يَرَوْا۟ كَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُم مِّنَ ٱلْقُرُونِ ، لِنَعْلَمَ أَىُّ ٱلْحِزْبَيْنِ أَحْصَىٰ لِمَا لَبِثُوٓا۟ **والنفي** او مخکې د نفي به نحو علمت ما زید فاضل **واللام** او مخکې د لام ابتدائیه تاکیدیه نه نحو قوله تعالی وَلَقَدْ عَلِمُوا۟ لَمَنِ ٱشْتَرَىٰهُ مَا لَهُۥ فِى ٱلْءَاخِرَةِ مِنْ خَلَٰقٍ

**سوال:** دا افعال قلوب چې مخکې د استفهام نفي او لام الابتداء نه راشي نو ابطال د عمل لفظي د دې ولې واجب دی؟ **جواب:** دا امور تقاضه کوي د بقاء د جمله په خپل حال باندې ځکه دا صدارت د کلام غواړي او افعال قلوب تقاضه کوي د تغیر د جملې او په مینځ د دې کې منافات دی نو مونږه لحاظ د دواړو وکړو عمل لفظي باطل شو نو تقاضه د نفي استفهام او لام پوره شوه ځکه صدارت فوت نه شو او معنیٰ د اما بعد مفعول به وګرځولی شو نو تقاضه د افعال قلوب پوره شوه.

**سوال:** عکس یې ولې ونه کړو چې عمل معنوي یې باطل کړی وی نه لفظي؟

**جواب:** عکس یې ونه کړو ځکه صدارت صفت د لفظ دی نه د معنی او که دی افعال قلوب لره عمل لفظي ورکړه نو بیا صدارت فوت کیږي.

**سوال:** ابطال د عمل لفظي د افعال قلوب وجوبا ته تعلیق ولې وائي؟

**جواب:** دا ماخوذ دی د امراة معلقة نه او امراة معلقة هغې ښځې ته وایې چې خاوند یې ورك شوی وي نو دا ښځه په شان د یو شي معلق وي ځکه نه د خاوند سره ده د وجې د فقدان د خاوند نه او نه بې د خاوند نه ده د وجې د امکان د وجود د خاوند نه نو قدرت نه لري چې د بل خاوند سره نکاح وکړي نو دا فعل معلق ممنوع دی د عمل نه لفظا او عامل دی معنیٰ نو من وجه عامل شو او من وجه عامل نه دی ځکه ورته تعلیق وائي د دې وجې نه جائز دی عطف د اسمین په معمولین د فعل معلق باندې په نصب سره نحو علمت لزید قائم ویکرا قاعدا.

**سوال:** د تعليق او د الغاء په مينځ کې څه فرق دی؟ **جواب:** دې کې درې فرقونه دي:

(١): الغاء عبارت دی د ابطال د عمل د افعال قلوب نه لفظا او معناً او تعليق عبارت دی د ابطال د عمل د افعال قلوب نه لفظا فقط. (٢): الغاء جائز ده او تعليق واجب دی.

(٣): عطف د اسم په نصب سره جائز دی په هغه اسمين چې راغلې وي وروستو د فعل معلق نه ځکه د دې لپاره محل د نصب شته ځکه د دې عمل لفظي ممنوع دی نه عمل معنوي او عطف د اسم په نصب سره نه دی جائز په هغه اسمين چې راغلی وی وروستو د فعل ملغي نه.

**سوال:** (هم كالحلقة المفرغة لا يدري اين طرفاها) کې د (لايدري اين طرفاها) څه ترکيب دی؟

**جواب:** اين خبر مقدم دی او طرفاها مبتدا مؤخره ده جمله نائب فاعل د لايدری.

**سوال:** نائب فاعل په حکم د فاعل کې دی او فاعل اسم وي حقيقة يا تاويلا او جمله فاعل او نائب فاعل نه واقع کيږي؟ **جواب:** جمله نائب فاعل نه واقع کيږي ما سوی د مجهول د قال او ما سوی د مجهول د افعال قلوب نه او په دې کې جمله نائب فاعل واقع کيږي ځکه مقوله نه وي مگر جمله وي او نائب فاعل جوړيږي د مقولې نه، او نائب فاعل د افعال قلوب جمله راځي په صورت د تعليق کې فاعل چې حذف شي نو دغه جمله قائميږي په مقام د فاعل باندې ځکه بل مفعول نشته.

**سوال:** دا جمله په ترکيب کې څه واقع شوې ده؟ **جواب:** دا صفت دی د الحلقة لپاره.

**سوال:** جمله صفت د نکرې لپاره واقع کيږي نه د معرفې لپاره او الحلقة خو معرفه ده؟

**جواب:** کله چې مضمون د جمله مختص وو په موصوف پورې بيا جمله صفت د معرفې لپاره واقع کيږي او دلته مضمون د لايدری اين طرفاها خاص دی په الحلقة پورې.

(٢): يا حال واقع شوی دی د الحلقة نه او عامل يکې معنوی دی چې تشبيه ده.

(٣): يا حال واقع شوی دی د ضمير د المفرغة نه چې راجع دی الحلقة ته بيا په دې کې عامل لفظي دی چې المفرغة دی. **ومنها** او بعض د خصائص د افعال قلوب نه **انها** دا افعال قلوب **يجوز** جائز دی ان يکون چې شي **فاعلها** فاعل د افعال قلوب **ومفعولها** او مفعول اول د افعال قلوب **ضميرين لشئ واحد** ضميرين متصلين داسې ضميرين متصلين چې د مسمی واحد لپاره وي مثال لکه **علمتني منطلقا** او د افعال قلوب نه علاوه په نورو افعال کې دا نه دی جائز فلا يقال ضربتني شتمتني بل يقال ضربت نفسي شتمت نفسي ځکه قانون دا دی چې فاعل مؤثر وي او مفعول به متاثر وي او قاعده دا ده چې مؤثر به مغائر وي د متاثر نه او کله چې مؤثر او متاثر متحد وي مصداقا نو مکروه دی اتفاق د دې دواړو لفظا په دې کې مغائرت لفظا په کار دی بقدر الامکان نو کله چې ضربت نفسي وويل نو مغائرت راغلو په مابين د مؤثر او متاثر کې بقدر الامکان ځکه دا نفس د وجې د اضافت نه ضمير د متکلم ته گرځيدلی دی په منزله د غير باندې په خلاف د افعال قلوب نه چې دلته نه لازميږي عينيت او اتحاد په مؤثر او متاثر کې ځکه مفعول به په حقيقت کې مضمون د جمله دی او فقدتني او علمتني کې اتصال د ضمير د فاعل او مفعول راغلی دی چې هغه متحد دي مصداقا سره د دې نه

چې دا د افعال قلوب نه ندی ځکه دا محمول دی په وجدتني باندې حملا النقيض على النقيض، او هر چې دی إِنِّيٓ أَرَىٰنِيٓ أَعۡصِرُ خَمۡرٗا او دا قول د شاعر:

ولقد اراني للرماح دراية　　من عن يميني تارة وامامي

دلته رؤيت، رؤيت بصري دی دا د افعال قلوب نه ندی او اتصال د ضمير د فاعل او مفعول به راغلی دی په دې پورې چې دا متحد دی مصداقا ځکه دا محمول دی په رؤيت قلبي او علمي باندې **وبعضها معنى اخر** او ثابته ده د بعض افعال قلوب لپاره بله يوه معنى سره د مناسبت د معنى ثاني نه د اول سره چې په بادي الراي کې سړی ګومان کوي چې دا فعل په دغه معنى سره هم متعدي کيږي مفعولين ته، په دې سره يو اعتراض دفع شو.

**سوال:** لکه څنګه چې ظننت - رايت - وجدت - په معنى اخر سره راغلی دی دغسې خلت - حسبت - زعمت - هم په معنى اخر سره راغلی دی - خلت - راغلی دی بمعنى صرت ذا خال، حسبت بمعنى صرت ذا حسب، زعمت بمعنى صرت ذا زعم سره. نو تا معنى اخر د بعض افعال قلوب بيان کړه نو د دې نورو بعض دا دې ولې بيان نه کړه؟

**جواب:** دلته مراد د معنى اخر نه هغه ده چې قريب وي معنى اولى ته او بادي الراي کې سړی ګومان کوي چې دا فعل په دې معنى سره هم متعدي کيږي مفعولين ته او خلت - حسبت - زعمت - په داسې معنى اخر کې نه دي مستعمل شوي چې مناسبت يې وي د معنى اولى سره نو ځکه مصنف د هغې معنى اخر نه ده ذکر کړې او دا افعال اربعه مستعمليږي په معنى اخر کې چې هغه قريب ده معنى اول ته چې متوهم دا توهم کوي دا افعال په دې معنى سره متعدي کيږي مفعولين ته او تخصيص د دې افعال اربعه ؤ يې کړيدی لپاره د دفع د توهم **يتعدى** متعدي کيږي دغه بعض افعال قلوب **به** په سبب د دې معنى سره **الى واحد** مفعول واحد نه مفعولين ته **فظننت** پس ظننت د افعال قلوب نه **بمعنى اتهمت** راځي په معنى د اتهمت سره دا ماخوذ دی د ظنة نه او ظنة تهمت ته وائي لکه څنګه چې ظن يوه نوع د علم ده نو دارنګې وهم هم يوه نوعه د علم ده او د دې قبيلې نه دی دا قول د الله وَمَا هُوَ عَلَى ٱلۡغَيۡبِ بِضَنِينٖ على قراة اى بمتهم. **وعلمت بمعنى عرفت** او علمت راځي په معنى د عرفت سره نحو عرفت زيدا دې ته معرفت شخصي او معرفت ذاتي وائي **ورايت بمعنى ابصرت** او رايت راغلی دی په معنى د ابصرت سره نحو رايت الكواكب. **ووجدت بمعنى اصبت** او وجدت راغلی دی په معنى د **اصب** سره نحو وجدت الضالة اى اصبتها.

## الافعال الناقصة

**ربط:** (۱): هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د نوع اول د دواخل او نواسخ د مبتدا او خبر نه نو شروع يې وکړه په بيان د نوع ثاني د دواخل او نواسخ د مبتدا او خبر کې.

(۲): هر کله چې فارغ شو مصنف د تقسيم د فعل نه نوعين ته چې هغه افعال القلوب او افعال الجوارح وو، نو شروع يې وکړه په تقسيم د فعل کې په اعتبار اخر سره نوعين ته چې افعال تامه او افعال ناقصه دی په دې شان سره چې فعال اولا دوه قسمه دی: (۱) فعل تام (۲) فعال ناقص.

**وجه د حصر:** دا فعل به خالي نه وي يا به فقط مرفوع سره مركب تام گرځي يا نه كه مركب تام گرځيدو نو فعل تام ورته وائي اوكه نه گرځيدو نو هغه ته فعل ناقص وائي او فعل تام بيا دوه قسمه دي. متعدي، غير متعدي. او فعل متعدي دري قسمه دي: (١) متعدي مفعول واحد ته. (٢) مفعولين ته. (٣) مفاعيل ثلاثه ؤ ته هر كله چې افعال قلوب د قبيلې د اقسامو د فعل متعدي الى المفعولين نه وو نو مقدم يې كړه په افعال ناقصو باندي.

په دې مقام كې لابدي ده د معرفت د امورار بعة عشر نه: (١) معرفت د ذات. (٢) اسم. (٣) معرفة الحد. (۴) وجه د تسميه. (۵) عدد. (۶) مصداق. (٧) مدخول. (٨) عمل. (٩) وجه د عمل. (١٠) معرفت د غايه د دخول په جمله اسميه باندې. (١١) تقسيم په اعتبار د عمل سره. (١٢) تقسيم په اعتبار د نقصان سره. (١٣) تقسيم باعتبار التصرف. (١۴) معرفة الاحكام.

نو دا دواخل او نواسخ د مبتدا او خبر په اعتبار د ذات سره افعال دي نه اسماء او نه حروف د وجې د وجود د علامې د فعل نه په دې كې چې هغه اتصال د تاء التانيث الساكنة دي او اتصال د ضمير مرفوع دی او نوم د دې دواخلو د مبتدا او خبر افعال الناقصه دی او تعريف يې مذكور في المتن دی چې ما وضع لتقرير الفاعل على صفة او دې ته افعال ناقصه وائي د وجې د نقصان نه په نسبت د دې كې په دې شان سره چې نسبت د يو فعل وكړی شي د دې افعال نه يو اسم ته نو د امفيد د فائدې نه دی سامع او مخاطب ته تر څو چې ورسره اسم منصوب نه وي ذكر شوی او ناقص دوه قسمه دي: ناقص لفظي او ناقص معنوي.

(١): **(ناقص لفظي)**: هغې ته وائي چې په ځای د لام كلمه باندې يې حرف علت راغلی وي نحو رمى يرمي.

(٢): **(ناقص معنوي)**: هغې ته وائي چې د هغې په معنى او نسبت كې نقصان وي او دلته مراد د ناقص نه ناقص معنوي دی نه لفظي ځكه د ناقص لفظي نه صرفيان بحث كوي، او په عدد د دې افعال ناقصو كې خلاف دی د شيخ عبد القاهر او اخفش په نزد باندې ديارلس دي، او په نزد د ابن حاجب باندې اوولس دي، او په نزد د سيبويه باندې غير محصور دي او مصداقونه يې **(كان، صار، اصبح.... الخ)** دي او دا داخليږي په مبتدا او خبر باندې او اسم مرفوع خبر منصوب غواړي او غايه د دخول، اعطاء الخبر حكم معناها وجه د عمل او دخول د دې په مبتدا او خبر يعنى جمله اسميه باندې سماعي ده، عقل لره پكې څه دخل نشته.

(٢): يا په مبتدا او خبر باندې ځكه داخليږي چې دا تقاضه د عمل د نصب كوي په خبر كې او تقاضه د عمل د رفع كوي په اسم كې او جمله فعليه نه محل د رفع ده او نه محل د نصب ده او اسم مرفوع خبر منصوب غواړي ځكه اسم د دې مشابه دی د فاعل سره په وقوع د مرتبه ثاني كې او فاعل مرفوع وي نو دا هم مرفوع شو او خبر يې مشابه دی د مفعول به سره په وقوع د مرتبه ثاني كې او مفعول به منصوب وي نو دا هم منصوب شو تشبيها له بالمفعول به او افعال ناقصه په اعتبار د عمل سره دري قسمه دي: (١): بعض هغه دی چې اسم مرفوع او خبر منصوب غواړي په دې شرط سره چې اول كې يې ما نافيه راغلی وي او دا څلور دي: ما زال. ما انفك. ما فتئ. ما برح.

(٢): دويم قسم هغه دی چې اسم مرفوع خبر منصوب غواړي په دې شرط سره چې اول کې یې ما مصدریه راغلی وي دا صرف ما دام دی.
(٣): بعض هغه دي چې اسم مرفوع خبر منصوب غواړي بلا قید وشرط لکه باقي افعال ناقصه شو دارنګې افعال ناقصه په اعتبار د نقصان سره دوه قسمه دي: (١) بعض هغه دي چې نقصان ورسره لازم دی یعنې همېشه ناقصه راځي نه تام او دا درې الفاظ دي: لیس، زال، فتئ؛
(٢): دويم قسم هغه دی چې کله تام راځي او کله ناقص راځي لکه باقي افعال ناقصه شو پس د دې خای نه معلومه شوه چې فعل درې قسمه دی: (١): يو هغه دی چې همېشه تام راځي لکه ضرب، نصر، علم وغیره شو. (٢): دويم قسم هغه دی چې همېشه ناقص راځي نه تام لکه لیس شو.
(٣): چې کله تام راځي او کله ناقص لکه: کان، صار، اصبح، امسی شو.
او افعال ناقصه په اعتبار د تصرف سره درې قسمه دی: (١) غیر متصرف لکه مادام او لیس شو چې په دې کې د ماضي نه علاوه بله صیغه نه ده راغلې او که راغلي وي نو فعل ناقص به نه وي
(٢) متصرف په تصرف ناقص سره لکه مازال، ما انفك، مابرح، مافتئ، د دې ماضی او مضارع راغلی دی او امر یې ندې راغلی:
(٣): متصرف په تصرف کامل سره لکه باقي افعال ناقصه شو چې د هغې نه ماضي مضارع امر وغیره ټولې صیغې راغلي دي او احکام د افعال ناقصو وروستو مصنف په خپله بیانوي.
**(ترجمه) الافعال الناقصة** جنس فعل ناقص په اصطلاح کې **ما** فعل دی.
(٢): یا افعال ناقصه په اصطلاح کې **ما** افعال دي او افراد د ضمیر په اعتبار د لفظ د ما سره دی داسې افعال **وضع** چې وضع کړی شوي دي **لتقرير الفاعل** لپاره د اتصاف د فاعل **على صفة** په یو صفت باندې هغه صفت چې هغه نه دی مصدر د فعل مذکور په دې شان سره چې دا تقریر جز عمده د معنی موضوع له د دې افعال دی او امر مشترك دی په ټولو افعال ناقصو کې او مقصود بالبیان دی او ټوله یې کل معنی موضوع له ګرځولې ده مجازا د وجې د عمدیت نه.
(٣) یا افعال ناقصه وضع کړی شوي دي د یو معنی لپاره او غرض او فائده مرتبه په وضع د افعال ناقصو کې د یو معنی لپاره تقریر الفاعل على صفة دی.
**سوال:** دا لفظ د ما به خالي نه وي یا به یې عبارت وائې د فعل نه او یا به یې عبارت وائې د افعال نه، دا دواړه نه دي صحیح که عبارت یې وائې د فعل نه بیا حمل صحیح کیږي څکه حمل د مفرد راځي په جمع باندې او که ما عبرات د افعال نه وائې نو حمل خو صحیح کیږي خو مطابقت نه راځي بین الراجع والمرجوح؟ **جواب:** ما عبارت د افعال نه وایم او افراد د ضمیر د وضع په اعتبار د لفظ د ما دی. یا ما عبارت د فعل نه وایم او الافعال الناقصه کې الف لام جنسي دي دا چې داخل شي په باندې نو جمعیت باطلوي نو معنی دا شوه چې جنس. فعل ناقص په اصطلاح کې **ما** فعل دی نو سره نه تعریف د افرادو په افرادو سره. هم صحیح شو او مطابقت هم راغی او دا جواب غوره دی د اول نه څکه تعریف د جنس کیږي په

**سوال:** قاعده دا ده چې لام واقع شي په صله د وضع کې نو مدخول د لام کل معنی موضوع له وي او دلته مدخول د لام چې تقرير الفاعل على صفة دى كل معنى موضوع له د افعال ناقصو نه ده بلكه افعال ناقصه مشتمل دي په هغه معانيو باندې چې هغه زائد دي د دې تقدير نه لکه زمانه شوه په تولو کې انتقال شو په صار کې او په ما برح مازال کې. **جواب:** (۱) تقرير الفاعل على صفة عمده دى په معنى موضوع له د افعال ناقصو کې او امر مشترك دى په تولو کې او مقصود بالاخبار دى او دا كل معنى موضوع له يې گرځولی دی مجازا د وجې د عمديت نه او دا اعتراض به هله واردېدو چې دې ته يې كلا معنى موضوع له حقيقة ويلی وی.

(۲): دويم جواب دا دی چې دا لام په لتقرير الفاعل کې د غرض لپاره دی او دا صله د وضع نه ده نو د دې معنى دا شوه چې دا افعال ناقصه وضع کړي دي د يو معنى لپاره او غرض او فائده مرتبه په دې کې تقرير الفاعل على صفة دى، يعنې تقرير الفاعل على صفة غرض او فائده مرتبه د افعال ناقصو ده نه معنى موضوع له د افعال ناقصو.

**سوال:** تعريف د افعال ناقصو مانع نه شو د دخول د غير نه داخل شو پکې افعال تامه لكه ضرب شو، په ضرب زيد کې. ځکه دا ضَرَب دلالت کوي په اتصاف د فاعل على صفة باندې چې دا زيد متصف دی په صفت د ضرب سره؟

**جواب:** مراد د صفت نه هغه صفت دی چې هغه نه وي مصدر د فعل مذكور.

**سوال:** د افعال ناقصه مصداق راته وښايه؟ **جواب:** وهي كان وصار و اصبح الخ.

**سوال:** هي ضمير راجع دی افعال ناقصو ته نو مطابقت رانغی بين الراجع والمرجع هغه جمع ده او دا ضمير د مفرد مؤنث دی؟ **جواب:** دا ضمير د واحد مؤنث راجع دی افعال ناقصو ته په تاويل د جماعة سره، دارنګې هغه افعال تامه شو چې هغه متضمن دي معنى د فعل ناقص لره مثال لكه (آل و رجع و حان و استحال وتحول وانقلب تتم او کمل شو)، دا د افعال ناقصو نه دي چې په معنى د صار شره راشي نحو (تتم تسعة بهذا عشرة اى تصير عشرة تامة ـ كمل زيد عالما اى صار زيد عالما كاملا).

**وقد جاء ما جاءت حاجتك وقعدت كأنها حربة** او لږ لږ راغلی دی لفظ د جاء په دې قول د خوارجو کې چې (ما جاءت حاجتك) دی ناقص. حضرت علي رضي الله عنه ابن عباس رضي الله عنه ولېږلو خوارجو ته د دعوت الى الاطاعت لپاره، حضرت عبد الله بن عباس رضي الله عنه خوارجو ته تقرير وكړو چې تاسو خروج پرېږدئ او د علي رضي الله عنه اطاعة وکړئ نو خوارجو په جواب، کې وويل: (ما جاء حاجتك) اى ما كانت حاجتك. (ما نافيه دی او جاءت بمعنى كانت فعل ناقص دی، ضمير پکې مستتر دی راجع دی غرارې ته، اسم د جاءت او حاجتك يې خبر دی نو معنی دا ده چې نه ده سادګي زمونږه ستا حاجت او مقصد پوره کوونکې يعني مونږ ستا خبره نه منو. يا ما استفهاميه بمعنی (ای شئ) مبتدا او جاءت بمعنى صارت فعل ناقص ضمير پکې مستتر دی راجع دی ما ته او مؤنث کړی يې دی په اعتبار د خبر سره چې حاجتك لكه (من كانت امك) کې ضمير مؤنث راغلی دی د وجې د خبر نه (فيكون المعنى اى شئ صارت حاجتك) يعنې د کوم مقصد لپاره ته مونږ ته راغلی يې.

او لړ لړ راغلی دی لفظ د قعد ناقص په دې قول د اعرابي کې. (ارهف شفرته حتی قعدت کانها حربة). (ترجمه): تیاره یې کړه څوکه د چاړۀ حتی چې وګرځېده دا څوکه دچاړۀ ته به وایې چې دا لنډه نېزه ده، **قعدت فعلِ** ناقص دی بمعنی صارت ضمیر مستتر پکې راجع دی شفرة ته اسم د قعدت او کانها حربة جمله ورله خبر واقع شوی دی.

اندلسي ویلې دي چې دا راتلل د جاء او قعد ناقص مختص دی په دې دوه ترکیبونو پورې او د دې نه علاوه په بل ځای کې دا ناقص نه دی راغلی.

او فراء وائي چې کون د جاء او قعد ناقص منحصر په دې پورې نه دی د دې نه علاوه نورو ځایونو کې هم راځي. **تدخل علی الجملة الاسمیة** داخلېږي دا افعال ناقصه او ملحقات د افعال ناقصه په جمله اسمیه باندې یعنې مبتدا او خبر باندې ځکه دا وضع کړی شوي دي لپاره د تقریر د شیٔ علی صفة، پس لابدي ده د ذکر د شیٔ او د صفت د شیٔ نه او ذکر د شیٔ او صفت د شیٔ نه راځي مګر په جمله اسمیه کې راځي.

**سوال:** په دخول د افعال ناقصه په جمله اسمیه باندې فائده څه مرتب ده؟

**جواب: لاعطاء الخبر حکم معناها** لپاره د ورکولو د دې افعال ناقصو خبر لره اثر مرتبه د معنی د دې افعال چې هغه تفریع ده، مثال لکه صار زید غنیا معنی د صار انتقال دی او اثر مرتبه او فائده مرتبه په معنی دد ې صار کون الخبر منتقلا الیه دی کله چې صار داخل شو په جمله اسمیه چې زید غني دی نو دلالت یې وکړو په معنی خپله چې انتقال دی او ور یې کړو خبر لره چې غني دی اثر د انتقال چې هغه کون د غني دی منتقل الیه **او اعطاء** صیغه د مصدر ده د باب د اعطیت نه دوه مفعوله غواړي او دلته اضافت د اعطاء راغلی دی مفعول اول ته او مفعول ثاني یې حکم معناها دی او فاعل یې حذف دی چې افعال الناقصه دی ځکه حذف د فاعل د مصدر جائز دی بې د سد مسد نه د وجې د عدم وجود د استحالې نه چې وجود د نسبت دی بدون الطرفین.

**سوال:** افعال ناقصه چې داخل شي په جمله اسمیه باندې نو اثر معنوي د دې خو مونږ ته معلوم شو خو اثر لفظي یې څه دی؟

**جواب: فترفع الاول وتنصب الثاني** رفع ورکوي دا افعال ناقصه جز اول د جمله اسمیه لره چې مبتدا ده لکونه فاعلا او نصب ورکوي جز ثاني لره چې خبر دی لشبهه بالمفعول به في توقف الفعل علیه .مثال لکه **کان زید قائما** شو دا اصل کې زید قائم وو جمله اسمیه وه نو کان ورباندې داخل شو زید لره یې رفع ورکړه او قائما لره یې نصب ورکړو.

**فکان تکون ناقصة: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د افعال ناقصو نه اجمالا نو شروع یې وکړه په افعال ناقصو کې تفصیلا. دا فاء تفصیلیه ده او کان مراد اللفظ علم دی د هغه کان لپاره چې واقع کېږي په تراکیبو کې مبتدا او تکون ورله خبر دی او کان په تاویل د کلمه سره مؤنث دی ځکه یې تکون مؤنث ذکر کړی دی.

**ترجمه:** پس کلمه د کان کیږي ناقصه په دې شان سره چې معنی د دې نه تامیږي یواځې په اسم مرفوع سره بې د منصوب نه دغه کان ناقصه کائن دی **لثبوت خبرها** لپاره د تحقق او ثبوت د خبر د کان د اسم د کان لپاره په ثبوت کولو سره داسې ثبوت چې کائن دی په زمانه د ماضي کې **دائما** بې د دلالت کولو نه په عدم مسابقه په انقطاع لاحقه باندې ځکه په لفظ کې قرینه نشته مثال لکه کان الله غفورا رحیما. **منقطعا** او دا کان ناقصه دلالت کوي په ثبوت د خبر لپاره د اسم خپل په زمانه ماضي کې په طریقه د انقطاع سره د وجې د وجود د دلیل د انقطاع نه نحو کان زید غنیا فافتقر. **و بمعنی صار** او بل دا کان ناقصه راځي په معنی د صار سره عطف د یو قسم راغلی دی په بل قسم باندې مثال د کان بمعنی صار کقول الشاعر:

**بتیهاء قفر والمطی کانها قطا الحزن قد کانت فراخا بیوضها**

ای صارت فراخا بیوضها دلته کانت په معنی د صارت دی نه په معنی د ثبوت د خبر لپاره د اسم خپل ځکه که شي نو بیا لازمیږي فساد د معنی. **و یکون فیها ضمیر الشان** او کیږي په دې کلمه د کان کې ضمیر شان او دغه کان ناقصه ته کان شانیه وائي او مابعد جمله خبر واقع کیږي د کان لپاره مثاله کقول الشاعر:

**اذا مت کان الناس صنفان شامت واخر مثن بالذي کنت اصنع**

**ترجمه:** کله چې زه مړ شم شان د خبرې دا دی چې خلق به دوه ډلې وي یوه ډله به کنځلې کوي ما ته او بله ډله به صفت کوي په هغه کار باندې چې ما کوو، دلته (کان الناس) کې کان شانیه دی ضمیر پکې مستتر دی ضمیر الشان هغه اسم د کان دی او (الناس) مبتدا ده او (صنفان) یې خبر دی دا جمله خبر د کان دی.

**سوال:** (کان زید قائم) څه ترکیب دی که ته وایې چې زید اسم د کان او قائم یې خبر دی نو خبر د کان منصوب وي او دا خو مرفوع دی؟

**جواب:** کان ناقصه شانیه ضمیر پکې مستتر دی ضمیر شان هغه اسم د کان زید قائم جمله مفسر د ضمیر شان خبر د کان **وتکون تامة** او کیږي کلمه د کان تامه په دې شان سره چې تامیږي یواځې په مرفوع سره بې د حاجت نه منصوب ته او کان چې تامه راشي نو دا کیږي په معنی د ثبت او وقع سره مثال د دې قوله تعالی کُنْ فَيَكُوْنُ ای اثبت فیثبت، وَإِنْ كَانَ ذُو عُسْرَةٍ فَنَظِرَةٌ إِلَىٰ مَيْسَرَةٍ ای ان ثبت ذو عسرة. **وزائدة** او کیږي کان زائده په دې شان سره چې ازاله د دې کان نقصان نه رسوي اصل معنی د کلام ته بلکه وجود او عدم د دې برابر وي په کلام کې او دا زیاتی کړی شوی وي لپاره د تحسین د لفظ او کان زائده د افعال غیر عاملونه دی په شان د طالما او قلما باندې مثال د کان زائده قوله تعالی كَيْفَ نُكَلِّمُ مَنْ كَانَ فِي الْمَهْدِ صَبِيًّا ای کیف نکلم من هو في المهد حال کونه صبیا، دا کان زائده دی راغلی دی د تحسین لپاره ځکه که دا زائد نه شي نو لازمیږي فساد د معنی. بل مثال لکه دا قول د شاعر شو:

**جیاد بني ابي بکر تسامی علی کان المسومة العراب**

دلته كان زائده راغلى دى بين الجار والمجرور بل مثال لكه: «ما كان اصح علم من تقدما» شو، دا كان زائد دى په مابين د ما تعجبيه او فعل تعجب كې.

**سوال:** زيد كان قائم څه تركيب دى؟ **جواب:** زيد مبتدا قائم يې خبر دى او كان زائد دى بين المبتدا والخبر ملغات العمل مبتدا سره د خبر نه جمله خبريه اسميه ده.

**پس زده کړه دا خبره** چې كان اولا دوه قسمه دى: زائده، غير زائده. غير زائده بيا دوه قسمه دى ناقصه، تامه. ناقصه درې قسمه دى: بمعنى ثبت، بمعنى صار، شانيه.

## خصوصيات كان من اخواتها

(١): كان زائده راځي بخلاف اخواتها. (٢): كان شانيه راځي بخلاف اخواتها.

(٣): كان حذف كيږي بخلاف اخواتها. (۴): باء زائده راځي په خبر د كان كې په دې شرط سره چې مخكې د دې نه حرف نفي راغلى وو بخلاف اخواتها.

(۵): نون د مضارع د كان حذف كيږي د وجې د حرف جازم نه په دې شرط سره چې حرف او نون تاكيد ورپورې نه وي متصل شوى نحو قوله تعالى: وَلَمْ أَكُ بَغِيًّا.

**وصار للانتقال: ربط:** هر كله چې فارغ شو مصنف د بيان د كان نه نو شروع يې وكړه په بيان د صار كې.

**(ترجمه: وصار للانتقال:** صار وضع كړې شوى دى د انتقال لپاره او د انتقال صورتونه دوه دي: (١) انتقال د اسم د صار من صفة الى صفة نحو صار زيد عالما.

(٢): انتقال د اسم د صار من حقيقة الى حقيقة نحو صار الطين خزفا، او كه صار دلالت كوو په انتقال من مكان الى مكان يا من ذات الى ذات باندې دا صار تامه دى متعدي كيږي په الى سره نحو صار زيد من بلد الى بلد كذا وصار زيد من بكر الى عمرو نو د انتقال څلور صورتونه دي په دوه صورتونو كې صار ناقصه دى او په دوه صورتونو كې صار تامه دى.

او ملحق دى په صار پورې استحال وتحول وارتد چې دا درې واړه په معنى د صار سره راځي مثال د اول قوله تعالى فَارْتَدَّ بَصِيرًا او مثال د ثاني كقول الشاعر:

ان العداوة تستحيل مودة بتدارك الهفوات بالحسنات

**واصبح وامسى واضحى** دا درې واړه افعال ناقصه راځي په درې معانيو سره:

(١): دا وضع كړې شوي دي **لاقتران مضمون جملة** او دلالت كوي په اقتران د مضمون د جملې باندې **باوقاتها** په اوقاتو د دې افعالو پورې هغه اوقات چې دلالت كوي په هغې باندې دغه افعال په اعتبار د مادې سره نه په اعتبار د هيئت سره، ځكه دلالت په اعتبار د هيئت سره په زمانه گذشته باندې كوو او دا افعال ثلاثه دلالت نه كوي په اقتران د مضمون د جمله در زمانه گذشته بلكه دا دلالت كوي په اقتران د مضمون د جمله په هغه اوقاتو چې دلالت كوي په هغې باندې دا افعال په اعتبار د مادې سره چې هغه، صباح، مسى او ضحى دى. مثال د اول اصبح زيد قائما. مثال د ثاني امسى زيد

مسرورا، مثال د ثالث اضحی زید حزینا. مثال اول دلالت کوي په اقتران د مضمون د جملې چې قیام زید دی په وقت د صباح پورې او مثال ثاني دلالت کوي په اقتران د مضمون د جمله چې سرور زید دی په وقت د مسی پورې، او مثال د ثالث دلالت کوي په اقتران د مضمون د جمله چې حزن زید دی په وقت د ضحی پورې.

**وبمعنی صار** او دا درې واړه راځي کله کله په کلام د عرب کې په معنی د صار سره نحو اصبح امسی اضحی زید غنیا ای صار زید غنیا.

**وتکون تامة** او کیږي دا افعال ثلاثه تام په معنی دد خول في هذه الاوقات سره د هغې علامه دا ده چې وروستو به صرف اسم مرفوع وي نحو اصبح زید اذا دخل في الصباح وقوله تعالی [ ان اصبح ماءکم غورا فمن یاتیکم بماء معین ] په دې کې درې واړه معاني د اصبح جوړیږي، که اصبح د اقتران د مضمون د جمله بوقته لپاره شي نو بیا معنی دا ده که چرې صباله شي اوبه ستاسو وچې او که تامه شي نو غورا منصوب دی بنا بر حالیت.

**وظل وبات** بل د افعال ناقصو نه ظل او بات دی **لاقتران مضمون الجملة بوقتیهما** دا دلالت کوي په اقتران د مضمون د جمله په خپله وقتین پورې چې هغه لیل او نهار دي په دې شان سره چې ظل دلالت کوي په اقتران د مضمون د جمله باندې بالنهار نحو ظل زید معلما معنی ثبت له ذلك في جمیع نهاره، او بات دلالت کوي په اقتران د مضمون د جمله باندې باللیل نحو بات زید مکرما فمعناه ثبت له ذلك في جمیع لیله **و بمعنی صار** او دا دواړه راځي په معنی د صار سره نحو قوله تعالی: ظَلَّ وَجْهُهُ مُسْوَدًّا او مثال د بات بمعنی صار نحو بات عمرو فقیرا ای صار.

**سوال:** ظل او بات کله کله تامه هم راځي دا یې ولې ذکر نه کړو؟

**جواب:** د وجې د مجیئت د ظل او بات نه تامین في غایة القلة وګرځول مصنف دا په حکم د عدم کې او د دې وجې نه یې دا جدا ذکر کړو د افعال ثلاثه ؤ سابقو نه، مثال د ظل نحو ظلت بمکان کذا مثال د بات بت مبیتا طیبا.

**سوال:** لکه څنګه چې اصبح امسی او اضحی د اقتران د مضمون لپاره راځي په معنی د صار سره راځي او تامه راځي نو ظل او بات هم دغسې دي یعني په دې درې واړو معانیو سره راځي نو دا یې دهغې په لړه کې ولې ذکر نه کړو سره د اشتراك د دې نه دهغې سره په معانیو کې؟

**جواب:** منم چې دا ظل او بات شریك دي د افعال ثلاثه ؤ سره په معانیو کې لیکن دومره فرق دی چې هغه تامه راځي په طریقه د کثرت سره او دا تامه راځي په طریقه د قلت سره نو که د هغې سره یو ځای ذکر کړی وی نو متوهم به دا توهم کولو چې دا به هم تامه راځي په طریقه د کثرت سره نو لپاره د رفع د توهم یې دا ظل او بات جدا ذکر کړل او تامه یې هم ذکر نه کړل.

**سوال:** اض عاد غدا راح، دا افعال اربعه ناقصه مصنف ذکر کړي دي په جانب د اجمال کې او اجمال تقاضه د تفصیل کوي د دې تفصیل یې ولې نه دی ذکر کړی په شان د دې نورو افعالو ناقصو باندې؟

**جواب:** دا افعال اربعه د ملحقاتو د صار نه دي په دې شان سره چې دا ناقص راځي په دې شرط سره چې بمعنی صار وو او که په معنی د صار سره نه وو بيا تامه راځي نحو عاد زيد من سفره ای رجع غدا زيد اذا مشی في وقت الغداة راح زيد اذامشی في وقت الرواح وهومابعدالزوال الی الليل، ددې وجې نه صاحب د مفصل دا د افعال ناقصو نه ندي شميرلي او صاحب د لباب ويلي دي چې دا ملحقات د صار دي.

**و ما زال و ما برح و مافتئ وما انفك** دا څلور واړه افعال وضع کړې شوي دي **لاستمرار خبرها لفاعلها** لپاره د ثبوت د خبر د دې افعال ناقصو د فاعل د دې افعال ناقصو لپاره په طريقه د دوام او استمرار سره **من قبله** د کوم وقت نه چې قبول کړې دی دې فاعل دغه خبر د افعال ناقصو لره **ويلزمها النفي** او لازم ده د دې افعال ثلاثه ؤ سره نفي او دا نفي علامه ده چې لفظا وي نحو قوله تعالى [ ولا يزالون مختلفين ] يا تقديرا وي نحو تَاللّٰهِ تَفۡتَؤُا تَذۡكُرُ يُوسُفَ.

**سوال:** دغه افعال ثلاثه په استمرار د ثبوت د خبر باندې لپاره دفاعل دلالت ولې کوي؟

**جواب:** ځکه چې زال برح فتئ انفك ټول په معنی د زوال دي او کله چې نفي داخله شوه په دوی باندې نو هغې نفي د نفي وکړه او نفي د نفي استمرار د ثبوت فائده کوي د دې وجې نه جائز نه دی ما زال زيد الا عالما ځکه دا مستلزم دی اجتماع د نقيضين لره ځکه د مازال زيد نه معلومه شوه چې دا زيد متصف دی په ټولو صفاتو سره او د الاعالما نه معلومه شوه چې متصف په صفت د علم سره نه دی او دا معنی نه ده صحيح ځکه د جمله صفاتو نه قيام قعود لزم او يقظت وغيره هم دي او دا نه جمع کيږي په موصوف واحد کې او دا مازال چې د زال يزال نه راشي نو د افعال ناقصو نه دی بکله د زال يزول نه چې راشي بيا دا تام دی راځي په معنی د ذهاب او انتقال سره نحو قوله تعالى: أَن تَزُولَا وَلَئِن زَالَتَا دا اول ان شرطيه دی دويم ان نافيه دی او زال يزيل فعل تام متعدي دی بمعنی ميز يميز نحو زال زيد من معز فلان ای ميزه.

**وما دام: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د هغه افعال ناقصو نه چې د هغې په اول کې ما نافيه راغلی وو نو شروع يې وکړه په بيان د هغه افعال ناقصو کې چې د هغې په اول کې ما مصدريه راغلی دی چې **هغه** صرف مادام دی او ما دام دوه قسمه دی

(۱): يو ما دام تامه دی نحو قوله تعالى مَا دَامَتِ السَّمٰوٰتُ وَالۡأَرۡضُ

(۲): ما دام ناقصه او مادام ناقصه وضع شوی دی **لتوقيت امر** لپاره د تعيين د يو امر چې **هغه** مضمون د جمله سابقه دی **لمدة ثبوت خبرها** په وقت د ثبوت د خبر د مادام **لفاعلها** لپاره د فاعل د مادام په دې شان سره چې د کوم وقت پورې چې دا خبر د مادام ثابت وي فاعل د مادام لره نو دا مضمون د جمله سابقه به موجود وي **ومن ثم** او د دې د وجې نه چې مادام راځي لپاره د تعيين د امر لمدة ثبوت خبرها لفاعلها **احتاج** محتاج دی دغه مادام **الى كلام** وجود د يو کلام سابق ته چې هغه منستقل بالافاده دی.

**سوال:** ما دام کلام سابق ته ولې محتاج دی؟ **جواب: لانه** ځکه دا مادام سره د اسم او سره د خبر نه **ظرف** ظرف دی په تقدير د مضاف سره ځکه لفظ د ما په ما دام کې مصدريه دی دا د ما بعد نه مصدر

جوړوي او تقدير د اوقاتو مخکې د مصادر نه کثير او شائع دی په استعمال د کلام د عربو کې او ظرف فضله دی غير مستقل بالافاده دی دا ما وقع فيه غواړي او ما وقع فيه مضمون د جمله سابقه دی مثال لکه يوم الجمعة ظرف دی او د دې دپاره لابدي ده د ذکر د فعل نه مخکې چې خرجت يوم الجمعة ووايې او صرف يوم الجمعة ويل بې د ذکر د فعل نه ندی صحيح دغسې ما دام سره د مابعد نه په تقدير د مضاف سره ظرف دی نو لابدي ده د ذکر د يو جملې نه مخکې د مادام نه چې دا مادام په هغه پورې متعلق شي مثال لکه اجلس ما دام زيد جالسا شو ای اجلس مدة دوام جلوس زيد، نو دا مادام تر څو پورې چې يو ځای نه کړی شي د اجلس سره نو دا مفيد د فائده تام نه دی سامع او مخاطب لره بلکه ما دام سره د اجلس نه مفيد د فائدې تامې دی سامع او مخاطب لره په خلاف د هغه افعالو نه چې هغه مصدر دی په ما نافيه سره لکه ما زال الخ دا سره د خبر نه کلام مستقل بالافاده دی ذکر د کلام سابق ته محتاج نه دی.

ربل د ا... ناقصو نه ليس دی **لنفي مضمون الجملة** او دا ليس راځي لپاره د نفي د مضمون د جملې **حالا** په زمانه حالي کې عند الجمهور نو د ليس زيد قائما معنی دا ده چې قيام زيد منتف الان او دليل په دې خبره باندې تبادر الى الفهم دی ځکه ليس چې ذکر شي مطلقا نو نفي د مضمون د جمله في الحال ذهن د سامع او مخاطب ته راځي او تبادر الى الفهم غته علامه د حقيقت ده او حال دعلماؤ د علم معاني په اصطلاح کې امر داعي يا امر عارض ته وائي او د نحويانو په اصطلاح کې ما يبين هيئة الفاعل او المفعول به ته وائي او په اصطلاح د صرفيانو کې هغه فعل ته وائي چې دلالت کوي په وجود د معنی مصدري در زمانه موجوده او دلته هم مراد د حال نه حال صرفي دی يعنې زمانه دحال مراد ده **وقيل** او چا ويلې دي **مطلقا** يعنې ليس نفي د مضمون د جمله کوي مطلقا بې د تقيد نه په زمانه حالي سره د دې وجې نه دا ليس کله مقيد کولی شي په زمانه د حال سره نحو ليس زيد قائما الان او کله ماضي سره نحو ليس خلق الله الله تعالى مثله او کله به مستقبل سره نحو قوله تعالى أَلَا يَوْمَ يَأْتِيهِمْ لَيْسَ مَصْرُوفًا عَنْهُمْ دا تقيد دليل دی په دې خبره باندې چې دا نفي د مضمون د جمله مطلقا کوي او که نفي د مضمون د جمله مطلقا يې نه کولی بلکه في الحال يې کولی نو دا ليس به مقيد نه وو په الان سره. (او دا مذهب د سيبويه دی).

جواب د طرفه د جمهورو نه دا دی چې نفي د مضمون د جمله في الحال معنی موضوع له او معنی حقيقي د ليس ده ليکن دا په عرف کې غير مشهوره ده په شان د حقيقت مهجوره باندې دا کله کله قرينه غواړي لپاره د دفع د توهم د معنی مجازي.

**ويجوز تقديم اخبارها كلها على اسمائها (ربط)** هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د معاني د افعال ناقصو نه پس شروع يې وکړه په بيان د حکم د خبر د افعال ناقصو کې نو حکم د خبر د افعال ناقصو په شان د حکم د خبر د مبتدا دی (١) په دې شان سره چې خبر د مبتدا غالبا نکره راځي او کله کله معرفه، اخې، دارنګې خبر دا فعال ناقصو غالبا نکره راځي او کله کله معرفه راځي

(۲): خبر د افعال ناقصو غالبا مفرد راځي، او کله کله جمله راځي لکه څنګه چې خبر د مبتدا غالبا مفرد راځي او کله کله جمله راځي (۳): جمله خبريه چې خبر د مبتدا واقع شي نو په هغې کې لابدي وي د رابط نه دارنګې جمله خبريه چې خبر د افعال ناقصه واقع شي نو لابدي وي د رابط نه (۴): خبر د مبتدا کله واحد وي او کله متعدد وي دارنګې خبر دافعال ناقصه کله واحد وي کله متعدد وي (۵): خبر د مبتدا حذف کولی شي په وقت د وجود د قرينې د الی کې په تعين د محذوف باندې نو خبر د افعال ناقصه هم حذف کولی شي په وقت د وجود د قرينې د الی کې په تعين د محذوف باندې دومره فرق دی چې خبر د مبتدا چې کله معرفه وو نو تقديم د خبر په مبتدا باندې ممتنع دی نحو زيد ن المنطلق فلا يجوز المنطلق زيد، څکه چې لازميږي التباس بين المبتدا والخبر او خبر د افعال ناقصو چې معرفه راشي نو تقديم يې جائز دی لعدم الالتباس څکه اسم مرفوع وي او خبر منصوب وي نحو کان زيد ن المنطلق يجوز فيه کان المنطلق زيد

**(ترجمه) ويجوز** او جائز دی **تقديم اخبارها کلها** تقديم د خبر د ټولو افعال ناقصو **علی اسمائها** په اسماء د افعال ناقصو باندې بالاتفاق په وقت د عدم وجود د مانع کې په دې سره يې احتراز وکړو د کان عدوي صديقي نه چې دلته تقديم ممتنع دی د وجې د وجود د مانع نه چې التباس دی بين الاسم والخبر څکه چې اعراب په دواړو کې تقديري دی او قرينه په کون د احدهما باندې اسم او اخر باندې خبر نشته او تقديم د خبر د کان په اسم د کان باندې جائز دی په دې شرط سره چې مقتضی د تقديم وجوبي د خبر په اسم باندې نه وی موجود او که موجود وو بيا تقديم د خبر د کان په اسم د کان باندې واجب دی نحو کان في الدار صاحبها دلته تقديم د في الدار په صاحبها باندې واجب دی لپاره د دې چې لازم نه شي اضمار قبل الذکر لفظا او رتبتا او تقديم د اسم د افعال ناقصو په افعال ناقصو باندې ممتنع دی بالاتفاق، او تقديم د معمول د خبر د افعال ناقصو په اسم د افعال ناقصو باندې ممتنع دی په دې شرط سره چې ظرف او جار مجرور نه وو (عند الجمهور) لپاره د دې چې لازم نه شي فصل په مابين د عامل او معمول کې په اجنبي سره او په نزد د کوفيين باندې جائز دی څکه فصل بين العامل والمعمول په اجنبي سره نه راځي څکه معمول د خبر د افعال ناقصو معمول د افعال ناقصو دی او که معمول د خبر د افعال ناقصو ظرف يا جار مجرور وو نو تقديم يې جائز دی په اسم د افعال ناقصو باندې بالاتفاق نحو کان فيك زيد راغبا کان عندي زيد متعلما څکه ظروف کالمحارم دي جائز دي په دې کې هغه څه چې نه دي جائز په نورو کې.

**سوال:** تقديم د خبر د افعال ناقصو په افعال ناقصو باندې جائز دی که نه؟

**جواب:** افعال ناقصه په اعتبار د تقديم د خبر سره درې قسم دي (۱): يو قسم هغه دی چې تقديم يې جائز دی بالاتفاق څکه فعل قوي العمل دی عمل کوي په صورت تقديم او تاخير دواړو کې زيدا ضربت جائز دی نو قائما کان زيد هم جائز دی.

(۲): دويم قسم هغه دی چې هغې کې تقديم د خبر ممتنع دی بالاتفاق عند الجمهور.

(۲) دریم قسم مختلف فیه دی بین الجمهور **وهي في تقديمها عليها الخ** د دې عبارت دوه ترجمې دي.
(۱) **وهي** دا افعال ناقصه **في تقديمها** په تقديم د اخبارو د افعال ناقصو کې **عليها** په افعال ناقصو باندې **على ثلاثة اقسام** درې قسمه دی. هي ضمير راجع دی افعال ناقصه ته او عليها ضمير هم راجع دی افعال ناقصو ته او تقديمها ضمير راجع دی اخبار د افعال ناقصه ته.
(۲) **وهي** دا اخبار د افعال ناقصو **في تقديمها** په تقديم د اخبار د افعال ناقصو کې **عليها** خود په افعال ناقصو باندې **على ثلاثة اقسام** درې قسمه دی نو ضمير هي او تقديمها راجع دی اخبار ته او عليها ضمير راجع دی افعال ناقصه ته ليکن دا اوله ترجمه غوره ده د ثاني نه لسلامته عن الحذف ځکه په دويمه ترجمه باندې وهو من کان الی راح کې به د کان نه مخکې خبر مقدر را اوباسې ای وهو من خبر کان الی خبر راح او تقدير خلاف الاصل دی په کلام کې، او بنا په اوله ترجمه باندې کلام تقدير ته نه دی محتاج بې د تقدير نه معنی د کلام جوړيږي **قسم** يو قسم دی **يجوز** چې جائز دی تقديم د خبر د افعال ناقصو په افعال ناقصو باندې په دې شرط سره چې مقتضی د تقديم د وجوبي نه وو چې هغه د کان نه واخله تر راح پورې دي ځکه په دې کې تقديم د منصوب دی په مرفوع باندې او فعل قوي العمل دی عمل کوي مع الترتيب او بلا ترتيب په خلاف د خبر د حروف مشبه بالفعل نه د هغې تقديم نه دی جائز بلکه ترتيب واجب دی ځکه هغه ضعيف العمل دی مع الترتيب عمل کوي او بدون الترتيب عمل نه شي کولی.
**سوال:** ته وائې چې تقديم د خبر دافعال ناقصه د کان تر راح پورې جائز دی دا خبره ستا منقوضه شوه په کم کان مالك په دې شان سره چې مالك اسم د کان دی او کم خبر د کان دی او تقديم د خبر جائز نه دی بلکه واجب دی او ته وائې چې جائز دی؟ **جواب:** جواز دلته په مقابل د امتناع کې دی معنی دا ده چې جائز دی او ممتنع نه دی تقديم د خبر په افعال ناقصو د کان نه تر راح پورې بيا عام دی که مقتضی د تقديم وجوبي موجود وو نو مقدم کيږي به وجوبا والاجوازا.
**وقسم** او يو قسم دی **لا يجوز** چې جائز نه دی تقديم د خبر د افعال ناقصو په افعال ناقصو باندې **وهو ما في اوله ما** او دا هغه دی چې په اول د دې کې کلمه د ما راغلې وي چې هغه ما زال ما انفك مافتئ ما برح مادام دی دلته تقديم د خبر په افعال ناقصو باندې نه دی جائز ځکه ما دام کې ما مصدريه راغلې دی او تقديم د دام په دې ما باندې ممتنع دی نو تقديم د معمول د دام خو په طريق اولی سره ممتنع دی او د باقي افعال اربعه په اول کې ما نافيه راغلې دی دا تقاضه د صدرات د کلام کوي نو تقديم د خبر وربان‌دې نه دی جائز لپاره د دې چې لازم نه شي فوت د صدارت د ما له صدر الکلام **خلافا لابن کيسان** خلاف ثابت دی ابن کيسان لره او دا خلاف د ابن کيسان د طرف نه دی نه د جمهورو د طرف نه ځکه جمهورو مخکې دی او ابن کيسان وروستو دی **في غير ما دام** په غير د مادام نه په دې شان سره چې ابن کيسان وائي چې تقديم د خبر د مادام په مادام باندې ممتنع دی او په باقي افعال اربعه ؤ باندې جائز دی ځکه دا افعال اګر چې لفظا منفي دي خو لفظا مثبت دي ځکه دا مازال الخ په منزله د کان دی او تقديم د خبر په کان باندې جائز دی نو په دوی هم جائز دی او جواب د طرفه

د جمهورو نه دا دی چې فرق دی په مابین د شئ او مؤول بالشئ کې او صدارت عدم صدارت صفت د لفظ دی دا اګر چې معنی مثبت دی لیکن په لفظ کې حرف نفي شته دا تقاضا د صدارت کوي او که تقدیم راشي نو بیا صدارت فوت کیږي. **وقسم مختلف فيه** او یو قسم دی چې اختلاف کړی شوی دی په هغې کې بين الجمهور **وهو ليس** او هغه لفظ د لیس دی په دې شان سره چې بعض وائي تقدیم د خبر دلیس په لیس باندې جائز دی ځکه دا فعل دی قوي العمل دی عمل کوي په معمول مقدم او مؤخر دواړو کې او بعض وائي چې تقدیم د خبر دلیس په لیس باندې نه دی جائز ځکه چې لیس په معنی د ماکان سره دی او تقدیم د خبر په ماکان باندې ممتنع دی نو په لیس باندې هم ممتنع دی هغه مخکې بعض دوی ته جواب کوي چې منم دا خبره چې لیس په معنی د ما کان سره دی لیکن فرق دی په مابین د شئ او مؤل بالشئ کې او قیاس د دې په ماکان پاندې قیاس مع الفارق دی ځکه هلته مانع لفظا موجود دی چې حرف نفي دی او دلته مانع لفظا نشته

## افعال المقاربة

**ربط**: هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د نوع ثاني د دواخل او نواسخ د مبتدا او خبر نه چې افعال ناقصه وو نو شروع یې وکړه په نوع ثالث د دواخل او نواسخ د مبتدا او خبر کې چې افعال مقاربه دي نو وې ویل افعال المقاربة. په دې عنوان کې لابدي ده د معرفت د ثلاثة عشر امور نه: (۱) ذات (۲) اسم (۳) وجه د تسمیه (۴) تعریف (۵) تعداد (۶) مصداق (۷) مدخول (۸) عمل (۹) وجه د عمل (۱۰) تقسیم په افعال مقاربه کې باعتبار المعنی (۱۱) تقسیم باعتبار الخبر (۱۲) تقسیم باعتبار التصرف (۱۳) معرفة الاحکام. نو دا نوع په اعتبار د ذات سره افعال دي نه اسماء او نه حروف بالاتفاق علاوه د عسی نه چې عسی کې درې مذهبه دي: (۱): بصریان وائي دا فعل دی مطلقا برابره خبره ده چې په دې پورې ضمیر مرفوع او منصوب متصل شوی وي او که نه وي.
(۲): او جمهور کوفیان وائي چې دا حرف دی مطلقا که ضمیر ورپورې متصل شوی وي او که نه وي.
(۳): او سیبویه وائي چې دا فعل دی که ضمیر ورپورې متصل شوی وو والافهو حرف او مختار عند المصنف مذهب د بصریانو دی نو ځکه یې عسی ذکر کړی دی مطلقا د افعال مقاربو نه او نوم د دې افعال مقاربه دي ځکه بعض دلالت کوي په قرب د حصول د خبر باندې لپاره د اسم او دا تسمیه تغلیبا ده چې یوې نوع لره یې غلبه ورکړې ده په باقي باندې د وجې د شهرت او د کثرت استعمال نه، او تعریف د افعال مقاربو ماتن ذکر کړی دی.

**ترجمه: افعال المقاربة**: افعال مقاربه په اصطلاح کې **ما** افراد دي او افراد د ضمیر د وضع په اعتبار د لفظ د ما سره دی **وضع** داسې افعال چې وضع کړی شوي دي **لدنو الخبر** لپاره د دې چې دلالت وکړي دا افعال په حصول د خبر لپاره د فاعل **رجاء** په دنورجائي سره او د دنور جائ لپاره دوه شرطونه دي: (۱): خبر به بالفعل حاصل وي. (۲) حصول به متوقع او یقیني وي **او حصولا** یا لپاره د دې چې دلالت وکړي په قرب د ثبوت د خبر باندې لپاره د فاعل په دنو حصولي سره په دې شان سره چې د متکلم علم

يقين دی په دې خبره باندې چې دا خبر به حاصل شي دې فاعل لره عنقريب **او اخذا فيه** يا لپاره د دې چې دلالت وکړي په قرب د حصول د خبر د فاعل لپاره په دنو اخذي سره په دې شان سره چې د متکلم علم يقين دی په حصول د خبر د اسم لپاره عنقريب د وجې د شروع کولو د فاعل نه په خبر کې او په هغه اسبابو کې چې هغه مفضی دی حصول د خبر ته لپاره د اسم.
(۲): جنس فعل مقارب په اصطلاح کې **ما** جنس فعل دی **وضع لدنو الخبر**
**سوال:** داما به خالي نه وي يا به يې عبارت وائي د فعل نه او يا به يې عبارت وائي د افعال نه دواړه نه صحيح کيږي که عبارت يې وائي د افعال نه نو دا ماقبل ورسره ولګيدو چې حمل د جمع په جمع باندې راغی خو مابعد ورسره نه لګي چې وضع دی ځکه په وضع کې ضمير مستتر دی مفرد مذکر او دا جمع ته نه راجع کيږي او که ما عبارت وائې د فعل نه نو مابعد ورسره ولګيدو ځکه مطابقت راغی بين الراجع والمرجع خو ماقبل ورسره نه لګي ځکه حمل د واحد راغي په جمع باندې او دا باطل دی؟
**جواب:** (۱): ما عبارت د افعال نه وايم او افراد دضمير د وضع په اعتبار د لفظ د ما سره دی.
(۲): يا ما عبارت دی د فعل نه وايم او اضافت د افعال المقاربة ته اضافة جنسي دی او اضافت جنسي معنی د جمعيت باطلوي نو معنی دا شوه چې جنس فعل مقارب په اصطلاح کې جنس فعل دی نو تعريف د جنس په جنس وشو او حمل د جنس راغی په جنس باندې نه حمل د واحد په جمع باندې.
**سوال:** رجاء حصولا او اخذا درې واړه منصوب دي او منصوبات دولس دي دا کوم يو قسم دی د هغه اقسامو نه؟ **جواب:** دا منصوب دی بنا بر مفعول مطلق.
**سوال:** مفعول مطلق د چا لپاره دی؟**جواب:** د دنو لپاره.
**سوال:** شرط په مفعول مطلق کې دا دی چې دا به متحد وي د عامل سره په معنی کې او رجاءً حصولا او اخذا متحد نه دي د دنو سره په معنی کې ځکه دنو بمعنی قرب دی او رجاء بمعنی طمع حصولا بمعنی ثبوت او اخذا بمعنی شروع دی؟
**جواب:** دا مفعول مطلق دی په اعتبار د حذف د مضاف سره ای دنو رجاء او حصول او اخذ.
**سوال:** مفعول مطلق دې ته وائي چې عامل د دې به مشتمل وي په دې مفعول مطلق د قبيلې د اشتمال د کل نه په جز باندې نحو ضربت ضربا او دلته دا عامل مشتمل نه دی په مفعول مطلق باندې د قبيلې د اشتمال د کل نه په جز باندې ځکه مفعول مطلق هم مصدر دی او عامل هم مصدر دی؟
**جواب:** (۱): اشتمال د عامل په مفعول مطلق باندې د قبيلې د اشتمال د کل نه په جز باندې په هغه ځای کې دی چې عامل د دې فعل يا مشبه فعل وو او که عامل يې مصدر وو بيا دا شرط نه دی.
(۲): او که ومنم چې اشتمال د عامل په مفعول مطلق باندې د قبيلې د اشتمال د کل نه په جز باندې مطلقا شرط دی نو مصدر په حين د عمل کې ان مع الفعل يا ما مع الفعل سره وي لهذا په دې مقام کې دا مصدر عامل بمعنی ان مع الفعل دی (ای ما وضع لان يدنو الخبر دنو رجاء) او حصول او اخذ ته نو دنو چې په معنی د ان يدنو شو نو عامل مشتمل شو په مفعول مطلق باندې د قبيلې د اشتمال

د کل نه په جز باندې څکه اشتمال د عامل په مفعول مطلق د قبيلې د اشتمال د کل نه په جز باندې عام دی که حقيقة وي او که تاويلا وي حقيقة لکه ضربت ضربا او تاويلا لکه دا شو
**سوال:** د اتعريف د افعال مقاربو باطل دی څکه چې مقصود په تعريف کې وضاحت د معرف وي او وضاحت د معرف په جزم او يقين سره راځي او مصنف په دې کې شکي دی څکه او يې ذکر کړی دی او دا راځي د شك او تردد لپاره؟ **جواب:** دا کلمه د او د تنويع او د تقسيم لپاره ده نه لپاره د شك او تردد، په دې کې يې اشاره وکړه دې ته چې افعال مقاربه باعتبار المعنی درې قسمه دی
(۱): بعض هغه دي چې دلالت کوي په دنو رجائي باندې
(۲): بعض هغه دي چې دلالت کوي په دنو حصولي باندې
(۳): او بعض هغه دي چې دلالت کوي په دنو اخذي باندې
او افعال مقاربه ټول يولس دي مصداقونه يې دا دي: عسی، اخلولق، حری، کاد، کرب، اوشك، جعل، طفق، اخذ، انشاء، علق او دا داخليږي په مبتدا او خبر باندې او اسم مرفوع خبر منصوب غواړي او دا عمل د رفع او نصب د دې سماعي دی او دا يولس افعال مقاربه په اعتبار د معنی سره په درې قسمه دی: (۱) بعض دلالت کوي په دنو رجائي لکه عسی، اخلولق، او حری
(۲): دويم قسم هغه دی چې خبر يې مضارع راځي بدون ان دائما ابدا لکه خبر د هغه افعال مقاربو چې دلالت کوي په شروع باندې
(۳): او دريم قسم هغه دی چې خبر يې مضارع وي کله سره د ان نه او کله بدون ان لکه عسی و کاد وکرب واوشك شو او دارنګې دا افعال په اعتبار د تصرف سره درې قسمه دی: (۱): يو هغه دی چې متصرف دی په تصرف کامل سره لکه اوشك شو څکه د دې ماضي مضارع او اسم فاعل مستعمل دي
(۲): دويم قسم هغه دی چې متصرف دی په تصرف ناقص سره لکه کاد شو چې ماضي او مضارع يې مستعمل دی نه غير
(۳): او د دې نه علاوه باقي افعال مقاربه غير متصرف دی په دې شان سره چې علاوه د ماضي نه بله صيغه د هغې نه نده راغلې
**سوال:** دا قاعده ده چې په عوامل کې چې اتحاد ذاتي او د خولي او عملي راشي نو هغه د يوې نوع نه شمېرلی شي لکه او لس حروف جاره شو چې دا متحد دي د يو بل سره په ذات کې او په مدخول کې او په عمل کې نو يوه نوع شوه اوس افعال مقاربه او افعال ناقصه هم متحد دي د يو بل سره په ذات کې په مدخول او په عمل کې، په دې شان سره چې دا دواړه افعال دي، دواړه داخليږي په مبتدا او خبر باندې او دواړه اسم مرفوع خبر منصوب غواړي نو د دې تقاضه دا وه چې دا يې يوه نوع ګرځولی وی نو نحويانو دا جدا جدا نوع ولې ګرځولی دی؟
**جواب:** اصل کې په نزد جمهورو باندې دا يوه نوع وه ټول افعال ناقصه دي عند الجمهور خو بيا اخفش جدا کړی دی د افعال ناقصو نه څکه: (۱) خبر د افعال ناقصو غالبا مفرد راځي او کله کله جمله وي په سعة د کلام کې او خبر د افعال مقاربه وو فقط فعل مضارع راځي نه مفرد په سعت د

کلام کي (۲) تقديم د معمول د افعال ناقصو په افعال ناقصو باندې جائز دی چې مانع نه وي او تقديم د معمول د افعال مقاربو په افعال مقاربو باندې نه دی جائز نو هر کله چې دا فرق حاصل وو باعتبار الخبر بالوجهين المذکورين پس وګرځول اخفش دا يوه نوع علاحدةً او مختار عند المصنف مذهب د اخفش دی ځکه يې دا جدا ذکر کړه د افعال ناقصو نه

**فالاول: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د اقسام ثلاثه د افعال مقاربو نه په اعتبار د مفهوم سره اجمالاً نو شروع يې وکړه په بيان داقسام ثلاثه د افعال مقاربه وو کې تفصيلاً نو وې ويل (**فالاول**) پس قسم اول چې ما وضع لدنو الخبر رجاءً دی **عسی** لفظ د عسی دی او عسی فعل دی په مذهب صحيح باندې په دليل د اتصال د تاء تانيث ساکنه سره په دې پورې او دارنګې کله کله متصل کيږي په اخير د ده پورې ضمير مرفوع متصل يقال عسی عسيا عسو عسين، او اتصال د ضمير بارز مرفوع دليل دی په فعليت باندې ځکه ضمير بارز مرفوع متصل کيږي په فعل پورې نه په اسم او حرف پورې

**سوال:** فعل دوه قسمه دی: متصرف، غير متصرف، عسی فعل متصرف دی که غير متصرف؟

**جواب: وهو غير متصرف** دا فعل غير متصرف دی ځکه مضارع امر نهي مجهول اسم فاعل اسم مفعول وغيره د عسی نه ندی راغلی. سيبويه ويلې دي چې عسی راځي لپاره د طمع په محبوب کې نحو عسی زيد ان يخرج او د اشفاق لپاره راځي په مکروه کې نحو عسيت ان اموت. او دغسې درې استعماله دي: (۱) يو دا چې د عسی نه وروستو اسم راغلی وي او د هغې نه بعد مضارع وي مصدر په ان ناصبه سره لپاره د تقويت د معنی د ترجي ځکه عسی هم د طمع او رجاء لپاره راځي او ان ناصبه مصدريه هم د طمع او رجاء دپاره راځي نو دا مناسب دی د عسی سره **تقول** وائي به ته بنا په استعمال اول باندې **عسی زيد ان يخرج** په دې کې درې ترکيبونه دي: (۱) مشهور ترکيب دا دی چې عسی فعل دی د افعال مقاربو نه بمعنی قارب زيد اسم د عسی او ان يخرج خبر د عسی دی عسی سره د اسم او خبر نه جمله فعليه انشائيه ده.

**سوال:** ان چې داخل شي په فعل مضارع باندې نو د مضارع نه مصدر جوړوي نو تقدير دا شو چې عسی زيد الخروج نو دا خو حمل د صرف وصف راغی په ذات باندې؟

**جواب:** (۱) دا محمول دی مبالغة په شان د زيد عدل باندې

(۲) دا محمول دی په اعتبار د حذف د مضاف سره په جانب د اسم کې ای عسی حال زيد الخروج

(۳) يا په اعتبار د حذف د مضاف سره په جانب د خبر کې ای عسی زيد ذا الخروج.

(۴) مصدر مبني للفاعل دی ای عسی زيد خارجا (۵): فرق دی په مابين د شئ او مؤل بالشئ کې.

(۲) دويم ترکيب دا دی چې زيد فاعل د عسی دی او ان يخرج منصوب دی بنا بر تشبيه بالمفعول د وجې د عدم صحت د حمل د ده نه په اسم باندې او تقدير د مضاف تکلف دی.

(۳) کوفيان وائي چې زيد مبدل منه دی او ان يخرج بدل اشتمال دی د زيد نه مبدل منه سره د بدل نه فاعل د عسی دی، او شارح رضی وائي اوی ان هذا وجه قريب او عسی بنا په ترکيب اول باندې ناقص دی او بنا په ترکيب ثاني او ثالث باندې تام دی.

او دویم استعمال په عسی کې دا دی چې دا فعل مضارع سره د ان نه واقع شي وروستو د عسی نه او د هغې نه وروستو اسم مرفوع ذکر شي نحو **عسی ان یخرج زید** په دې کې هم درې ترکیبونه دي (۱) ان یخرج زید، فعل سره د فاعل نه په تاویل د مصدر سره فاعل د عسی او عسی بمعنی قرب دی ای قرب خروج زید

(۲) دویم ترکیب دا دی چې ان یخرج فعل مضارع معلوم دی ضمیر پکې مستتر دی هغه ورله فاعل دی فعل سره د فاعل نه خبر مقدم او زید اسم مؤخر

(۳) د عسی او د ان یخرج تنازع راغلی ده په زید کې که عمل فعل اول لره ورکړی شي نو زید اسم د عسی او ان یخرج خبر د عسی دی او خبر مقدم شوی دی په اسم باندې، او که عمل فعل ثاني لره ورکړی شي نو اسم د عسی ضمیر مستتر دی په عسی کې چې راجع دی زید ته او ان یخرج زید خبر د عسی دی او اضمار قبل الذکر لفظا او رتبتا په باب د تنازع کې جائز دی او عسی په ترکیب اول باندې تامه وو او په دې دوه ترکیبین باندې ناقص دی

دریم استعمال په عسی کې دا دی چې اسم مرفوع واقع شوی وي مخکې د عسی نه او فعل مضارع مصدره په ان سره راغلی وي وروستو د عسی نه نحو **زید عسی ان یخرج** په دې کې دوه مذهبونه دي: حجازین، بنو تمیم

حجازین وائي چې زید مبتدا عسی فعل ان یخرج فاعل او دا عسی خالي دی د ضمیر نه دا فعل سره د فاعل نه جمله فعلیه خبر د مبتدا دی. او بنو تمیم وائي چې **زید** مبتدا **عسی** فعل دی او ضمیر پکې مستتر دی هغه اسم د عسی دی او ان یخرج یې خبر دی بیا عسی سره د اسم او خبر نه جمله خبر د مبتدا دی نو د حجازین په نزد باندې دا عسی تامه دی او د بني تمیم په نزد باندې ناقص دی او ثمره د خلاف د حجازینو او بنو تمیم ظاهرېږي په حالت د تانیث او تثنیه او جمع کې نحو هند عسی ان تفلح به وائي په نزد د حجازین باندې او هند عست ان تفلح به وائي عند بني تمیم **وقد یحذف** او کله کله حذف کولی شي ان ناصبه مصدریه د فعل مضارع نه په استعمال اول کې تشبیها لها بکاد کقول الشاعر:

عسی الهم الذي امسیت فیه     یکون وراءه فرج قریب

چې دلته د عسی لپاره خبر راغلی دی فعل مضارع چې یکون دی بدون ان او په استعمال ثاني او ثالث د عسی کې حذف د ان ناصبه مصدریه جائز نه دی د وجې د عدم مشابهت د ده نه د کاد سره.

**والثاني** او قسم ثاني چې ما وضع لدنو الخبر حصولا دی **کاد** لفظ د کاد دی او خبر د کاد فعل مضارع راځي بدون ان ځکه کاد دلالت کوي په قرب د حصول د خبر باندې في الحال او ان راځي د استقبال لپاره او دا منافي دی د زمانې د حال سره.

(۲) یا کاد دلالت کوي په قرب د حصول د خبرې لپاره د اسم قطعا او یقینا او ان راځي د طمع او رجاء لپاره او په، ابین د دې کې منافات دی **تقول** وائي به ته **کاد زید یجیئ** بل مثال قوله تعالی **يَكَادُ الْبَرْقُ يَخْطَفُ أَبْصَارَهُمْ**، **يَكَادُ زَيْتُهَا يُضِيءُ** **وقد تدخل ان** او کله کله داخلیږي ان ناصبه مصدریه په خبر د کاد باندې تشبیها له بعسی کما في قول الشاعر

رسم عفا من بعد ما قد انمحى قد كاد من طول البلى ان يمصحا

دلته ان يمحصا مضارع سره د ان نه خبر دی لپاره د کاد **واذا دخل النفي** او کله چې داخل شي حرف نفي **على كاد** په لفظ د کاد باندې چې دا صيغه د ماضي ده **فهو** پس دغه کاد وروستو د دخول د حرف نفي نه **كالافعال** په شان د باقي افعالو دی په نفي د خبر کې په دې شان سره چې په کاد باندې چې حرف نفي داخل شي نو نفي د مضمون د جملې کوي **على الاصح** بنا په مذهب اصح باندې دا کاد عام دی ماضي وي او که مستقبل وي، ځکه حرف نفي وضع شوی دی د نفي لپاره او مانع نشته **وقيل** او چا ويلي دي **يكون للاثبات** چې کيږي دا حرف نفي د اثبات د خبر لپاره برابره خبره ده چې ماضي وي که مستقبل وي، هر چې دی په ماضي کې نو د وجې د دې قول د الله تعالى نه چې (وما كادو يفعلون) کيفيت د استدلال يې دادی چې که چيرته نفي په ماضي کې د اثبات لپاره نه شي نو لازم به شي تناقض په دې قول د الله تعالى کې (وما كادوا يفعلون) ځکه دا دلالت کوي په انتفاء د فعل د ذبح باندې او دا قول د الله تعالى چې (فذبحوها) دلالت کوي په اثبات د فعل د ذبح باندې، او په مينځ د اثبات او انتفاء کې تناقض دی، او هر چې دی په مضارع کې نو د درې وجو نه (۱) په دليل د تخطيه د شعراؤ قول د ذي الرمه لره چې هغه دا قول دی: (لم يكد رسيس الهوى من حب ميت يبرح) او د تخطيې مقصد دا دی چې مقصود د ذي الرمه عدم زوال د رسيس الهوى الخ دی، او دا قول د دهٔ دلالت کوي په زوال د دې باندې ځکه نفي چې په يکاد باندې داخله شي نو دا اثبات فائده کوي.

(۲) په دليل د تسليم د ذي الرمه باندې تخطيه د شعراؤ لره يعنې دې شاعرانو چې وويل چې ذي الرمه په دې قول کې خطا شوی دی ذي الرمه ومنله چې زه خطا شوی يم (۳) په دليل د تغير د ذي الرمه باندې دې قول خپل لره چې لم يكد دی په لم اجد سره. جواب د طرفه د قول اصح نه دا دی چې هر چې دی په ماضي کې نو دا قول د الله تعالى وَمَا كَادُوا يَفْعَلُونَ دلالت کوي په نفي باندې او سره د دې نه تناقض نشته ځکه د تناقض لپاره وحدت د زمانې شرط دی او دلته وحدت د زمانې نشته، و ما كادوا يفعلون دا په يوه زمانه کې چې قبل المشيئت دی او فذبحوها په بله زمانه کې دی چې بعض المشيئة دی او هر چې دی په مضارع کې نو بعضې فصحاؤ تخطيه کړې ده د مخطئينو د ذي الرمه يعنې بعضې فصحاؤ ويلي دي چې د ذو الرمه دا اصل قول صحيح دی او د شاعرانو دا تخطيه هم غلطه ده او ذو الرمه چې د هغې تسليم کړی دی دا هم غلط دی او دا تغير د لم يكد چې په لم اجد سره کړی دی دا هم غلط دی او دغه بعضې فصحاؤ ويلي دي دا قول د الله تعالى چې وَمَا كَادُوا يَفْعَلُونَ دی په شان د دې قول د الله تعالى دی چې إِذَا أَخْرَجَ يَدَهُ لَمْ يَكَدْ يَرَاهَا او په دې ايت کې خو مقصود نفي د رؤيت ده نه اثبات د رؤيت نو دلته هم مراد نفي ده نه اثبات.

**وقيل** او چا ويلي دي **يكون في الماضي** چې کيږي دا حرف نفي په ماضي کې **للاثبات** د اثبات د خبر لپاره **وفي المستقبل** او په مستقبل کې **كالافعال** په شان د باقي افعالو دی په نفي د مضمون د جمله اسميه کې **تمسكا** د وجې د استدلال نيولو د دې قيل نه په دې خبره باندې چې دا حرف نفي داخل شي په ماضي

باندې دا اثبات فائده کوي بقوله تعالی ﴿وَمَا كَادُوا يَفْعَلُونَ﴾ چې دلته دا ما نافيه داخل شوی دی په کاد باندې چې دا صيغه د ماضي ده او اثبات يې فائده کړی دی نه نفي خکه مراد په دې ايت کې اثبات د فعل دی نه نفي د فعل بدليل فذبحوها خکه دا دلالت کوي په حصول د ذبح باندې او که مراد د ما كادوا يفعلون نه نفي د قرب شي د ذبح نه چې هغه مستلزم ده انتفاء د ذبح لره على وجه ابلغ لکه چې نفي د قرب د زنا مستلزم ده انتفاء د زنا لره على وجه ابلغ في قوله تعالى ﴿وَلَا تَقْرَبُوا الزِّنَا﴾ نو بيا لازميږي تناقض ليکن د دې جواب مخکې تير شوی دی، **ويقول ذي الرمة** او دا حرف نفي چې داخل شي په مستقبل باندې نو نفي د مضمون د جملې کوي استدلال يې کړی دی په دې قول د ذي الرمه سره:

اذا غير الهجر المحبين لم يكد رسيس الهوى من حب مية يبرح

**ترجمه:** کله چې تغير وکړي دا هجران او فراق د دوستانو **لم يكد** نږدي نه ده **رسيس الهوى** اصل دوستي کيفيت د استدلال دا دی چې ذي الرمه په دې خپل شعر کې حرف نفي داخل کړی دی په يکاد باندې او مراد دی په دې سره انتفاء د قرب د رسيس الهوى ده د براح نه نو دا په شان د عامو افعالو شو په حصول د نفي کې نو دا خبره د دوی صحيح ده ليکن د دې **قيل** مدعا مرکبه وه د دوه جزئينو نه (۱) اثبات في الماضي (۲) نفي في المضارع، نو دا جزء ثاني مسلم دی نه جزء اول خکه هلته مقصود په ايت کې نفي د فعل ده نه اثبات نو د قيل ثاني مدعا باطله وه بکلا الجزئين او د قيل ثالث مدعا باطله ده بجزء واحد.

**والثالث طفق** او قسم ثالث چې ما وضع لدنو ثبوت الخبر للفاعل دی طفق دی په معنی د اخذ او شروع سره نحو قوله تعالى (وطفقا يخصفان عليهما من ورق الجنة) (وطفق مسحاً بالسوق والاعناق) ای شرع. **وكرب** او بل كرب دی نحو كربت الشمس ای تغرب اذا دنت للغروب، **وجعل** بل جعل دی په معنی د طفق سره، **واخذ** او بل اخذ دی په معنی د شروع سره وهي مثل كاد، او دا افعال اربعه په استعمال کې **مثل كاد** په شان د كاد دي په کون د خبر د دې کې مضارع بدون ان، او دا خبر د دې مضارع بدون ان خکه ده چې د دې افعالو معنی د قرب شروعي او په د بکې جزم دی او ان دلالت کوي په طمع باندې او طمع منافي ده د جزم سره، **واوشک** او بل اوشک دی دا په اصل وضع کې په معنی د اسرع سره دی او بيا په معنی د قرب استعماليږي **وهي مثل عسى وكاد في الاستعمال** او دا اوشک په شان د عسى او د كاد دي په استعمال کې نو کله مستعمليږي په شان د عسى نو خبر د دې فعل مضارع وي مع ان او کله مستعمليږي په شان د كاد نو خبر د دې فعل مضارع وي بدون ان د اول مثال اوشک زيد ان يجيئ او د ثاني مثال اوشک زيد يجيئ.

## فعل التعجب

(ربط) هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د افعال مقاربو نه نو شروع يې وکړه په فعل تعجب کې، يو تعجب دی او يو صيغه د تعجب ده. او يو فعل تعجب دی. تعجب يو کيفيت دی چې عارضيږي زړه د

انسان ته په وقت د ادراك د يو امر خفي السبب كې او صيغه د تعجب هغه لفظ ته وائي چې دلالت كوي په دغه كيفيت باندې مثال لكه سبحان الله۔لاشل عشره۔قاتله الله۔ما احسن زيدا۔او احسن بزيد۔
او جنس فعل تعجب په اصطلاح د نحويانو كې **ما** فعل دى داسې فعل **وضع** چې وضع كړى شوى دى دغه فعل په وضع ثاني سره **لانشاء التعجب** لپاره د اظهار د تعجب په دې شان سره چې مستعمليږي په دې تعجب كې فقط نه په بله معنى كې كلمه د ما عبارت دى د فعل نه په قرينې د مقام سره په دې سره يې احتراز وكړو د لله دره فارسا واها، او سبحن الله نه ځكه دا افعال نه دي (لانشاء التعجب فقط سره يې احتراز وكړو د قاتله الله لاشلت يده نه. ځكه دا په بله معنى كې هم مستعمليږي، چې هغه دعا ده نو تعريف د فعل تعجب جامع مانع شو.
په بعضو نسخو د كافيه كښ افعال التعجب راغلى دى او په اكثر نسخو كې فعلا التعجب راغلى دى على صيغة التثنيه، او په بعض نسخو كې فعل التعجب راغلى دى على صيغة المفرد او دا درې واړه نسخې صحيح دي، فعل التعجب مفرد راغلي دى په نظر سره تعريف ته ځكه تعريف د جنس په جنس سره كيږي او صيغه د جمع راغلى ده په نظر سره افرادو ته چې افراد د دې زيات دي او صيغه د تثنيه راغلې ده په نظر سره نوعين ته.
**سوال:** په كومه نسخه كې چې صيغه د تثنيه او صيغه د جمع راغلې ده نو په هغې كې لازميږي تعريف د افرادو او دا باطل دى ځكه تعريف د جنس كيږي په جنس سره؟ **جواب:** ما وضع لانشاء التعجب دا تعريف د جنس فعل تعجب دى چې هغه مفهوم دى د تثنيه يا د جمع نه.
**سوال:** معترض دا كلمه د ما عبارت اخلي د لفظ نه او بيا اعتراض كوي چې فعل تعجب په اصطلاح كې يو لفظ دى چې وضع شوى دى د انشاء د تعجب لپاره نو تعريف د فعل تعجب مانع نه شو د دخول د غير نه داخل شو پكې سبحانه لله، لله دره فارسا، لاشل عشره، په دې باندې تعريف صادقيږي او فعل تعجب ورته نه وائي؟ **جواب:** دا اعتراض به هله وارد كيدو چې ما عبارت د لفظ نه وى ليكن ما عبارت د لفظ نه ندى بلكه عبارت دى د فعل نه په قرينې د مقام سره ځكه دا بحث د فعل دى لهذا دا خارج دي ځكه دا افعال نه دي.
**سوال:** تعريف د فعل تعجب مانع نه شو د دخول د غير نه داخل شو پكې قاتله الله لاشل عشره، دا فعل دى د انشاء د تعجب دپاره وضع كړى شوى دى نو تعريف ورباندې صادق دى او د دوى په اصطلاح كې ورته فعل تعجب نه وائي؟
**جواب:** فعل التعجب د نحويانو په اصطلاح كې ما وضع لانشاء التعجب فقط ته وائي او (قاتله الله لاشل عشره) لكه څنګه چې مستعمليږي په انشاء د تعجب كې نو دغسې مستعمليږي په دعا كې هم **وله صيغتان: ربط:** هر كله چې فارغ شو مصنف د تعريف د فعل تعجب نه نو شروع يې وكړه په صيغه د فعل تعجب كې نو وې ويل و له صيغتان، د فعل تعجب لپاره يا ما وضع لانشاء التعجب لپاره دوه صيغې دي: اوله صيغتان كې پنځه تركيبونه دي:

(۱): له جار مجرور په اعتبار د متعلق سره چې ثابت دی خبر مقدم او صیغتان مبتدا مؤخره ده
(۲): له جار مجرور متعلق دی په ثبت فعل پورې دا جمله فعلیه خبر مقدم او صیغتان مبتدا مؤخره ده
(۳): له ظرف دی او صیغتان فاعل د ظرف دی دا جمله ظرفیه شوه
(۴): له متعلق دی په ثابت پورې او صیغتان فاعل د ثابت دی نو شبه جمله شوه (عند الاخفش)
(۵): له متعلق دی په ثبت پورې او صیغتان فاعل د ثبت دی نو جمله فعلیه شوه او په مرجع د ضمیر غایب کې دوه احتماله دي یو احتمال دا دی چې ضمیر راجع دی فعل تعجب ته دویم احتمال دا دی چې دا راجع دی ما وضع لانشاء التعجب ته

**ما افعله** افعل چې مستعمل تعجب کې اسم دی او که فعل دې کې دوه مذهبه دي افعل چې مستعمل شي تعجب کې اسم دی او په فعل دې کې دوه مذهبه دي (۱) کوفیان چې اسم دی دلائل د هغوی درې دي (۱) تصرف څکه خاصه د فعل تصرف دی که فعل وی متصرف به وو (۲) عدم دخول الام او دا اسم کې راځي بصریین وایې دا فعل دی دلائل دهغویې هم درې دی (۱) الحاق نون الوقایة عند اتصال ضمیر المتکم مثال نحو ما احسنني فلا یجوز ما احسني بخلاف الاسم چې اول خو دی پورې نون وقایه نه متصل کیږی او که متصل شی نو شذوذاً متصل کیږی نحو ولیس حاملنی الاابن حمالی او که شذوذاً متصل نشی نو بیا نون وقایه لازم ندی لکه قد بمعنی حسب (۲) عمل د افعل نصب بنا بر مفعول به په معرفه کې دی او اسم بروزن افعل عمل د نصب په معرفه کې بنا بر مفعول به نشی کولی اسم تفضیل عمل د نصب کوی په نکره کې بنا برتمیز او صفت مشبه عمل د نصب کوی په معرفه کې بنا بر تشبیه للمفعول (۳) احسن مبنی علی الفتحه دی څکه دا ماضی ده او که اسم وی احسن به مرفوع وی څکه دا خبر د ما لپاره دی او جواب د دلائلو د کوفیینو نه دا دی عدم تصرف دلیل د اسمیت ندی کما في نحو لکه لیس وعسی او تصمیم او تصغیر دیکې راغلی دی د وجې د مشابهت د ده نه د اسم تفضیل سره لفظاً او معناً لانهما من واضع واحد او جوهری ویلی دی تصغیر د ما احسن او ما املح مسموع دی د عربو نه نه د غیر نه یعنی تصغیر په دی کې شاذ دی او مختار په نز دمصنف مذهب د بصریینو دی فافهم

یو د هغه دوه صیغو د فعل تعجب نه هغه صیغه ده چې مشتمل دی په هغې باندې ترکیب د ما افعله لکه احسن شو په ما احسن زیدا کې **وافعل به** دویم د هغه دوه صیغو د فعل تعجب نه هغه صیغه ده چې مشتمل دی په هغې باندې ترکیب د افعل به لکه احسن شو په احسن بزید کې یعني احسن صیغه د فعل تعجب ده په دې شرط سره چې راشي وروستو د ما تعجبي نه او احسن صیغه د فعل تعجب ده په دې شرط سره چې د دې نه وروستو باء زائده راشي والافلا

**سوال:** ما افعله او افعل به خبر دی د مبتدا محذوف لپاره فیکون التقدیر احدهما ما افعله واخراهما افعل به، نو ما افعله او افعل به خو فعل تعجب نه دی څکه دا جمله ده او مرکب تام دی بلکه فعل تعجب دا افعل دی په ما افعله کې او افعل دې په افعل به کې؟

**جواب:** وشو په ترجمې سره يعني دلته ذكر د كل دى او مراد ترينه جز دى.
**بهما** او دا دواړه صيغې د فعل تعجب **غير متصرفين** غير متصرفين دي په دې شان سره چې د دې نه مضارع، مجهول، مؤنث وغيره نه راځي ځكه دا په شان د ضرب المثل دى په نقل كې د معنى اول نه معنى ثاني ته او په امثالو كې تغير او تصرف نه دى جائز **ولا يبنيان** او نه شي جوړولى دا دواړه صيغې د فعل تعجب **الا** مګر جوړولى شي **مما** د هغه مادې نه **يبنى منه** چې جوړولى شي د هغې نه **افعل التفضيل** اسم تفضيل لانهما من واد واحد ځكه دا دواړه صيغې د فعل تعجب مشابه دي د اسم تفضيل سره د وجې د دلالت د دې دواړو نه په مبالغه او تاكيد باندې او بنا د اسم تفضيل خو مشروط ده په شروط عشرو سره نو بنا د فعل تعجب هم مشروط ده په شروط عشرو سره: (۱): د اجوړېږي د هغه مادې چې دلالت كوي په حدث باندې.
(۲): دغه ماده به ثلاثي وي. (۳): مجرد به وي. (۴): دلالت به نه كوي په لون باندې خلافا للكوفيين مغوى جائز وائي. (۵): دلالت به نه كوي په عيب باندې. (۶): تام به وي.
(۷): متصرف به وي. (۸): قابل د زيادت او د نقصان به وي (۹): مثبت به وي. (۱۰): معلوم به وي. او لكه څنګه چې اسم تفضيل جوړېږي د فاعل لپاره قياسا نه د مفعول لپاره او هر چې دى ما اشهى الطعام او ما امقت الكذب نو دا شاذ دى. **ويتوصل في الممتنع** متكلم چې قصد او اراده وكړي د اداء د معنى د فعل تعجب د ماده ممتنعه نه نو ادا كولى شي كه نه؟ **جواب:** ادا كولى شي.
**سوال:** څنګه ادا كولى شي كيفيت او طريقه يې څه ده؟ **جواب:** طريقه يې دا ده چې يو ماده به وګوري د ثلاثي مجردو نه چې دلالت كوي په قوت يا شدت يا كثرت يا زيادت باندې د هغې نه فعل جوړ كړه په وزن د افعل باندې او دا ذكر كړه وروستو د ما تعجبي نه او مصد، د ماده ممتنعه وروستو د هغې نه ذكر كړه نو دلالت به وكړي په معنى دفعل تعجب باندې نحو ما اشد استخراجه يا د هغه مادې د ثلاثي مجردو نه چې دلالت كوي په قوت الخ افعل وزن جوړ كړه او مصدر د ماده ممتنع ذكر كوه وروستو د هغې نه سره د باء زائده نه نحو اشدد باستخراجه
**ولا يتصرف فيهما: ربط:** هر كله چې فارغ شو د بيان د شروطو د بنا دفعل تعجب نه نو شروع يې وكړه په بيان د حكم د فعل تعجب كې نو وې ويل ولايتصرف الخ
**ترجمه: ولا يتصرف** تصرف نه شي كولى **فيهما** په دې دوه صيغو د فعل تعجب كې چې يو ما احسن زيدا دى او بل احسن بزيد دى. **بتقديم** په تقديم د مفعول يا جار مجرور سره په فعل باندې **وتاخير** او په تاخير د فعل سره په مفعول يا جار مجرور باندې فلا يقال ما زيدا احسن ولا بزيد احسن، ځكه دا دواړه صيغې د فعل تعجب پس د نقل نه تعجب ته مستعملولى شي په شان د استعمال د امثالو نو په دې كې تغير نه راځي لكه څنګه چې امثالو كې تغير نه راځي لپاره د دې چې دلالت وكړي په قصه غريبه باندې او دلالت په قصه غريبه باندې هله راځي چې تغير او تبديل پكې ونه شي او كه تغير او تبديل پكې وشي نو بيا دلالت په قصه غريبه باندې نه كوي لكه ويلى كيږي يو سړي ته چې هغه طلب د يو شي وكړي او دغه شي يې ضائع كرى وي مخكې ضعيت اللبن في الصيف په كسرى د تا سر

ځکه دا قول اصل کې ویلی شوی وو یوې ښځې ته اوس په مذکر کې چې مستعمل شي نو هم ضیعت ویلی کیږي بې د تغیر او تصرف نه لپاره د دې چې دلالت وکړي په قصه غریبه باندې

**سوال:** عدم تصرف بالتقدیم مستلزم دی عدم تصرف بالتاخیر لره او عدم تصرف بالتاخیر مستلزم دی عدم تصرف بالتقدیم لره ځکه تقدیم د شئ مستلزم دی تاخیر د غیر لره او تاخیر د شئ مستلزم دی تقدیم د غیر لره او ذکر د احدهما مستلزم ذکر د اخر لره نو مصنف لره پکار وه چې اکتفاء بې کړې وی په احدهما باندې ځکه فرض منصبي د مصنف اختصار بما هو اختصار دی؟

**جواب:** (تسلیمي) منم چې ذکر د احدهما مستلزم دی ذکر د اخر لره لیکن ذکر د تاخیر یې پس د تقدیم نه کړی دی لپاره د تاکید یعنې دا تصریح بما علم ضمنا ده او دا نه شي مسمی کولی په لغوه او په استدراك سره. **جواب:** (منعي) ذکر د احدهما مستلزم دی ذکر د اخر لره په وجود کې نه په قصد الاراده کې ځکه یو مقصود من الشئ دی او بل حاصل من الشئ دی او هر کله چې دا د یو بل نه جدا کېدل په قصد او اراده کې نو ذکر یې کړو تاخیر وروستو د تقدیم نه قصدا او ارادة اشاره یې وکړه دېته چې دا مقصود من الشئ دی نه حاصل من الشئ (۳) د تقدیم او د تاخیر لپاره دوه معاني دی

(۱) تقدم د شئ د شئ نه او تاخیر د شئ د شئ نه بنا په دې تعریف باندې د دوی په مینځ کې ملازمه شته

(۲) تقدیم ذکر الشئ في الاول او تاخیر ذکر الشئ في الاخر بنا په دې تعریف باندې ملازمه نشته په دې شان سره چې ذکر د احدهما مستلزم نه دی ذکر د اخر لره او دلته تقدیم او تاخیر په دې معنی سره دی.

**ولا فصل** او نه دی جائز فصل او جدائي په مینځ د فعل تعجب او معمول د دهٔ کې فلا یقال ما احسن في الدار زید اکرم الیوم بزید ځکه دا په شان د امثال دی او امثال کې تغیر نه دی جائز **واجاز المازني** او جائز کړی دی امام مازني **الفصل** جدائي په مینځ د فعل تعجب او معمول د دهٔ کې **بالظرف** په ظرف سره ظرف عام دی که ظرف حقیقي وي لکه زمان او مکان شو او که مجازي وي لکه جار مجرور شو.

(۱) (دلیل عقلي) ځکه مسموع دی د عرب نه ما حسن بالرجل ان یصدق.

(۲) په ظروفو کې توسع ده جائز دي په دې کې هغه څه چې په غیر د دې کې جائز نه وي لکه تقدیم د خبر د حروف مشبه بالفعل نه دی جائز بخلاف الظرف دارنګې فصل نه دی جائز په مینځ د فعل تعجب او معمول د دې کې بخلاف الظرف او دا خلاف په هغه ظرف کې دی چې هغه متعلق وي په فعل تعجب پورې او که دا ظرف متعلق په فعل تعجب پورې نه وو بلکه متعلق وو په معمول د دې پورې نو بیا فصل په ظرف سره نه دی جائز بالاتفاق نحو ما احسن معتکفا في المسجد فلا یقال ما احسن في المسجد معتکفا ځکه دا في المسجد متعلق دی په معتکفا پورې نه په احسن پورې او جائز کړی دی اکثر علماؤ فصل په مابین د فعل تعجب او معمول د دهٔ کې په کان زائده سره نحو ما کان احسن زیدا لکه راغلی دی په دې قول د ابن مالك کې

وقد تزاد کان في حشو کما
کان اصح علم من تقدما

**وما ابتداء: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د حکم د فعل تعجب نه نو شرع یې وکړه په بیان د ترکیب د صیغه د فعل تعجب کې او صیغې د فعل تعجب دوه دي:

(۱): په وزن د ما افعله نحو ما احسن زيدا. (۲): افعل به نحو احسن بزيد، او ما احسن زيدا کې درې مذهبونه دي او څلور ترکيبونه دي او احسن بزيد کې دوه مذهبونه او دوه ترکيبونه دي. **ما** کلمه د ما په ما احسن زيدا کې **ابتداء** مبتدا ده ځکه اسم دی اول د کلام کې واقع شوی دی او خالي دی د عوامل لفظيو نه **نکره** نکره ده ځکه فعل تعجب په هغه ځای کې مستعمليږي چې معنی مصدري خفي السبب وي او د خفاء سره نکره مناسب ده **عند السيبويه** د سيبويه په نزد باندې **وما بعدها** او ما بعد د کلمه د ما نه چې احسن زيدا دی **الخبر** خبر واقع شوی دی د مبتدا لپاره فيکون التقدير ای شئ احسن زيدا.

**سوال:** ما مبتدا ده او ابتدا ورله خبر دی خبر محمول وي په مبتدا باندې او دلته حمل نه صحيح کيږي ځکه ما مبتدا ده نه ابتداء؟ **جواب:** (۱): دا مصدر مبني للمفعول دی ای مبتدا.

(۲): دا محمول دی په اعتبار د حذف د مضاف سره ای ذو ابتداء.

(۳): دا محمول دی په الحاق د یا نسبتيه سره ای ابتدائيه لکه په بعض نسخو کې هم ابتدائيه راغلی دی په الحاق د یا نسبتيه سره.

**سوال:** په سيبويه باندې اعتراض دی چې ته وايې چې ما په معنی د شئ سره مبتدا ا ما بعد خبر دی نو شئ خو نکره محضه ده او نکره محضه مبتدا نه واقع کيږي؟

**جواب:** هذا من قبيل شر اهر ذا ناب يعنی په دې کې دوه مذهبه دي: سکاکي. جمهور.

(۱): د سکاکي په نزد باندې شئ نکره ده تخصيص پکې راغلی دی په صفت مقدره سره تخصيص نوعي ځکه شئ کې تنکير د تعظيم لپاره دی فيکون المعنی شئ عظيم احسن زيدا.

(۲): جمهور وائي په شئ کې تخصيص راغلی دی په هغه شئ سره چې تخصيص مومي په هغې سره فاعل چې هغه تقديم د فعل دی په فاعل باندې چې دا اصل کې احسن زيدا ما وو په دې احسن کې ضمير مستتر وو هغه فاعل مبدل منه او ما بمعنی شئ بدل بيا دا بدل د بدليت نه ووېستی شو او مقدم شو نو ما احسن زيدا ترې جوړ شو لپاره د تخصيص جنسي او تخصيص فردي، معنی دا چې خاص يو شی دی چې ښايسته کړی دی هغه زيد لره نه دوه او نه ډير يا خاص يو شئ دی چې ښايسته کړی دی هغه زيد لره نه معدوم.

(۲): **وموصولة عند الاخفش** او دا ما موصوله دی په معنی د الذي سره او ما بعد جمله ورله صله ده د اخفش په نزد باندې موصول سره د صلې نه مبتدا ده ځکه اصل په مبتدا کې تعريف دی. **والخبر محذوف** او خبر د مبتدا محذوف دی نو کيږي تقدير د عبارت دارنګې الذي احسن زيد شئ عظيم.

(۳): دويم ترکيب د اخفش نه دا هم منقول دی چې ما موصوفه دی او ما بعد جمله ورله صفت دی موصوف سره د صفت نه مبتدا ده او خبر يې محذوف دی فيکون التقدير شئ احسن زيدا شئ عظيم.

(۴): او فراء وائي چې ما استفهاميه بمعنی ای شئ مبتدا او ما بعد جمله ورله خبر دی او جواب د استفهام حذف شوی دی ځکه تعجب راغلی دی د وجې د ادراک د يو امر خفي السبب نه او د خفاء سره استفهام مناسب دی فيکون التقدير ای شئ احسن زيدا شئ عظيم. **وبه** او لفظ د به په افعل به

كې **فاعل** فاعل واقع شوی دی د افعل لپاره **عند السيبويه** د سيبويه په نزد باندې او دا باء زائده ده لازمه ده د فاعل سره مګر زيادت د باء لازم نه دی که چرې متعجب منه د افعل لپاره ان سره د صلې نه وو نحو احسن ان يقول ای احسن بان يقول ځکه تقدير د حرف جر سره د ان مصدريه نه شائع او کثير دی په استعمال د کلام د عرب کې **فلا ضمير في افعل** نشته ضمير په صيغه د تعجب کې چې په وزن د افعل باندې راغلې ده ځکه فاعل د فعل نه وي مګر يو وي او که افعل کې ضمير مستتر شي نو لازميږي تعدد د فاعل او دا باطل دی.

**ومفعول** او دا لفظ د به مفعول به دی د افعل لپاره **عند الاخفش** په نزد د اخفش باندې **والباء** او باء په به کې **للتعدية** د تعديت لپاره که چرې همزه د باب افعال د صيرورت لپاره شي نو د احسن بزيد معنی داده صير زيدا ذا حسن **او زائده** يا دا باء زائده ده بنا په دې چې همزه د باب افعال د تعديت لپاره ده **ففيه** په دې صيغه د فعل تعجب کې چې افعل په وزن باندې ده **ضمير** ضمير دی چې هغه فاعل دی د افعل لپاره اي احسن انت بزيد او احسن زيدا ای صيره حسنا.

## افعال المدح والذم

**ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د افعال تعجب نه نو شروع يې وکړه په افعال مدح او ذم کې، په دې نوع کې لابدي ده د معرفة د امور ثمانيه ؤ نه: (١) معرفة د ذات (٢) معرفة د اسم (٣) وجه د تسميه (۴) تعداد (۵) مصداق (٦) مدخول (٧) عمل (٨) احکام. نو دا په اعتبار د ذات سره افعال دي نه اسماء او نه حروف عند الجمهور په دليل د اتصال د تاء التانيث ساکنه سره او په دليل د اتصال د ضمير بارز مرفوع سره لکه په بعضې لغات د عربو کې ويلی کيږي نعم نعما نعموا، او اکثر کوفيان وائي چې دا نعم او بئس اسماء دي نه افعال، اصل وضع کې افعال وو خو بيا د هغې نه نقل شوي دي اسماؤ ته. دليل د هغوی دپاره دخول د حرف جر دی په نعم او بئس باندې مثال د اول کقول العرب ما هي بنعم الورد، او مثال د ثاني لکه دا قول د عربو: نعم السير بئس البعير. جواب د طرفه د بصريينو نه دا دی چې په دې مثالونو کې نعم او بئس معمول د قول محذوف او قول صفت د موصوف محذوف دی فيکون التقدير.........

نعم السير على غير مقول في حقه بئس العير، صفت او موصوف دواړه حذف شوي دي او معمول د صفت قائم شوی دی په مقام د هغې باندې سره د بقاء د نعم او د بئس نه نو د کوفيانو په نيز باندې نعم الرجل زيد بئس الرجل زيد جمله اسميه ده، ترکيب يې داسې کوي زيد مبتدا مؤخر نعم مبدل منه يا مبين الرجل بدل يا عطف بيان، معنی دا ده چې.........

مبدل منه سره د بدل نه يا مبين سره د عطف بيان نه مقدم او زيد مبتدا مؤخره ده او عند البصريين جمله فعليه ده. او نوم د دې افعال مدح والذم دی او افعال جوامد او افعال منسلخه عن الزمان ورته هم وائي افعال مدح والذم ورته ځکه وائي چې بعضې د دې نه راځي دپاره د انشاء د مدح او بعضې راځي د انشاء

د ذم، او افعال جوامد ورته ځکه وائي چې دا غير متصرف دي او منسلخه عند الزمان ورته ځکه وائي چې دا په اصل وضع کې مقترن وو په زمانه پورې بيا هغه زمانه د دې نه ويستلی شوې ده او عدد يې پنځه دي او مصداقونه يې نعم بئس ساء حبذا لا حبذا دی، او مدخول يې درې قسمه راځي: (۱) اسم جنس متلبس باللام (۲) اسم مضاف اسم جنس معرفه باللام ته (۳) ضمير مبهم مميز بنکره منصوبه او عمل يې رفع ده بنا بر فاعليت په دغه اسماء ثلاثه ؤ کې او احکام يې مصنف رحمه الله بيانوي.

**ترجمه: افعال المدح والذم** جنس فعل مدح او ذم په اصطلاح د نحويانو کې **ما** فعل دی داسې **فعل وضع** چې وضع کړی شوی دی **لانشاء مدح او ذم** دپاره د انشاء او اظهار د مدح او ذم او مشهور دی په دې نوم سره عند النحات.

په هرتعريف کې لابدي ده د جنس او فصل نه **ما وضع** جنس دی خپل پردي ټول پکې داخل شو او **لانشاء مدح او ذم** سره يې احتراز وکړو د مدحته او ذممته نه ځکه د الانشاء مدح او ذم نه دی وضع شوی بلکه وضع کړی شوی دی د اخبار لپاره او دا قيد چې مونږه ولګوو چې مشهور وي په دې نوم سره په اصطلاح د نحويانو کې په دې سره يې احتراز وکړو د حَسُنَ قَبُحَ کبر نه نحو قوله تعالى كَبُرَتْ كَلِمَةً تَخْرُجُ مِنْ أَفْوَاهِهِمْ اى بئس كلمة، ځکه اګر چې وضع کړی شوی د انشاء د مدح لپاره ليکن مشهور نه دی په دې نوم سره د نحويانو په نزد باندې **فمنها** بعض د افعال مدح او ذم نه **نعم و بئس** نعم او بئس دی نعم دلالت کوي په انشاء د مدح او بئس دلالت کوي په انشاء د ذم باندې.

**سوال:** ته وايې چې نعم او بئس د افعال مدح او ذم نه دي نو فعل خو چرته په استعمال د کلام د عربو کې په دې وزن باندې نه دی راغلی ځکه اوزان د ماضي معلوم د ثلاثي مجردو درې دي: فَعَلَ، فَعِلَ، فَعُلَ لکه ضرب ـ سمع ـ کرم شو او نعم او بئس د دې نه يو وزن هم نه دی نو ته ورته څنګه فعل وائې؟

**جواب:** نعم او بئس اصل کې نَعِمَ او بَئِسَ وو په وزن د علم باندې بيا حرکت د عين نقل کړی شو فاء کلمې ته پس د سلب د حرکت د هغې نه نو نعم او بئس شو.

**سوال:** نعم او بئس چې اصل کې نَعِمَ او بَئِسَ وو نو دا نعم او بئس ترې ولې جوړ شو؟

**جواب:** اسم يا فعل چې راشي په وزن د فَعِلَ باندې او عين کلمه يې حرف حلق وي نو په نزد د بني تميم په هغې کې لغات اربعه جائز دي مثال لکه فخذ شو دې کې لغات اربعه دي: فَخِذٌ، فِخْذٌ، فِخِذٌ، فَخْذٌ. او سيبويه ويلې دي چې عامو عربو اتفاق کړی دی په لغت د بني تميم باندې چې د نعم او بئس چې کله قصد وکړی شي د مدح او ذم نو دوی يې په کسره د فاء او سکون د عين سره وائي. **وشرطهما** او شرط لپاره د عمل د نعم او بئس **ان يكون الفاعل معرفا باللام** کون د فاعل دی معرفه په الف لام عهد ذهني سره نحو قوله تعالى [ نعم المولى ونعم النصير ] يا لکه نعم الرجل زيد شو الف لام د الرجل الف لام عهد ذهني دي ځکه دې سره اشاره ده واحد غير معين ته ابتداءً او دا ګرځي معين په ذکر د محسوس سره وروستو نو کيږي په کلام کې تفصيل بعد الاجمال ځکه دا واقع في الذهن وي.

**سوال:** تفصيل بعد الاجمال ولې کولی شي په فاعل د نعم او د بئس کې؟

**جواب:** لپاره د مزيد اتمام د شان د فاعل د نعم او د بئس

**سوال:** هر کله چې فاعل د نعم او بئس متلبس شو په الف لام عهد ذهني سره نو الف لام عهد ذهني خو مفيد د تعريف نه دی نو دېته معرف باللام ولې وائي؟

**جواب:** اسم متلبس په الف لام عهد ذهني سره اګر چې معرفه نه ده حقيقةً خو مونږ ورته معرفه وايو صورةً ځکه صورت يې صورت د معرفه باللام دی يا د دې وجې نه چې په دې احکام د معرفه جاري کيږي لفظاً **او مضافا الى المعرف بها** يا کون د فاعل دی اسم مضاف معرفه باللام ته دا مضاف عام دی چې بالذات وي نحو نعم صاحب الرجل زيد يا بالواسطه وي نحو نعم فرس غلام الرجل **او مضمرا مميزا** يا کون د فاعل دی ضمير داسې ضمير چې مميز دی **بنكرة** په نکرې سره داسې نکره **منصوبة** چې منصوبه وي بيا عامه ده که مفرده وي او که مضافه وي نکرې ته، يا معرفې ته، نحو نعم رجلا زيد، نعم ضاربا رجل زيد، نعم ضاربا زيد انتما، نعم حسن الوجه انت. نکره به وي ځکه چې تميز نکره راځي نه معرفه او منصوبه به وي ځکه تميز د قبيلې د منصوباتو نه دی او تميز مجرور راځي د وجې د اضافت نه يا د وجې د دخول د حرف جر نه او دلته نه اضافت شوی دی او نه حرف جر داخل شوی دی **او بما** يا به د دې ضمير بيان شوی وي په کلمه د ما سره چې دا ما په معنى د شئ سره منصوب محلا دی بناء علی التميز عند الجمهور مثال لکه **فنعما هي** شو چې اصل کې نعم ما هي و بيا اجتماع د حرفين متجانسين راغله په کلمتين کې د دې اول ميم نه مو حرکت وغورځوو او ميم په ميم کې مدغم کړی شو او عين له کسره ورکړی شوه نو د نعم ما نه نعما جوړ شو، او په دې کې تراکيب ثلاثه او مذاهب ثلاثه دي.

(۱): جمهور وائي نعم فعل دی ضمير پکې مستتر دی چې هغه مبهم دی د وجې د عدم د تعين د مرجع نه ما بمعنى شيئا تميز دی مميز سره د تميز نه فاعل د نعم او هي مخصوص بالمدح دی فيکون المعنى نعم شيئا هي او دې ما ته عند الجمهور ما مميزه وائي.

**سوال:** تميز راځي لپاره د بيان او رفع د ابهام، او په نعم کې ضمير مبهم دی او ته وائي چې ما تميز د ضمير مبهم دی نو ما په خپله مبهم دی نو دا څنګه رفع د ابهام کوي د ضمير مبهم نه؟

**جواب:** په دې ضمير کې دوه ابهامه دي يو دا چې مصداق يې نه دی معلوم، او دويم دا چې مصداق يې په خارج کې موجود دی او که نه او په ما کې يو ابهام دی چې مصداق يې نه دی معلوم نو په دې سره رفع د ابهام وشوه د ضمير نه چې دا په خارج کې موجود دی.

(۲): او فراء او ابو علي وائي چې دا ما موصوله دی بمعنى الذي او صلة بجميعها حذف شوې ده او هي مخصوص بالمدح دی موصول سره د صلې محذوفې نه فاعل د نعم فيکون التقدير نعم الذي فعله هي.

(۳): سيبويه او کسائي وائي چې ما بمعنى الشئ فاعل دی د نعم لپاره او دې ته عند النحات ما تامه وائي فيکون المعنى نعم الشئ هي. مذهب د جمهورو مختار دی د مذهب د نورو نه ځکه په مذهب د فراء او ابو علي کې دوه نقصانه دي.

(۱): الذي فاعل د نعم لپاره چرته نه دی راغلی په استعمال د کلام د عربو کې.
(۲): حذف د صلې راغلو بجميعها او تقدير په کلام کې خلاف الاصل دی او مذهب د سيبويه او کسائي هم کمزوری دی ځکه ما د معرفه لپاره قليل دی غالبا د نکرې لپاره راځي نحو ضربا ما قليلا ما. **وبعد ذلك** او وروستو د فاعل نه **المخصوص** مخصوص بالمدح يا مخصوص بالذم راځي غالبا ځکه کله په طريقې د قلت سره مخصوص بالمدح او مخصوص بالذم مقدم کيږي په فعل مدح او فعل ذم باندې په نعم الرجل زيد کښنکې ويلی شي زيد نعم الرجل او په دې باندې تصريح کړې ده سکاکي صاحب په مفتاح العلوم کې.

**سوال:** ته وائې چې کله کله مخصوص بالمدح او مخصوص بالذم مقدم کيږي په فعل مدح او ذم باندې نو نعم او بئس خو صدارت غواړي او په تقديم د مخصوص سره خو صدارت فوت کيږي؟

**جواب:** نم او بئس صدارت غواړي په خپله جمله او خپل مدخول کې او مخصوص بالمدح يا بالذم مدخول د نعم او بئس نه دی.

**سوال:** مخصوص بالمدح يا بالذم د فاعل د نعم او بئس نه وروستو ولې ذکر کولی شي؟

**جواب:** لپاره د تفصيل بعد الابهام. لپاره د دې چې تلفظ د متکلم موافق شی دمقصود خپل سره ځکه مقصود د متکلم ذکر کول د ممدوح دی اولا په طريقه د ابهام سره او وروستو په طريقه د تفصيل سره.

**سوال:** متکلم ذکر د ممدوح او لا په طريقه د ابهام سره او بيا په طريقه د تفصيل سره ولې کوی.

**جواب:** لپاره د مبالغه فی المدح يافی الذم د وجې د زيادت اهتمام د شان د فاعل نه **وهو مبتدا ما قبله خبره** دا جمله مستانفه جواب د سوال دی، هر کله چې مصنف اويل وبعد ذلك المخصوص نو معترض اعتراض وکړو، چه دا مخصوص په ترکيب کې څه واقع کيږی نو مصنف جواب وکړو په هو مبتدا سره خلاصه د جواب دا ده چې په نعم الرجل زيد کې پنځه ترکيبونه دی، او مصنف دلته دوه ترکيبونه کړی دی او باقی دری ئي ترک کړی دی، د وجی د عدم شهرت او عدم ظهور نه

(۱): **وهو** دا مخصوص **مبتدا** مبتدا ده. **ما** او هغه جمله **قبله** چې واقع کيږی، مخکی ددی نه غالبا **خبره** خبر دی، ددغه مبتدا او مبتدا سره د خبر نه جمله خبريه اسميه،

**سوال:** نعم الرجل جمله انشائيه ده، او جمله انشائيه د چا لپاره خبر نه واقع کيږی.

**جواب:** جمله انشائيه بلا تاويله خبر نه واقع کيږی، او مع التاويل واقع کيږی، او دلته خبر واقع شوی دی، مع التاويل ای زيد مقول فی حقه نعم الرجل.

**سوال:** جمله چې خبر د مبتدا واقع شي، لابدی وی د رابط نه دلته رابط ضمير نشته،

**جواب:** رابط ځلور قسمه راځی کمامر او دلته رابط الف لام دی ځکه دا قائم شويدی په مقام وضمير.

**سوال:** هر کله چې عائد الف لام شو نو پدی سره دوه نقصانه پيدا شو،

(۱): يو دا چې فاعل د ابهام نه اوتلو او مخکی ئي ونلی ووچې په افعال مدح او ذم کې اول فاعل ذکر کولی ابهام او بيا يي تفصيل کولی شی،

(۲): او دا الف لام عهد ذهنی نه شو بلکه الف لام عهدی خارجی شو ځکه الف لام عهد ذهنی سره اشاره کولی شی معهود فی الذهن ته او تا اشاره وکړه، پدی سره معهود فی الخارج ته.
**جواب:** پدی الف لام سره یې اشاره کړیده یو شیٔ ته چې هغه په ذهن کې دی، او هغه معهود فی الذهن د وجی د عموم او د شمول نه رابط دی، د زید لپاره،
(۲): **او خبر مبتدا محذوف** یا دا مخصوص خبر د مبتدا دی، داسې مبتدا چې هغه حذف شویده وجوبا چې هو دی، د وجی د قرینی دالی نه په تعین د محذوف باندی او د وجی د مسد مسد نه ځکه کله چې متکلم نعم الرجل اویل او ددی رجل مصداق معلوم نه شو، سامع او مخاطب ته نو سامع سوال وکړو په من هو سره نو مجیب جواب وکړو، په زید سره ای هو زید نو مبتدا حذف شویدی د وجی د وجود د قرینی دالی نه په تعین د محذوف چې هغه سوال د سائل دی، ځکه مذکور فی السوال کالمعادفی الجواب وی، او سدمسد اقامت د خبر دی، په مقام د مبتدا په معاونت د جملې متعدی سره،
(۳): یا بالعکس دی یعنی زید بدل مبتدا ده او خبري خذف شویدی ای زید هو،
(۴): نعم فعل مدح الرجل مبدل منه زیدبدل مبدل منه سره د بدل نه فاعل د نعم،
(۵): الرجل مبین او زید عطف بیان مجموعه فاعل د نعم دی. بنا په ترکیب ثانی او ثالث باندی نعم الرجل زید دوه جملې دی، او بنا په ترکیب اول او رابع او خامس باندی یوه جمله ده.
**وشرطه مطابقة الفاعل** شرط لپاره د مخصوص یعنی شرط لپاره د صحت د وقوع دیو اسم مخصوص بالمدح یا بالذم مطابقة الفاعل
(۱): مطابقة د مخصوص دی، د فاعل سره (اضافة المصدر الی المفعول)
(۲): مطابقت د فاعل دی، د مخصوص سره (اضافة المصدر الی الفاعل والمفعول محذوف) په جنس کې پدی شان سره چې دا د دواړه د یو مفهوم کلی لاندی داخل وی حقیقة نحو نعم الرجل زید یا حکما نحو نعم الاسد زید. او مطابقت به وی، په افراد تثنیت. جمعیت تذکیر او تانیث کې.
(۱): ځکه مخصوص عبارت دی، د فاعل نه فی المعنی او په ما بین د معبر او معبر عنه کې لابدې ده د مطابقت نه (۲) یامخصوص مبین د فاعل دی او په ما بین د مبین او مبین کې اتحاد او عینیت وی، فیقال نعم الرجل زید. نعم الرجلان زیدان نعم الرجال زیدون بئست المراة هند. هم جائز دی، بتذکیر الفعل ځکه د فعل اسناد چې وشی، متصل بلا فصل اسم ظاهر د مؤنث حقیقی ته نو تانیث د فعل واجب دی، خو چې فعل متصرف وی، او دا فعل غیر متصرف دی، ځکه دا مشابه دی په عدم تغیر او تصرف کې د حرف سره لهذا الحاق د علامه تانیث واجب ندی پدهٔ پورې.
**سوال:** ته وائی چې شرط د مخصوص لپاره مطابقت د مخصوص دی، د فاعل سره پهٔ جنس کې دا خبره ستا منقوضه شوه، په نعم الاسد زید سره چې دلته مخصوص مطابق ندی د فاعل سره پهٔ جنس کې ځکه زید د قبیلی د حیوان ناطق نه دی، او اسد د قبیلی د حیوان مفترس نه دی،

**جواب:** د مطابقت فی الجنس دا معنی چې دواړه به داخل وی د یو مفهوم کلی نوعی لاندی اوس د قول د دی د یو مفهوم کلی نوعی لاندی دا دی، که حقیقة وی لکه نعم الرجل زید یا تاویلا وی، لکه نعم الاسد زید وبئس مثل القوم الذین کذبوا وشبهه متاول دا جمله مستانفه جواب د سوال دی،
**سوال:** ته وائی چې شرط لپاره د مخصوص مطابقة د مخصوص دی، د فاعل سره دا خبره ستا منقوضه شوه پدی قول د الله سره چې بئس مثل پدی شان سره چې پدی ایت کې مثل القوم فاعل دی، د بئس او الذین کذبوا مخصوص با الذم دی، او مطابقه نشته ځکه مخصوص بالذم جمع ده او فاعل مفرد دی، نو مصنف جواب وکړو چې دا قول د الله چې وبئس مثل القوم الخ دی، وشبهه یا ددی په شان نور ترکیبونه چې مخصوص پکې مطابق نه وی، د فاعل سره متاول تاویل کړی شویدی.
(۱): یو تاویل دا دی چې مثل القوم مضاف مضاف الیه فاعل د بئس دی، او الذین کذبوا موصول سره د صلی نه په اعتبار د حذف د مضاف سره مخصوص بالذم دی، فیکون التقدیر بئس مثل القوم مثل الذین کذبوا.
(۲): دویم تاویل دا دی چې الذین کذبوا موصول سره د صلی نه مخصوص بالذم ندی بلکه دا صفت دی د القوم دپاره موصوف سره دصفت نه فاعل دی، او مخصوص بالذم محذوف دی، چې مثلهم دی فیکون المعنی بئس مثل القوم المکذبین مثلهم **وقد یحذف المخصوص** دا هم جمله مستانفه جواب د سوال دی ځکه هر کله چې مصنف اول وبعد ذلك المخصوص او بیا یې د هغې ترکیب وکړو، او بیا یې د مخصوص دپاره شرط بیان کړو نو معترض اعتراض وکړو، چې ته وائی چې د نعم العبد، نعم الماهدون دلته وروسته د فاعل نه مخصوص ندی ذکر نو مصنف جواب وکړو چې **وقد یحذف المخصوص** کله کله حذف کولی شی، مخصوص برابره خبره ده، چې مخصوص بالمدح وی، او که مخصوص بالذم وی **اذا علم** کله چې معلوم وو حذف د مخصوص په قرینی سره یعنی په وقت د وجود د قرینی د الی کې په تعین د محذوف باندی مثال لکه نعم العبد شو دلته مخصوص حذف شویدی، چې ایوب دی او قرینه پدی باندی قصه د ایوب ده، او فنعم الماهدون مخصوص حذف دی چې نحن دی او قرینه پدی باندی سیاق د ایت دی چې هغه والارض فرشناها دی، او نحن مخصوص بالمدح محذوف خبر دی، د مبتدا محذوف لپاره چې هم دی بنا پدی ترکیب باندی په نعم الرجل زید کې جز جمله مستانفه حذف شویدی، او په نعم العبد او نعم الماهدون کې توله جمله مستانفه حذف شویده **وساء** او لفظ د ساء **مثل بئس** په شان د بئس دی په افاده د ذم کې (۲) په شرائط (۳) په احکام کې په دی شان سره لکه څنګه چې بئس انشاء د ذم لپاره راځی دارنګې ساء هم د انشاء د ذم لپاره راځې او فاعل د بئس دری قسمه راځی، (۱): اسم جنس مبلس باللام (۲): اسم مضاف اسم جنس مبلس باللام ته.
(۳): ضمیر مبهم ممیز منکره منصوبه نو فاعل د ساء هم دغسی دری قسمه رازی، او په مخصوص دبئس کې مطابقت د فاعل شرط وو، مخصوص سره دلته هم شرط دی، او مخصوص د بئس غالبا ذکر کولی شی وروسته د فاعل نه او کله کله حذف کولی شی په وقت د وجود د قرینی د الی کې په

تعین د محذوف باندی دارنګي مخصوص د ساء هم کله کله حذف کولی شی، په وقت د وجود د قرینی د الی کې په تعین د محذوف باندی **ومنها حبذا** بعض د افعال مدح نه حبذا دی دا مرکب دی، د حب او د ذانه مجموعه دلالت کوی په انشاء د مدح باندی او که پدی باندی لا داخل شی او لا حبذا اوائی نو بیا دلالت کوی په انشاء د ذم باندې

**سوال:** حبذا فعل مدح شو د فعل لپاره لابدی وی، د فاعل نه نو ددی فاعل کوم دی،

**جواب: وفاعله** فاعل ددی فعل **ذا** ذا اسم اشاره ده، ځکه ذا څلور قسم دی، او دلته مراد د ذانه ذا اشارتی دی، **ولایتغیر** او نه متغیر کیږی، دا لفظ د حبذا یا فاعل د حبذا یا لفظ د ذا دحال خپل نه پدی شان سره چې نه تثنیه کولی شی نه جمع کولی شی نه مؤنث کولی شی کله چې مخصوص ددی تثنیه جمع او مؤنث ژاشی **لجریها مجری الامثال** فیقال حبذا زید حبذا الزیدان، الزیدون حبذا هند

**سوال:** ضمیر د ولایتغیر چا ته راجع دی، **جواب:** دا ضمیر راجع دی لفظ د حبذا ته،

(۲): یا راجع دی فاعل د حبذا ته،(۳): یا راجع دی ذا ته

**سوال:** فاعل د حبذا ولې نه متغیر کیږی، د وجی د تغیر د مخصوص نه،

**جواب:** لجریها مجری الامثال او په امثالو کې تغیر او تصرف ندی جائز **وبعده** او وروسته د حبذا نه **المخصوص** مخصوص بالمدح راځی پدی شان سره چې تقدیم د مخصوص په حبذا باندی ندی جائز

**سوال:** دا مخصوص وروسته د حبذا نه په ترکیب کې څه واقع کیږی؟ **جواب: واعرابه کاعراب مخصوص نعم** اعرب د مخصوص وروسته د حبذا نه په شان د اعراب د مخصوص د نعم دی خلاصه د جواب دا ده چې په حبذا زید کې شپږ ترکیبونه دی، پنځه هغه دی چې په نعم الرجل زید کې تیر شو، او شپږم دا دی چې ذا زائد او زید فاعل د حب د پاره دی نو جمله فعلیه انشائیه شوه،

## (مابه الا متیاز درمیان نعم وحبذا)

(۱): فاعل د نعم دری قسمه راځی، کما مر او فاعل د حبذا فقط ذا راځی نه بل شی،

(۲): تقدیم د مخصوص بالمدح په نعم جائز دی، فیقال زید نعم الرجل او تقدیم د مخصوص بالمدح په حبذا باندی ندی جائز فلایقال زید حبذا،

(۳): مطابقت په مابین د فاعل د نعم او مخصوص بالمدح کې واجب دی، بخلاف حبذا **ویجوزان یقع الخ** جائز دی، واقع کیدل د تمییز او حال **قبل المخصوص** مخکی د مخصوص د حبذا نه او وروسته د مخصوص د حبذا **علی وفق مخصوصه** او دا حال او تمییز به کائن وی، موافق د مخصوص د حبذا په افراد تثنیت تذکیرا او تانیث کې دپاره ددی چې عمل راشی په قاعده د........ باندی بقدر الامکان مثال دتمییز مخکی د مخصوص نه او وروسته حبذا رجلا زید حبذا زید رجلا حبذا رجلین الذیدان حبذا الزیدان رجلین، حبذا امراة هند حبذا هند امراة او مثال د حال قبل المخصوص وبعده حبذا راکبا زید، حبذا زید راکبا حبذا راکبین الذیدان حبذا الزیدان راکبین، حبذا راکبین الذیدون، حبذا زیدون الراکبین،

**سوال:** حال او تمييز د مخصوص بالمدح نه ولې نه واقع کوي چې د فاعل د حبذا نه يي واقع کوي،
**جواب:** حال ديته وائي چې يبين هيئة الفاعل او المفعول به او مخصوص بالمدح نه فاعل دی، او نه مفعول به وی، او تمييز د رفع د ابهام لپاره راځي،او پدی مخصوص کې ابهام نشته.
(۲): دا حال او تمييز واقع شويدی د فاعل نه نه د مخصوص نه ځکه چې مخصوص بالمدح راځي، پس د اتمام د فعل مدح نه او اتمام د فعل مدح هله رازی، چې تمييز او حال واقع کړو د فاعل نه نو دا فعل مدح به تام شی، پده سره بيا به مخصوص ذکر شی.
**سوال:** حال او تميز واقع شويدی د فاعل د حبذا نه د هغې سره مطابقة پکار دی نو د مخصوص سره به ولې موافق وی؟ **جواب:** لپاره ددی چې عمل راشی په قاعده د ............ بقدر الامکان پدی شان سره چې فاعل د حبذا متصرف فيه ندی مطابقة د هغه سره په افراد تثنيت جميعت تذکير تانيث کې ممکن ندی نو دا به پدې امورو کې مطابق وی، د مخصوص سره ځکه مخصوص عبارت دی د فاعل د حبذا نه او فاعل د نعم چې ضمير مبهم راشی، نو د هغې نه تميز واقع کيږی، بالاتفاق نحو نعم رجلا زيد ، دارنګې د فاعل د حبذا نه تميز واقع کيږی، بالاتفاق نحو حبذا رجلا زيد ،
(۳): فاعل د نعم چې اسم جنس معرف باللام راشی، د هغې نه تمييز واقع کيږی، مطلقا که مفيد د فائدی وی، او کنه دليل د هغو دا قول د شاعر دی فنعم الفحل فحلهم فحلا دلته فاعل د نعم مخصوص او تميز دری واړه يو شئ دی،
(۲): او بعض وائی چې دا تمييز به خالی نوی يا به مفيد د فائدی وی او يا به نوی که وو نو واقيع کيږی نحونعم الرجل فارسازيد او که مفيد د فائدی نه وو، نو بيا نه واقع کيږی، نحو نعم الرجل رجلا زيد.

## الحرف

**ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د قسم ثانی د کلمه نحویه نه چې هغه فعل دی نو شروع یې وکړه په بیان د قسم ثالث د کلمه نحویه کې چې حرف دی نو وي ویل الحرف،

**ترجمه:** حرف په لغت کې طرف ته وائی او په اصطلاح د نحویانو کې **ما** یوه کلمه ده، او تذکیر د ضمیر د دل په اعتبار د لفظ د ما سره دی داسې کلمه **دل** چې دلالت کوی دا کلمه **علی معنی** په معنی موضوع له باندی داسې معنی موضوع له چې هغه حاصله ده او کائنه ده **فی غیره** په غیر ددی کلمه کې پدی شان سره چې دغه معنی متصوره ده، او متعلقه ده په نسبت سره غیر ته چې نده مستقل بالمفهومیت ځکه دامعنی په مدلولیت کې ددی کلمی نه محتاج ده انضمام د کلمی اخری ته.

(۲): هسی معنی چې دامعنی کائنه ده فی غیره په غیر ددی معنی کې پدی شان سره چې دا معنی ذریعه ده، او اله ده لپاره دمعلومولو د حال د غیر فقط او نده مقصود لذاته،

**تشریح:** زده کړه دا خبره چې په حرف کې لابدی ده د معرفت د امور ستونه،

(۱): مفهوم لغوی، (۲): مفهوم اصطلاحي (۳): وجه د تسمیه (۴): حکم، (۵): علامات (۲): اقسام نو حرف په لغت کې جانب ته وائی لکه وائی عرب جلست علی حرف الوادی ای جانبها او په اصطلاح کې ما دل علی معنی فی غیره ته وائی، او حرف ته حرف ځکه وائی چې حرف په لغت کې طرف ته وائی او دا حرف اصلاحی هم په طرف د کلام کې واقع کیږی،

**سوال:** زید فی الدار او ارید ان تقوم کې خو حرف په طرف کې ندی واقع شوی بلکه په مینځ کې واقع شویدی **جواب:** ددی مطلب دا دی چې دا واقع کیږی په جانب مقابل د اسم د فعل کې پدی شان سره چې مسند او مسند الیه نه واقع کیږی، او حکم د حرف دا دی چې نه مسند واقع کیږی او نه مسند الیه او علامه د حرف دا ده چې پدی کې به نوی موجود یوه علامه د علامات د اسم او فعل نه او حرف په اعتبار د عمل سره دوه قسمه دی (۱): حروف عامله، (۲): حروف غیر عامله، او حروف عامله په دوه قسم دی، (۱): حروف عامله په اسم کې، (۲): حروف عامله په فعل کې حروف عامله د اسم پنځه قسمه دی، (۱): حروف جاره، (۲): حروف مشبه بالفعل (۳): حروف مشبه بلیس، (۴): لالنفی الجنس، (۵): حروف ندا.

او حروف عامله د مضارع ذوه قسمه دی، (۱): حروف نواصب د مضارع، (۲): حروف جوازم د مضارع او ددی اوه اقسام نه علاوه باقی ټول حروف غیر عامله دی، او غیر عامله شپاړس قسمه دی لکه ذکر کړی دی سید سندصاحب په نحومیر کې.

**سوال:** داما به خالی نه وائی یا به یې عبارت وائی، د کلمة نه یا د حرف نه او یا شئ نه او دا ددی وارړه ندی صحیح که عبارت یې وائی د حرف نه نواخذ د محدود راځی، په حد کې او که عبارت یې وائی د کلمة نه نو دل ورسره نه لګی، ځکه چې مطابقت نه راځی بین المرجع والضمیر او که عبارت یې وائی د شئ نه نو داخل شو پدې کې هغه قرطاس چې منقوش وی پکې من او الی، ځکه دا یو شئ دی

چې دلالت کوی علی معنی فی غیره په اعتبار د مکتوب فیه سره چې من او الی دی او دیته حرف نه ویل کیږی؟ **جواب:** معترض چې اعتراض وکړی په سقوقو مختلفو سره نو طریقی د جواب دوه دی یو دا چې ددغه شقوقِ مختلفو نه یو شق راوخلی او د هغې نه جواب وکړی (۲) چې اختیار د شق اخر وکړی، دلته مونږ ددی مذکور وشقوقو نه یو شق را اخلو هغه دا چې دا ما عبارت دی، د کلمة نه او که نه وائی چې ضمیر د دل ورته نه راجع کیږی، نو جواب دا دی چې تذکیر د ضمیر د دل په اعتبار د لفظ د ما سره دی.

**سوال:** دا ما عبارت د کلمة نه ولې اخلی د حرف او د شئ نه یې ولې نه اخلی؟ **جواب:** دا عبارت دی د کلمة نه نهٔ د شئ او د حرف نه د وجی د عدم صحت ددغه دواړو نه پدی مقام کې،
(۲): دا ما عبارت دی د کلمة نه نه د شئ او حرف نه ځکه معتبر پهٔ تعریفات د اقسامو کې جنس قریب وی، او جنس قریب دلته کلمة دی، نه شئ او حرف،
(۳): دا عبارت دی د کلمة نه ځکه کلمه مقسم دی د اسم فعل او حرف لپاره او مقسم معتبر وی، پهٔ تعریف د اقسامو کې او پهٔ تنکیر د کلمة سره یې اشاره وکړه، دیته چې دا ما موصوفه دی، ځکه واقع دی په جانب د خبر کې او دا قاعده ده چې من او ما واقع شی په جانب د مبتدا کې نو موصولیت یې اولی دی او چې واقع شی په په جانب د خبر کې نو موصوفیت اولی دی.
سوال: فی غیره جار مجرور دی او دیته عند النحات ظرف وائی او ظرف دوه قسمه دی،
(۱): یو ظرف لغوه (۲): ظرف مستقر ظرف لغوه هغې ته وائی چې متعلق یې مذکوره وی، او ظرف مستقر هغې ته وائی چې متعلق یې نوی مذکور نو دا ظرف لغوه دی، که مستقردی، نو شارح جامی صاحب په تقدیر د حاصل سره وروسته د معنی او مخکې د فی غیره نه اشاره وکړه، دیته چې دا ظرف مستقر دی نه ظرف لغوه ځکه که ظرف لغوه شی نو بیا لازمیږی مجاز په تعریف کې په دی شان سره چې دا ظرف لغوه شی او متعلق شی په دل پورې لکه دا مذهب د بعض دی نو بیا دا فی بمعنی الباء ده، ځکه د دلالت په صله کې باء یا علی راځی لکه دل علیه او دل به او فی په صله د دلالت کې نده راغلی.

**سوال:** فی غیره په اعتبار د متعلق سره په ترکیب کې څه واقع شویدی،

**جواب:** په کسری د حاصل سره شارح جامی اشاره وکړه چې دا فی غیره جار مجرور باعتبار المتعلق صفت واقع شوی دی د معنی لپاره په دی کې یې رد وکړه په هغه شارحینو باندې چې هغوی دا جارمجرور باعتبار المتعلق حال وایې د معنی نه (۱) ځکه چې دا قاعده ده چې جارمجرور واقع شی وروسته د معرفی نه نو په اعتبار د متعلق سره به یې حال واقع کوی او چې د نکری نه بعد واقع شی نو صفت به یې واقع کوی په اعتبار د متعلق سره او دلته وروسته دنکری نه دی نو صفت دی نه حال،
(۲): او که دا جار مجرور په اعتبار د متعلق سره حال واقع شی د معنی نه نو اخراج د اسم او فعل راځی د تعریف د حرف نه په جنس سره چې دل علی معنی دی نه په فصل سره ځکه حال قیدوی د عامل د ذوالحال لپاره نو تقید د دلالت راغی، په فی غیر سره نو فعل او اسم خارج شو د تعریف د حرف نه په

جنس سره او دا باطله ده، خکه مقصود په جنس کې تعميم وي، چې دا خلول د ټولو وي، او مقصد په فصل کې خارجول دي، غير لره نو ما دل على معنى جنس دى اسم فعل حرف ددى واړه پکې داخل شو، او فى غيره فصل دى، دى سره اسم او فعل خارج شو، نو تعريف د حرف جامع مانع شو

**سوال:** فى غيره کې ضمير د غائب دى تقدم د مرجع غواړي په جانب د مرجع کې دوه احماله دى، (۱): يو دا چې راجع شى ماته، (۲): دويم دا چې راجع شى معنى ته او دا دواړه ندى صحيح که ما ته راجع شى نو ندى صحيح (۱): خکه چې يو خو مطابقت نه راځى، بين الراجع والمرجع خکه ما عبارت د کلمة نه دى او دا ضمير د مذکر دى، (۲): او معنى هم باطله ده خکه معنى به يې دا شى چې دا معنى کائنه ده په غير د دي کلمه کې او دا معنى باطله ده خکه معنى د حرف په غير کې نده بلکې په حرف کې ده او که ته وايې چې دا ضمير راجع دى معنى ته نو بيا لازميږي فساد د معنى چې دا معنى کائنه ده فى غيره په غير د معنى کې نو دکينونت د معنى فى غير المعنى هيڅ معنى نشته،

**جواب:** فى غيره کې ضمير راجع دى ما ته او تذکير د ضمير په اعتبار د لفظ د ما سره دى، او کينونت د معنى فى غيرالکلمه عبارت دى، د عدم استقلال بالمفهوميت نه پدى شان سره چې دا معنى مقوده ده او متعلقه ده، په نسبت سره غير ته خکه دا معنى په فهم کې او په مدلوليت کې ددى کلمى نه محتاج ده، انضمام د کلمه اخرى ته او صاحب دغاية التحقيق وئيلي دي، چې حرف په اصطلاح کې هغه کلمى ته وائى چې دلالت کوى په معنى داسى معنى چې کائنه ده په غير د دى کلمه کې او هغه غير دلالت کوى پدى معنى د حرف باندى تضمنا يا بالمطابقة مثال لکه معنى د لم کائنه ده، په فعل کې او فعل په اعتبار د هيئت ترکيبى سره دلالت کوى، په معنى د حرف باندى تضمنا او معنى د فى کائنه ده، په اسم کې پدى شان سره چې دا اسم په اعتبار د هيئت ترکيبى سره دلالت کوى په معنى د فى باندى او معنى د نعم کائنه ده په جمله کې پدى شان سره چې هغه دلالت کوى په معنى د نعم باندى بالمطابقة يا فى غيره کې ضمير راجع دى معنى ته چې دا حرف په اصطلاح کې يوه کلمه ده، دلالت کوى په يو معنى چې دا معنى کائنه ده، په غير د معنى کې پدى شان سره چې دا معنى ذريعه او اله ده، دپاره د معلومه ولو د حال د غيراو مقصود لذاته نده.

**سوال:** تعريف د حرف مانع نه شو د خول د غير نه داخل شو پکې فعل خکه فعل يوه کلمه ده، په اعتبار د معنى مطابقى سره دلالت کوى على معنى فى غيره خکه معنى مطابقى د فعل غير مستقل ده، او داخل شو پکې اسماء لازمة الاضافت خکه هغه په دلالت د معنى خپله کې محتاج دى غيرته چې هغه مضاف اليه دى،

**جواب:** فقط سره فعل اصطلاحى خارج شو خکه حرف ما دل على معنى فى غيره فقط ته وائى او فعل ما دل على معنى فى غيره فقط ندى بلکه فعل لکه څنګه چې په اعتبار د معنى مطابقى سره دلالت کوى على معنى فى غيره نو دغسى دلالت کوى، په اعتبار د معنى تضمنى سره على معنى فى نفسه او خارج شو ددى نه اسماء لازمة الاضافت خکه دا محتاج دى، مضاف اليه ته په ترتب دغايه او ترتب

د حکم کې **ومن ثم** او ددی وجی نه چې حرف دلالت کوی په یوه معنی باندی او هغه معنی ذریعه ده د پاره د **معلومولو** د حال د غیر او مقصود لذاته نده **احتاج**: محتاج دی حرف **فی جزئیته**: په کون حرف کې جز د کلام **الی اسم**: اسم ته او اسم عام دی که عمده وی، نحو زید فی الدار یاغیره عمده وی، نحو سرت من البصرة الی الکوفة **اوفعل**: یا فعل ته نحو قدضرب او صحیح ده. وقوع د حرف جزمن الکلام اګر چې صحیح نده وقوع د حرف رکن د کلام نه چې مسند او مسند الیه دی ځکه حرف په ترکیب کې نه مسند واقع کیږی او نه مسند الیه

**سوال**: حرف مسند او مسند الیه ولې نه واقع کیږی، **جواب**: په مسند او مسند الیه کې لابدی ده د استقلال بالمفهومیت نه او حرف مستقل بالمفهومیت ندی او په فی جزئیته کې یا او تا مصدری دی او د اګر ځوی متصل به خپل خبر د کون محذوفه فیکون المعنی ومن ثم احتاج فی کون الحرف جزء للکلام الی اسم وفعل.

## حروف الجر

**ربط**: هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د تعریف د حرف نه نو شروع یې وکړه په بیان د اقسام د حرف کې او هر کله چې حروف جاره اکثر وو، استعمالا او عددا د نورو حروفو نه نو مقدم یې کړه، په نورو حروفو باندی لان العزة للتکاثر او هر کله چې د حروف جاره او تنوین لپاره تعریف مشترکه موجود وو، نو تعریف ددی یې وکړو، نه د نورو نو وي ویل، حروف الجر،

**ترجمه**: حروف جاره په اصطلاح د نحویانو کې ما حروف دی او افراد د ضمیر د وضع په اعتبار د لفظ د ما سره دی. (۲): یا جنس حرف جر عند النحات ما جنس حرف جر دی، داسې حرف وضع چې وضع کړی شویدی **للافضاء بفعل او معناه** لپاره د ایصال د فعل یا معنی د **فعل الی ما**

(۱): **هغه شئ ته یلیه** چې واقع دی د غه شئ وروسته ددی حرف نه متصل بلا فصل

(۲): یا هغه شئ ته چې متصل شویدی دا حرف په دغه شئ پورې دا عام دی چې اسم صریحی وی، نحو مررت بزید وانا مار بزید یا اسم تا ویلی وی نحو قوله تعالی وضاقت علیهم الارض بمارحبت ای برحبتها او معنی د افضاء اصول دی، هر کله چې متعدی کړی شو په باء سره پدی مقام کې نو وګرځیدو په معنی د ایصال سره،

**تشریح**: **سوال**: ددی عبارت ربط د ما قبل سره څه دی او عرض د مصنف د دی عبارت نه څه دی.

**جواب**: ربط دا دی چې دا مخکې تعریف د حرف وو او دا بیان د اقسامو دحروفو دی، او حرف باعتبار العمل دوه قسمه دی،

(۱): یو حروف عامله او دویم غیر عامله حروف عامله بیا دوه قسمه دی: یو حروف عامله د اسم او دویم حروف عامله د فعل مضارع حروف عامله د فعل مضارع دلته نه ذکر کوی ځکه د هغې بیان شویدی، مخکې په بحث د فعل کې او دارنګې د حروف عامله د اسم نه لا لنفی الجنس ما ولا المشبهتین بلیس دلته نه ذکر کوی، ځکه د هغې بیان یې کړی دی په مرفوعات منصوبات کې.

**سوال:** حروف جاره یې ولې مقدم کړه په باقي اقسامو باندې؟
**جواب:** ځکه دا اکثر استعمالا دي او اکثر عددا دی، او العزة للتکاثر دی نو ځکه یې مقدم کړه
**سوال:** پدې اقسامو د حروفو کې یې صرف د حروف جرا او د تنوین تعریف کړی دی د نورو تعریف یې ولې نه دی کړی. **جواب:** هر کله چې د حروف جرا او د تنوین لپاره تعریف جامعه او مشترکه موجود وو، پس تعریف وکړو مصنف د حروف جر او تنوین په خلاف د باقي اقسامو د حروفو نه دهغې لپاره تعریف جامعه نه وو، ځکه یې د هغې تعریف نه دی کړی.
**سوال:** حروفو الجر مبتداء دی او ما وضع للافضاء موصوف مع الصفت یا موصول مع الصله خبر دی. او خبر محمول وی په مبتدا باندې نو دا لفظ د ما به خالي نوی یا به عبارت وائی د حرف نه نو ما بعد ورسره ولګیدو، چې وضع دی د وجې د مطابقت نه بین الراجع والمراجع خو ما قبل ورسره نه لګی، چې حروف الجر دی، ځکه حمل د واحد راځی په جمع باندې او دا باطل دی، او که ما عبارت وائی د حروفو نه نو بیا ورسره ما قبل ولګیدو، لصحة الحمل خو ما بعد ورسره نه لګی، لعدم المطابقة بین الراجع والمراجع پدې شان سره چې ما عبارت دی دحروفو نه او په وضع کې ضمیر د واحد دی، دا جمع ته نه راجع کیږی.
**جواب:** ما عبارت دی دحروفو نه او که ته وائی چې مطابقت نه راځی نو زه وایم چې تذکیر د ضمیر د وضع په اعتبار د لفظ د ما سره دی، لیکن دا جواب کمزوری دی،
(۱): اصل جواب دا دی چې عبارت دی د حرف نه او که ته وائی چې ما قبل ورسره نه لګی نو جواب دا دی چې اضافت د حروفو الجر ته اضافت جنسی دی په قرینې د مقام سره ځکه تعریف کیږي د جنس په جنس سره او اضافت جنسي معنی د جمیعت باطله وی نو معنی دا شوه، چې جنس حرف جر عندالنحات جنس حرف دی.
**سوال:** کلمه د ما پدې مقام کې عبارت د حرف نه دی ولې وګرځوله.
**جواب:** ځکه چې معتبر په تعریفات د اقسامو کې جنس قریب وی او جنس قریب د حروف الجر لپاره حرف دی، او لفظ او شی اجناس بعیده دی.
(۲): یا مطلق حرف مَقسم دی د حرف جر لپاره او مَقسم معتبر وی، په تعریف د اقسامو کې او په تنکیر د حرف کې یې اشاره ده موصوفیت د ما ته ځکه دا واقع دی په جانب د خبر کې او ما او من چې واقع شی په جانب د خبر کې نو موصوفیت یې اولی دی د موصولیت نه.
**سوال:** ته وائی چې حروف الجر ما وضع للافضاء الخ ته وائی نو دا تعریف د حرف جر جامع نه شو خپلو افرادو لره ټول حروف جاره ترینه خارج شو، ځکه افضاء راځی بمعنی اصول او حروف جر واضع وضع کړی دی، د ایصال لپاره نه لپاره د اصول؟ **جواب:** منم چې معنی د افضاء اصول ده، لیکن هر کله چې متعدی کړی شو افضاء په باء سره پدې مقام کې نو وګرځیده افضاء په معنی د ایصال سره لهذا افضاء دلته په معنی د ایصال سره ده نه بمعنی اصول.

**سوال:** معنی د فعل څه ته وائی. **جواب:** معنی د فعل هر هغه شئ ته وائی چې مستنبط کیږی د هغې نه معنی د فعل لکه اسم فاعل اسم مفعول، صفت مشبه، اسم ظرف، مصدر، جار، مجرور، حروف نداء، حروف تنبیه، اسم اشاره او اسم فعل شو.

**سوال:** په شبه فعل او معنی د فعل کې څه فرق دی. **جواب:** پدیکې نسبت د عموم خصوص مطلق دی، پدی شان سره چې هر شبه فعل معنی د فعل دی، خو هر معنی د فعل شبه فعل ندی ځکه شبه فعل دیته وائی چې دلالت کوی، په معنی مصدری باندې (۲): او عمل کوی په شان د عمل د فعل باندې (۳): او شریك وی دفعل سره په حروف اصلیه ؤ کې، او معنی د فعل دیته وائی چې دلالت کوی په معنی مصدری باندې او عمل کوي په شان د عمل د فعل خپل، بیا برابره خبره ده چې په حروف اصلیه ؤ کې د فعل سره شریك وی، او که نه وی او د کومو اشیاو په مینځ کې چې نسبت د عموم خصوص مطلق وی، هغه دوه مادی غواړی، یوه ماده اجتماعی او دویمه ماده افتراقی.

(۱): ماده اجتماعی چې شبه فعل هم وی، او معنی د فعل هم وی لکه اسم فاعل، اسم مفعول، صفت شبه اسم تفضیل او مصدر شو،

(۲): او ماده افتراقي چې معنی د فعل وی او شبه فعل نه وی لکه اسم فعل جار مجرور ظرف حروف نداء اسماء اشارات او اسماء افعال شو.

**سوال:** چې الی مایلیه یې وویل نو الی الاسم یې ولې ونه ویل سره ددې نه چې فرض منصبي د مصنف اختصار بما هو اختصار دی.

**جواب:** الی مایلیه یې اوویل او الی الاسم یې ونه وَیل لپاره ددې چې داخل شي پدیکې دا قول د الله چې وضاحت علیهم الارض بمارحبت) ځکه دلته مایلی د حرف جر اسم نه دی بلکه فعل دی په تاویل د مصدر سره تریځه اسم جوړ شوی دی،لهذا مایلی د حرف جر حرف نه راځي لپاره ددې چې لازم نه شی افضاء د مستقل غیر مستقل ته او فعل هم نه راځي لپاره د دې چې لازم نه شي افضاء د شی الی نفسه پس متعین شو مایلی د حرف جر اسم دی، او اسم عام دی که حقیقة وی لکه مررت بزید اوکه تاویلاً وی، لکه وَضَاقَتْ عَلَيْكُمُ الْأَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ ددې وجې نه د خول د حرف جر مختص دی، په اسم پورې او (یلیه) کې دوه ضمیرونه دی یو ضمیر مستتر فاعل دی او بل ضمیر منصوب متصل مفعول به دی، ددې ضمیرینو په مرجع کې دوه احتماله دي:

(۱): یو دا چې ضمیر مستتر راجع دی، ما ثاني ته او ضمیر منصوب راجع دی ما اول ته

(۲): یا بالعکس دی چې ضمیر مستتر راجع دی، ما اول ته او منصوب متصل راجع دی ما ثانی ته اویلی اصل کې یولی وو، واو واقع شو په مینځ د یاء مفتوحه او کسره کې نو بناء په قاعده د یعد باندې واو حذف شو یلي شو بنا په قاعده د یرمی باندې ضمه د یا وغورځیده، نو یلی شو او پدی نوع اول کې لابدی ده، د اثنا عشر امورونه.(۱): معرفت د ذات، (۲): اسم (۳): وجه د تسمیه، (۴): تعریف، (۵): تعداد. (۲): مصداق (۷): مدخول (۸): عمل، (۹): وجه د عمل (۱۰): وجه د تقدیم. (۱۱): اقسام (۱۲): معرفت د معاني وو،

نو دا نوع باعتبار الذات حروف دي نه اسماء او نه افعال او نوم‌ونه ددي څلور دی،
(۱): حروف الجر، (۲): حروف الاضافت، (۳): حروف المعاني، (۴): او حروف ربط حروف جر ورته څکه وائی چې دا جر ورکوی مدخول لره یا جر رانښکلو ته وائی، او دا حرف راکاږی معنی د فعل مایلې ته، او حروف اضافت ورته څکه وائی چې فعل یا معنی د فعل مضاف کیږی اسم ته په واسطه دحرف جر سره نحو مررت بزید انا مار بزید او حروف معانی ورته څکه وائی چې دا هر یو حرف واضع وضع کړی دی د جدا جدا معنی لپاره لهذا دا دحروف معانیو نه دی نۀ دمبانی نه او حروف ربط ورته څکه وائی چې دا ربط راولی بین الاثنین نحوزید فی الدار، او تعریف ددې مذکور فی المتن دی او تعداد ددې مشهور اتلس دی، او مصداقو نه یې **وهی من والی الخ** دی، او مدخول یې اسم دی اسم عام دی، که حقیقة وی او که تا ویلا وی، او عمل ددې جر دی په مدخول کې جر عام دی، که لفظا وی نحو مررت بزید یا تقدیراً وي نحو مررت بموسی یا محلاً وی نحو مررت بهذا او دخول د حرف جر په اسم باندې او جر ورکول، اسم لره دا سماعی دی، عقل لره پدیکې دخل نشته او حروف جاره کې یې د ټولو نه او ل من ذکر کړه لانه للابتداء بیا یې الی ذکر کړه لانه للانتهاء نو پدیکې صنعت طباق راغی، چې هغه عبارت دی د جمع کولو د متکلم نه بین المعنیین متقابلین او دا فائده کوی حسن عارضی په کلام کې او وروسی یې حتی ذکر کړه، لانه ایضاً للا نتهاء بیا یې فی ذکر کړه، څکه دا راځی په ظرف زمان یا مکان کې او بیا یې با ذکر کړه څکه دا کله کله راځی بمعنی فی بیا یې لام ذکر کړه، څکه دا شریك دی د مخکې حروف جاره ؤسره په اختصاص بالحرفیت کې بیا یې رب ذکر کړه لان فیه خلاف چې دا حرف دی که اسم نو دا عندالجمهور حرف دی، او عند البعض اسم دی، په خلاف د باقی حروف مذکورونه چې دا حروف دی بالاتفاق او واو د رب فرع د رب دی، لانه بمعنی رب، بیا یې واو قسمیه ذکر کړو لوجې د اشتراك د دې د واو رب سره په واو یا فرعیت کې لانه فرع للباء او وروسې یې باء ذکر کړه څکه دا اصل ده په قسم کې بیا یې تاء قسمیه ذکر کړه، څکه دا فرع د باء ده په قسم کې بیا یې ذکر کړه، عن و علی و مذو منذ د وجی د اشتراك ددې څلور واړونه په اسمیت او حرفیت کې او عن یې مقدم کړو په علی باندې څکه مشابهت د حرف سره پدیکې زیات دی د علی نه څکه پدیکې وضع ثنائي ده بخلاف علی په هغې کې وضع ثلاثي ده او کاف یې وروسته کړو اګر چې وضع احادی ده، پکې د وجی د قصور او نقصان د کاف نه په دخول کې پدی شان سره چې دا په اسم ظاهر داخلیږی، نه په ضمیر او وروسی یې ذکر کړو مذ او منذ د وجی د نقصان نه په مدخول کې چې دا په اسم ظاهر داخلیږی، او بیا فقط په زمانه داخلیږی، بیا یې خلا او عدِ او ها شا ذکر کړو، لانهم مشترکون فی الحرفیة والفعلیة او دا حروف جاره دوۀ قسمه دی،

(۱): یو مشهور، (۲): دویم غیر مشهور، مشهور اوولس دی کما في قول الشاعر،

باء وتا کاف ولام واو ومنذ ومذ خلا

رب حاشا من عدا فی عن علی حتی الی

او غیر مشهور اوه دی کیم لات لو لا هم لعل ومتی او بمعنی الی والو او بمعنی رب نو مجموعه حروف جاره څلورویشت دي کی عمل د جر کوی صرف پدی ما استفهامیه کې او د ما استفهامیه نه الف غورځوی او په حالت د وقف کې متصل کیږی پدی پورې هاء سکته نحو کیمه. اولات عمل د جر کوی په حین او مرادف ددې کې لکه ساعة وغیره. او لولا عمل د جر کوی صرف په ضمیر کې نحولولاهم لو لاك الخ او متی حرف جر دی، په لغت د هزیل قبیله کې نحو اخرجها متی کمها ای من کمها او مثال دلعل جاره نحو لعل ابی المغوار منك قریب، او او په معنیٰ د الی سره حرف جر دی نحو لالز منك او تعطینی حقی. او واو بمعنی رب حرف جر دی عند ابن حاجب او ددې نه علاوه دا نور حروف جاره غیر مشهور یې نه دی ذکر کړی،

(۱) لعدم شهر تها، (۲) د وجی د کیدو د اختلاف نه په دوی کې چې دا حروف جاره دي او کنه او دا حروف جاره باعتبار الذات په څلور قسمه دی،

(۱) یو قسم هغه دی چې مشترك دی بین الاسم والحرف او دا دری حروف دي، مذ ومنذ والکاف، دویم قسم هغه دی چې مشترك دی بین الفعل والحرف او دا هم درې دی حاشا خلاو عدا دریم قسم هغه دی چې مشترك دی بین الاسم والفعل والحرف او دا هم دری دی فی عن علی څلورم قسم هغه دی، چې مختص دی په حرف پورې اسمی اوفعلی نه راځی هغه اوه دی، لکه باقی حروف شو او معانی د حروف جاره ؤ مصنف په خپله بیانوی (**فمن للابتداء**)

**ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د حروف جاره ؤ نه اجمالا نو شروع یې وکړه په تفصیل د حروف جاره ؤ کې نو وې ویل فمن للابتداء الخ دا فا تفصیلیه ده،

**ترکیب:** او من مراد اللفظ علم دی د هغه من لپاره چې واقع کیږی، په تراکیبو کې مبتداء، للابتداء ظرف مستقر خبر د مبتداء، مبتداء مع الخبر جمله خبریه اسمیه مفصله،

**ترجمه:** پس کلمه د من چې دا یو حرف دی، د حروف جاره ؤ نه للابتداء دا وضع کړی شوی دی د ابتداء دغایه دپاره،

**تشریح:** من او لا په دری قسمه دی: (۱) یو من فعلی چې دا صیغه د واحد مذکر امر حاضر معلوم ده، د مان یمین مینانه بمعنی الکذب د هغه معنی دا ده،چه دروغ ووایه،(۲) دویم من اسمی دی دا مراد اللفظ علم دی د هغه من دپاره چې واقع کیږی په تراکیبو کې لکه دلته شو (۳) من جاره چې داخلیږی په اسم باندې او اسم لره جر ورکوی، اومن جاره په استعمال دکلام د عربو کې په شلو معانیو سره راغلی دی، او مصنف دلته دری ذکر کړی دی، د وجی د شهرت نه او باقی یې ترک کړی دی د وجی د عدم شهرت نه (۱) للابتداء ابتداء دوه قسمه ده یو ابتداء کلي ده چې مطلق شروع کردن نه وائي دا معنی د ابتداء ده چې صیغه د مصدر ده او مستقل ده

(۲) ابتدا جزی چې شروع کردن من شئ معین دا معنی حرفی ده، معنی د من ده او غیر مستقله ده، بیا دامن ابتدائیه دوه قسمه دی: (۱) اتصالیه (۲) غیر اتصالیه. اتصالیه دیته وائی چې مدخول

ددې امر کلي وي او لاندې يې جزيات وي او علامه يې دا ده چې ذکروی وروسته د هغې نه يو جزيء د جزيات نه کمافي قول ابن حاجب فمنه الفاعل.

(۲): او من ابتدائيه غيراتصاليه ديته وائي چې ګرځوی مدخول خپل مبتدا منه د ما قبل لپاره او علامه يې دا ده چې مقابل کې يې الى راځي، نحو سرت من البصرة الى الکوفة يا هغه حرف راځي چه بمعنى الى وى نحو اعوذبالله من الشيطن الرجيم دلته باء بمعنى الى ده اى التجى من الشيطن الرجيم الى الله او غالبا د امن ابتدائيه راځى، ابتدا دغايه لپاره په مکان کې نحو قوله تعالى سُبۡحَٰنَ ٱلَّذِيٓ أَسۡرَىٰ بِعَبۡدِهِۦ لَيۡلٗا مِّنَ ٱلۡمَسۡجِدِ ٱلۡحَرَامِ إِلَى ٱلۡمَسۡجِدِ ٱلۡأَقۡصَا،

(۲): او کله د ابتدا دغايه لپاره راځي، په زمانه کې نحو قوله تعالى لَّمَسۡجِدٌ أُسِّسَ عَلَى ٱلتَّقۡوَىٰ مِنۡ أَوَّلِ يَوۡمٍ وقوله عليه السلام فمطرنا من يوم الجمعة الى يوم الجمعة (۳) او کله د ابتداء دغايه دپاره راځي په اشخاص کې نحو قوله تعالى إِنَّهُۥ مِن سُلَيۡمَٰنَ وَإِنَّهُۥ بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ،

(۴): او کله د ابتداء دغايه لپاره راځى په احداثو کې پدى شان سره چې مدخول ددې مصدرى دى او دا مصدر ګرځوي مبتداء منه دپاره د فعل، نحو عجبت من اقدامك هذا الامر،

**سوال:** ته وائي چې من جاره راځى دغايه لپاره نو ابتداء خو اول الشئ ته وائي او غايه آخر الشئ ته وائي نو د اخوا ضافت د مبائن مبائن ته راغى، مثل انسان حمار او دا نه دى جائز،

**جواب** (۱): دلته غايه بمعنى نهاية الشى نده بلکه ذکر دغايه دى او مراد ترينه فعل دى ځکه غايه غرض او مقصود ته وائى او فعل هم مقصود د فاعل دى،

(۲) يا ذکر دغايه او مراد ترينه مسافت دى مجازا ځکه غايه جز دى او مسافت کل دى، اطلاق د جزء يې کړى دى په کل باندې مجازا،

(۳) يادامن راځى د ابتداء د غايه لپاره دا معنى چې دامن راځى د ابتداء د هغه شئ لپاره چې د هغه لپاره نهايت وى، او کوم شى دپاره چې نهايت نوى د هغې د ابتداء لپاره نه راځى، لکه ذات او صفات د الله تعالى شو، (**والتبيين**): بل دامن راځي د حروف جاره ؤنه د تبيين دپاره پدى شان سره چې ګرځوى مدخول خپل بيان د ما قبل او علامه يې دا ده چې صحيح به وى وضع دالذى په مقام ددې باندې او مدخول ددې به خبر د مبتداء وى، نحو قوله تعالى فَٱجۡتَنِبُواْ ٱلرِّجۡسَ مِنَ ٱلۡأَوۡثَٰنِ اى الذى هو الاوثان او که صحيح نه وو وضع د الذى په مقام ددې او صحيح نه وو ګرځول د مدخول ددې خبر د مبتدا محذوف نو هغه به من بيانيه نوى او دامن بيانيه که واقع شوى وو وروسته د معرفى نه نو دا جار مجرور باعتبار المتعلق به منصوب وى، بنا برحاليت او که وروسته د نکرې نه وو نو صفت به وى د نکرى لپاره او من چې واقع شى وروسته د ما او د مهما نه نو غالبا راځي د بيان لپاره کمافى قوله تعالى مَا نَنسَخۡ مِنۡ ءَايَةٍ، مَّا يَفۡتَحِ ٱللَّهُ لِلنَّاسِ مِن رَّحۡمَةٖ فَلَا مُمۡسِكَ لَهَا، مَهۡمَا تَأۡتِنَا بِهِۦ مِنۡ ءَايَةٖ. **والتبعيض**: او درېم دامن راځى د تبعيض دپاره پدى شان سره چې دامن دلالت کوى چې دا حکم ثابت دى بعض افرادو د

مدخول زما لره او علامه يې دا ده چې دامن لرې کړی او هغې په ځای باندې بعض کيږدی، نو معنی صحيح کيږي، نحو اخذت من الدراهم ای بعض الدراهم وقوله تعالی مِنْهُم مَّن كَلَّمَ اللَّهُ ای بعضهم من کلم الله وَمِمَّا رَزَقْنَاهُمْ يُنفِقُونَ ای بعض مارزقنا هم لَن تَنَالُوا الْبِرَّ حَتَّىٰ تُنفِقُوا مِمَّا تُحِبُّونَ اصل کې من ما وو، په قاعده د يرملون باندې نون بدل شو په ميم باندې او ميم په ميم کې مدغم شو نو مما شو او دامن تبعيضی دی، او قرينه پدی باندې قرائت د ابن مسعود دی، حتی تنفقوا بعض ما تحبون لهذا يو مړی چې د الله لار کې مال خرچ کوی، نو بعض به خرچ کوی نه ټول ځکه دا ندی مناسب چې ټول مال ورکړی بل ځاته او بيا د بل ځانه سوال کوی، او هر چې ابوبکر وو نو دا خصوصيت د هغه وو،

**زائدة** ځلورم دامن راځی زائد په استعمال د کلام د عربو کې د هغې علامه دا ده چې دامن لرې کړی شی نو نقصان نه راځي په اصل معنی د کلام کې **(فی غیرموجب)** او دامن زائد راځی په کلام غيرموجب کې عندالبصريين، **(خلافا للكوفيين والاخفش)** خلاف ثابت دی د کوفيين او اخفش لپاره چې هغه وائی دامن چې څنګه په کلام غيرموجب کې راځی نو دارنګې په کلام موجب کې هم راځی، پس زده کړه دا خبره چې من زائده کې اولاً دوه مذهبه دی،

(۱) يو مذهب د بصريينو دی او، بل مذهب د کوفيينو او د اخفش دی. بصريين وائی چې دا من زائد راځي په کلام غيرموجب کې او په کلام موجب کې زائد نه راځی، او کوفيين او اخفش وائی چې په کلام موجب او غيرموجب دواړو کې زائد راځي، کلام موجب هغې ته وائی چې په هغې کې حرف نفی نهی او استفهام نوی او غيرموجب هغې ته وائی چې دا پکې راغلی وی، نحو قوله تعالی مَّا تَرَىٰ فِي خَلْقِ الرَّحْمَٰنِ مِن تَفَاوُتٍ، مَا اتَّخَذَ اللَّهُ مِن وَلَدٍ هَلْ تُحِسُّ مِنْهُم مِّنْ أَحَدٍ هَلْ مِنْ خَالِقٍ غَيْرُ اللَّهِ، مَّا فَرَّطْنَا فِي الْكِتَابِ مِن شَيْءٍ او ای من تفريط چې دامن زائد راغلی دی، په مفعول مطلق کې، دامن زائد راځي وروسته د نفی نه دپاره د تنصيص او د تصريح په عموم باندې نحو ماجاءنی من رجل دلته دامن زائد راغلی دی لپاره د تنصيص په عموم باندې ځکه چې کله من نه وو ذکر نو دا محتمل د احتمالين وو،

(۱) احتمال د نفی د جنس پکې هم شته يعنی جنس رجل نه دی راغلی او احتمال د وحدت پکې هم شته چې يو سړی نه دی راغلی او ماجاءني من رجل چې ووائی په زيادت د من سره نو تصريح وشوه په عموم باندې پدی شان سره چې نفی د جنس رجل يې کړيده نه نفی د وحدت فاذاقيل ماجاءنی من رجل فلا يصح ان يقال بل رجلان واذا قال ماجاء نی رجل يصح ان يقال بل رجلان،

(۲) او کله راځی لتاکيد العموم نحو ماجاءنی من احد دلته دا من لتاکيد العموم دی ځکه لفظ د احد په خپله دلالت کوی، په عموم باندې نو په من زائد سره تاکيد د عموم راغی، اومن زائده چې راشی په معرفه کې نو د تاکيد د نفی لپاره راځي **وقد کان من مطرو شبهه متاول،** دا جمله مستانفه جواب د سوال، اعتراض د جانب د کوفيانو او اخفش نه په بصريانو باندې چې تاسو وايئ چې من زائد راځي په کلام غيرموجب کې فقط او په کلام موجب کې نه راځي، دا قاعده ستاسو منقوضه شوه پدی مقوله د

عربو باندې چې قد كان من مطر دلته من زائد راغلى دى په كلام موجب كې دارنګې دا قاعده ستاسو منقوضه شوه، پدى قول د الله باندې وَلَقَدْ جَآءَكَ مِن نَّبَإِي ٱلْمُرْسَلِينَ دامن زائد راغلى دى، په كلام موجب كې دارنګې دا قاعده منقوضه شوه پدى قول د الله سره چې يَغْفِرْ لَكُم مِّن ذُنُوبِكُمْ دلته دا من زائد راغلى دى، په كلام موجب كې، ځكه كه دامن دلته زائد نه شي بلكې تبعيضى شي نو لازميږى تناقض ددې ايت د إِنَّ ٱللَّهَ يَغْفِرُ ٱلذُّنُوبَ جَمِيعًا سره او دا قاعده ستا منقوضه شوه، پدى حديث سره چې ان من اشدالناس عذابا يوم القيامة المصورون من اشد الناس اسم دان او المصورون يې خبر دى، او دامن زائد دى، ځكه كه زائد نه شى نو دا اسم دان لپاره نه واقع كيږى، نو مصنف راغى او جواب يې وكړه د طرفه د بصريانو نه چې دا قول د عربو چې (قد كان من مطر وشبهه) يا ددې په شان نور تركيبونه نه شو متاول تاويل كړى شوى دى په دې كې هر چې قد كان من مطر نو دلته دامن بيانيه دى د ضمير د كان دپاره چې راجع دى شئ ته او وَلَقَدْ جَآءَكَ مِن نَّبَإِي ٱلْمُرْسَلِينَ كې من تبعيضى دى، او يغفرلكم من ذنوبكم كې هم تبعيضى دى او تناقض نه راځى بين الايتين ځكه دا په باره د قوم د نوح كې دى او ان الله يغفرالذنوب جميعا په باره د امت د نبي صلى الله عليه وسلم كې دى،

(۴) يا هلته مراد د ذنوب نه حقوق العباد دى او ددې نه مراد حقوق الله دى او په حديث كې من زائد ندى بلكه اصلى دى، او دا جار مجرور خبر مقدم دى او المصورون مبتدا مؤخره ده، او دا جمله خبر دان دى، او اسم دان ضمير شان محذوف دى،

(۵): للقسم نحو من ربى لافعلن كذا (٦): نحو انت منى بمنزلة هارون من موسى،

(۷): للبدل نحو أَرَضِيتُم بِٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا مِنَ ٱلْءَاخِرَةِ (۸): للتفضيل نحو زيد افضل من عمرو،

(۹): للسبب نحو قوله تعالى مِّمَّا خَطِيٓـَٔـٰتِهِمْ أُغْرِقُوا۟ فَأُدْخِلُوا۟ نَارًا ،

(۱۰): للتجريد نحو لقيت اسدا من زيد (۱۱): للاستعانه نحو يَنظُرُونَ مِن طَرْفٍ خَفِىٍّ اى بطرف خفى،

(۱۲): للظرفية نحو قوله تعالى إِذَا نُودِىَ لِلصَّلَوٰةِ مِن يَوْمِ ٱلْجُمُعَةِ اى فى يوم الجمعة،

(۱۳): للمجاوزة نحو قوله تعالى يَـٰوَيْلَنَا قَدْ كُنَّا فِى غَفْلَةٍ مِّنْ هَـٰذَا،

(۱۴): للفصل نحوقوله تعالى وَٱللَّهُ يَعْلَمُ ٱلْمُفْسِدَ مِنَ ٱلْمُصْلِحِ ·

(۱۵): بمعنى عند نحوقوله تعالى لَن تُغْنِىَ عَنْهُمْ أَمْوَٰلُهُمْ وَلَآ أَوْلَـٰدُهُم مِّنَ ٱللَّهِ شَيْـًٔا اى عند الله،

(۱۶): بمعنى الى نحو قربت منه اى اليه (۱۷): للاستغراق نحو ماجاءنى من احد ،

(۱۸): للاتصال نحو انت منى بمنزلة هارون من موسى،

(۱۹): للاستعلاء نحو قوله تعالى وَيَسْخَرُونَ مِنَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ اى على الذين،

(۲۰): للتشبيه نحوقوله عليه السلام خلقت المراة من الضلع، كه الف لام په المراة كې عهدى خارجى شى المراد منه حواء بيا من په خپله معنى سره دى، او كه الف لام استغراقى شى بيا من په معنى

دکان سره دی، او مؤید ددې دپاره بل حدیث دی. المراة کالظلع بل مثال العجوة من الجنة ای مثل شجر الجنة، الکماة من المن ای مثل المن.

**(والی للانتهاء): (ربط)** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د معانیو د من نه نو شروع یې وکړه په بیان د معانیو دالی کې نو وې ویل والی للانتهاء.

ترجمه: بل حرف د حروف جاره ؤنه الی دی، او الی په استعمال د کلام د عربو کې په شپږو معانیو سره راغلی دی (**للانتهاء**): دا وضع کړی شوی دی ددې دپاره چې دلالت وکړی په انتهاء د مغیا باندې پدی شان سره چې ګرځوی مدخول خپل منتهی الیه لپاره د ماقبل ددې څلور صورتونه دی.

(۱): کله دا نتهاء دغایه لپاره راځی فی المکان نحو قوله تعالی سُبْحَانَ الَّذِي أَسْرَىٰ بِعَبْدِهِ لَيْلًا مِّنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ إِلَى الْمَسْجِدِ الْأَقْصَى، (۲) کله راځي لانتهاء الغاية فی الزمان نحوقوله تعالی ثُمَّ أَتِمُّوا الصِّيَامَ إِلَى اللَّيْلِ.

(۳): په اشخاصو کې نحو جئت الیك.

(۴): فی الاحداث نحو صل بالتقوی الی رضی الله او الی چې انتهاء الغایه دپاره راځی دا دوه قسمه دی (۱): اسقاطیه. (۲): امتدادیه

(۱): اسقاطیه دیته وائی چې دا الی ماقبل حکم راکاږی او رسوی یې مدخول خپل ته او د مدخول نه علاوه د نورو نه یې ساقطه وی او علامه یې دا ده،چه سر د کلام به متناول وی مدخول د الی لره نحوقوله تعالی فَاغْسِلُوا وُجُوهَكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ إِلَى الْمَرَافِقِ

او الی امتدایه دیته وائی چې ما قبل حکم رسوی، دمدخول خپل پورې او دا حکم نه ثابته وی مدخول خپل لره دهغې علامه دا ده، چې سر دکلام متناول نه وی مدخول د الی لره نحوقوله تعالی ثُمَّ أَتِمُّوا الصِّيَامَ إِلَى اللَّيْلِ (۲): (**وبمعنی مع**): الی راځي بمعنی مع (قلیلا) لره زمانه په مجیئت قلیله سره د هغې علامه داده چې الی لرې کړې او دهغې په ځای باندې لفظ د مع کیږدی، نو په معنی کې نقصان نه راځی، نحو قوله تعالی مَنْ أَنصَارِي إِلَى اللَّهِ ای مع الله. وَلَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَهُمْ إِلَىٰ أَمْوَالِكُمْ ای مع اموالکم.

(۳): وللظرفیة: نحو قوله تعالی لَيَجْمَعَنَّكُمْ إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ ای فی یوم القیامة.

(۴): بمعنی عند: نحو قوله تعالی رَبِّ السِّجْنُ أَحَبُّ إِلَيَّ ای عندی.

(۵): بمعنی من: نحو قوله تعالی بَرَاءَةٌ مِّنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ إِلَى الَّذِينَ عَاهَدتُّم مِّنَ الْمُشْرِكِينَ ای من الذین.

(۶): بمعنی اللام: نحوقوله تعالی الامر الیك ای الامر بك او دا معانی مصنف ندی ذکرکړی. للقلة والندرة. (**وحتی**): بل دحروف جاره ؤنه حتی دی حتی اولادری قسمه دی.

(۱): حتی ابتدائیه نحوقوله تعالی حَتَّىٰ عَادَ كَالْعُرْجُونِ الْقَدِيمِ وقولك مرض فلان حتی لایرجونه او دیته حتی استنافیه هم وائی (۲): حتی عاطفه نحومات الناس حتی الانبیاء (۳): حتی جاره او حتی جاره په استعمال د کلام د عربو کې په څلورو معانیو سره راځی

**وحتى كذلك**: حتى هم په شان دالى دى په كون دده كې للانتهاء حتى مشبه او كاف اداة د تشبيه او مشار اليه د ذلك چې الى دى، مشبه به او وجه د شبه انتهاء ده يعني لكه څنګه چې الى راځي لانتهاء الغاية نو حتى هم راځي، پدى شان سره چې دا حتى ګرځوى، مدخول خپل منتهى اليه لپاره د غيراو حتى چې د انتهاء لپاره راځي، په هغې كې هم صور اربعه دى (١): لانتهاء الغاية فى المكان نحو سرت البلد حتى السوق (٢): فى الزمان نحو نمت البارحة حتى الصباح (٣): فى الاشخاص نحوا كلت السمكة حتى راسها (۴): فى الاحداث نحوقوله تعالى حَتّٰى مَطْلَعِ الْفَجْرِ

(٢): وبمعنى مع كثير: او دا راځي بمعنى مع په زمانه كثيره كې او په مجيئت كثيره سره نحو قرائتي وردي حتى دعائى، اكلت السمكة حتى راسها اى مع راسها

**سوال**: لكه څنګه چې الى راځي بمعنى مع نو حتى هم راځي نو وحتى كذلك يې ولې ونه ويل، څكه كه اكتفاء يې كړى

**جواب**: دا دى چې خان له يې ذكر كړه او پدى تشبيه باندې يې اكتفاء ونه كړه، حالانكه دا پدې مجيئت بمعنى مع كې مساوى ندى وى په تشبيه باندې نو مساوات معلوميدو حالانكه دا پدې مجيئت بمعنى مع كې مساوى ندى دالى سره بلكه حتى كثير راځي، او الى قليل راځي.

(٣): حتى بمعنى الى: نحوسرت حتى تغيب الشمس اى الى غيبوبة الشمس،

(۴): وبمعنى كى: نحو اسلمت حتى ادخل الجنة اى كى ادخل الجنة،

(۵): بمعنى الاچې دا حتى دلالت كوى چې دا ما بعد خارج دى د حكم د ما قبل نه كمافى قول الشاعر: ليس العطاء من الفضول سماحة تى نجود وما لديك قليل اى الا ان نجود

**ويختص بالظاهر**: مختص دى دخول د حتى په اسم ظاهر پورې قياساً، الظاهر صفت دى، تقاضه د موصوف كوى او موصوف مو ورله اسم راويستو په قرينى د مقام سره څكه مراد د ظاهر نه مقابل د ضمير دى، نه خلاف د مقدر، (١): استغناءً عنه بالى، (٢): لپاره ددې چې لازم نه شي التباس د منصوب او مجرور په مينځ كې څكه حتى چې داخل شي په ضمير باندې نو پته نه لګى چې منصوب دى كه مجرور (**خلافا للمبرد**) خلاف شوى دى د جمهورونه په خلاف كولو سره داسې خلاف چې ثابت دى، مبرد لره د هغه په نز باندې د خول د حتى په ضمير باندې هم جائز دى او دليل د هغه دا قول د شاعر دى: فلاوالله لايبقى اناس فتى حتاك يا ابن ابى زياد

جواب د طرفه د جمهورونه دا دى چې دا شاذ دى،

## (مابه الاشتراك درميان الى وحتى)

(١): دواړه راځي لانتهاء الغاية، (٢): مدخول د الى كله داخل وى په ماقبل كې او كله خارج وى دارنګې حتى دى، (٣): دواړه راځي بمعنى مع،

## (مابه الامتياز درميان الى وحتى)

(١): الى راځي بمعنى مع قليلاً او حتى راځي كثيراً

(٢): دخول د حتى مختص دى په اسم ظاهر پورې بخلاف الى،

(۳): که حتی داخل شی په ضمیر باندې خلاف القیاس نو الف د حتی ثابت پاتې کیږی یقال حتاك حتا بخلاف الی دا چې داخل شی په ضمیر باندې نو الف یې نه پاتې کیږی نحو الیه الیك، په شان دلدن باندې یقال فیه لدیه لدیك،

(۴): مدخول د حتی جز اخیر د ماقبل وی، نحو اکلت السمکة حتی رأسها یا جز ملاقی دا خیر د ما قبل وی نحو نمت البارحة حتی الصباح مراد د صباح نه صبح صادق دی، او دا جز اخیر دلیل ندی بلکه جز اخیر دلیل صبح کاذب دی، او د هغې مجاور دی او ملاقی دی او د الی په مدخول کې دا شرط ندی لهذا نمت البارحة الی نصفها او الی ثلثها وئلی شی، او حتی نصفها نه شی ویلی ځکه نصف نه جز اخیر د شپې دی، او نه جز ملاقی دی دا خیر د شپې سره،

(۵): په مدخول د حتی کې جر واجب ندی بخلاف الی،

(۶): پس د حتی نه مضارع منصوبه راځی بتقدیر ان بخلاف الی، (۷): حتی راځی بمعنی الا بخلاف الی، (۸): الی کله راځی بمعنی اللام او کله بمعنی فی کله بمعنی عند بخلاف حتی،

**وفی للظرفیة: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د معنی د الی او دحتی نه نو شروع یې وکړه په بیان د معنی د فی کې نو وې وئل وفی للظرفیة فی اولا درې قسمه ده،

(۱): اسمی، (۲): فعلی، (۳): حرفی فی اسمی [illegible] د قسمه ده،

(۱) بمعنی فم چې دا یو اسم دی د اسم [illegible] نه نحو وکلمته فوه الی فی،

(۲): فی اسمی علمی چې دا مراد اللفظ علم وی د هغه فی لپاره چې واقع کیږی په تراکیبو کې لکه پدی مقام کې شو، او فی فعلی صیغه د واحد مؤنث امر حاضر معلوم ده د وفی یفي وفاءً نه او ف واحد مذکر امر حاضر دی په شان دق،

**سوال:** هندفی څه ترکیب دی **جواب:** هند منادی مفرده معرفه ده مبنی علی ما یرفع فی صیغة واحده مؤنثه امر حاضر معلوم ضمیر پکې مستتر دی هغه ورله فاعل دا جمله انشائیه امریه جواب نداء ده.

**سوال:** یوس ف ذلیخا څه ترکیب دی **جواب:** یوس منادی مرخمه ده اصل کې یا یوسف وو ف صیغه واحد مذکر امر حاضر معلوم ضمیر پکې مستتر دی هغه ورله فاعل ذلیخا ورله مفعول به دا جمله انشائیه امریه جواب ندا دی. او ترکیب په شان د یوسف اعراض عن هذا باندې دی، اوفی حرفی داخلیږی په اسم باندې او اسم لره جر ورکوی، لفظا یا تقدیرا یا محلا، او فی حرفی په استعمال د کلام د عربو کې په دوولس معانیو راځی مصنف صرف دوه ذکر کړی دی د وجې د شهرت نه او نور یې نه دی ذکر کړی د وجې د عدم شهرت نه،

(۱): **للظرفیة:** فی راځی لپاره د ظرفیت د مدخول د یو شئ پدی شان سره چې دا فی ګرځوی مدخول خپل ظرف لپاره د غیر حقیقة نحو الماء فی الکوز یا حکما نحو النجات فی الصدق لان الکذب یهلك بعنی فی راځی، د ظرفیت لپاره او ظرفیت دوه قسمه دی،

(۱): حقیقی، (۲): مجازی علامه د ظرفیت حقیقی او مجازی دا ده چې دا مدخول د فی به خالی نوی یا به ظرف زمان وی، یابه مکان وی یا به دواړه نوی که مدخول یې ظرف زمان یا مکان وو نو ظرف

حقیقی مثال د فی چې مدخول یې ظرف مکان دی، نحو قوله تعالی وَكُلٌّ فِي فَلَكٍ يَسْبَحُونَ مثال د زمان نحو سرت فی اللیل مثال د دواړو نحو قوله تعالی غُلِبَتِ الرُّومُ ۝ فِي أَدْنَى الْأَرْضِ وَهُم مِّن بَعْدِ غَلَبِهِمْ سَيَغْلِبُونَ ۝ فِي بِضْعِ سِنِينَ. او که مدخول یې ظرف زمان یا مکان نه وو نو هغه ظرفیت مجازی دی نحو قوله تعالی وَلَكُمْ فِي الْقِصَاصِ حَيَاةٌ وغ، **وفی الشر نجاة حین لا ینجیك احسان**،

(۲): به الفاظ دیګر حلول د شئ په شئ کې به راغلی وی او یا به نوی که وو نو حقیقی نحوالماء فی الکوز والافمجازی نحوالنجات فی الصدق (۲): **وبمعنی علی**) او کله فی راځی په معنی د علی سره یعنی د استعلاء لپاره پدی شان سره چې ګرځوی مدخول خپل مستعلا علیه لپاره د غیر (**قلیلاً**) په لړه زمانه کې یا په مجنیت قلیله سره یعنی فی بمعنی علی قلیله ده، په نسبت سره فی ظرفی ته مثال ددې کمافی قوله تعالی وَلَأُصَلِّبَنَّكُمْ فِي جُذُوعِ النَّخْلِ ای علی جزوع النخل دلته فی بمعنی علی دی خکه که په خپله معنی شی نو لازمیږی فساد دمعنی خکه تصلیب کولی شې علی جزوع النخل نه فی جزع النخل (۳): (**للمصاحبة**): نحوقوله تعالی ادخلوا فی امم ای مع امم،

(۴): (**للتعلیل**) نحو قوله تعالی فَذَٰلِكُنَّ الَّذِي لُمْتُنَّنِي فِيهِ ای لاجل مراودته ونحوقوله علیه السلام **ان امراة دخلت النار فی هرة**،(۵): **بمعنی الی** نحو قوله تعالی فَرَدُّوا أَيْدِيَهُمْ فِي أَفْوَاهِهِمْ .

(۲): **للزیادت** نحو ارکبو فیها ای ارکبوا ها. (۷): **للبدل** نحو وما الحیوة الدنیا فی الاخرة الاقلیل،

(۸): **بمعنی الباء** نحو هَلْ يَنظُرُونَ إِلَّا أَن يَأْتِيَهُمُ اللَّهُ فِي ظُلَلٍ مِّنَ الْغَمَامِ (۹): **بمعنی عند** کما فی قول الشاعر،

**جاء شقیق عارضا رمحه ان بنی عمك فیهم رماح**

(۱۰): **بمعنی بین** نحو قوله تعالی فَادْخُلِي فِي عِبَادِي ای بین عبادی وقول الفقهاء لی ثوب فی عشرة ای بین عشرة یلزم له ثوب فقط،(۱۱): **بمعنی من** کقول النحات التاکید تابع یقدر امر المتبوع فی النسبت،

**والباء للالصاق**: هر کله چې فارغ شو د بیان د معانیو د فی نه نو شروع یې وکړه په بیان د معانی د باء کې او باء په استعمال د کلام د عربو کې په شلو معانیو سره راځی،

(۱): (**للالصاق**): الصاق په لغت کې اتصال الشئ بالشيء ته وائی او باء چې د الصاق لپاره راځي د هغې معنی دا ده چې دا باء ګرځوی مدخول خپل ملصق به دپاره د غیر او دا الصاق عام دی، که په طریقه د مخالطت سره وی نحو به داء دا الصاق حقیقی دی یا په طریقه د مجاورت سره وی، نحو مررت بزید ای التصق مروری بمکان یقرب منه زید دیته الصاق مجازی وائی (**والاستعانة**) بل راځی د استعانت لپاره، استعانت کې لابدی ده، د معرفت د امور خمسه ؤ نه،

(۱): صیغه،(۲): اصل، (۳): مفهوم لغوی، (۴): مفهوم اصطلاحی، (۵): اقسام نو دا مصدر دی د باب استفعال نه اصل کې استعوان وو، دواو نه حرکت نقل شو ماقبل ته او بدل شو په الف باندې او الف حذف شو او په اخیر کې تارا وړی شوه اخفش وائی هغه الف چې بدل د واو نه راغلی دی، هغه حذف شوی دی دا مذکور علامه د مصدر ده او سیبویه وائی کوم چې بدل د واونه راغلی دی، هغه

مذکور دی او هغه بل حذف شوی دی نو عند الاخفش استفعلة وزن دی او عند السیبویه استفالة وزن دی، معنی د استعانت دا ده چې دا با گرځوی مدخول خپل معاون د فاعل سره په ورود د فعل کې او علامه یې دا ده چې غالبا داخلیږی، په اله د شئ باندې ددې وجی نه با د استعانت ته باء د اله او با مکمله د فعل هم وائی نحو کتبت بالقلم او استعانت دوه قسمه دی،
(۱): قولی، (۲): فعلی قولی دیته وائی چې عند الحاجت والضرورة غائبانه امداد غوښتل مثال لکه بسم الله الرحمن الرحیم او فعلی دیته وائی چې د مدخول د باء نه کار اخستل او مدخول د باء په کار کې راوستل لکه کتبت بالقلم او ایاك نعبد وایاك نستعین کې استعانت قولی دی. نه فعلی یعنی خاص ستا نه امداد غواړو نه د غیر نه په ټولو مهماتو کې لهذا په وقت د ضرورت کې استعانت قولی د غیر الله نه شرك دی **وللمصاحبة** او کله راځی د مصاحبت لپاره یعنی دا باء گرځوی مدخول خپل مصاحب د ما قبل سره په صدور د معنی مصدری او وقوع کې او با چې د مصاحبت لپاره راځی، د هغې علامی دوه دی (۱): په ځاي ددې باندې مع ذکر کول صحیح وی،
(۲): استغناء راځی ددې نه په وقت د مجیئت د حال کې چې جوړ دی د مدخول ددې نه نحو قوله تعالی لَقَدْ جَآءَكُمْ اَهْبِطْ بِسَلٰمٍ ونحو قولك اشتریت الفرس بسرجه د خلت علیه بثیاب السفر اوس لقد جاءکم بالحق کې چې مع الحق اوائی نو معنی صحیح ده، دارنگې اشتریت الفرس مع سرجه هم جائز دی او لقد جاءکم محقا اواشتریت الفرس مسرجا چې اوائی نو بالحق وبسرجه ذکر کولو ته ضرورت نه پاتې کیږی،
**سوال:** ذکر د مصاحبت پس د الصاق نه لغوه دی ځکه الصاق شامل دی مصاحبت لره.
**جواب:** ذکر د مصاحبت پس د الصاق نه لغوه نه دی ځکه په مینځ ددې کې فرق دی، چې مجرور د باء د مصاحبت د توابع د ما قبل نه دی او مجرور د باء د الصاق عام دی که د توابع د ماقبل نه وی او که نه وی نو اشتریت الفرس بسرجه کې دا باء د مصاحبت لپاره ده ځکه مدخول د باء چې سرج دی د توابع د ماقبل نه دی، چې فرس دی او مررت بزید کې باء د الصاق ده. ځکه مدخول دباء توابع د ماقبل نه ندی پس شو مصاحبت اخص مطلق او الصاق اعم مطلق،
**والمقابلة**: څلورم با راځی د مقابلې لپاره هی التی تدل علی اختیار الشیئین علی الاخر بلا عوض ولا بدل نحو قوله تعالی اولئك الذین اشتروا الضلالة بالهدی ای ببدل الهدی وکقول الشاعر:

وتظن سلمی اننی ابغی بهابدلا — اراهافی الضلال تهیم (بهاای ببدلها)

او با عوضی او بدل هغې ته وائی چې دا باء گرځوی مدخول خپل بدل او عوض دشئ اخر نه او دا داخلیږی په اعواض او اثمان باندې نحو اشتریت العبد بالفرس اخذت هذا الثوب بدرهم،
**والتعدیة**: پنځم با راځی د تعدیت لپاره په تعدیت کې لابدی ده د معرفت د امور اربعونه،
(۱): مفهوم لغوی، (۲): اقسام، (۳): تعریف د اقسامو،
(۴): کیفیت د تعدیت خاصه نو دا صیغه د مصدر ده د باب تفعیل نه عد یعد تعدیة نه تجاوز ته وائی او په اصطلاح کې دوه قسمه دی (۱): عامه، (۲): خاصه،

تعدیة عامه د نفس فعل لازم نه متعدی جوړولو ته وائی او تعدیت خاصه عبارت دی د ایراث او احداث د جعل او تصییر نه په مفهوم د ثلاثی مجردو کې د وجی د داخلولو د متکلم نه با جاره لره په فاعل د فعل لازم د ثلاثی مجردو کې نحو ذهبت بزید ای صیرت زیدا ذاهبا دلته مراد تعدیت خاصه دی نه عامه څکه په تعدیت عامه کې ټول حروف جاره شریك دی، او تعدیت خاصه لپاره باء راځی او نور حروف جاره نه راځي او کیفیت د تعدیت خاصه دا دی چې دا باء ته داخله کړی په فعل لازم د ثلاثی مجردو باندې نو دا ګرځوی هغه فعل لره متضمن معنی د جعل او تصییر لره نو مفعول اول به ورله ګرځوی فاعل د فعل لازم د ثلاثی مجردو او مفعول ثانی به ورله مصدر د فعل لازم د ثلاثی مجردو وی بمعنی اسم فاعل یا په حذف د مضاف سره او فاعل به ددې د فعل لپاره بل شی ګرځوی او باء چې د تعدیت لپاره راځی پدیکې دوه مذهبه دی،

(۱): مبرد وائی چې ددې معنی دا ده چې مصاحبت د فاعل دی د مفعول سره په فعل کې لهذا..... فعل لازم لره .....او سیبویه وائی چې معنی د تعدیت بالباء بالهمزه او بالتضعیف ګرځول ددې دی، څکه تعدیت د مبر د په مذهب باندې په ذَهَبَ اللهُ بِنُورِهِمْ کې غیر متصور دی.

معنی د جعل او تصییر لره او مذهب د سیبویه غوره دی، څکه تعدیت د مبر د په مذهب باندې په

(۲): (**والظرفیة**): شپږم باء راځی د ظرفیت دپاره پدی شان سره چې ګرځوی مدخول خپل ظرف د ما قبل لپاره او علامه یې دا ده چې باء لرې کړی او د هغې په ځای باندې فی ذکر کړی نو معنی یې صحیح کیږی، ظرفیت عام دی چې مکان وی نحوقوله تعالی وَلَقَدْ نَصَرَكُمُ اللهُ بِبَدْرٍ ای فی بدر وما کنت بجانب الطور ای فی جانب الطور اطلبوا العلم ولو بالصین وقول الشاعر،

تطاول لیلك بالاثمد (ای في الاثمد) ونام الخلی ولم ترقد

یا ظرف زمان وی نحو قوله تعالی نَجَّيْنَٰهُم بِسَحَرٍ (ای في سحر)

(۷): (**وزائده**): اووم با زائده راځی زائد دا معنی چې په ازاله اوحذف ددې سره نقصان نه راځی په اصل معنی د کلام کې او زائد راځی د تاکید د نفی یا تقویت د عمل یا د تحسین د کلام لپاره او د زائد دا معنی نده چې بی فائدی وی، څکه په دغه معنی سره زائد په قران کې نه راځی او باء زائده په قران کې راغلی ده، بازائده په دوه قسمه ده، (۱): قیاسی، (۲): سماعی،

قیاسی: هغې ته وائی چې زیادت د باء مسموع وی د عربو نه په یو ترکیب کې او نور هم په هغې باندې قیاس کولی شی اګر چې زیادت د باء دیکې مسموع نه وي او سماعی هغې ته وائی چې مختص وی په مورد د سمع پورې ولایقاس علیه غیره او دا باء زائده قیاساً راځی په مواضع ثلاثه ؤ کې: (۱): په خبر د مبتدا کې په وقت د دخول د هل استفهامیه کې په جمله اسمیه باندې نحو هل زید بقائم او زیادت د باء په خبر د مبتدا کې وروسته د همزة استفهامیه نه ندی جائز، فلا یقال ازید بقائم او همزة استفهامیه او هل استفهامیه کې نهه فرقو نه دی، کما سیجیئ یو دا دی چې با زائده راځي

په خبر د مبتدا کې وروسته د هل ته نه د همزې نه (۲): والنفي: قياسا او راځي په خبر کې وروسته د نفی نه په ليس سره كقوله تعالى أَلَيْسَ اللَّهُ بِكَافٍ عَبْدَهُ أَلَيْسَ اللَّهُ بِأَحْكَمِ الْحَاكِمِينَ،

(۳): او راځي په خبر کې وروسته د ما نا فيه نه نحو قوله تعالى وَمَا اللَّهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ او با زائده راځي په خبر کې وروسته د لاي نفی نه په طريقه د قلت سره سماعًا نه قياسًا، او ما ولا المشبهين کې څلور فرقو نه دی کمامر، يو دا دی چې با وروسته د ما نه راځی قياسًا او دلانه سماعًا او دا قياسًا منصوب دی، بنا بر مفعول مطلق د زائدة لپاره په اعتبار د حذف د موصوف سره ای زيادة قياسية يا په اعتبار د مضاف محذوف سره ای زيادة قياس،

وفی غيره: او په غير د خبر مذكور کې باء زائده راځی سماعا چې دا مسموع دی د عربو نه او مختص دی په مورد د سمع پورې ولا يقاس عليه غيره او سماعاً هم منصوب دی، بنا بر مفعول مطلق د زائدة لپاره په حذف د موصوف يا مضاف سره ای زيادة سماعية يا زياة سماع او با زائده سماعی درې قسمه ده،(۱): لازم، (۲): غالب، (۳): قليل لازم نحو احسن بزيدٍ دا باء زائده راغلې ده، په فاعل کې لزوما دا بنا ده په يو ترکيب باندې چې صورة د احسن صورت د امر دی ليکن په معنی د حسن سره دی او باب افعال د ضرورت لپاره دی ای صار زيدُ ذا حُسنٍ،

(۲): دا باء زائده راځي غالبا په فاعل د كفى کې نحو قوله تعالى كفى بالله كفى بجهنم او زيادت د باء په مفعول به د كفى کې قليل دی كما فی قول الشاعر،

كفى بنا فضلا على من غيرنا حب النبی محمد ايانا

(۳): او با زائده په طريقه د قلت سره راځی په اته ځايونو کې

(۱): با زائده راځي په طريقه د قلت سره په مبتدا کې نحو بحسبك درهم بحسبك مبتدا ده، درهم ورله خبر دی او با زائده راغلې ده په مبتدا کې سماعًا، بلْ مثال نحو قوله تعالى بِأَيِّكُمُ الْمَفْتُونُ پديکې تراکيب اربعه دی، په يو ترکيب باندې مثال جوړيږی او په نورو باندې نه جوړيږی (۱): ابوالحسن اخفش وائی چې دا باء د الصاق لپاره ده او مفتون مصدر ميمی بمعنی الفتنة ورله خبر دی.

ترجمه: په کوم يو ستاسو پورې نختی دی ليو تنوب،

(۲): يا د ظرفيت لپاره بمعنی فی دا خبر مقدم المفتون مصدر ميمی بمعنی الفتنة مبتدا مؤخره فيكون المعنى فی ای فريق منكم الفتنة دا هم د اخفش ترکيب دی، او ابن عطيه دا ترکيب مستحسن ګڼلی دی (۳): دا باء الصاق لپاره ده دا جار مجرور خبر مقدم المفتون بحذف الصق مبتدا مؤخره ای بايكم فتنة المفتون (۴): با زائده ده او ايكم مبتدا او المفتون ورله خبر دی معنی دا چې کوم يو ستاسو نه ليونی دی، (۲): دا بازائده راځي په خبر د مبتدا کې نحو بحسبك زيد.

سوال: زيد ته مبتدا او حسبك ته خبر مقدم ولې وائی، په شان د بحسبك درهم ترکيب ولې نه کوی؟

جواب: داسې ترکيب زه نه شم کولی ځکه دا قاعده ده، د نحاتو چې دوه اسمونه وموندلی شی، يو معرفه وی بل نکره وی نو د معرفی نه به مبتدا جوړوی او د نکری نه خبر او دلته زيد معرفه ده، او

حسبك نكره ده ځکه حسب د وجی د کمال توغل نه په ابهام کې نه معرفه کیږی په اضافت سره معرفی ته (۳) با زائده راځي قليلا په مفعول به کې نحو القی بیده ای القی یده وقوله تعالی وَلَا تُلْقُوا بِأَيْدِيكُمْ إِلَى التَّهْلُكَةِ بایدیکم کې بازائده ده، ځکه القی فعل متعدی بالذات دی او ایدیکم کې مجاز مرسل دی ذکر د جزء او مراد تري کل دی معنی ـ ا ده چې ولاتلقوا انفسکم الی الهلاك بترك الجهاد فانكم اذا ترکتم الجهاد غلبکم الاعداء فهلكتم (۴) با زائده راځي قليلا په اسم دلیس کې نحو قوله تعالی وَلَيْسَ الْبِرُّ بِأَنْ تَأْتُوا الْبُيُوتَ، (۵) با زائده راځي په طريقه دقلت سره په خبر د لکن کې،ع، ولکن اجرا لو فعلت بهين (۶) با زائده راځي قليلا په حال د عامل منفيه کې کمافی قول الشاعر،

حكيم بن المسبة منتهاها
فما رجعت بخائبة ركاب

ای فما رجعت ركاب خائبة.

(۷) با زائده راځي په خير دلاکي نحو لاخير بخير بعده نار، دیکي دوه ترکیبونه دی،
(۱) باللظرفيت ده بمعنی فی بیا مثال نه جوړيږی نو ترکیب د قبیلی د لاخیر فی کثیر من نجواهم نه دی (۲) با زائده ده ای لاخیر خیر بعده نار یعنی هغه خیر خیر ندی چې دهغې نه وروسته اوروی،
(۸) په تاکید معنوی کې نحو قوله تعالی يَتَرَبَّصْنَ بِأَنْفُسِهِنَّ ثَلَاثَةَ قُرُوءٍ بانفسهن کې باء زائده ده او دا تاکید معنوی دی د ضمیر مرفوع د يتربصن لپاره ای يتربصن انفسهن
**سوال:** دا قاعده ده د نحو یانو چې تاکید د ضمیر مرفوع متصل په نفس او عین سره کولی شی،پس د تاکید د ضمیر مرفوع متصل نه په منفصل سره او دلته تاکید په ضمیر منفصل سره ندی شوی نو انفسهن سره یې تاکید ځنګه وشو،
**جواب:** دا قاعده صحیح ده خو پدی شرط سره چې په نفس او عین کې باء زائده نه وه راغلی او که راغلی وه نو بیا یې تاکید کولی شی بی د تاکیدنه په ضمیر مرفوع منفصل سره،
(۸) د قسم لپاره نحو بالله لافعلن کذا،(۹) دا ستعطاف لپاره نحوارحم بزيد ،
(۱۰) د تعدیت لپاره نحو بابی وامی یا رسول الله،(۱۱) للتجريد تجرید په دوه معانیو سره راځی،
(۱) استعمال د لفظ په بعض معنی کې او انسلاخ د بعض نه،
(۲) خروج د مشبه به دمشبه نه لپاره د مبالغې په مدح د مشبه کې چې دا مشبه په وجه د شبه کې داسې اندازې ته رسیدلې ده چې دا مشبه به د هغې نه منتزع کولی شی مثال د اول نحوقوله تعالی سُبْحَانَ الَّذِي أَسْرَىٰ بِعَبْدِهِ لَيْلًا مِنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ او مثال د ثانی نحو لئن سئلت فلانا تسئلن به البحر،
(۱۲) بمعنی من نحو قوله تعالی عَيْنًا يَشْرَبُ بِهَا عِبَادُ اللَّهِ ای منها ،(۱۳) بمعنی عن نحو قوله تعالی سَأَلَ سَائِلٌ بِعَذَابٍ وَاقِعٍ ای عن عذاب واقع (قاعده) با چې صله د سوال راشی نو په معنی د عن وی،
(۱۴) للاستعلاء نحوقوله تعالی مَنْ إِنْ تَأْمَنْهُ بِقِنْطَارٍ يُؤَدِّهِ إِلَيْكَ ای علی قنطار،
(۱۵) بمعنی الی نحو اعوذبالله من الشيطن الرجيم ای الی الله شعر،

ذهبتم ولذتم بالامير وقلتم تركنا احاديثا ولحما موضعا اي ولذتم الى الامير.

(١٢) بمعنى اللام نحو قوله تعالى وَإِذْ فَرَقْنَا بِكُمُ الْبَحْرَ، (١٧) للتبرك نحو بسم الله الرحمن الرحيم.

(١٨) للتبعيض نحو وَامْسَحُوا بِرُءُوسِكُمْ

(١٩) للتصوير او ديته با بيانيه هم وائي خكه دا راځي د بيان لپاره

**واللام: ربط:** هر كله چې فارغ شو مصنف د بيان د معاني د باء نه نو شروع يې وكړه په بيان د معاني د لام كې لام اولا په استعمال د كلام د عربو كې دولس قسمه دي، كمامر يو پكې لام جاره دي كما هو المراد ههنا او لام جاره بيا په (٢٨) معانيو سره راغلي دي،

(١) **للاختصاص** يو راځي د اختصاص لپاره او اختصاص دلته په معنى د ارتباط او تعلق سره دي نه په معنى د مناطقه ؤ سره چې ما يو جد فيه ولا يو جد في غيره ته وائي نو د لام الاختصاص دا معنى چې دا لام دلالت كوي په ارتباط او تعلق د غير باندې د مدخول د لام سره دا ارتباط عام دي كه په طريقه د استحقاق سره وي نحو الجل للفرس، الباب للبيت، المنبر للخطيب، او كه په طريقه د ملكيت سره وي نحو قوله تعالى لَهُ مَا فِي السَّمَوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ،المال لزيد يا په طريقه د اختصاص منطقي سره وي نحو الحمد لله، (۴) يا په طريقه د نسبت سره وي نحوالابن لزيد،

(٢) **والتعليل:** دويم لام راځي د تعليل لپاره پدې شان سره چې دا لام دلالت كوي چې مدخول ددۀ علت دي د ما قبل لپاره او علت عام دي چې په ذهن كې وي نحو ضربت زيد اللتأديب ديته علت غائي وائي، يا په خارج كې وي نحو خرجت لمخافتك ديته علت خارجي وائي،

(٣) **وبمعنى عن:** دريم لام راځي په معنى د عن سره پدې شرط سره چې معى وي د قول سره كمافي قوله تعالى قَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لِلَّذِينَ آمَنُوا أَنُطْعِمُ مَن لَّوْ يَشَاءُ اللَّهُ أَطْعَمَهُ، اي عن الذين امنوا دلته لام بمعنى عن دي خكه كافرو دا وينا د مومنانو په حق كې كوله په حالت د غائب والي د مومنانو كې خكه دومره جرأت په هغوى كې نه وو چې د مسلمانانو په مخ كې يې دا خبره كړې وي،

(۴) **وزائدة:** او كله زائد راځي پدې شان سره چې په حذف ددې سره نقصان نه راځي په اصل معنى د كلام كې نحو قوله تعالى ردف لكم اي ردفكم دا لام زائد دي خكه ردف متعدي بنفسه دي،

(۵) **وبمعنى الواو:** او دا راځي په معنى د واو سره داسې واو چې كائن دي په قسم كې يعنى دا راځي بمعنى واو قسميه (**للتعجب**) د وجې د تعجب نه كله چې وي دا جواب د قسم امر عظيم نحو لله لا يؤخر الاجل فلا يقال لله لقد طار الذباب خكه دا جواب د قسم امر عظيمه نه دي،

(٦) **وللنفع:** نحو قوله تعالى خَلَقَ لَكُم مَّا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا . لَهَا مَا كَسَبَتْ وَعَلَيْهَا مَا اكْتَسَبَتْ دا لام للانتفاع دي او على للاضرار دي، (٧) وللتعدية: نحو قوله تعالى فَهَبْ لِي مِن لَّدُنكَ وَلِيًّا ،

(٨) للاستغاثة: نحو يا لزيد انصر، (٩) للتهديد نحو يا لزيد لاقتلنك،

(١٠) بمعنى الى نحو قوله تعالى بِأَنَّ رَبَّكَ أَوْحَىٰ لَهَا اي اليها وقول الشاعر،

والفى قولها كذبا ومينا
وقددت الاديم لراهشيه

(١١) بمعني وقت نحو قوله عليه السلام المستحاضة تتوضاء لكل صلوة اى وقت كل صلوة
(١٢) بمعنى بعد نحو أَقِمِ الصَّلَوٰةَ لِدُلُوكِ الشَّمْسِ اى بعد دلوك الشمس،
(١٣) بمعنى عند نحو قوله تعالى وَمَنْ أَحْسَنُ مِنَ اللَّهِ حُكْمًا لِّقَوْمٍ يُوقِنُونَ اى عند قوم،
(١٤) بمعنى فى نحو قوله تعالى وَنَضَعُ الْمَوَازِينَ الْقِسْطَ لِيَوْمِ الْقِيَامَةِ اى فى يوم القيامة،
(١٥) بمعنى من نحو قوله تعالى مَتَاعٌ لِّلْمُتَّقِينَ اى من الاسلام والعمل الصالح،
(١٦) بمعنى على نحو قوله تعالى وَإِنْ أَسَأْتُمْ فَلَهَا اى فعليها،
(١٧) للجحود نحو قوله تعالى وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُعَذِّبَهُمْ
(١٨) للتعجب نحو يا للماء يا للدواهى، (١٩) بمعنى كى نحو اسلمت لادخل الجنة،
(٢٠) للتبليغ نحو قلت له، (٢١) للتمليك نحو وهبت لزيد،
(٢٢) لتقوية العمل نحو فَعَّالٌ لِّمَا يُرِيدُ، إِن كُنتُمْ لِلرُّؤْيَا تَعْبُرُونَ،
(٢٣) بمعنى ان نحو وَمَا أُمِرُوا إِلَّا لِيَعْبُدُوا اللَّهَ اى ان يعبدالله.

**ورب: (ربط)** هر كله چې فارغ شو دبيان د معانيو د لام جاره نه نو شروع يې وكړه په بيان د معانى د رب جاره كې، په رب كې لابدى ده د معرفت د امور خمسه ؤ نه.
(١) لغات، (٢) ذات، (٣) معنى، (٤) احكام، (٥) خصوصيات د رب د باقى حروف جاره ؤنه نو په رب كې لغات دى لكه بيان كړى دى شارح عبدالرسول پدې نظم كې،

باى مفتوح مشدد يا مخفف هر يكى | باضم وبافتح راپس هر يكى زين چارها
هست بى تا يا بتا متحرك يا ساكنه | بعد ازين اثنا عشر ار بع ديگر بايد ترا
ضم را وبا مخفف است وباتشديد هم | هست ضم لام وفتحش نيز با اسكان با

**سوال:** رب اسمى دى كه حرفى دى **جواب:** پديكې دوه مذهبه دى، (١) جمهور، (٢) اخفش،
جمهور وائى چې دا يو حرف دى دحروف جاره ؤنه داخليږى په اسم او اسم لره جر وركوى لفظا يا تقدير ايا محلا او اخفش وائى چې دا اسم دى او مضاف دى، ما بعد مجرور مضاف اليه دى دليل د هغه دا دى چې دا مقابل د كم خبريه دى ښكه هغه د انشاء د تكثير لپاره راځي، او دا د انشاء د تقليل لپاره راځي، او هغه خو اسم دى نو دا هم اسم دى لهذا رب رجل عندى كې دوه تركيبه دى،
(١) اخفش وائى رب مضاف رجل مضاف اليه دا مبتدا ده او عندى ورله خبر دى، او جمهور وائى چې رب جار رجل موصوف عندى ورله صفت دى موصوف مع الصفة مجرور جار دا متعلق دى فعل مقدر پورې او مختار عند المصنف مذهب د جمهورو دى نو ښكه يې رب د حروف جاره ؤ نه وګرځوو،

**سوال:** معنی د رب څه ده؟ **جواب:** په معنی مستعمل فیه د رب کې مذاهب ثلاثه دی بعض وائی چې رب للتقلیل دی، یعنی دا د انشاء د تقلیل لپاره راځي دائما نه د انشاء د تکثیر لپاره یعنی دا دلالت کوی چې دا حکم ثابت دی بعض افرادو د مدخول زما لره نه اکثر لره،

(٢) او ابن درستویه وائی چې رب راځي د انشاء د تکثیر لپاره دائمانه د انشاء د تقلیل لپاره،

(٣) او جمهور وائی چې د انشاء د تکثیر لپاره راځي غالبا او د تقلیل لپاره راځي کله کله پدی شان سره چې دا رب واضع وضع کړی دی د انشاء د تقلیل لپاره او مستعملیږي په انشاء د تکثیر کې غالبا مجازا دیته عند الاصولین مجاز متعارف وائي او انشاء د تقلیل معنی موضوع له د رب ده او حقیقت مهجوره دی نو انشاء د تکثیر معنی مجازي د رب ده او مجاز متعارف دی او مجاز متعارف په شان د حقیقت دی په عدم اقتضاء د قرینه کې او حقیقت مهجوره په شان د مجاز دی په اقتضاء د قرینه کې لهذا رب چې په انشاء د تکثیر کې مستعملیږي نو قرینه نه غواړی او په انشاء د تقلیل کې قرینه غواړی نظیر ددې لکه قد شو چې دا داخل شی په مضارع باندې نو تقلیل فائده کوی غالبا او کله کله تکثیر فائده کوی نحو قوله تعالی قَدْ يَعْلَمُ اللَّهُ او مثال د رب للتکثیر نحو قول الشاعر،

ربما تكره النفوس من الامر له فرجة كحل العقال

وقوله تعالی رُبَمَا يَوَدُّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوْ كَانُوا مُسْلِمِينَ ، او مثال د رب چې راغلی وی د انشاء د تقلیل لپاره کما فی قول الشاعر؛

الا رب مولود ولیس له اب وذی ولد لم یلده له اب

او احکام د رب مصنف په خپله بیانوی (**ولها صدر الكلام**) د رب لپاره ثابت دي او لیت د کلام حملا علی کم الخبریة څکه کم د انشاء د تکثیر دپاره راځي او رب د انشاء د تقلیل لپاره راځی او د کم لپاره خو صدارت د کلام دی نو د رب لپاره هم صدارت د کلام دی دپاره ددې چې دلالت وکړی په نو عیت د کلام باندې دا ول وهلت نه، (**مختصة**) او د خول د رب مختص دی په نکره پورې یعنی دا په نکره داخلیږی نه په معرفه باندې، (١) څکه مقصود د رب حاصلیږی په نکری سره معرفی ته حاجت نشته څکه تعریف امر زائد دی، (٢) رب راځي د انشاء د تقلیل او د تکثیر لپاره او تقلیل او تکثیر په نکره کې راځی نه په معرفه کې، (٣) په رب کې ابهام دی په شان د کم باندې او وروسته موصوف ورله په منزله د تمییز باندې دی او تمییز نه وی، مګر نکره وی (**موصوفة**) داسې نګرد چې موصوفه به وی لپاره د اظهار او تحقیق د معنی د رب چې هغه تقلیل دی څکه نکره موصوفه تقلیل فائده کوی نحو قوله تعالی ولعبد مومن خیر من مشرك او دا عامه ده، که موصوفه وی په مفرد سره نحو رب رجل کریم لقیته، (٢) که موصوفه وی په ظرف سره نحو رب رجل امامك لقیته،

(٣) یا په جار مجرور سره نحو رب رجل فی الدار لقیته،

(٤) یا موصوف وی بالجملة الفعلية كما في قول الشاعر،

ربما تكره النفوس من الامر له فرجة كحل العقال

وقولك رب من جاءك قد اكرمته

**على الاصح**: اشتراط د كون د (٥) يا موصوف وی په جملی اسمي سره نحو رب رجل عالم ابوه لقيته. هغه مذهب د ابوعلی او مبرد او ابن سراج دی، او رب موصوف بنا دی په مذهب اصح باندې چې هغه مختار عند المصنف مذهب د ابوعلی دی، بعض نحويانو ويلی دی چې دا واجب ندی او مختار عند المصنف مذهب د ابوعلی دی، **(وفعلها ماض محذوف غالبا)**: او عامل د رب ماضی ده ماضی عامه ده چې لفظا وی او که تقديرا وی ځکه رب وضع کړې شوی دی، لپاره د تقليل محقق او دا نه متصور کيږي، مگر په ماضی کې مثال د ماضی لفظا نحو رب رجل کريم لقيته او مثال د ماضی معنی نحو رب رجل کريم لم افارقه. **(محذوف)**: محذوف به وی دغه فعل ماضی. **(غالبا)**: په غالب استعمال کې په کلام د عربو کې د وجی د وجود دقرائن نه نحو رب رجل کريم په جواب د سوال د هغه چا کې چې يو سړی تا ته وائی چې ما لقيت رجلا نو ته اوائی چې رب رجل الخ په حذف د عامل سره د وجی د قرينې دالی نه په تعين د محذوف باندې چې هغه سوال د سائل دی ځکه مذکور فی السوال کالمعاد فی الجواب وی، (محذوف) مرفوع دی ځکه صفت دی د ماض لپاره او ماض مرفوع بالضمه تقديرا دی بنا بر خبريت او **(غالبا)** منصوب دی بنابر مفعول مطلق ای حذفاً غالباً يا مفعول فيه دی ای زمانا غالبا، **(وقد تدخل)**: او کله کله داخليږی رب په ضمير باندې داسې ضمير چې مبهم دی د وجی د عدم وجود د مرجع نه مميز چې بيان کړی شوی دی ځکه مبهم بيان غواړی، **(بنكرة منصوبة)**: په نکرې سره ځکه په تميز کې نکارت شرط دی داسې نکره چې منصوبه وی ځکه تمييز د منصوباتونه دی، **(والضمير مفرد مذكر)**: او دا ضمير مبهم چې مدخول د رب دی دا به مفرد مذکر وی اګر که تميز ددې مؤنث وی او اګر که تميز ددې تثنيه او جمع وی عند البصريين،

(١) ځکه ضمير مطابق وی د مرجع خپل سره او ددې لپاره مرجع نشته،

(٢) او بل دا چې تقليل او تکثير راځي په عدم مطابقت سره او مطابقت سره تعيين راځي نو وائی به ته ربه رجلا ربه رجلين ربه رجالا ربه امراة ربه امراتين ربه نساء،

**(خلافا للكوفيين)**: خلاف کړی شوی دی د بصريانو نه په مخالفت کولو سره داسې مخالفت چې منسوب دی کوفيانو ته په مطابقت د ضمير د رب کې په افراد، تثنيت. جمعيت، تذکير او تانيث کې پدی شان سره چې کوفيان وائی چې دا ضمير د رب به مطابق وی، د تمييز سره ځکه حقيقت کې مرجع ددې ضمير وروسته دغه تمييز دی معناً او مطابقت بين المرجع والضمير ضروری دی، او دويم دا چې حال د مرجع معلوم شی، نو کوفيان داسې وائی ربه رجلا ربهما رجلين ربهم رجالا ربها امراة ربهما امراتين ربهن نساء **(وتلحقها ما)** او متصل کيږی په اخير د کلمه د رب پورې کلمه د ما چې هغه منع کوی رب لره دعمل کولو نه،

**(فتدخل على الجمل)**: پس داخليږی دا کلمه د رب پس دلحوق د ما کافه په جمله فعليه ما ضويه باندې او جمله فعليه ماضويه عامه ده چې لفظاوی او که معناً وی مثال د لفظاكقول الشاعر

ربما اوفيت فی علم　　يرفعن بی شمالات

او مثال د معناً نحو قوله تعالى ربما يود الذين كفروا. ځکه د رب دخول ممتنع وو په جمله باندې د وجې د عمل نه بلکه داخليدو په اسم باندې او کله چې ما کافه متصل شو پدې پورې نو دا يې د عمل نه منع کړو نو داخليږي په جمله فعليه ماضويه باندې نه په جمله اسميه باندې او نه په جمله فعليه مضارعيه باندې،

**سوال:** دا قاعده ستا منقوضه شوه په ربما يود الذين كفروا. دلته په جمله فعليه مضارعيه باندې داخل شوی دی؟ **جواب:** دا رب مكفوفه عن العمل داخليږي په ماضويه باندې غالبا او په جمله مضارعيه باندې داخليږي په طريقه د قلت سره،

(٢) يا داخليږي په فعل ماضي باندې ماضي عامه ده که لفظا وي او که معناً وي او دلته معناً ده ځکه مضارع بمعنى الماضي ده د وجې د تنزيل د مضارع نه منزلة الماضي لصدوره عمن لاخلاف في اخباره،او کله کله ما زائده راځي وروسته د رب نه او بيا هم دا رب داخليږي په اسم باندې او اسم لره جرور کوی کما في قول الشاعر.

ربما ضربة بسيف صيقل بين بصرى وطعنة نجلاءُ

طعنة عطف دی په ضربة باندې نجلاء ای الواسع، ای رب ضربة ضربتها بسيف مجلو ورب طعنة نجلاء طعنتها بالروح في اماكن بصرى وو **اوها تدخل على نكرة موصوفة** او واو د رب چې دا په حکم د رب کې دی داخليږي په نکره باندې داسې نکره چې موصوفه وی په يو صفت سره كقول الشاعر

وبلدة ليس لها انيس الا اليعا فيروالا العين اى رب بلدة،

**سوال:** واو ها مثلها يې ولې ونه ويل با وجود ددې نه چې فرض منصبی د مصنف اختصار بما هو اختصار دی، **جواب:** واو ها مثلها يې ونه ويل ځکه په هغې کې دوه نقصانه لازم کيدل (١) يو دا چې رب په ضمير باندې داخليږي، (٢) او دويم دا چې ما کافه وروسته د رب نه راځي نو که واو ها مثلها يې ويلی وی نو متوهم به تو هم کولو چې واو به هم په ضمير داخليږي او ما کافه به وروسته ددې نه راځي او دا باطله ده،پس زده کړه دا خبره چې پدی واو د رب کې دوه مذهبه دی (١) يو مذهب د سيبويه دی،او (٢) بل مذهب د کوفيانو دی سيبويه وائی چې دا واو جاره ندی بلکه عاطفه دی او ددې واو نه وروسته دا اسم مجرور دی په تقدير د رب سره اوس دغه واو به خالی نوی يا به راغلی وی په وسط د کلام کې يا په اول د کلام کې که په وسط کې راغلی وو، خو ظاهره ده او که په اول کې راغلی وو نو معطوف عليه به ورله مقدر را اوباسي، او کوفيان وائی چې دا په اصل کې واو عاطفه وو خو بيا ګرځيدلی دی قائم مقام د رب اوس د اجر ور کوی، مدخول لره بنفسها ځکه دا بمعنی رب دی او مختار عند المصنف مذهب د کوفيانو دی نو ذکر يې کړو دا د حروف جاره ؤنه ځکه په مذهب د سيبويه کې دوه نقصانه دي،

(١) تقدير د معطوف عليه هر ځای کې خلاف الاصل دی،

(٢) تقدير د رب دائما خلاف الاصل دی او په نزد بعض نحويانو باندې مذهب د سيبويه غوره دی لکه ابن مالك نو هغه اسم ته مجرور وائی په تقدير د رب سره وروسته د واو نه

کمزوری دی.
سوال: په نزد نورو نحویانو باندې. مذهب د کوفیانو ولې کمزوری دی.
جواب: حکه دا اسم لکه څنګه چې مجرور راځي وروسته د واو نه نو دارنګې مجرور راځي وروسته د فاء او بل نه هم نو بیا لازمیږي چې فاء او بل ته هم حروف جاره اوایو او دا خو د حروف جاره ځنه ندي لهذا واو هم د حروف جاره ځنه ندی.
جواب: د طرفه د کوفیانو نه دا دی چې تقدیر د رب وروسته د واو نه کثیر شائع او متعارف دی نو دا تقاضه کوی د حصول د تخفیف نو تخفیف مو ورله ورکړیدی سره چې دا واو مو جاره وګرځوو نو تقدیر د رب او تقدیر د معطوف علیه رانغی. نو د تکلف نه بچ پاتې شو. او تقدیر د ب وروسته د بل او فا نه قلیل دی او قلت تقاضه د تخفیف نه کوی، لهذا دا مو د حروف جاره ځنه ونه ګرځول بلکه اسم مجرور وی په تقدیر د رب سره مثال د واو چې راغلی وی بمعنی رب کما فی قول الشاعر

الا اليعافيروالا العيس
وبلدة ليس بها انليس

وکمافی قول الشاعر
علي بانواع الهموم ليبتلی
وليل كموج البحر ارخی سدوله

مثال د تقدیر د رب وروسته د فاء نه کمافی قول امرا القیس
فالهيتها عن ذی تمائم محول
فمثلك حبلی قد طرقت ومرضع

## (خصوصیات رب من اخواتها)

(۱) رب داخلیږی په نکره نه په معرفه، (۲) داخلیږی په نکره موصوفه باندې نه په غیر موصوفه،
(۳) رب داخلیږی په ضمیر مبهم ممیز بنکره منصوبه، (۴) لها صدر الكلام،
(۵) اعمالها محذوفة بعد الفاء والواو وبل، (۲) زیادت د ما تکفها عن العمل غالبا،

**و واوالقسم): ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د احکام مختصه د رب نه نو شروع یې وکړه په بیان د احکام خاصه د حروف جاره قسمیه کې،

**(ترکیب)** (واو) عاطفه (**واو القسم**) مضاف الیه مبتدا (**انما**) حرف حصر دی **تکون** فعل دی د افعال ناقصه ؤ نه اسم مرفوع خبر منصوب غواړی ضمیر پکې مستتر دی هغه ورله اسم (چه راجع دی واو القسم ته) او **عند حذف الفعل** خبر اول دی **لغير السوال** یې خبر ثانی دی. او مختصة بالظاهر ورله خبر ثالث دی بیا دا جمله خبر د مبتدا دی چې واو القسم دی،
(۲) یا واو القسم مبتدا ده او انما تکون ورله خبر اول دی او مختصة بالظاهر ورله خبرثانی دی، نو دا مختصة مرفوع لوستل هم جائز دی او منصوب لوستل هم جائز دی،

**ترجمه:** واو القسم یعنی واو د حروف جاره ځنه چې راځي د قسم لپاره پدی شان سره چې ګرځوی مدخول خپل مقسم به لپاره د غیر او مجیئت د واو د قسم لپاره مشروط دی په شروط ثلاثه ؤ سره،
(۱) **انما تكون عند حذف الفعل** دا کیږی په وقت د حذف د فعل قسم کې الفعل کې الف لام عهدی دی مراد فعل قسم دی فلا یقال اقسمت بالله حلفت بالله ځکه دا واو مشهور دی په قسم کې دلالت کوی په قسم باندې بی د ذکر کولو د فعل قسم نه نو ذکر د هغې ته حاجت پاتې نه شو،

(۲) لپاره د انحطاط د فرع د اصل نه ځکه اصل په قسم کې باء ده او هغه راځي د قسم لپاره په وقت د ذکر د فعل او حذف د فعل دواړو کې او دا راځي فقط په صورت د حذف د فعل کې.
(۳) واو کثير الاستعمال دی په قسم کې تقاضا د خفت کوی نو خفت ورته ورکړی شو په حذف د فعل قسم سره، لان واو القسم عوض عن الفعل القسم المحذوف ولا يجوز الجمع بين العوض والمعوض عنه بخلاف الباء (فافهم)
(۲) **لغير السوال** يعنی دا واو قسميه نه مستعمليږي په سوال کې فلا يقال والله اخبرنی کما يقال بالله اخبرنی لپاره د انحطاط د فرع چې واو دی د اصل نه چې باء ده.
(۳) **مختصة بالظاهر** او دا واو مختص دی په اسم ظاهر پورې پدی شان سره چې مقسم به ددې واو قسميه اسم ظاهر راځي نه ضمير فلايقال وك لا فعلن بيا اسم ظاهر عام دی، که لفظ د الله وی که رحمن وی او که رب وغيره وی اوس دخول د واو په اسم ظاهر پورې ولې خاص شو نو لپاره د انحطاط د رتبه د فرع د اصل نه چې باء ده او بالظاهر کې باء داخله ده په مقصور عليه باندې ځکه دخول د واو مختص دی په اسم ظاهر پورې او مجاوز ندی ضمير ته او اسم ظاهر ندی مختص په واو قسميه پورې ځکه اسم ظاهر لکه څنګه چې مدخول د واو واقع کيږی دارنګې مدخول د نورو حروف قسميه هم واقع کيږی. **والتاء** او تاء قسميه په التاء کې الف لام عهدی دی مراد تا قسميه ده يا الف لام عوضی دی اصل کې تاء القسم وو، **مثلها** په شان د واو قسميه ده په دوه خبرو کې چې هغه عند حذف الفعل او لغير السوال دی. يعنی لکه څنګه چې واو راځي د قسم لپاره عند حذف الفعل نو تا هم د قسم لپاره راځي عند حذف الفعل فلايقال اقسم تالله يا حلفت تالله،
(۲) دا راځي د قسم لپاره لغير السوال فلا يقال تالله اخبرنی لپاره د انحطاط دفرع چې تا ده د اصل نه چې با ده او د تا قسميه او واو قسميه فرق دا دی چې **مختصه بالله تعالیٰ** دا تا مختص ده په اسم ظاهر پورې چې هغه لفظ د الله دی اضافت د اسم الله ته اضافت بيانی دی پدې شان سره چې مقسم به د تا قسميه لپاره اسم ظاهر راځي نه ضمير فلايقال تك لافعلن كذا،
(۲) او بيا مقسم به ددې اسم ظاهر لفظ د الله راځي نه بل اسم فلا يقال تالرحمن واما ترب الكعبة فشاذ، خصائص لفظ الله که منادی واقع شي د هغې دپاره احکام مختصه اربعه دی کما مر
(۵) دخول تاء القسم عليه (۲) الابدال نحوها الله (۷) يجوز حذف حرف القسم في اسم الله من غير عوض ولا يجوز ذلك في غيره فافهم **والباء** او با قسميه الباء کې الف لام عهدی خارجی دی يا الف لام عوضی دی مراد با قسميه ده، **اعم منها** دا عامه ده د تاء قسميه او واو قسميه نه په اعتبار د تحقيق او استعمال سره نه په اعتبار د صدق او حمل سره، **فی الجميع** په جميع ما ذکر کې چې هغه حذف د فعل دی او کون د واو او تا لغير السوال دی قطع نظر د تخصيص نه پدې شان سره چې باء د قسم لپاره راځي برابره خبره ده، چه فعل قسم محذوف وی نحو بالله لافعلن كذا او که مذکور دی نحو قوله تعالیٰ لااقسم برب المشارق والمغارب او دارنګې دا باء راځي د قسم لپاره چې جواب قسم

او دا باء قسم لپاره راخي که په اسم ... لکه بالله اخبرني او
ددې خبر وي نحو بالله لافعلن كذا يا اشد رتي لافعلن كذا او په مطلق اسم ظاهر
ظاهر داخله شي نحو بالله لافعلن كذا يا په ضمير داخله شي نحويك لافعلن كذا او که غير وي خکه با اصل ده په قسم کې خکه
باندې داخليږي خواکه لفظ د الله وي که رحمن وي او دال په الصاق باندې باء
مقصود په قسم کې الصاق د مضمون د جواب قسم دی د مقسم به سره او ضمير لپاره د دې چې
ده او واو بدل د با نه راغلی دی نو مقسم به د ده فقط اسم ظاهر راخي نه ضمير لپاره د دې چې
انحطاط د فرع راشي د اصل خپل نه او تا بدل د واو نه راغلی دی او د دې مقسم به فقط لفظ د الله
راخي نه بل اسم ظاهر دپاره انحطاط دفرع د اصل خپل نه
سوال: واو اکثر دی استعمالاً د با نه په قسم کې نو تاسو قليل الاستعمال څنګه اصل ګرځوې؟
جواب: قد يكثر الفرع ويقل الاصل نحو نعم الرجل اکثر من نعم الرجل
سوال: ته وائي چې با ، عامه ده د واو او د تا نه نو د عام او د خاص علامه خو دا ده چې د خاص نه
مبتدا جوړه کړی او د عام نه خبر جوړ کړی نو حمل صحيح کيږي لکه الانسان حيوان شو او دلته خو
چې د واو نه يا د تا نه مبتدا جوړه کړی او د باء نه خبر جوړ کړی نو حمل نه دی صحيح
جواب: عموم خصوص په اعتبار د تحقيق او استعمال سره مراد دی نه په اعتبار د صدق او حمل سره.
سوال: ته وائي چې باء عامه ده د واو او تا نه په جميع ما ذکر کې نو د ما ذکر نه خو دا هم ده چې
مختصة بالظاهر نو معنی دا شوه چې دا هم مختص ده په اسم ظاهر پورې او هم نده مختص په اسم
ظاهر پورې او دا معنی خو نه ده صحيح؟
جواب: زه وايم چې دا د هغې نه عامه ده في الجميع، خو قطع نظر د اختصاص نه **ويتلقى القسم**: او
جواب کولی شی د هغه قسم چې لغيرالسوال دی **باللام وان وحرف النفى** په لام ابتدائيه تاکيديه په ان
مکسورة الهمزه او په حرف نفی سره چې ما او لا دی لپاره د تاکيد د قسم په لام ابتدائيه سره جواب
کولی شی په جمله اسميه مثبته کې نحو والله لزيد قائم او دارنګې په جمله فعليه کې نحو تالله
لاکيدن اصنامکم او ان سره تاکيد کولی شي په جمله اسميه کې نحو قوله تعالی إِنَّ سَعْيَكُمْ لَشَتَّىٰ في جواب
وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشَىٰ او حرف نفی سره جواب کولی شي په جمله فعليه کې نحو قوله تعالی وَالضُّحَىٰ ﴿١﴾ وَاللَّيْلِ إِذَا سَجَىٰ
﴿٢﴾ مَا وَدَّعَكَ رَبُّكَ وَمَا قَلَىٰ او که جواب دقسم جمله انشائيه راغلی وه نو بيا جواب په لام ان او حرف نفی سره
نه شی کولی خکه دا داخليږي په خبريه باندې نه په انشائيه باندې،
سوال: دا قاعده ستا منقوضه شوه پدې قول د الله باندې چې قَالُوا تَاللَّهِ تَفْتَؤُا تَذْكُرُ يُوسُفَ دلته جمله
فعليه جواب قسم واقع شوې دی او لام ان حرف نفی پکې نشته؟ **جواب**: حرف نفی عام دی چې لفظاً وی
او که تقدير وی دلته تقديراً دی اصل کې لاتفتؤ وو، پس زده کړه دا خبره چې د قسم دپاره لابدی ده د
جواب نه او جواب قسم جمله راخي نه مفرد نو دا جمله به خالي نه وي يا به خبريه وي يا به انشائيه وي
که خبريه وه نو بيا به خالي نه وي يا به فعليه وی او يا به اسميه وی که اسميه وه نو بيا به خالی نه وي يا
به مثبته وی او يا به منفيه وی، که مثبته وه نو دا مصدر کولی شی په ان سره يا په لام ابتدائيه تاکيديه
سره نحو والله ان زيد قائما او که جواب ددې جمله فعليه وه نو بيا به خالی نوی يا به جمله فعليه

ماضویه وی او یا به جمله فعلیه مضارعیه وی که ماضویه وه نو دا مصدر کولی شی په لام او قد دواړو سره نحو والله لقد قام زید او که فعلیه مضارعیه مثبته وه نو بیا مصدر کولی شی په لام ابتدائیه تاکیدیه سره، سره د نون نه نحو والله لافعلن کذا او که منفیه وه، نو بیا به خالی نړی یا به ماضویه وی او یا به مضارعیه وي که ماضویه وه نو مصدره کولی شي په ما سره نحو والله ما قام زید او که مضارعیه وه نو مصدره کولی شی په ما لااولن سره نحووالله ما افعلن کذا لاافعلن کذا لن افعل کذا.

**وقد یحذف جوابه** (ربط) دا جمله مستأنفه جواب د سوال دی

**سوال:** دا دی چې ته وائی د قسم لپاره لابدی ده د جواب قسم نه دا قاعده ستا منقوضه شوه په زید والله قائم سره او په زید قائم والله سره پدیکې قسم شته او جواب قسم نشته ځکه جواب راځی په لام ان او ما نافیه سره او دلته یوهم نشته نو مصنف جواب وکړو **وقد یحذف الخ** سره چې کله کله حذف کولی شی جواب قسم،

**اذا اعترض:** کله چې واقع شی دا قسم په مابین د اجزاؤ د هغه جمله کې چې دلالت کوی په جواب قسم باندې لکه زید والله قائم **او تقدمه** یا مخکې شی پدی قسم باندې **ما** هغه کلام،

**یدل علیه چه هغه** دلالت کوی په جواب قسم باندې نحو زید قائم والله،

**سوال:** قسم چې واقع شی په مابین د اجزاؤ د جمله کې یا مخکې شی د دی نه هغه کلام چې دلالت کوی په جواب قسم باندې نو حذف ددې ولې جائز دی؟ **جواب: لاستغنائه عن الجواب** پدی دواړو صورتونو کې د وجی د وجود د هغه کلام نه چې دلالت کوی په جواب قسم باندې،

**سوال:** دی مذکور کلام ته جواب قسم ولې نه وائی چې مقدریې منی،

**جواب:** دی مذکور ته جواب قسم نه شو وئلی ځکه چې تقدیم د جواب قسم کلاً یا بعضاً په قسم باندې ممتنع دی ځکه قسم تقاضه د صدارت د کلام کوی او جواب قسم چې مقدم شی نو لازمیږی فوت د صدارت د ماله صدر الکلام او دا باطل دی، **وعن للمجاوزة ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د معانی د حروف جاره قسمیه ؤ نه نو شروع یې وکړه په بیان د معانی د عن کې نو وي ویل وعن للمجاوزة الخ

**ترجمه:** عن د حروف جاره ؤنه راځی د مجاوزت او تعدیت د شئ د شی اخرته،

**تشریح:** عن اولا دوه قسمه دی (۱) جاره، (۲) غیر جاره، او غیرجاره بیا دوه قسمه دی،

(۱) فعلی چې هغه مشدد راځي عن په وزن د مد باندې بمعنی ظهر

(۲) او دویم عن ناصبه مصدریه نحو اعجبني عن تفعل ای ان تفعل عند بنی تمیم او دیته عنعنه تمیمیه وائی، او عن جاره په استعمال د کلام د عربو کې په لسو معانیو سره راځی،

(۱) **للمجاوزة** یو راځی د مجاوزت لپاره پدی شان سره چې دا عن دلالت کوی، چه غیر تجاوز کړی دی د مدخول زمانه او صورتونه د مجاوزت او تعدیت دری دی،

(۱) چه زوال د شئ اول راغلی دی د شئ ثانی نه سره د اصول د شئ اول نه شئ ثالث ته نحو رمیت السهم عن القوس الی العید، (۲) تجاوز د شئ اول راغلی دی د ثانی نه سره د اصول د شئ اول نه شئ

ثالث ته بي د زوال د شئ اول نه نحو اخذت عنه العلم، (۳) يا زوال د شئ اول راغلی دی د ثانی نه بي د اصول نه ثالث ته نحو اديت عنه الدين (۲): **للبدل** نحو قوله تعالى لَا تَجْزِي نَفْسٌ عَنْ نَفْسٍ شَيْئًا.

(۳) **للاستعلاء** نحو فَإِنَّمَا يَبْخَلُ عَنْ نَفْسِهِ. ای علی نفسه، (٤) **للاستعانة**: نحو رميت السهم عن القوس ای بالقوس عند ابن مالك، وقوله تعالى وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوَىٰ ای وما ينطق لهذا القران بهوی نفسه.

(۵) **للتعليل** نحو قوله تعالى وَمَا نَحْنُ بِتَارِكِي آلِهَتِنَا عَنْ قَوْلِكَ وقوله تعالى وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوَىٰ وقوله تعالى فَأَزَلَّهُمَا الشَّيْطَانُ عَنْهَا ای لاجل الشجرة،

(۶) بمعنى بعد نحو قوله تعالى لَتَرْكَبُنَّ طَبَقًا عَنْ طَبَقٍ ای بعد طبق وقوله تعالى قَالَ عَمَّا قَلِيلٍ لَيُصْبِحُنَّ نَادِمِينَ ای بعد ما قليل، (۷) بمعنى من نحو قوله تعالى هُوَ يَقْبَلُ التَّوْبَةَ عَنْ عِبَادِهِ. ای من عباده،

(۸) بمعنى الجانب كقول الشاعر،

ولقد اراني للرماح دريئة    من عن يميني تارة وامامی ای من جانب يميني

(۹) للزيادة نحو قول الشاعر **فهلا التی عن بين جنبك تدفع** كان في الاصل فهلا تدفع عن التی بين جنبك، نو عن د اول موصول نه حذف شو بيا وروسته زياتي كړی شو (۱۰) **للظرفية** نحو جلست عن المسجد ای فی المسجد **وعلى للاستعلاء** (ربط) هر كله چي فارغ شو د بيان د معنی د عن نه نو شروع يې وكړه په بيان د معانی د علی كې او علی يې ذكر كړو وروسته د عن نه د وجی د اشتراك ددي دواړونه په اسميت كې د وجی د دخول د من نه پدی باندې نو وي ويل وعلى للاستعلاء،

**ترجمه** علی د حروف جاره ؤنه راځي د استعلاء لپاره،

**تشريح** زده كړه دا خبره چي علی اولا په دري قسمه دی (۱) فعلی من علا يعلو علوا دا ليكلی كيږي په صورة د الف باندې مثال د علی فعلی نحو قال الله جل وعلا شانه كقول الشاعر

لو علا ما علا علي    علی ما علا لانهدم

دلته علا اول او ثانی او خامس فعلی دی او ثالث او رابع حرفی دی.

(۲) دويم قسم علی اسمی دی چي هغه راځي په معنی د فوق سره او د هغې علامه دا ده چي په هغې باندې په حرف جر داخل شو يوی نحو زيد سقط من علی الجدار ای من فوق الجدار.

(۳) او دريم قسم علی حرفی دی دا داخليږی په اسم باندې اسم لره جر وركوی، او علی حرفی راغلی دی په استعمال د كلام د عربو كې په څوارلسو معانيو سره،

**للاستعلاء**: يو علی راځي د استعلاء لپاره پدی شان سره چي دا علی كرځوی غير لره عالی په خپل مدخول باندې په استعلاء حقيقی سره لكه زيد علی السطح يا په استعلاء حكمی سره نحو عليه دين (۲) بمعنى الباء: نحو مررت عليه ای به (۳) للمصاحبة نحو قوله تعالى وَآتَى الْمَالَ عَلَىٰ حُبِّهِ. ای مع حبه (۴) بمعنى فی نحو قوله تعالى وَإِنْ كُنْتُمْ عَلَىٰ سَفَرٍ ای فی سفر (۵) للتعليل نحو قوله تعالى لِتُكَبِّرُوا اللَّهَ عَلَىٰ مَا هَدَاكُمْ ای لاجل هدايتكم (۲) بمعنى عن نحو اذا رضيت علی بنو قشير ای عنی،

(٧) بمعنى من نحو قوله تعالى إِذَا اكْتَالُوا عَلَى النَّاسِ اى من الناس، (٨) للاستدراك نحو فلان منكوب على انه لاييئس من رحمة الله، اى لكن (٩) للضرر نحو قوله تعالى لَهَا مَا كَسَبَتْ وَعَلَيْهَا مَا اكْتَسَبَتْ لها كي لام للانتفاع دى او عليها كي على للاضرار دى، (١٠) بمعنى عند نحو قوله تعالى وَلَا تَقُمْ عَلَىٰ قَبْرِهِ اى عند قبره، (١١) للمقابلة نحو قوله تعالى لَا تَتَّخِذُوا آبَاءَكُمْ وَإِخْوَانَكُمْ أَوْلِيَاءَ إِنِ اسْتَحَبُّوا الْكُفْرَ عَلَى الْإِيمَانِ اى بمقابلة الايمان، (١٢) بمعنى الى نحو قوله تعالى وَكَانَ الْكَافِرُ عَلَىٰ رَبِّهِ ظَهِيرًا اى الى ربه ظهيرا.

(١٣) للعوض نحو بعتك هذا على الف، (١٤) بمعنى شرط نحو قوله تعالى عَلَىٰ أَن لَّا يُشْرِكْنَ بِاللَّهِ

**وقد يكونان اسمين** او كله كله كيږى عن او على په استعمال د كلام د عربو كي اسمين بدخول من كله چي داخل شى من جاره پدى باندي دامن چي داخل شى په على باندي نو دا على اسمى وى په معنى د فوق سره نحو زيد سقط من على الجدار اى من فوق الجدار او كه داخل شى په عن باندي نو دا عن اسمى دى بمعنى جانب نحو من عن يمينى اى من جانب يمينى دارنگي عن اسمى راخي كله چي داخل شى على حرفى پده باندي نحو مررت على عن يمينه اى على جانب يمينه.

**والكاف للتشبيه**: (ربط) هر كله چي فارغ شو مصنف د بيان د معنى د عن او د على نه نو شروع يي وكړه په بيان د معنى د كاف جاره كي او هر كله چي دا كاف جاره شريك وو د عن او د على سره په اسميت كي نو د دي مناسبت د وجي نه يي د عن او د على نه وروسته ذكر كړه

ترجمه: **والكاف** كاف جاره **للتشبيه** راخي د تشبيه لپاره پدى شان سره چي گرخوى مدخول خپل مشبه به او غير مشبه نحو زيد كالاسد **وزائدة** او دارنگي دا كاف زائد راخي نحو قوله تعالى لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ نو لازميږى فساد د معنى چي ثبوت د مثل د الله دى

**وقد تكون اسما** او كله كله راخي دا كاف جاره اسم بمعنى مثل.

**تشريح**: كاف اولا په دوه قسمه دى، (١) جاره، (٢) غير جاره او كاف غير جاره دوه قسمه دى، (١) ضميرى دا كله منصوب راخي نحو ... او كله مجرور وى نحو مررت بك او كله مرفوع وى نحو لولاك وعساك (عند الاخفش) (٢) حرفى خطابى دا متصل كيږى په اخير د اسم اشاره پورې نحو ذلك الكتاب او كله متصل كيږى په اخير د اسم فعل پورې نحو هاك حروف الجر، او كاف جاره په دولس معانيو سره راغلى دى په استعمال د كلام د عرب كي (١) للتشبيه نحو زيد كالاسد.

(٢) للزيادة او كاف زائده دوه قسمه دى، (١) زائده تاكيدى (٢) زائده غير تاكيدى مثال د اول نحو ليس كمثله شى او مثال د ثانى لكه كاف د كذا شو په قالوا كذا كي دلته دا كاف زائد دى، څكه مقصود دا دى چي مقوله د قول مشار اليه د ذا دى نه هغه شى چي په شان د مشار اليه باندي دى چي كاف تشبيهى شى او په ليس كمثله شى كي كاف زائد دى د تاكيد د نفى لپاره لان زيادت الحروف بمنزلة الاعادة الثانية پس شوه معنى ددي دارنگي چي نشته بالكل په مثل د الله هيڅ يو شى.

**سوال:** ظاهر کې پدی باندې اعتراض دئ چې مقصود پدی ایت کې نفی د مثل د الله ده او پدیکې ثبوت د مثل د الله راغی ځکه کاف بمعنی مثل دی نو ددې معنی دا شوه چې لیس مثل مثله شئ او دا معنی باطله ده، **جواب** (۱) دلته مثل بمعنی ذات دی ای لیس مثل ذاته شئ،
(۲) یا مثل بمعنی صفت دی ای لیس مثل صفته شئ، (۳) کاف په معنی د مثل سره مؤکد او دا مثل مؤکد دی فیکون المعنی لامثل مثله شئ یعنی نشته مثل او نشته مثل د الله یو شی ځکه کاف مؤکد د مثل لپاره واقع کیږی او مثل مؤکد د کاف لپاره واقع کیږی مثال د کاف چې موکد د مثل لپاره واقع شوی وی شعر،

ولعب طیربهم ابابیل فصیروا مثل کعصف ماکول

مثل مؤکد دی او دا کاف بمعنی مثل مؤکد دی دهغه لپاره فیکون المعنی فصیروا مثل مثل عصف ماکول دا مثل زائد دی کما فی قوله تعالی فَإِنْ ءَامَنُواْ بِمِثْلِ مَآ ءَامَنتُم بِهِۦ فَقَدِ ٱهْتَدَواْ او لَيْسَ كَمِثْلِهِۦ شَىْءٌ کې مثل زائد کړی دی لپاره ددې چې دخول د کاف رانه شی په ضمیر باندې لانه یختص بالظاهر،
**سوال:** فان امنو بمثل ما امنتم به کې دا مثل ولې زائد دی،
**جواب:** ځکه پدی ما کې دوه احتماله دی (۱) داموصول حرفی یعنی ما مصدریه دی،
(۲) یاموصول اسمی یعنی ماموصوله دی او دا دواړه ندی صحیح ځکه که مصدریه شی نو به ورسره نه لګی ځکه ما مصدریه عائد نه غواړی او که ماموصوله شی نو معنی نه صحیح کیږی، لازمیږی فساد د معنی ځکه مثلیت د کتاب الله لازمیږی او دقران مثل کتاب نشته ځکه د قران په صفتونو کې یو صفت راغلی دی عزیز او د عزیز یوه معنی بې مثل ده نو مونږه،
**جواب:** کوو (۱) چې دا ما مصدریه دی او باء زائده ده او به ضمیر ما ته ندی راجع بلکه الله ته راجع دی یا رسول ته راجع دی، یعنی که دوی ایمان راوړی په شان د ایمان ستاسو په الله یا په رسول باندې نو دوی به لاروموی ولکهنم لم یومنوا بالله مثل ایمانکم ولم یهتدوا،
**سوال:** مثل ایمانکم په ترکیب کې څه واقع شوی دی، **جواب:** دا مفعول مطلق دی د امنو دپاره،
**سوال:** مفعول مطلق خو مصدر د فعل مذکور ته وائی او دا خو مصدر د فعل مذکور ندی نو مفعول مطلق ورته څنګه وائی، **جواب:** هذا من قبیل خیر مقدم یعنی (۱) مفعول مطلق دی په اعتبار د موصوف محذوف سره ای فان امنوا ایمانا مثل ایمانکم (۲) په اعتبار د مضاف الیه سره،
(۳) یا جواب دا دی چې دا ماموصوله دی او دا مثل زائد دی او دلیل پدی باندې قرات د ابن عباس دی فان امنتم بما امنتم به او به ضمیر راجع دی ما ته نو معنی دا شوه که چری ایمان راوړی دوی په هغه کتاب چې تاسو ایمان راوړی دی فقد اهتدوا ولکنهم لم یومنوا بما آمنتم به ولم یهتدوا،
(۳) ما موصوله دی او مثل او باء زائده هم نده لیکن دا خبره الله کړیده علی سبیل الفرض والمحال یعنی الله د ایمان د اهل کتابو تعلیق بالمحال کړی دی په شان د حَتَّىٰ يَلِجَ ٱلْجَمَلُ فِى سَمِّ ٱلْخِيَاطِ نو معنی دا شوه چې که چری دوی ایمان راوړی وی په مثل د هغه کتاب چې تاسو پری ایمان راوړی فقداهتدوا او وجود د مثل د قران محال دی نو ایمان او هدایت ددوی هم محال دی، ځکه تعلیق بالمحال محال وی،

(۴) كاف په ليس كمثله كې زائد دى نه مثل لان القول بزيادت الحرف اولى من القول بزيادت الاسم (۲) كه مونږ مثل ته زائد ووايو نو حكم په زيادت قبل الحاجت راځي، (آب را نديدى موزه را كشيدى) (۳) او مثل زائد نه دى راغلى په كلام د عربو كې، (۵) دا خبره د نحويانو بناده په ظاهر باندې اما په حقيقت كې دا مثل هم زائد ندى او كاف هم زائد ندى بلكه بمعنى مثل دى او نفى د مثل د الله په طريقه د كنايه سره او كنايه ابلغ ده د صريح نه ځكه كنايه كې دعوى ده شئ بالبينه وى بخلاف الصريح،

**سوال:** كاف چې زائد نه شي نو نفى د مثل د الله په طريقه د كنايه سره څنګه راځي؟

**جواب:** د نفى د مثل د مثل د الله سره لازم ده نفى د مثل د الله او نفى د لازم مستلزم ده نفى د ملزوم لره والاوجود د ملزوم راځي بې د لازم نه او دا باطل دى،

**سوال:** نفى د مثل د مثل د الله جل جلاله ملزوم او نفى د مثل د الله ورسره لازم ولې ده؟

**جواب:** ځكه چې الله موجود دى قطعا او يقينا او نفى د موجود صحيح نه ده ځكه كذب لازميږي او هر كله چې د الله جل جلاله لپاره مثل موجود شي نو كيږي الله مثل د هغه ځكه مثليت د امور اضافيه ؤ نه دى، د جانبينو نه راځي نو هر كله چې نفى كړى شو دغه لازم چې لامثل مثل هذا المتحقق دى نو ددې سره لازم ده نفى د ملزوم چې نفى د مثل د الله تعالى دى، چې ته وائى چې د الله د مثل مثل نشته ددې معنى دا ده، چه الله نشته، (نعوذبالله) او دا باطل دى، (۳) **وقد تكون اسما:** او كله كله كاف اسمى راځي په معنى د مثل سره او په كاف اسمى كې دوه مذهبه دى، (۱) يو مذهب د محققينو او سيبويه دى دويم مذهب د اخفش او ابو علي دى سيبويه او محققين وائى چې كاف اسمى نه راځى مګر د وجى د ضرورت شعرى نه فقط او اخفش او ابو على فارسى وائى چې كاف اسمى په سعة د كلام كې هم راځي لهذا په زيد كالاسد كې اخفش او ابوعلى فارسى جائز كړى دى چې دا كاف بمعنى مثل مضاف دى او اسد مضاف اليه دى مضاف سره د مضاف اليه نه خبر د مبتدا دى چې زيد دى بيا دا كاف اسمى كله مجرور راځي كقول الشاعر،

بيض ثلاث كنعاج جُم　　　يضحكن عن كالبرد المنهم

**ترجمه:** درى سپينى ښځى دى په شان د ځنګلى غواګانو چې هغه ښكرنه لرى اودا خاندى په هغه غاښونو سره چې په شان د ږلى ويلى كړى شوى دى، په پړقاء كې او كالبرد كې دا كاف اسمى دى بمعنى مثل په دليل د دخول د عن جاره سره پده باندې او دلته دا كاف مجرور محلاً راغلى دى د وجى د دخول د عن نه او كله دا كاف اسمى مرفوع راځي بنابر فاعليت، كالطعن كې دا كاف اسمى دى بمعنى مثل مرفوع محلا دى بنابر فاعليت فاعل واقع شوى دى د لن ينهى لپاره،

(۴) او كله راځي مرفوع بنا بر ابتدائيت نحو عندى كذا درهما پدى كذا درهما كې دا كاف اسمى دى، بمعنى مثل مضاف دى ذا اسم اشارى ته مضاف سره د مضاف اليه نه مبتدا مؤخره او عندى خبر مقدم دى، (۴) **للتعليل:** نحو فاذكرالله كما هداكم، (۵) **للاقتران والاتصال** نحو جئتك كما طلعت الشمس، (۲) **للترجى:** اى بمعنى لعل نحو لاتشتم كما لاتشتم اى لعلك لاتشتم،

(۷) **للاستقصاء** نحو ان من الحروف لایقبل الحرکة کالالف، (۸) **للمفاجاة** نحو کماخرجت رایت زیدا، (۹) **للاستعلاء** نحو کخیر فی جواب من قال کیف اصبحت ای علی خیر، (۱۰) **للمصاحبة** نحو کخیر فی جواب من قال کیف اصبحت ای بخیر دا کاف د کخیر محتمل د احتمالات ثلاثه ؤ دی، (۱) دا د استعلاء لپاره دی ای علی خیر، (۲) د مصاحبت لپاره نحو بخیر، (۳) یا دا کاف د تشبیه لپاره دی او عبارت په حذف د مضاف سره دی ای کصاحب خیر، (۱۱) للتشابه نحوالهم صل علی محمد کما صلیت **ویختص بالظاهر** او مختص دی کاف جاره په اعتبار د دخول سره په اسم ظاهر پورې، **عندالجمهور خلافا للمبرد** الظاهر صفت دی د موصوف محذوف لپاره چې الاسم دی ځکه دا ظاهر پدی مقام کې مقابل د مضمر دی نه د مقدر او دا باء په بالظاهر کې داخله شویده په مقصور علیه باندې پدی شان سره چې دخول د کاف مختص دی په اسم ظاهر پورې او مجاوز ندی ضمیر ته قیاسا او اطرادا او اسم ظاهر عام دی مختص ندی په کاف پورې پدی شان سره چې ځنګه په دخول د کاف واقع کیږی نو دارنګې مدخول د نورو حروف جاره ؤ هم واقع کیږی فلایقال که عندالجمهور لپاره ددې چې لازم نه شی اجتماع د کافینو په جین د دخول د کاف جاره کې په کاف ضمیری باندې او دخول پدی باقی ضمائر وممتنع دی طرداً للباب، (۲) دخول د کاف ممتنع دی په ضمیر باندې هر کله چې مثل په ضمیر داخل شی چې مرادف د کاف دی پس حاجت پاتې نه شو دخول د کاف ته په ضمیر باندې او هر چې دی دخول د کاف په ضمیر باندې پدی قول د شاعر کې لاکهن الاحاظلاً دا شاذ دی، او مبرد وائی چې دا کاف داخلیږی په ضمیر باندې قیاسا او اطراداً دلیل د هغه لپاره دا مخکې شعر دی،

**سوال** نه وائی چې دخول د کاف مختص دی په اسم ظاهر پورې دا خبره ستا منقوضه شوه په ما اناکانت سره چې دلته په ضمیر داخل شوی دی، **جواب** اسم ظاهر عام دی که حقیقتاً وی او که حکماً وی انت اسم ظاهر دی حکما ځکه لکه ځنګه چې اسم ظاهر مستقل فی التلفظ دی، نو دارنګې دا هم مستقل فی التلفظ دی، او دارنګې کله کله ما زائده راځي وروسته د کاف نه غالبا یې منع کوی د عمل نه او کله کله یې د عمل نه نه منع کوی په شان د رب باندې مثال د اول کما فی قول الشاعر،

اخو ماجد کماسیف　　　عمر ولم تخنه مضارباً

ومثال الثانی

وننصر مولاناونعلم انه　　　کما الناس مخروم علیه وجارم

زده کړه دا خبره چې حروف جاره په اعتبار د ایصال د ما سره دوه قسمه دی،

(۱) بعض هغه حروف جاره دی چې د هغې نه وروسته ما راځي چې هغه پنځه دی: با، من، عن، کاف، او ددې نه علاوه د نورو نه وروسته ما زائده نه راځي او دا ما زائده چې وروسته د با من عن نه راشی نو هغه د عمل لفظی نه نه منع کوی نحو فبما رحمة من الله لنت لهم مما خطیئاتهم عما قلیل لیصبحن نادمین او چې وروسته د رب او کاف نه راشی نو غالبا یې د عمل نه منع کوی، او کله کله یې نه منع کوی مثالونه تیر شو،

**ومذ ومنذ** (ربط) هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د معنی د کاف نه نو شروع یې وکړه په بیان د مذاو د منذ کې او دا یې ذکر کړه وروسته د کاف نه ددې مناسبت د وجې نه چې دا مذ او منذ شریك دی د کاف سره په دخول د اسم ظاهر کې لکه چې کاف په ضمیر باندې نه داخلیږی دارنګې مذا ومنذ هم نه داخلیږی، او مذ یې مقدم کړو په منذ باندې باوجود ددې نه چې د افرع د منذ ده د وجی د کیدو د مذ نه چې اخف د منذ دی،

**ترجمه**: مذ او منذ وضع کړی شوی دی لپاره ددې چې دلالت وکړی په زمانه ماضی یا حاضر باندې او په زمانه د استقبال باندې دلالت نکوی، **للابتداء** دا مذا او منذ راځي د ابتداء جزی د فعل لپاره، **فی الماضی** په زمانه د ماضی کې، **والظرفیة** او دا راځي د ظرفیة جزی لپاره،

**فی الحاضر** په زمانه حاضر کې مثال لکه ما رایته مذ شهر ومذ یوم ای مبدأ عدم رؤیتی ایاه في شهر او في یوم دا مثال دی د مذ، منذ بمعنی في لپاره په حاضر کې او مثال د مذ منذ چې په معنی د من وي په ماضي کې ذکر یې نه کړو د وجې د شهرت نه نحو ما رأیته مذ یوم الجمعة ای اول مدة عدم رؤیتي ایاه من یوم الجمعة او دا للابتداء بدل اشتمال دی د للزمان نه یا خبر دی د مبتدا محذوف لپاره ای هما کائنان للابتداء او په مذ او منذ کې دوه لغته دی، (۱) مشهور په ضمی د میم سره، (۲) غیر مشهور په کسری دمیم سره، او مذ او منذ دوه قسمه دی، (۱) اسمی (۲) حرفی

**وجه د حصر** دا ده چې مدخول د مذ او منذ به خالی نوی یا به فعل وی او یا به اسم وی که فعل وو نو اسمی دی نه حرفی نحو جئت مذ دعا او که اسم وو نو بیا به خالی نوی با به مرفوع وی او یا به مجرور وی که مرفوع وو نو اسمی او که مجرور وو نو حرفی او فرق په مذ او منذ حرفی او اسمی کې لفظا او معنی تیر شوی دی په بحث د ظروفو کې (۱) دخول د مذ او منذ مختص دی په اسم ظاهر پورې په ضمیر نه داخلیږی، (۲) یا دخول ددې مختص دی په ظرف پورې په غیر ظرف نه داخلیږی،

(۳) او بیا دخول د دی مختص دی په ظرف زمان پورې په ظرف مکان باندې نه داخلیږی،

(۴) بیا مختص دی په ظرف زمان ماضی او حاضر پورې په استقبال باندې نه داخلیږی،

**وحاشا وعدا وخلا للاستثناء** (ربط) هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د مذ او منذ نه نو شروع یې وکړه په حاشاخلا عدا کې او دا دری واړه یې یو ځاې ذکر کړه د وجی د اشتراك ددې دری واړونه په معنی کې چې استثناء ده، (۲) یا د وجی د اشتراك ددې دری واړونه په فعلیت او حرفیت کې،

**ترجمه**) حاشا عدا او خلا راځي لپاره د استثناء د ما بعد د ما قبل نه یعنی دا دلالت کوی چې مدخول ددې خارج دی دحکم د ماقبل نه او للاستثناء قیدی ورسره ځکه ولګوو چې په دیګې یې اشاره وکړه دیته چې دا دری واړه د حروف جاره ؤنه هله دی چې د استثناء لپاره راشي والا او که داسې نه وو نو بیا د حرف جاره ؤ نه ندی بلکه افعال دی او چې د استثناء لپاره راشي نو بیا به خالی نه وی یا به مدخول ددې مجرور وی او یا به منصوب وی، که مجرور وو نو د حروف جاره ؤنه دی نحو جاء نی القوم حاشا زید الخ او که مدخول یې منصوب وو نو بیا دا افعال دی نه حروف کما قال ابن مالك، شعر

وحيث جرفهما حرفان كما هما نصبا فعلان

نو ددې نه معلومه شوه چې حاشا خلا او عدا دوه قسمه دی،
(۱) فعلی (۲) حرفی حاشا غالبا حرفی راځي او كله كله فعلی راځي د استثناء لپاره د سوء نه چې دلالت كوی چې دا مستثنی پاك دی د حكم سيئه د مستثنی منه نه يقال ساء القوم حاشا زيدا فلا يقال صلى الله عليه حاشا الشيطان، او په حاشا كې لغات ثلاثه دی،
(۱) حاشا ، (۲) حاش، (۳) حشی او په خلا او عدا كې احوال اربعه دی په احوال ثلاثه ؤ كې فعلی دی او په يو حالت كې حرفي دی دا خلا او عدا به خالی نه وی يا به واقع وی په ابتداء د كلام كې يا په مينځ د كلام كې كه په ابتداء د كلام كې وو نو فعلی او كه په مينځ د كلام كې وو نو بيا به خالی نوی يا به مخكې ددې نه ما راغلی وی، او يا به نوی راغلی كه راغلی وو نو فعلی او كه نه وو راغلی نو محتمل د احتمالينو دی، كه مدخول يې منصوب وو نو فعلی او كه مجرور وو نو حرفی،
(**قاعده**) كله كله استعمال د كلام د عربو كې حرف جر حذف كولی شی سره د بقاء د جر نه په غير د رب كې هم، او دا په دوه قسمه دی، (۱) سماعی (۲) قياسی مثال د سماعی لكه چې ستا نه څوك تپوس وكړی چې كيف اصبحت او ته ورته اوائی خير ای علی خيرو كقول الشاعر،

اذاقيل ای الناس شرقبيلة اشارت كليب بالاكف الاصابع

ای الی كليب الی حذف دی او كليب مجرور دی سماعًا او مثال د قياسی كما فی قول العرب بكم درهم اشتريت هذا الكتاب چې دا اصل كې بكم من درهم وو دامن حذف شوی دی په حذف قياسی سره او تميز مجرور پاتې شوی دی، ځكه تميز كم استفهامی منصوب راځي او دلته مجرور راغلی دی په حرف جر محذوف سره (۲) په لفظ د الله كې چې دا مقسم به واقع شی نحو الله لاكر منك ای والله، (۳) د جواب د استفهام نه بعد لكه ته ووائي خالد (ای من خالد) من قال ممن اخذت الكتاب،
(۴) وروسته د همزه استفهامی نه لكه يو كس اوائی مررت بخالد بن سعيد او ته ورته ووايې اخالد بن سعيد، (۵) وروسته د ان شرطيه نه نحو اذهب بمن شئت ان خليل وان حسن ای ان بخليل وان بحسنٍ،
(۶) فی الدار زيد والحجرة عمرو كې دا الحجرة مجرور دی په تقدير د فی سره عند السيبويه،

## الحروف المشبهة بالفعل

**ربط:** هر كله چې فارغ شو مصنف د بيان د حروف جاره ؤنه نو شروع يې وكړه په بيان د حروف مشبه بالفعل كې او هر كله چې عمل د حروف جاره ؤ بذاته وو او عمل د حروف مشبه بالفعل لغيره وو نو حروف جاره يې مقدم كړه، پدی نو ويې ويل الحروف المشبهة بالفعل،
**ترجمه:** هغه حروف چې مشابه دی د مطلق فعل سره لفظا او معنی.
**سوال:** اوس هغه حروف مشبه بالفعل كوم دی، **جواب: وهی ان وان وكان الخ،**
**تشريح:** پدی نوع كې هم لابدی ده د معرفت د پنځلسو امورو نه،

(١) معرفت د ذات (٢) اسم (٣) وجه د تسميه (۴) تعداد (۵) مصداق (٦) مدخول (٧) وجه د دخول (٨) عمل (٩) وجه د عمل (١٠) شروط د عمل (١١) معرفت د مذهبينو په عمل ددې كې (١٢) معرفت د معانی (١٣) معرفت د اقسامو د ان كان لعل (١۴) معرفت د احكامو،
نو دا نوع په اعتبار د ذات سره حروف دی نه اسماء او نه افعال او نوم ددې حروف مشبه بالفعل حروف المعانی حروف الدواخل او حروف النواسخ دی، حروف المعانی ورته ځكه وائی چې دا حروف واضع وضع كړی دی، د معناګانو لپاره او حروف الدواخل او نواسخ ورته ځكه وائی چې دا داخليږی په مبتدا او خبر باندې او سابقه عمل منسوخ كوی، او حروف مشبه بالفعل ورته ځكه وائی چې دا مشابه دی د فعل سره لفظا او معنی هر چې دی لفظا نو په ثلاثيت رباعيت خماسيت ادغام او په بنا على الفتحه كې او هر چې دی معنی نو معانی ددې حروف ملزوم دی او معانی د فعل ورسره لازم ده، ځكه معانی د دی حروفو جزی دی او معانی د فعل كلی دی او كلی لازم وی د جزی سره،
**سوال:** مشابهت ددې حروفو دفعل سره په ثلاثيت رباعيت كې منم خو په خماسيت كې يې نه منم ځكه فعل خماسی نه راځي، **جواب:** مراد د خماسی نه دلته خماسی لغوی دی چې مايكون على خمسة احرف وی او تعداد ددې حروف شپږ دی، عند الجمهور، او اوه دی عند الاخفش على قول او مثالونه يې دا مذكوره فی المتن دی د جمهورو په نز باندې او د اخفش په نيز شپږ دغه دی او اوم لات دی او داخليږی په مبتدا او خبر باندې او دخول ددې حروف په مبتدا او خبر باندې سماعی دی او مبتدا لره نصب وركوی، او خبر ته رفع وركوی د وجې د مشابهت د دی حروفونه د فعل سره لفظاً او معنیً كما مر او مشبه حكم د مشبه به اخلي او د فعل لپاره دوه عمله دی،
(١) يو عمل اصلی دی چې تقديم د رفع نصب باندې نحو ضرب زيد عمرا (٢) عمل فرعي چې تقديم د نصب دی په رفع باندې نحو ضرب عمراً زيد او دی لره مونږه عمل فرعی د فعل وركړو لپاره د دی چې انحطاط د فرع راشی د اصل نه،
**سوال:** حروف مشبه بالفعل مشابه دی د مطلق فعل سره نو ته يواځی عمل : فعل متعدی ولې وركوی **جواب:** مشابهت د دی د فعل متعدی سره زيات دی د فعل لازم نه په اقتضاء د امرينو كې چې فعل متعدی هم دوه اشياء غواړي (١) فاعل (٢) مفعول به او دا هم دوه اشياء غواړي د وجې د كمال مشابهت د دی حروفو نه د فعل متعدی سره نو عمل د متعدی وركړی شو نه د لازم او عمل د حروف مشبه بالفعل مشروط بشرطين دی، (١) بقاء د ترتيب پدی شرط چې خبر ظرف او جار مجرور نه وو، والافلا كما مرفی المرفوعات، (٢) عدم اتصال د ماكافه پدی حروف مشبه بالفعل پورې ځكه كه دې حروفو پورې ما كافه متصل وو نو بيا دا عمل نه شي كولی نحو أَنَّمَا إِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ ، **انما الاعمال بالنيات**، او په عمل د حروف مشبه بالفعل كې دوه مذهبه دی (١) بصريين، (٢) كوفيين د بصرينو مذهب دا دی چې دا حروف په مبتدا او خبر دواړو كې عمل كوی پدی شان سره چې مبتدا لره نصب وركوي او خبر لره رفع وركوی او كوفيان وائی چې دا عمل كوی فقط په مبتدا كې نه په خبر

کې ځکه دا حروف ضعیف العمل دی عمل کوی مع الوصل او مع الفصل عمل نه شی کولی. (۲)، تسویه د فرع اصل سره را نه شي.

**جواب:** تسویه نه لازمیږي ځکه عمل فرعي وررکړی دی شبهه لره (۲)، د دوی دا خبره باطله ده د عمل د اسم فاعل سره چې دا عمل کوي په شان د فعل خپل د وجې د مشابهت نه فعل مضارع سره لفظاً ومعنیً فافهم او مذهب د بصریانو غوره دی د مذهب د کوفیانو نه ځکه دا اګر که حروف دی لیکن عمل کوی د وجی د مشابهت نه د فعل سره لفظا او معنی او د وجی د مشابهت نه ورکړی شو دی حروف لره عمل فرعی د فعل چې تقدیم د منصوب دی په مرفوع باندې لهذا په ان زیدا قائم کې دی زیدا لره نصب ورکړی دی ان بالاتفاق او دی خبر لره رفع چا ورکړیده نو بصریان وائی چې دا رفع ان ورکړیده هغه پخوانی رفع لاړه او نوی رفع په قائم کې راغلی ده د ان د وجی نه او کوفیان وائی چې دا هغه زړه رفع ده او ان یکې عمل ندی کړی او پدی حروف مشبه بالفعل کښ ان او ان راځي د تاکید لپاره او کان راځي د تشبیه لپاره اولکن راځي د استدراك لپاره لیت د تمنی لپاره او لعل د ترجی لپاره او ان دوه قسمه دی، (۱) فعلی (۲) حرفی فعلی بیا دوه قسمه دی،

(۱) صیغه د واحد مذکر فعل امرحاضر معلوم د آن، یَان، اَیناً نه په معنی د ژړا سره په شان د فِرّ باندې معنی یې دا ده چې وژاړه ته ای سړیه، (۲) صیغه واحد مؤنث فعل امرْ حاضر معلوم مؤکد بانون تاکید ثقیله من وآی یَای وأیاً په معنی د واده کولو سره نو ان هند معنی دا ده چې خامخا ته واده کوه ای هندی اصل کې اِيِ وو بر وزن قِی بیا یا ضمیر د مؤنث مخاطب حذف شوه د وجی د التقاء د ساکنینو نه، او کسره دَ همزی درباندې دلالت کوی او ان حرفی هم دوه قسمه دی،

(۱) حرف ایجاب نحو لعن الله ناقتی حملتنی الیك، ان وراکبها ای نعم وراکبها،

(۲) دویم حرف دی د حروف مشبه بالفعل نه نحو إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ. او آن هم دوه قسمه دی،

(۱) حرفی نحو بلغنی انك قائم، (۲) فعلی چې صیغه واحد مذکر فعل ماضی معلوم ده په شان د مد باندې چې مشتق دی د انین نه بمعنی ژړا،

**سوال** ان زید کریم څه ترکیب دی چې ان حرف شی د حروف مشبه بالفعل نه نو پدیکې درې نقصانه دی؟

(۱) ان راځي په وسط کې نه په ابتداء کې او دا په ابتداء کې راغلی دی،

(۲) ان اسم لره نصب ورکوی، (۳) او خبر لره رفع ورکوی او دلته اسم مرفوع او خبر مجرور دی،

جواب: دا ان حرفی ندی بلکه ان فعلی دی په شان د مد باندې

**ترکیب** دا دی چې ان صیغه د ماضی معلوم زید فاعل ان کریم کې کاف جاره او ریم مجرور دا متعلق دی په ان پورې ان سره د فاعل او متعلق نه جمله فعلیه خبریه ده. او لعل په څلورو معانیو سره راځي، (۱) ترجی د محبوب او اشفاق د مکروه نه مثال د اول کقول الشاعر،

احب الصالحین ولست منهم لعل الله یرزقنی صلاحا

مثال د ثانی لکه لعل الرقیب موجود، (۲) تمنی نحو قوله تعالی لَعَلِّي أَبْلُغُ الْأَسْبَابَ.

(۳) تعلیلیی عند الاخفش والکسائی نحو قوله تعالی فَقُولَا لَهُ قَوْلًا لَّيِّنًا لَّعَلَّهُ يَتَذَكَّرُ أَوْ يَخْشَىٰ
، استفهامی عند الکوفین نحو قوله تعالی لَعَلَّ اللَّهَ يُحْدِثُ بَعْدَ ذَٰلِكَ أَمْرًا ،وَمَا يُدْرِيكَ لَعَلَّهُ يَزَّكَّىٰ ، او لکن په دوه معانیو سره راځي (۱) د استدراك لپاره نحو زید حاضر لکن عمرا غائب، (۲) للتاکید کقول الشاعر

ولو طار ذو حافر قبلها لطارت ولکنه لم یطر

دلته نفی د لو نه مستفا د ده او لکن مذکور دی صرف د تاکید لپاره او احکام ددې حروفو دوه قسمه دی،
(۱) یو قسم مشترك دی بین الحروف المشبهه بالفعل،
(۲) احکام ځان له ځان له او جدا جدا نو دهر یو احکام مشترکه یې بیان کړ، دی، په بحث د مرفوعاتو کې وامره کامرالمبتدأ سره او احکام مختصه دلته بیانوی
**سوال:** حروف جاره یې ولې مقدم کړل په حروف مشبه بالفعل باندې باوجود د دې نه چې مرفوع مقدم وي په منصوب او مرفوع مقدم دی په مجرور باندې نو تا مجرور ولې مقدم کړو؟
**جواب:** (۱) هر کله چې عمل د حروف جاره ؤ لذاته وو او عمل د دې حروف لغیر، وو نو ځکه یې هغه مقدم کړو په دې باندې (۲) حروف جاره زیات دي او دا کم دی او العزة للتکاثر (۳) حروف جاره صرف په یو اسم کې عمل کوي او دا حروف په دوه اسمینو کې عمل کوي والواحد قبل الاثنین
**سوال:** دا مقام مقام د جمع قلت دی لهذا د مصنف لپاره مناسب وو چې تعبیری کړی وی په صیغی د جمع قلت سره یعنی الاحرف المشبهة بالفعل یې وئلی وی نو جمع کثرته یې ولې ذکر کړی ده،
**جواب:** جمع کثرته یې ذکر کړیده مشاکلة ځکه هر کله چې دوی تعبیر وکړو د حروف جاره ؤنه په صیغه د جمع کثرت سره نو ددې نه یې هم تعبیر وکړو په جمع کثرت سره مشاکلة اګر که مقام د جمع کثرت ندی، (۲) جمع کثرته سره یې تعبیر وکړو ځکه چې احدهما مستعملیږي په مقام د اخر کې نحو ثلاثة قروء، (۳) الحروف المشبهة بالفعل یې اویل جمع کثرته سره ځکه دا مقام د کثرت دی نه د قلت ځکه ان او ان سره د فروع خپلو نه چې ملاحظه کړی شی سره د لغاتو د لعل نه نو دا شپږ ندی بلکه جمع کثرته ترې جوړیږی، **ولها صدر الکلام**، **(ربط)** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د مصداق د حروف مشبه بالفعل نه نو شروع یې وکړه په احکامو ددې کې اول بیانوی حکم مشترکه ددې حروفو اوبیا بیانوی احکام مختصه ددې حروفو **ولها** او ثابت دی ددې حروف مشبه بالفعل لپاره وجوباً **صدر الکلام** او لیت د کلام لپاره ددې چې دلالت وکړی په نوعیت د کلام باندې د اول وهلت نه چې دا کلام د کومی نوع نه دی د انواع د کلام نه چې هغه تمنی ترجی استدراك وغیره دی **سوی ان** علاوه د ان مفتوحة الهمزه نه چې ددې لپاره اولیت د کلام ندی ثابت،
**سوال:** ددې لپاره اولیت د کلام څنګه ندی ثابت، **جواب: فهی** دا ان مفتوحة الهمزه **بعکسها** په عکس د باقی حروف مشبه بالفعل دی پدی شان سره چې باقی حروف مشبه بالفعل تقاضه د صدارت د کلام کوی او ان مفتوحة الهمزه تقاضه د عدم صدارت کوی ځکه (۱) دا ان سره د ما بعد نه معمول دی د عامل لپاره او حق د معمول دا دی چې متاخر شی، نو اتیان یې وکړو په اصل دده باندې،

(۲) یا دا ان سره د اسم او سره د خبر نه په تاویل د مفرد سره دی اوس که ابتداء کې ان مفتوحة الهمزه اویلی شی نو تکلم بالمفرد راځي او دا باطل دی، (۳) یا دا ان تقاضه د عدم صدارت د کلام کوی ځکه که دا واقع شی ابتداء کې نو التباس راځي، د ان مکسورة الهمزه سره لفظا او کتابة د **فهي** بعکسها دوه ترجمی دی،

یوه ترجمه د شارح جامي صاحب ده او دویمه د متوسط ده ترجمه د جامی صاحب دا ده چې **فهي** دا کلمه د ان مفتوحة الهمزه په عکس د باقی حروف مشبه بالفعل دی پدی شان سره چې هغه باقی حروف مشبه بالفعل تقاضه د صدارت د کلام کوی، او دا تقاضا د صدارت د کلام نه کوی او ترجمه د جامی صاحب غوره ده، د ترجمی د متوسط نه،

(۱) ځکه په ترجمه د جامی صاحب کې تاسیس راځي او په ترجمه د متوسطه کې تاکید راځي او قاعده د علم بلاغة دا ده چې تاسیس اولی دی د تاکید نه،

(۲) بنا په ترجمه د متوسط باندې لازمیږی لغویت د ذکر د فهي بعکسها وروسته د سوی ان نه ځکه په کومه معنی چې سوی ان دلالت کوی نو په دغه معنی باندې بعکسها هم دلالت کوی او په ترجمه د جامی صاحب باندې لغویت نه لازمیږی، ځکه سوی ان معنی عامه ده چې ان مفتوحة الهمزه تقاضه د صدارت نکوی اوس دا معنی عامه ده، دلالت کوی په جواز د ذکر د ان مفتوحه الهمزة باندې په ابتداء د کلام کې نو فهي بعکسها سره تعین د معنی د سوی ان وشو، چې تخصیص بعد التعمیم دی، تعین د معنی وشو چې دا په عکس د هغې ده، چې هغه تقاضه د صدارت کوی او دا تقاضه د عدم صدرات کوی،

**سوال**: په بعکسها کې ضمیر راجع دی حروف مشبه بالفعل ته او په هغې کې خو ان هم دی نو دا خو عکس د شئ من نفسه راغی،

**جواب**: دا عبارت په حذف د مضاف سره دی ای بعکس باقیها، **وتلحقها ما** دویم حکم د حروف مشبه بالفعل دا دی چې متصل کیږی، په اخیر د دی حروفو پورې ماکافه **فتلغی** نو لغوه کوی دی، حروف لره د عمل کولو نه **علی الافصح** په افصح د لغاتو باندې ځکه دا حروف ضعیف العمل دی عمل کوی مع الوصل او مع الفصل عمل نه شی کولی، نحو قوله تعالی أَنَّمَا إِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ وقوله علیه السلام **انما الاعمال بالنیات** او کله کله عمل کوی، دا حروف مشبه بالفعل په غیر افصح باندې بنا پدی باندې چې دا ما زائد دی نه کافه کمافی قول الشاعر،

الا لیتما هذا الحمام لنا الی حمامتنا او نصفه فقد

په فتحی د حمام سره **وتدخل** او داخلیږی **حنیئذ** په دغه وقت کې چې کله متصل شی، په اخیر د دی پورې ماکافه **علی الافعال** په افعالو باندې ځکه چې دخول د دی حروفو ممتنع وو په افعالو باندې د عمل د وجی نه اوس کله چې دی ما دا حروف د عمل نه منع کړه نو مانع د دخول نه ختم شو نو داخلیږی په افعال باندې نحو قوله تعالی إِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةَ او حنیئذ کې دا تنوین عوض د مضاف الیه دی اصل کې حین اذ یلحقها وو،

**فان لا تغير معنى الجملة**، (ربط) هر كله چې فارغ شو مصنف د بيان د حكم مشترکه د حروف مشبه بالفعل نه نو شروع يې وکړه په بيان د احكام محتصه د حروف مشبه بالفعل کې (۲) هر كله چې فارغ شو مصنف د بيان د تاثير لفظي د دې حروفو نه چې ټول پکې شريك دي نو شروع يې وکړه په تاثير معنوى ددې حروفو کې چې هغه جدا جدا دى **فان** پس ان مكسورة الهمزه **لا تغير** نه ورانه وى **معنى الجملة** معنى د جملى لره پدى شان سره چې از داخل شى په جمله اسميه باندې نو دا نه باسى جمليت نه بلكه دا جمله په خپل حال باقى پاتې کوى سره د زيادت د تاكيد او مبالغې نه **وان مع جملتها** او ان مفتوحة الهمزه سره د اسم او د خبر نه **في حكم المفرد** په حكم د مفرد کې دى پدى شان سره چې ان مفتوحة الهمزه چې داخل شى په جمله نو دا گرځوى په حكم د مفرد کې او دا ان په اعتبار د حرکة د همزى سره درې قسمه دى، (۱) مكسورة الهمزه وجوبا كه مقام د جملى وو.

(۲) مفتوحه الهمزه وجوبا كه مقام د مفرد وو، (۳) جواز د وجهينو كه مقام محتمل د احتمالينو وو

مثال د اول نحو قوله تعالى قُلْ أُوحِيَ إِلَيَّ أَنَّهُ اسْتَمَعَ نَفَرٌ مِّنَ الْجِنِّ دا مفتوحة الهمزه دى وجوبا لانه وقع مقام المفرد چې نائب فاعل دى او نائب فاعل اسم وى حقيقة يا تاويلا او اسم تاويلى به هله شى چې مفتوحه الهمزه يې اوايى مثال د ثانى نحو قوله تعالى فَقَالُوا إِنَّا سَمِعْنَا قُرْآنًا عَجَبًا دا مكسورة الهمزه دى وجوبا لانه واقع موقع الجملة ځكه دا سره د مدخول نه مقوله د قول ده او مقوله نوى مگر جمله وى او كه مفتوحة الهمزه يې اوايو نو مفرد مقوله واقع كيږى او دا باطله ده او مثال د ثالث لكه وَأَنَّهُ تَعَالَىٰ جَدُّ رَبِّنَا دا محتمل د احتمالينو دى كه دا عطف شى په انه استمع الخ باندې نو مفتوحة الهمزه به وى او كه عطف شى انا سمعنا قرانا عجبا باندې نو بيا مكسورة الهمزه دى **ومن ثم وجب الكسر في موضع الجمل** او د دى وجى نه چې ان مكسورة الهمزه معنى د جملى نه ورانوى بلكه په خپل حال يې پاتې كوى سره د زيادت نه نو واجب ده كسره لوستل په همزه د ان کې په موضع د جملو کې د دې وجې نه،

**والفتح في موضع المفرد** او د دى وجى نه چې جوړه وى ان مفتوحة الهمزه جملى لره په حكم د مفرد کې نو واجب ده **فتحه** په مقام د مفرد کې ځكه دا مقام مقام د جملى دى، برابره خبره ده چې ابتداء د كلام کې وى نحو إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ، إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُّبِينًا يا په وسط د كلام کې وى حو دى متكلم ابتداء د كلام اخر كړى وى نحو قوله تعالى وَلَا يَحْزُنكَ قَوْلُهُمْ إِنَّ الْعِزَّةَ لِلَّهِ جَمِيعًا دا ان دلته مكسورة الهمزه دى اگر چې واقع دى په وسط کې ځكه دا مستقل كلام دى او علت دى د ما قبل لپاره،

(۲) **وبعد القول** او مكسورة الهمزه **وجوبا** به وى چې واقع شى وروسته د قول نه او د هغه صيغونه چې هغه مشتق دى د دى قول نه ځكه دا ان سره د اسم او خبر نه مقوله د قول ده او مقوله د قول نه وى مگر جمله وى ځكه دا باب د قال يقول وضع شوى دى لپاره د حكايت او د نسبت، او نسبت نه وى مگر جمله کې وى، نحو قوله تعالى قَالَ إِنِّي عَبْدُ اللَّهِ خودا هله چې دا بمعنى حكايت وى او كه قول بمعنى ظن وو نو مفتوحة الهمزه به وى وجوبا،

(۳): **وبعدالموصول** او چې واقع شی وروسته د موصول نه ځکه ان سره د ما بعد نه صله د موصول ده او صله د موصول نه وی مګر جمله وی نحو جاءنی الذی ان اباه قائم، (۴): چې جواب د قسم واقع شی نحو والله انك لصادق، (۵): واذا وقعت مع ما بعد ها حالا نحو قصدته وانی واثق به زرته وانی ذوامل، (۶): اذا وقعت بعد حیث اوا ذ نحو اجلس حیث ان خلیلا جالس، (۷): اذا وقعت بعد عامل علق باللام نحو قوله تعالی قَدْ نَعْلَمُ إِنَّهُ لَيَحْزُنُكَ الَّذِي الخ،
(۸): بعد حتی ابتدائیه نحو مرض سلیم حتی انه لایرجونه **وفتحت** او فتحه لوستلی شی وجوبا پدی ان کې **فاعلة** په حال کون د دی کې چې دا واقع شی سره د ما بعد نه فاعل په ترکیب کې نحو بلغنی ان زیدا عالم **ومفعولة** یا مفعول واقع شی نحو کرهت ان زیدا شاعر، **ومبتداء** او په حال کون ددې کې چې مبتدا وی سره د ما بعد نه نحو عندي انك فاضل **ومضافا الیها** یا مضاف الیه وي سره د مابعد نه په ترکیب کې نحو اعجبنی اشتهار انك عالم نو دی مواضع کې ان مفتوحة الهمزه ویلی شی، وجوبا خکه فاعل مفعول به مبتدا او مضاف الیه څلور واړو کې لابدی ده، د اسمیت نه او اسم عام دی چې حقیقةً وی او که تاویلاً وی، اسم تاویلی به هله شی چې ان مفتوحة الهمزه اوایو خکه دا ان ما بعد جمله ګرځوی په تاویل د مفرد سره او که مکسورة الهمزه اوایو نو بیا د ما بعد نه مفرد نه جوړیږی، بلکه جمله په خپل حال پاتې کیږی او جمله فاعل او مفعول او مبتدا او مضاف الیه نه راځي،
**سوال:** دا قاعده ستا منقوضه شوه په يَوْمَ يَنْفَعُ الصَّادِقِينَ صِدْقُهُمْ سره دلته جمله مضاف الیه دی
**جواب:** مضاف الیه اسم وی بیا عام دی که حقیقتاً وی که تاویلاً وی دلته تاویلاً دی ای یوم نفع الصادقین صدقهم، (۵): او ان مفتوحة الهمزه وی چې واقع شی په موضع د مجرور کې نحو سررت من انك مجتهد، (۶): او معطوف علی احد المذکور نحو اذْكُرُوا نِعْمَتِيَ الَّتِي أَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ وَأَنِّي فَضَّلْتُكُمْ (۷): او بدل من احد المذکور نحو قوله تعالی وَإِذْ يَعِدُكُمُ اللَّهُ إِحْدَى الطَّائِفَتَيْنِ أَنَّهَا لَكُمْ **وقالو** او وائی عرب **لولا انك** په فتحه د همزی سره یعنی ان چې واقع شی وروسته د لولا امتناعیه نه نو مفتوحة الهمزه به ویلی شي وجوبا او مکسورة الهمزه لوستل ندی جائز،
**سوال:** مفتوحة الهمزه وجوبا به ولې ویلی شي؟ **جواب:** ځکه چې دا مقام د مفرد دی،
**سوال:** مقام د مفرد ولې دی؟ **جواب: لا نه مبتدأ** ځکه چې ما بعد د لو لا امتنا عیه نه مبتدا وی او کون د مبتدا مفرد واجب دی او مبتدا به مفرد هله شی چې مفتوحة الهمزه یې اوائی او که مکسورة الهمزه شی نو وقوع د جمله مبتدا راځي او دا باطله ده، مثال لولا انك منطلق انطلقت،
**ترکیب:** لولا حرف امتناع ان سره د اسم او خبر نه په تاویل مفرد سره چې انطلاقك دی مبتداء ده او خبري حذف شوی دی وجوبا چې موجود دي د وجی د وجود د سد مسد او قرینی نه قرینه په نفس حذف استعمال د مفرد او قرینه په تعین د محذوف لولا دی، ځکه دا دلالت کوی په انتفاء د شی ثانی د وجی د وجود د اول نه او سد مسد اقامت د جواب دلولا دی چې انطلقت دی په مقام د خبر باندې،

او دغسی ان مفتوحة الهمزه لوستل واجب دي چې دا واقع شي وروسته د لولا تحضيضيه نه ځکه ان سره د مابعد نه معمول د هغه فعل دی چې واجب دی دخول د لولا تحضيضيه په هغې باندې نحو لولا انی معاذلك زعمت ای لولا انی معاذلك چې ان سره د اسم او خبر نه په تاويل د مفرد سره مفعول به دی د فعل مقدر لپاره او دا ما بعد زعمت د هغه لپاره مفسر دی او مفعول به نه راځي، مګر مفرد يعنی کون د مفعول به مفرد واجب دی او مفرد به هله شي چې دا مفتوحة الهمزه شي. **ولو انك** او دغسی وائی عرب لوانك په فتحی د همزی سره يعنی ان چې واقع شي، وروسته دلو شرطيه نه نو ان مفتوحة الهمزه لوستل واجب دی، او ان مکسورة الهمزه ويل نه دی جائز ځکه دا مقام مقام د مفرد دی او مقام د مفرد کې ان مفتوحة الهمزه ويل واجب دی

**سوال:** دا مقام د مفرد ولې دی؟ **جواب: لانه فاعل** ځکه ما بعد د لو شرطيه فاعل وی د فعل محذوف لپاره او کون د فاعل مفرد واجب دی نحو لو انك قائم.

**ترجمه:** ان سره د اسم او خبر نه په تاويل د مفرد سره چې قيامك دی، فاعل د فعل مقدر دی چې وقع دی ای لو وقع قيامك **وان جاز التقدير ان جاز الامران.**

**ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د مواضع د ان مکسورة الهمزه وجوبا او ان مفتوحة الهمزه وجوباً نه نو شروع يې وکړه، په هغه مواضع کې چې په هغې کې جواز د وجهينو دی، د وجی د کيدو د مقام نه محتمل د احتماليـن نو وي ويل وان جاز التقدير ان الخ که چرې جائز وو، په يو مقام کې تقدير د مفرد او تقدير د جمله دواړو **جاز الامران** جائز دی امران چې فتحه او کسره لوستل دی په دی همزه کې فتحه پدی اعتبار سره چې دا مفرد دی او کسره پدی اعتبار سره جائز ده، چې دا ان سره د اسم او خبر نه جمله ده، مثال لکه **من يکرمنی فانی اکرمه** مراد هر هغه ترکيب دی چې ان سره د ما بعد نه واقع شوی وی، وروسته د فاء جزائيه نه او جزا د شرط نه راځي مګر جمله ليکن دا واجب نده چې دا جزاء بجميع اجزائه مذکور وی، که ديته ګوري چې دا جزا بجميع اجزائه مذکوره ده نو انی اکرمه ووايه په کسری د همزی سره ځکه دا مقام مقام د جملی دی، او که ديته ګوری چې جزاء بجميع اجزائه نده مذکور بلکه ان سره د اسم او د خبر نه خبر دی د مبتدا محذوف لپاره يا مبتدا ده او خبري محذوف دی او مبتدا او خبر نوی مګر مفرد وی من يکرمنی فانی اکرمه ووايه بفتح الهمزه ای من يکرمنی فاکرامی ثابت له بل مثال لکه د انيم بيتی شو، **اذا انه عبدالقفا واللهاذم** اول سر يې دا دی، وکنت اری زيدا کما قيل سيدا دا شعر د فرزدق دی، مقصدي هجوه د زيد ده اری صيغه د واحد متکلم فعل مضارع مجهول ده د اری يری اراءة نه متعدی دی مفاعيل ثلاثه ؤ ته چې مجهول شو، نو اوس متعدی دی مفعولينو ته او زيدا مفعول ثانی دی، د اری لپاره اوسيدا مفعول ثالث دی او کما قيل جمله معترضه ده،

**ترجمه:** زه هميشه وومه چې ګمان مې کوو پدی زيد باندې چې دی سردار دی لکه خلکو به ورته سيد ويلو ناګهانه چې ګورم نو دا د څټ او د جامو بنده وو، يعنی لوی همت د دهٔ دا وو چې خوراك او څکاك وکړي، چې غټ شي څټ د ده يعنی دا سيد نه وو بلکه لئيم وو او ان چې واقع شي سره د اسم

او د خبر نه پس د اذا مفاجاتي نه نو هلته جواز د وجهينو دی (۱) کسره (۲) فتحه ځکه د اذا مفاجاتي نه وروسته وقوع د جملې اسميې واجبه نده چې دا جمله دی مذکور وی بجميع اجزائه لهذا که ديته ګوری چې دا بجميع اجزاء مذکور ده نو ان په کسری د همزې سره ووايه او که د يته ګوری چې ان سره د ما بعد نه مبتدا محذوف الخبر دی نو بيا ان مفتوحة الهمزه ووايه، ځکه دا واقع دی په موضع د مفرد کې ای اذا عبودية اللقفا واللهاذم ثابتة. **وشبهه** او دغسې جائز دی، مفتوحة الهمزه او مکسورة الهمزه لوستل د ان چې دا واقع شی په هغه تراکيبو کې چې هغه په شان د اذا انه عبد القفا الخ دی، مثال لکه اول ما اقول انی احمدالله ديکې جواز د وجهينو دی فتحه او کسره دواړه جائز دی ځکه که ته دا موصوله يا موصوفه ګرځوی نو بيا دا عبارت دی د مقولی نه، نو انی به وائی بکسر الهمزه ځکه اول د مفولات نه جمله ده نه معنی مصدری چې حمد دی او که دا ما مصدري وګرځوي نو بيا ان مفتوحة الهمزه ووايه، ځکه اول دا قوال نه معنی مصدري ده چې حمد دی نه دغه جمله ځکه هغه د جنس مقول نه ده نه داقوالو نه او شبهه مجرور دی عطف دی په اذا انه عبدالقفا باندې نو د نحو د لاندی راغی فيکون المعنیٰ فتحه او کسره لوستل جائز دی په ان کې په مثل د عبدالقفا او په مثل د شبه د عبدالقفاء کې، **ولذلك** او ددې وجې نه چې ان مکسورة الهمزه نه ورانوی معنی د جملې لره نو شو اسم ددې منصوب په محل د رفع کې **جاز** جائز دی **العطف** عطف د يو اسم **علی اسم المكسورة** په اسم د ان مکسورة الهمزه باندې بالرفع په رفع سره د دې جهت نه چې دا اسم د ان سرفوع دی محلا بيا برابره خبره ده، چې دا ان مکسورة الهمزه وی لفظاً لکه ان زيداً قائم وعمرو **او حکما** يا مکسورة الهمزه وی حکما لکه ان مفتوحة الهمزه چې واقع شی وروسته د افعال قلوب نه نو دا په حکم د ان مکسورة الهمزه کې دی، نحو علمت ان زيداً قائم وعمرو، عمرو مرفوع دی، ځکه عطف دی په محل د اسم د ان باندې ځکه دا په حکم د ان مکسورة الهمزه کې دی،

**سوال:** دا په حکم د ان کې ولې دی؟ **جواب:** لکه څنګه چې ان دا ما بعد جمله په خپل حال پاتې کوی دا رانګی دا ان چې واقع دی وروسته د افعال قلوب نه دا جمله هم په خپل حال باقی پاتې کوی، لانه واقع موقع المفعولين او دا به په مقام د مفعولينو باندې هله قائم شی، چې جمله وی او که مفرد شی نو بيا نه قائم کيږی، **دون المفتوحة** او ندی جائز عطف د اسم په رفع سره په اسم د ان مفتوحة الهمزه باندې ځکه د اسم د ان مفتوحة الهمزه لپاره محل د رفع نشته ځکه دا د جملې نه مفرد جوړه وی.

**سوال:** ان الله بریٔ من المشرکين ورسوله کې دا رسوله په چا عطف دی که ته وائی چې دا عطف دی په اسم د ان باندې نو بيا لازميږی فساد د معنی او مرفوع لوستل هم ندی صحيح بلکه رسوله ويل پکار وو او که ته وائی چې دا عطف دی په محل د اسم د ان باندې نو عطف په محل د اسم ان ندی جائز ځکه د دی لپاره محل د رفع نشته،

**جواب:** دا مرفوع دی ځکه عطف دی په محل د اسم د ان ځکه دا ان دلته په حکم د ان مکسورة الهمزه کې دی ځکه دا واقع دی وروسته د اذان نه او دا په معنی د اعلام دی چې فعل دی د افعال قلوبو نه

نو هر کله چې دا په حکم د ان مکسورة الهمزه کې شو نو د دی لپاره محل : رفع شته ځکه یې ورسوله ونیلی دی او ماتن بالرفع وویلو دې سره یې احتراز وکړو د بالنصب نه ځکه عطف د اسم په لفظ د اسم د ان مکسورة الهمزه او مفتوحة دواړو باندې جائز دی، بالاتفاق، **ویشترط** او شرط دی په عطف د یو اسم کې په اسم د ان مکسورة الهمزه باندې بالرفع **مضی الخبر** ذکر کول د متکلم خبر د ان لره مخکې د معطوف نه یعنی مخکې والی د خبر په معطوف باندې او تقدیم د خبر په معطوف باندې عام دی، چې لفظاً وی لکه ان زید اقائم وعمرو یا تقدیرا وی مثال لکه ان زید او عمرو قائم دلته قائم مقدم دی په عمرو باندې تقدیرا اگر که لفظا مؤخر دی ځکه دا خبر دی د ان لپاره او عمرو مبتدا ده او خبر د دی محذوف دی، نو تقدیر دارنګې شو ان زیدا قائم وعمرو قائم او دا مضیت د خبر په معطوف باندې لفظا یا تقدیرا شرط دی لپاره د دی چې لازم نه شی کون د شی واحد معمول د عاملینو مختلفینو لپاره یا لپاره د دې چې لازم نه شی توارد د عاملینو مختلفینو په معمول واحد باندې، **خلافاً للکوفیین** خلاف کړی دی د جمهور ونه په خلاف کولو سره داسې خلاف چې ثابت دی کوفیانو لپاره ځکه دا کوفیان نه شرط کوی، لپاره د صحت د دی عطف مضیت د خبر په معطوف باندې لفظاً او تقدیراً د وجې د عدم توارد د عاملینو مختلفینو نه په معمول واحد باندې د ذوی په مذهب باندې ځکه عندهم ان عمل کوی په اسم کې فقط نه په خبر کې او خبر مرفوع دی د وجی د عامل معنوی نه لهذا ان زیدا وعمرو ذاهبان دا تراکیب ممتنع دی، د بصریانو په نزد باندې د وجی د عدم وجود د شرط نه چې هغه مخکې والی د خبر دی په معطوف باندې لفظاً یا تقدیراً او جائز دی عندالکوفیین ځکه ذوی د صحت د عطف لپاره مخکې والی د خبر په معطوف باندی لفظاً یا تقدیراً شرط نه وائی او دا اختلاف د بصریانو او د کوفیانو اولی ندی بلکه ثانوی دی، یعنی دا اختلاف بنا دی په بل اختلاف باندې هغه دا دی، چې بصریان وائی چې ان اسم لره نصب ورکړی دی. او خبر لره یې رفع ورکړی ده لهذا دا ترکیب ندی جائز ځکه بیا لازمیږی کون د شئ واحد معمول د عاملینو مختلفینو لپاره ځکه دا ذاهبان د دې حیثیت نه چې دا خبر دی د ان، کیږې رافع د دې لپاره ان چې دا عامل لفظی دی او د دی حیثیت نه چې دا خبر واخلی د عمرو لپاره بیا، د کیږی رافع د دی لپاره ابتداء چې عامل معنوی دی نو لازم شو اجتماع د عاملینو مختلفینو چې یو ان دی او بل ابتدا دی پدی رفع د ذاهبان کې او دا باطل دی او کوفیان وائی (۱) چې ان عمل د نصب کړی دی په اسم کې او خبر کې یې عمل د رفع ندی کړی بلکه خبر مرفوع دی بالابتداء، لکه څنګه چې مخکی د دخول د ان نه مرفوع بالابتداء وو اوس ذاهبان چې خبر شی د عمرو او ان دواړو لپاره نو نه لازمیږی توارد د عاملینو په معمول واحد کې ځکه ذاهبان که خبر د ان لپاره وائی او که د عمرو لپاره یې وائی، خو عامل پکې عامل معنوی دی، (۲) او بل دلیل د کوفیانو لپاره دا قول د شاعر دی،

والا فاعلموا آنا وآنتُم بُغَاة ما بَقِینا فی شقاقِ

چه دلته عطف د انتم راغلی دی په اسم د ان باندې چې په حکم د ان مکسورة الهمزه کې دی بې د مخکې والی د خبر نه په معطوف باندې لفظاً او تقدیرا ځکه دا انتم مقدم دی په خبر چې بغاة دی، لفظاً حقیقةً (۳) دلیل قوله تعالی إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَٱلَّذِينَ هَادُواْ وَٱلنَّصَٰرَىٰ وَٱلصَّٰبِـِٔينَ دا والصابئون عطف دی په محل د اسم د ان باندې بې د مضیت د خبر نه (۴) دلیل د دوی دپاره قیاس دی په لالنفي الجنس باندې لکه لا رجل ولا امراة افضل منك، جائز دی بالاتفاق، دارنگه ان زیداً وعمرو ذاهبان هم جائز دی. بصریان د دی نه جواب کوی، چې بغاة خبر د ان دی او انتم مبتدا دی او خبر یې محذوف دی چې هغه بغاة دی مثل زید وعمرو قائم او جواب د استدلال بالاية نه دا دی (۱) په دې کې تقدیم تاخیر دی ای ان الذین الخ، والصابئون کذلك (۲) من آمن بالله خبر د والصابئون دی او خبر د ان حذف شوی دی مثل زید عمرو قائم (۳) دا عطف دی په ضمیر مرفوع متصل د هادوا باندې چې دا په معنی د تابوا سره دی، دا الزام دی په دوی باندې ورنه دا ضعیف دی عند البصریین واما عند الکوفیین فلا او جواب د قیاس نه دا دی چې (۱) لاعامل نه دی په خبر کې (۲) او که ومنم چې عامل دی په خبر کې دا په لا کې جائز دی نه په ان کې ځکه لا مع الاسم په منزله د کلمه واحده گرځیدلې ده گویا کې په خبر کې عاملان نه دي جمع شوي بخلاف ان. فافهم

(۳) او مبرد او کسائی پدی مقام کې یوه خبره کړی ده، چې دا اسم د ان به خالی نوی یا به معرب وی او یا به مبنی وی که معرب وو نو بیا د بصریانو ملګری یو چې شرط د صحت د عطف لپاره مخکې والی د خبر دی په معطوف باندې لفظاً یا تقدیرا او که دا اسم د ان مبنی وو نو بیا د کوفیانو ملګری یو چې عطف د اسم مرفوع په اسم د ان باندې جائز دی بی د مخکی والی د خبر نه په معطوف باندې لفظاً یا تقدیرا ځکه هر کله چې ان په قریب کې عمل ونه کړو، نو په بعید کې په طریق اولی سره عمل نه شی کولی نو توارد د نه راځي او د مبرد او کسائي په نیز باندې ان زیدا و عمرو ذاهبان ندی جائز او انك وزید ذاهبان جائز دی نو مصنف رد وکړو په دوی باندې په **ولا اثر لکونه مبنیا** سره چې نشته دی جنس اثر د وجی د کیدو د اسم د ان نه مبنی په جواز د عطف کې په محل د اسم د ان باندې بی د مضیت د خبر نه عندالجمهور لکه ځنګه چې ان زیداً و عمرو ذاهبان ممتنع دی نو دارنګې انك وزید ذاهبان هم ممتنع دی د وجی د اشتراك دی دواړو ترکیبونو نه په علت دا متناع کې **خلافا للمبرد** او خلاف کړی دی د جمهورونه په خلاف کولو سره داسې خلاف چې ثابت دی مبرد او کسائي لپاره په مثل د **انك وزید ذاهبان** کې پدی شان سره چې مبرد او کسائي عطف د اسم په محل د اسم د ان باندې بې د مخکی والی د خبر نه په معطوف باندې لفظاً او تقدیرا په مثل د دی ترکیب کې جائز وائی او دلیل د هغوی دا دی چې هر کله عمل د ان ظاهر نه شو په اسم د ان کې د وجی د بنا د اسم د ان نه نو دی ان عمل ونه کړو، په دی خبر کې هم نو توارد د عاملینو په معمول واحد باندې نه راځي.

**جواب:** د طرفه د جمهورو نه دا دی لکه ځنګه چې ان زیداً و عمرو ذاهبان ممتنع دی د وجې د توارد نه چې تاسو یې هم منئ نو دغسې انك وزید ذاهبان هم ممتنع دی د وجې د توارد د عاملینو نه په

معمول واحد باندې څکه ان عمل کړی دی په اسم کې د نصب محلا بنا برا سميت د وجی د کيدو
ددې اسم نه مبنی نو اوس ذاهبان چې خبر د ان لپاره وائی نو عامل پکې ان شو او که د زيد لپاره يې
وائی نو عامل پکې معنوی د ی نو توار د راغی او دا ممتنع دی، **ولكن** او لفظ د لکن د حروف مشبه
**بالفعل نه كذلك** په شان د ان مکسورة الهمزه دی په جواز د عطف کې په محل د اسم د دی باندې نحو
ما خرج زيد لکن بكرا خارج وعمرو څکه دا لکن راځی، د استدراك لپاره او دا منافی ندی د معنی
اصلی ددې جملی سره چې دا جمله په خپل حال باقي پاتې شي. لکه څنګه چې ددې معنی اصلی
په منافی نه وو تاکيد پس جائز دی اعتبار د محل د اسم د لکن او عطف د يو شی په محل د هغې
باندې په رفع سره او جائز ندی عطف د يو شی په رفع سره په اسم د باقی حروف مشبه بالفعل باندې
چې هغه ان کان ليت لعل دی د وجې د عدم بقاد معنی اصلی نه په باقی حروفو کې پدی جمله کې
لهذا ندی معتبر محل د اسم د باقی حروف مشبه بالفعل لپاره، **ولذلك** او ددې وجی نه چې ان
مکسورة الهمزه معنی د جملی نه ورانوی بلکه باقی يې پاتې کوی سره د تاکيد نه او ان يې ورانوی،
**دخلت اللام** داخليږی لام چې وضع شوی دی د تاکيد د معنی د جملی لپاره **مع المكسورة** سره د ان
مکسورة الهمزه نه څکه دا هم د تاکيد لپاره وضع شوی دی، **دونها** نه په معنی د ان مفتوحة الهمزه
کې څکه دا په معنی د مفرد سره دی نه جمع کيږی د ده سره هغه شی چې واضع وضع کړی دی د
تاکيد د معنی د جملی لپاره چې لام ابتدائيه تاکيديه دی، يعنی لام ابتدائيه تاکيديه به په خبر د ان
مکسورة الهمزه کې راځي او مفتوحة الهمزه کې نه راځي، څکه دا واضع وضع کړی دی د تاکيد د
نسبت لپاره او نسبت په ان کې باقی دی او په آن کې باقی ندی، **على الخبر** او لام ابتدائيه تاکيديه سره
د ان نه چې راځي نو داخليږی په خبر د ان باندې نحوان زيداً لقائم نه په اسم د ان لپاره د دی چې لازم
نشی اجتماع او توالی د حرفينو د تاکيد چې يو ان مکسورة الهمزه دی او بل لام ابتدائيه تاکيديه
دی، او مختاره کړو دوی تقديم د ان نه د لام لپاره د ترجيح د عامل په غير عامل باندې څکه ان د
حروف عامله ؤ نه دی، او لام د حروف غير عامله ؤ نه دی، **او الاسم** يا داخليږی په اسم د ان باندې **اذا**
**فصل بينه وبينها** که چرې فصل راغلی وو په مينځ د دی اسم او دان مکسورة الهمزه کې په خبر سره
نحو قوله تعالى وان من شيعته لابراهيم **او على ما بينها** يا داخل کيږی په هغه شی باندې چې واقع وی
بين الاسم والخبر هغه عام دی چې معمول د خبروی نحو ان زيداً لطعامك اكل او يا ضمير فصل وی
نحو قوله تعالى ان هذا لهو القصص الحق او لام ابتدائيه تاکيديه په خبر د ان کې راځي پدی شرط
سره چې دا مثبت وو نه منفی فلايقال ان زيدا لما يقوم،
(٢) پدی شرط چې دا خبر فعل ماضی متصرف خالی د قدنه نه وه، فلا يقال ان زيد لقام او که دا
خبر د ان فعل ماضی وو غير متصرف يا فعل ماضی متصرف وو سره د قد نه بيا لام ابتدائيه په خبر
د ان کې راځي نحوان زيداً لنعم الرجل وان زيداً لقد قام **وفى لكن ضعيف** او دخول د لام ابتدائيه
تاکيديه په اسم د لکن يا په خبر د لکن باندې يا په هغه شی چې واقع وی بين الاسم والخبر ضعيف

دی، نفس جائز ځکه دی چې په دخول د لکن سره دا جمله په خپل حال باندې باقي پاتې ده، يعنې مفرد ندی جوړ شوی او ضعيف دی د وجی د عدم توافق او تناسب د لام ابتدائيه تاکيديه نه د لکن سره ځکه لام ابتدائيه د تاکيد لپاره راځي، او لکن د تاکيد لپاره نه راځي په خلاف د ان نه چې د هغې سره توافق او تناسب د لام شته دی، چې دواړه د تاکيد لپاره راځي مثال د لام ابتدائيه تاکيديه چې راغلی دی په لکن کې لکه دا قول د شاعر شو، ولكنني من حبها لعميد،

**وتخفف المكسورة**: **ربط**. هر کله چې فارغ شو د بيان د لغت اصلی د ان او ان نه نو شروع يې وکړه، په لغت فرعی د ان او ان کې،

**ترجمه**: وتخفف کولی شی ان مکسورة الهمزه په حذف د نون متحرك سره د وجی د وقوع د ده نه په طرف کې د وجی د ثقل د تضعيف او د کثرت استعمال نه **فيلزمها اللام** بيا لازم دی ددې ان مكسورة الهمزه سره پس د تخفيف نه **اللام** لام التاكيد په خبر د ده کې **مطلقا عند المصنف** برابره خبره ده، چې عمل يې کړی وی او که نوی هر چې دی په صورة د ابطال د عمل کې نو دا لام التاكيد لازم دی په خبر د دی کې لپاره د دی چې لازم نه شی التباس د ان مخفف د ان نافيه سره او هر چې دی په صورة د اعمال کې بيا هم لام التاكيد لازم دی طرداً للباب اګر چې التباس نه راځي، د ان مخفف من المثقل د ان نافيه سره، (۲) يا په صورت د اعمال کې لام الابتداء لازم دی د ان سره ځکه اکثر د اسماو نه اعراب لفظی نه ظاهريږی په هغی باندې د وجی د کيدو د اعراب د هغه نه تقديری يا محلی او خلاف ثابت دی سيبويه لره چې هغه وائی دا لام لازم دی په صورة د ابطال د عمل کې او په صورة د عمل کې لازم نه دی لحصول الفرق بالعمل بين النافية والمخففة،

**سوال**: نه وائی چې ان مخفف من المثقل سره لام التاكيد لازم دی خبر کې دا قاعده ستا منقوضه شوه په إِنَّا أَعْطَيْنَاكَ الْكَوْثَرَ إِنَّا كُلَّ شَيْءٍ خَلَقْنَاهُ بِقَدَرٍ سره اعطينا او خلقنا خبر دی ان مخفف او لام التاكيد ندی راغلی؟

**جواب**: مجيئت د لام التاكيد په خبر دان کې مشروط دی په شروط ثلاثه ؤ سره،

(۱) يو دا چې خبر به مثبت وی نه منفی ځکه لام واضع وضع کړی دی د اثبات لپاره نه د نفی لپاره.

(۲) دا خبر به جمله شرطيه نه وی ځکه لام راځي د تاکيد لپاره او شرط دلالت کوی په شك او ترد د باندې او تاكيد منافی دی د شك او تردد سره، (۳) خبر به فعل ماضی متصرف خالی د قد نه نوی پس اعتراض وارد نه شو په انا اعطيناك الكوثر او انا كل شي خلقناه بقدر باندې ځکه دلته خبر فعل ماضی متصرف خالی د قد نه راغلی دی، **ويجوز الغاءها** جائز دی ابطال د عمل د ان مخفف من المثقل غالبا په استعمال د کلام د عرب کې د وجی د فوات د بعض طرقو د مشابهت د دی ان د فعل سره لکه فتحه دا خير او ثلاثيت شو او اعمال جائز دی دی لره په طريقی د قلت سره ځکه دا ان مخفف من المثقل دی محمول دی، په مثقل باندې يا ددې وجی نه چې دا عمل کوی د وجی د مشابهت نه د فعل سره او د فعل نه چې يؤ شی حذف شی نو عمل کوی مثال د عمل لفظی د ان مخفف من المثقل نحو قوله تعالی ان كلا لما ليوفينهم **ويجوز دخولها على فعل** او جائز دی دخول د ان مخفف من المثقل

**على فعل** په فعل باندې **من افعال المبتدا** چې هغه دواخل او نواسخ د مبتدا او خبر دی لکه افعال قلوب افعال ناقصه افعال مقاربه شو نحو قوله تعالی وَإِن كَانَتْ لَكَبِيرَةً (كانت فعل ناقص) وَإِن نَّظُنُّكَ لَمِنَ الْكَاذِبِينَ ، (نظنك فعل قلب) ، وَإِن وَجَدْنَا أَكْثَرَهُمْ لَفَاسِقِينَ (فعل مقاربه) وَإِن يَكَادُ الَّذِينَ كَفَرُوا لَيُزْلِقُونَكَ بِأَبْصَارِهِمْ ، ځکه ان مخفف من الثقل مُحکی د تخفیف نه واجب الدخول وو په جمله اسمیه باندې لو دخول یې په جمله فعلیه باندې ممتنع وو، پس د تخفیف نه جائز دی دخول د دی په هغه فعل باندې چې د دواخلو د مبتدا او خبرنه وی رعایة للاصل بحسب الامکان **خلافا للکوفیین** خلاف ثابت دی کوفیانو لره په تعمیم د دخول کې او په تخصیص کې په د واخلو ده مبتدا او خبر نه په نفس دخول علی الفعل کې ځکه دا متفق علیه دی یعنی کوفیان او بصریان خلاف په نفس دخول د ان مخفف کې ندی بلکه بول متفق دی په دی خبره چې دا داخلیږی په فعل باندې پس د تخفیف نه بلکه خلاف په تعمیم او عا.م تخصیص کې دی پدی شان سره چې کوفیان قایل دی په تعمیم باندې او په عدم تخصیص او بصریان قایل دی په تخصیص او عدم تعمیم باندې دلیل د کوفیانو دا قول د شاعر دی.

باالله ربك ان قتلت لمسلما وجبت علیك عقوبة المتعمد

دلته ان مخفف من المثقل دی او داخل شوی دی په قتلت فعل باندې او دا قتلت فعل دی، او د نواسخ او د دواخل د مبتدا او د خبر نه ندی نو دا دلیل دی پدی خبره چې دا په مطلق فعل باندې داخلیږی خوا د واخلو د مبتدا او خبر نه وی او که نه وي او بصریان جواب کوی چې د اشاذ دی او شاذ سره نه قاعده جوړیږی او نه ورانیږی.

**وتخفف المفتوحة: ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د ان مخفف من المثقل نه پس شروع یې وکړه په بیان د آن مخفف من المثقل کې فقال **وتخفف** تخفیف کولی شی د ان مفتوحة الهمزه په شان د ان مکسورة الهمزه باندې بحذف نو نها المتحركة لانها اخر لكثرة التضعیف ولكثرت الاستعمال او والمفتوحة صفت دی د موصوف مقدر لپاره چې ان دی لکه چې المکسورة صفت وو د موصوف مقدر لپاره چې ان وو

**سوال:** ان مکسورة الهمزه پس د تخفیف نه عمل کوو احیانا نو ان مفتوحة الهمزه پس د تخفیف نه عمل کوی که نه کوی؟ **جواب: فتعمل فی ضمیر شان مقدر** عمل کوی ان مفتوحة الهمزه پس د تخفیف نه وجوبا په ضمیر شان کې داسې ضمیر شان چې مقدر دی،

**سوال:** ان مفتوحة الهمزه پس د تخفیف نه عمل په ضمیر شان کې ولې کوی،

**جواب:** لپاره د دی چې لازم نه شی مزیت د فرع په اصل باندې ځکه ان مفتوحة الهمزه اصل دی او ان مکسورة الهمزه فرع ده ځکه مشابهت د آن د فعل سره زیات دی او د ان مشابهت کم دی د فعل سره او د ان عمل پس د تخفیف نه موندلی شوی دی نحوقوله تعالی وَإِنَّ كُلًّا لَّمَّا لَيُوَفِّيَنَّهُمْ او دان عمل پس د تخفیف نه ندی موندلی شوی، پس مقدر کړو نحویانو ضمیر شان د ان مخفف من المثقل نه وروسته لپاره د دی چې دا عمل وکړی په هغه ضمیر شان کې چې مزیت د فرع په اصل باندې رانه شی،

**سوال** مزيت د فرع په اصل باندې خو اوس هم راغلى دى ځكه چې ان پس د تحفيف نه عمل لفظى كوى او ان عمل تقديرى كوى او عمل لفظى غوره دى د تقديرى نه؟

**جواب** عمل په مقدر كې دائما اولى دى د عمل نه په ملفوظ كې احيانا نو انحطاط د فرع د اصل نه راغلى او مزيت راغلى، **فتدخل على الجمل** او دا ان مفتوحة الهمزه پس د تخفيف نه داخليږى په جملو خبريو باندې مطلقا برابره خبره ده چې جمله خبريه اسميه وى او كه فعليه وى بيا فعليه عامه ده چې دا فعل د دواخل د مبتدا او د خبر نه وى او كه نوى خبريه سره احتراز راغلو د انشائيه نه ځكه دا په جمله انشائيه باندې نه داخليږى ځكه جمله انشائيه صالحه نده ددې خبرى چې دا مفسر شى د ضمير شان مقدر او محذوف لپاره مثال د ان مخفف من المثقل چې داخل شوى دى په جمله اسميه باندې نحو قوله تعالى وَءَاخِرُ دَعْوَىٰهُمْ أَنِ ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ مثال د جملى فعليى نحوقوله تعالى علم ان سيكون وشذ اعمالها في غيره او شاذ دى اعمال د ان مفتوحة الهمزه پس د تخفيف نه په غير د ضمير شان كې حكايت كړى دى، بعض اهل لغتو د اعمال د ان مفتوحة الهمزه پس د تخفيف نه په مضمر غير ضمير الشان كې په سعة د كلام كې نحواظن انك قائماو اعمال د ان مخفف من المثقل په مضمر غير ضمير الشان كې راځي د وجې د ضرورت شعرى نه كمافى قول الشاعر

فلوانك فى يوم الرخاء سا لتنى ۔ فراقك لم ابخل وانت صديقة

**ويلزمها** او لازم دى د ان مفتوحة الهمزه سره پس د تخفيف نه مع الفعل په حال كون دده كې چې متصل وى فعل متصرف سره **السين** سين نحو علم ان سيكون منكم **او سوف** نحوقول الشاعر،

واعلم فعلم المرا ينفعه ۔ ان سوف يا تى كل ماقدرا

**او قد** نحو قوله تعالى ليعلم ان قد ابلغوا رسالات ربهم او دا امور ثلاثه لازم دى د ان سره لپاره د فرق په مابين د ان مخفف من المثقل او ان ناصبه مصدريه كې ځكه سين او سوف چې داخل شى په مضارع باندې نوان ناصبه ورباندې نه داخليږى، ځكه هغه راځي د طمع او د رجاء لپاره او سين او سوف راځي، د استقبال لپاره سره د تاكيد نه او په مابين د دى كې منافات دى او ان ناصبه د قد سره هم نه راځي ځكه قد راځي د تحقيق لپاره او ان راځي د رجاء لپاره او په مابين د دى كې منافات دى،

**او حرف النفى** يا لازم دى د ان مخفف سره حرف النفى نحو قوله تعالى أَفَلَا يَرَوْنَ، أَلَّا يَرْجِعُ إِلَيْهِمْ أَلَّن نَّجْمَعَ عِظَامَهُۥ أَن لَّمْ يَرَهُۥٓ أَحَدٌ او دارنګې لازم دى د دى ان مخفف من المثقل سره لو نحو قوله تعالى وَأَلَّوِ ٱسْتَقَٰمُواْ عَلَى ٱلطَّرِيقَةِ او دا مصنف ندى ذكر كړى د وجې د قلت نه،

**سوال** حرف نفى ولې لازم ده د ان مخفف من المثقل سره؟ **جواب** ليكون كالعوض من النون المحذوفة نه لپاره د فرق بين الناصبة والمخففة ځكه حرف نفى لكه څنګه چې د ان مخفف سره راځي،نو دارنګې د ان ناصبه مصدريه سره هم راځي نحو لئلا يعلم اهل الكتاب،

**سوال** ته وائى چې ان مخفف من المثقل چې داخل شى په جمله فعليه نو لازم دى يو امر د امور خمسه ؤ نه دا قاعده ستا منقوضه شوه پدى قول د الله سره وَأَن لَّيْسَ لِلْإِنسَٰنِ إِلَّا مَا سَعَىٰ دلته ان داخل شوى دى، په فعل

باندې اویو امر د امور خمسه ؤ نه ندی راغلی؟ **جواب:** الفعل کې الف لام عهدی خارجی دی او مراد د دی په فعل متصرف دی او لیس فعل غیر متصرف دی او دا چې داخل شی په افعال غیر متصرفه ؤ باندې نو یو امر لازم ندی د وجی د عدم التباس نه ځکه چې ان ناصبه په فعل غیر متصرف باندې نه داخلیږی،

**سوال:** ته وائی چې الفعل کې الف لام عهدی خارجی دی او مراد د فعل نه فعل متصرف دی، دا خبره ستا منقوضه شوه پدی قول د الله باندې ان غضب الله علیهم علی قراة دلته ان مخفف من المثقل داخل دی په فعل متصرف باندې اویو امر د امور خمسه ؤ نه ندی راغلی،

**جواب:** الفعل کې الف لام عهدی خارجی دی مراد هغه فعل دی چې هغه په دعا کې نوی مستعمل شوی، او که دعا کې مستعمل شوی وو، نو بیا یو امر د امور خمسه ؤ نه لازم ندی، **وکان للتشبیه ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د ان او ان نه نو شروع یې وکړه په بیان د کان کې چې دا دریم حرف دی د حروف مشبه بالفعل نه نو وي ویل و کان للتشبیه او کان یې ذکر کړو وروسته د ان او ان نه د وجی د اشتراک د کان نه د ان او ان سره په تخفیف کې،

**سوال:** کان لفظ بسیط دی که مرکب دی، **جواب:** پدیکې دوه مذهبه دی،

(۱): مذهب د سیبویه، (۲): خلیل سیبویه وائی چې کان بسیط دی یعنی کلمه موضوعه براسها ده واضع دغسی وضع کړی ده (۱): حملاً علی اخواتها چې هغه ان ان اولیت او لعل دی،

(۲): ځکه دا حرف دی او اصل په حروف کې عدم ترکیب دی او خلیل وائی دا مرکب دی د کاف تشبیهی او د ان مکسورة الهمزه نه چې کان زیدا اسد اصل کې ان زید کالاسد وو، بیا دا کاف مقدم کړی شو لپاره د دی چې دلالت وکړی په انشاء د تشبیه باندې د اول وهلت نه او کسره د همزی د ان په فتحی سره بدل کړی شوه، ځکه دا کاف اصل کې جاره وو اوس اګر چې خارج شوی دی د حکم د جاره نه د وجی د ګرځیدو د ده نه جز د کلمه او کاف جاره داخلیږی په مفرد باندې او دوی رعایت د صورت وکړه نو فتحه یې ورکړه همزی د ان لره، اګر چې دا بمعنی ان مکسورة الهمزه دی نو کان زیدا اسد شو، **للتشبیه** دا وضع کړی شوی دی د تشبیه لپاره پدی شان سره چې اسم خپل ګرځوی مشبه به د خبر خپل سره مثال لکه کان زیدن الاسد شو چې زید مشبه او اسد مشبه به دی او کاف تشبیهی ګرځوی مدخول خپل مشبه به د غیر نحو زید کالاسد،

**سوال:** خبر د کان لپاره چې مشتقی راشی نو معنی د تشبیه نه صحیح کیږی نحو کان زیدا قائم ځکه دا خبر چې مشتقی وی دا متحد وی د اسم سره مصداقا او تشبیه تقاضه د مغائرت کوی، په مشبه او مشبه به کې او دلته مغائرت نشته عینیت او اتحاد دی لهذا بعض نحویان وائی چې کان زیدا قائم کې کان د ظن لپاره دی نه د تشبیه لپاره؟ **جواب:** خبر د کان چې مشتقی راشی نو دا به صفت ګرځوی د موصوف محذوفه لپاره نو بیا تشبیه صحیح کیږی، نو د کان زید قائم معنی دا ده چې کان زیدا رجل قائم، **وتخفف** او تخفیف کولی شی په کان کې د وجی د ثقل د تضعیف او د کثرت استعمال نه فتلغی

بیا لغوه کولی شی عمل د کان پس د تخفیف نه علی الافصح په استعمال افصح باندې د وجی د خروج د کان نه د مشابهت د فعل نه په فوات د فتحی دا خیر سره مثال لکه دا قول د شاعر شو،

کان ثدیاه حقان
ونهر مشرق اللون

دا کان مخفف دی د کاْن نه او پدی مفعول کې یې عمل ندی کړی چې ثدیاه مرفوع بالالف دی بنابر ابتدائیت او حقان ورله خبر دی چې دا تثنیه د حقة ده او تاء التانیث پکې حذف شویده په تثنیه کې د وجی د ضرورت شعری نه او که نه عمل ورکړی کان مخفف من المثقل لره په استعمال غیرافصح باندې نو کان ثدییه حقان به اوائی، او په صورت د الغاء کې دا کان محتمل د احتمالینو دی، (۱) یو احتمال دا دی چې دیکې ضمیر مقدر او محذوف دی هغه اسم دکان په شان دان مخفف من المثقل او دا احتمال هم شته چې ضمیر شان مقدر ندی د وجی د عدم داعی د تقدیر د ضمیر شان نه په شان د ان مخفف من المثقل او د کان باقی معانی بیان شوی دی په عنوان د حروف مشبه بالفعل کې، **ولکن** بل د حروف مشبه بالفعل نه لکن دی او دا یې ذکر کړو وروسته د کان نه د وجی د اشتراك ددې دواړونه په تخفیف کې او کان یې مخکی کړو د لکن نه په ذکر کې خکه کان راخې په ابتداء د کلام کې او لکن راخې په مینځ د کلامینو کې ځکه کان مخکی ذکر شو او لکن ذکر شو د کان او د لیت په مینځ کې،

**سوال**: لکن لفظ بسیط دی که مرکب دی؟ **جواب**: دیکې مذهبین دی په شان د کان باندې، (۱) بصریین، (۲) کوفیین، بصریین وائی چې دا لفظ مفرد دی او بسیط دی یعنی کلمه موضوعه براسها ده، واضع دغسی وضع کړی ده. (۱)، حملا علی اخواتها، (۲)، دا حرف دی او اصل په حروفو کې عدم ترکیب دی، او کوفیانْ وائی چې دا لفظ مرکب دی د لای نافیه او د ان مکسورة الهمزه نه چې مصدر دی په کاف زائده سره اصل کې، لاکان وو بیا کسره د همزی نقل شوه کاف ته پس د سلب د حرکت د کاف نه او همزه حذف شوه نو لکن شو، دا کلمه د لافائده کوی چې دا ما بعد ندی په شان د ما قبل بلکه دا مابعد مخالف دی، د ما قبل نه نفیاو اثباتا او دا ان دلالت کوی په تحقق د مضمون د جمله باندې **للاستدراك** د الکن وضع شوی دی د استدراك دپاره یعنی لکن واضع وضع کړی دی لپاره د دفع د توهم چې نا شی وی د کلام سابق نه مثال لکه کله چې ته وائی چې ما زید شجاع نو متوهم توهم وکړه، چې دا زید به سخی هم نوی نو ته دغه توهم لری کړی، پدی قول سره چې لکنه کریم د دی معنی د استدراك نه دا معلومه شوه چې د لکن نه مخکې به بله جمله وی، ځکه مصنف اوئل **تتوسط بین کلامین متغائرین معنی**، او واقع کیږی دا کلمه د لکن د دوه کلامینو په مینځ کې داسې کلامین چې متغائرین وی د یو بل نه نفیا واثباتا پدی شان سره چې یو به مثبت وی او بل به منفی وی، معنی په تغائر معنوی سره او برابره خبره ده چې تغائر لفظی پکې وی او که نوی معنی منصوب دی بنابر مفعول مطلق د متغائرین لپاره په اعتبار د موصوف محذوف سره چې تغائرا دی او دا محمول دی په موصوف محذوف باندې په الحاق د یا نسبتیه سره مثال د لکن چې واقع دی بین

الكلامين چې هغه متغائرين دی لفظا او معنی کقولك جاءنی زيد ولکن عمرالم يجئ او مثال د لکن
چې واقع وی بين الکلامين چې هغه متغائرين دی معنی نه لفظاً کقولك زيد حاضر لکن عمرا غائب
دلته لکن واقع بين الکلامين دی. او دا کلامين متغائرين دی معنی فقط چې زيد حاضر مثبت دی
او عمرو غائب منفی دی معنی او لفظ کې دواړه مثبت دی بل مثال لکه وَلَوْ أَرَىٰكَهُمْ كَثِيرًا لَّفَشِلْتُمْ
وَلَتَنَٰزَعْتُمْ فِى ٱلْأَمْرِ وَلَٰكِنَّ ٱللَّهَ سَلَّمَ ای لکن الله لم يراکم کثيرا **وتخفف** او تخفيف کولی شی، د لکن د
وجې د ثقل د تضعيف او د کثرت استعمال نه فتلغی بيا دا ملغی دی د عمل نه عند الجمهور، (۱)
وجې: انتفاء د علت د عمل نه چې هغه مشابهت دی د فعل سره په فتحه دا خير کې او په ادغام
کې، (۲) دا مشابه دی د لکن عاطفه سره لفظاً او معنی او هغه خو عمل نه کوی نو دا هم عمل نه
کوی، څکه مشبه حکم د مشبه به اخلی خلافا ليونس والاخفش څکه هغوی جائز کړی دی اعمال د
لکن پس د تخفيف نه قياسا علی اخواتها ليکن شارح رضی ويلی دی چې لاعرف له شاهد **او يجوز**
**معها** او جائز دی د دی لکن سره برابره خبره چې مشدد وی او که مخفف وی **الواو** واو نحو قوله تعالی
وَمَا كَفَرَ سُلَيْمَٰنُ وَلَٰكِنَّ ٱلشَّيَٰطِينَ كَفَرُوا۟ او پدی واو کې دوه احتماله دی،
(۱) يا عاطفه دی چې راغلی دی د عطف الجملة علی الجملة لپاره او يا اعتراضيه دی چې راغلی
دی په سر د جملهٔ معترضه کې او دا جملهٔ معترضه راغلی ده د دفع د توهم لپاره او شارح رضی ويلی
دی چې کون د دی واو اعتراضيه اظهر دی د کون د واو عاطفه نه څکه واو عاطفه د جمع لپاره
راځي، او مقصود د متکلم جاءنی زيد لکن عمرالم يجئنی کې افاده ده سامع او مخاطب ته چې دا
کلامين متغائرين واقع دی او متحقق دی په نفس الامر کې نه جمع بين الحکمين،
**سوال:** جملهٔ معترضه راځي په مينځ د کلام کې نه په اخير د کلام کې او د اخو په اخير د کلام کې
راغلی ده دويم: جملهٔ معترضه د دفع د توهم لپاره نه راځي او د اخو د دفع د توهم لپاره راغلی ده؟
**جواب:** دا قاعده کليه نده بلکه قاعده اکثريه ده پدی شان سره چې غالبا جملهٔ معترضه په مينځ کې
راځي او کله کله په اخير کې هم راځي او غالبا د دفع د توهم لپاره نه راځي او کله کله راځي لکه
دلته. **وليت للتمنی بل** د حروف مشبه بالفعل نه ليت دی، دا وضع کړی شوی دی د تمنی لپاره چې
هغه طلب د حصول د شی دی په سبيلی د محبت سره او دا ليت داخليږی په ممکن غير متوقع باندې
نحو ليت زيدا قائم او په غير ممکن باندې نحو ليت الشباب يعود **واجاز الفراء** او جائز کړی دی فراء
**ليت زيدا قائما** په نصب د معمولينو سره څکه دا ليت په معنی دا تمنی سره دی او متعدی دی مفعولينو
ته زيداً مفعول اول او قائما مفعول ثانی او کسائي وائی چې ليت زيدا قائما کې قائما منصوب دی،
څکه خبر دی د کان محذوفه لپاره ای ليت زيدا کان قائما بيا جملهٔ خبر د ليت دی دليل د دواړو
لپاره دا قول د شاعر دی،

**يا ليت ايام الصباء رواجعا** **او کنت فی واد العقيق رواتعا**

چې دی شاعر د ليت نه وروسته ايام الصبا او رواجعا دواړه منصوب لوستلي دی، نو فراء وائی چې ليت بمعنی اتمنی دی ای اتمنی ايام الصباء رواجعا او کسائي وائی چې دا خبر د کان دی ای ليت ايام الصباء كانت رواجعا، (٣): او محققين نحويان وائی رواجعامنصوب دی، ځکه حال دی د ضمير مستتر د خبر محذوفه دليت نه ای ليت ايام الصباء لنا كائنة حال كونها راجعة او دغسی ليت زيدا قائما کې قائما منصوب دی بنابر حاليت د ضمير مستتر د خبر د ليت نه فيكون التقدير ليت زيدا موجود قائما يا ليت زيدا لنا كائن قائما **ولعل** بل حرف د حروف مشبه بالفعل نه لعل دی **للترجي** دا راځي د ترجي لپاره چې هغه طلب د حصول د شئ دی په طريقه د محبت سره که هغه شی محبوب وو نحو قوله تعالى لعلكم تفلحون او طلب د حصول د شئ دی په طريقه د طمع او رجاء سره که هغه شی وو مکروه او مخوف نحو لعل الساعة قريب، **وشذ الجر بها** او شاذ دی جر ورکول مدخول لره **بها** په دې کلمه د **لعل** سره د وجې د ګرځولو د **لعل** نه د حروف جاره ؤ نه او دا **لعل** راغلی دی د حروف جاره ؤنه په لغت د عقيليه باندې لکه چې متی راغلی دی د حروف جاره ؤنه په لغت د هذيل باندې او سيرافی د مجرور بلعل لپاره يو شعر ويلی دی،

| | |
|---|---|
| وداع دعانا من يجيب الی الندی | فلم يستجبه عند ذاك مجيب |
| فقلت ادع اخری وارفع الصوت دعوة | لعل ابی المغوار منك قريب |

چې دا اب يو اسم دی د اسماء ستو مکبره ؤ نه چې مضاف شی غير د ياء د متکلم ته نو حالت رفعی کې واو سره راځي او نصبی کې الف سره او جری کښ په ياء سره راځي دلته په يا سره راغلی دی ځکه دا لعل د حروف جاره ؤنه دی او پديکې يې عمل د جر کړی دی او جمهور وائی چې لعل د حروف جاره ؤنه نه راځي، او د دی شعر نه جواب کوی چې ابی يا مجرور بالياء لوستلی دی يعنی په ياء سره راغلی دی حکاية چې بل خای مجرور بالياء راغلی وو د هغې نه يې حکايت کړی دی، (٢): يا دا مشهور وو په ابی المغوار سره او په ابوالمغوار سره چا نه پيژندلو نو د شهرت د وجی نه واجب دی حکايت په احوال ثلاثه ؤ کې په ياء سره، (٣): د اشاذ دی،

**سوال**: د ليت او لعل په مينځ کې څه فرق دی؟ **جواب**: په ديکې پنځه فرقونه دی: (١): د ليت نه وروسته دواړه اسمين منصوب راځي بخلاف لعل، (٢): د لعل نه وروسته اسم مجرور راځي بخلاف ليت، (٣): ضمير د متکلم چې اسم د ليت واقع شی نو مخکی د هغې نه نون وقايه راوړل اولی دی نحو قوله تعالى يٰلَيْتَنِي كُنْتُ تُرَابًا بخلاف لعل چې هلته بالعکس دی، (۴): ليت عام دی ممکنات او ممتنعات دواړو کې راځي او لعل په ممکنات کې راځي، فقط فيقال ليت الشباب يعود ولايقال لعل الشباب يعود، (۵): ليت مستعمليږي ممکن غير متوقع کې او لعل مستعمليږي په ممکن متوقع کې،

**سوال**: دا خبره ستا منقوضه شوه په لَعَلِّىٓ أَبْلُغُ الْأَسْبَابَ ۝ أَسْبَابَ السَّمٰوٰتِ فَأَطَّلِعَ سره دلته لعل په غير ممکن کی مستعمل شوی دی؟ **جواب**: دلته لعل بمعنی ليت دی لهذا وروسته اطلع کې د فا نه وروسته مضارع منصوب راغلی ده، بتقدير ان ځکه د فاء نه وروسته مضارع منصوبه راځي بتقدير ان وسته د تمنی نه نه د ترجی نه،

## الحروف العاطفة

**ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د حروف مشبه بالفعل نه نو شروع يې وکړه په حروف عاطفه ۇ کې او هر کله چې حروف عاطفه کثير وو د نورو حروفو غير عامله ۇنه نو دا يې مقدم کړه، لان العزة للتکاثر نو وي ويل الحروف العاطفة دا ما سياتی تر يو حده پورې بحث او بيان د حروف عاطفه ۇ دی، الحروف العاطفة موصوف صفت مرکب توصيفی په اعتبار د حذف د مضاف سره خبر دی د مبتدا محذوف لپاره فيکون التقدير هذا بحث الحروف العاطفة، (۲): يا دا مرکب توصيفی مرفوع دی بنا بر ابتدائيت خبر يې حذف دی چې هذه يا اذکرها دی (۳) يا دا مرکب توصيفي منصوب دی، بنابر مفعول به د فعل مقدر لپاره اعنی الحروف العاطفه يعنی هر کله چې تا حروف مشبه بالفعل ياد کړه نو اوس حروف عاطفه ياد کړه.

**سوال:** حروف عاطفه عند النحات څه ته وائی؟ **جواب:** حروف عاطفه عند النحات هغه حروفو ته وائی، چې عطف کوی مدخول خپل په ما قبل باندې.

**سوال:** ديته حروف عاطفه ولې وائی؟ **جواب:** عاطفه ماخوذ دی د عطف نه او عطف په لغت کې اما لی ته وائی او حروف عاطفه ته حروف عاطفه ځکه وائی چې دا مايل کوی مدخول خپل چې معطوف دی معطوف عليه ته په حکم او اعراب کې،

**سوال:** هغه حروف کوم دی چې د عطف لپاره راځي؟ **جواب:** **هی الواو والفاء دا** حروف عاطفه واو فاء ثم وحتی او اما بکسر الهمزه ځکه بفتح الهمزه د حروف شرط نه دی، او د ټولو نحويانو اتفاق دی چې دا حروف راځي د عطف لپاره صرف په بل کې اختلاف دی د جمهورو په نزد باندې دا د حروف عاطفه ۇ نه دی، او د بعض په نز باندې دا د حروف عاطفه ۇ نه ندی بلکه د بل نه ما بعد بدل غلط دی، د ماقبل نه او بدل غلط بدون بل غير فصيح دی، او سره د بل نه فصيح دی او مطر د دی په کلام د عربو کې ځکه دا وضع کړی شوی دی، لپاره د تدارک د مثل د دی غلط او مختار عند المصنف مذهب د جمهورو دی، نو بل يې د حروف عاطفه ۇ نه شمير کړو، او بل خلاف دی په ای کې چې جمهور وائی چې د دی نه مابعد عطف بيان دی د ماقبل لپاره او بعض وائی چې د دی نه ما بعد عطف دی، په ما قبل باندې دا د حروف عاطفه نه دی، او مختار عندالمصنف مذهب د جمهورو دی، نو ځکه يې ای وګرځوو د حروف تفسيريه ۇنه، نۀ د حروف عاطفه ۇ نه، او دا حروف عاطفه او لا منقسم دی نوعينو ته، (۱): واو فاء ثم حتی راځي د جمع لپاره يعنی د معطوف او معطوف عليه د واړو لپاره او د دی نه علاوه باقی شپږ راځي د احد الامرين لپاره بيا پدی شپږو کې، او، ام، اما، د احد الامرين لپاره راځي علی التعيين اوس واو فاء ثم او حتی د جمع لپاره څنګه راځي او باقی د احد الامرين لپاره څنګه راځي نو **فالاربعة الاولی** سره بيان د هغې کوی تفصيلا **ربط** هر کله چې فارغ شو مصنف د بيان د حروف عاطفه ۇ نه اجمالا نو شروع يې وکړه په بيان د حروف عاطفه ۇ کې تفصيلا نو فا په فالاربعة کښ تفصيليه ده.

**ترجمه**: پس څلور حروف عاطفه چې اول ذکر شوی دی چې واو فاء ثم او حتی دی، **للجمع** دا وضع کړی شوی دی د جمع لپاره پدی شان سره چې دا څلور واړه حروف دلالت کوی، چې دا حکم ثابت دی معطوف او معطوف علیه د واړو لره نه احدهما لره بیا برابره خبره ده چې ترتیب سره وي لکه فاء ثم حتی شو یا مطلقاً وي بې د دلالت نه په ترتیب باندې لکه واو شو فالواو،

**للجمع مطلقا لاترتیب فیها**: **ربط**: هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د ما به الاشتراك نه په ما بین د حروف اربعه ؤ کې نو شروع یې وکړه، په بیان د ما به الامتیاز د دغه حروف اربعه ؤ کې نو وې ویل **فالواو الخ** او دا فاء په الواو کې تفصیلیه ده، ځکه مخکې اجمال ذکر شو اوس تفصیل کوی

**ترجمه**: پس واو د حروف عاطفو نه کائن دی **للجمع** دجمع لپاره په مابین د امرینو کې امرین عام دی چې مفردین وی او که جملتین وی مفردین عام دی چې مسندین وی نحو زید کاتب وشاعر یا مسند الیهما وی نحو جاءنی زید و عمرو یامفعولین وی نحوضربت زیدا و عمرا یا حالین وی نحو جاءنی زید راکبا وضاحکا یا تمیزین وی نحو طاب زید نفسا وعلما یا غیر وی د دی نه یا راځي د جمع لپاره بین الجملتین په حصول د مضمون کې مطلقا بی د تقیید نه په ترتیب سره **لاترتیب فیها** دا ترجمه د مطلقا ده یعنی ترتیب په مابین د معطوف اود معطوف علیه کې وجودا یا عدما د واو نه نه معلومیږی بلکه دا به معلومیږی د واقع او نفس الامرنه په دلائلو خارجیه ؤ سره **خلافا للفراء وثعلب** وقطرب النحوی چې هغوی وائی دا واو راځي د ترتیب لپاره خو دا خبره د دوی صحیح نده،

(۱): لقوله تعالی إِنَّا أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ كَمَا أَوْحَيْنَا إِلَىٰ نُوحٍ وَالنَّبِيِّينَ مِن بَعْدِهِ ۚ وَأَوْحَيْنَا إِلَىٰ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ وَإِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ وَالْأَسْبَاطِ وَعِيسَىٰ وَأَيُّوبَ وَيُونُسَ وَهَارُونَ وَسُلَيْمَانَ، دلته عطف د ایوب یونس هرون او سلیمان راغلی دی په عیسی باندې او سره د دی نه چې دا مخکې وو د عیسی نه،

(۲): وقوله تعالی كَذَٰلِكَ يُوحِي إِلَيْكَ وَإِلَى الَّذِينَ مِن قَبْلِكَ چې وحی د نبي صلی الله علیه وسلم مؤخر ده د وحی د نورو انبیاو نه ځکه چې نبی علیه السلام خاتم النبین دی،

(۳): قوله تعالی وَاسْجُدِي وَارْكَعِي مَعَ الرَّاكِعِينَ (۴): قوله علیه السلام **توضا واغسل ذکرك** ابو علی فارسی وئلی دی اجمع نحاة البصرة والکوفة ان الواو للجمع المطلق او خلاف د ثعلب او فراء او قطرب النحوی لره اعتبار نشته او واو په استعمال د کلام د عربو کې په یوویشت معانیو سره راځي

(۱): واو حالیه نحو قوله علیه الصلوة والسلام **لا تصوم المراة وبعلها شاهد الاباذنه**.

(۲): واو الصرف کمافی قول الشاعر،

لا تنه عن خلق وتاتي مثله عار علیك اذا فعلت عظیم

(۳): واو بمعنی مع نحو قوله تعالی وَذَرْنِي وَالْمُكَذِّبِينَ، (۴): واو بمعنی رب کما فی قول الشاعر،

وبلدة لیس بها انیس الا الیعا فیرو الا العیس

(۵): واو قسمیه نحو قوله تعالی وَالْفَجْرِ ۝ وَلَيَالٍ عَشْرٍ (۶): واو ضمیری نحو قاموا.

(٧): واو علامه د جمع مذكر نحو قوله تعالى وَأَسَرُّوا النَّجْوَى الَّذِينَ ظَلَمُوا على تركيب بل مثال لكه واو د ضاربون شو، (٨): واو فاصله نحو عمرو، (٩): واو زائده نحو قوله تعالى حَتَّىٰ إِذَا جَاءُوهَا وَفُتِحَتْ أَبْوَابُهَا وَقَالَ لَهُمْ خَزَنَتُهَا، فَلَمَّا أَسْلَمَا وَتَلَّهُ لِلْجَبِينِ وكقولك مامن احد الا وله طمع او حسد، (١٠): واو مبالغه نحو قوله عليه السلام وان زنى وان سرق، (١١): واو بمعنى او كقولك تعالى مَثْنَىٰ وَثُلَاثَ وَرُبَاعَ وقول الشاعر:

الا لمعى الذى يظن بك الظن — كان قدرى وقد سمعا

(١٢): واو شرطيه نحو قوله تعالى وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الْجِبَالِ فَقُلْ يَنسِفُهَا رَبِّي نَسْفًا .

(١٣): واو تاكيديه كقوله تعالى وَمَا أَهْلَكْنَا مِن قَرْيَةٍ إِلَّا وَلَهَا كِتَابٌ مَّعْلُومٌ . أَوْ كَالَّذِي مَرَّ عَلَىٰ قَرْيَةٍ وَهِيَ خَاوِيَةٌ عَلَىٰ عُرُوشِهَا، قرية موصوف وهي خاوية جمله صفت والواو زائد للتاكيد وقول الشاعر

فلما صرح الشر — فامسى وهو عريان

اى وهو عريان زائد للتاكيد.

(١٤): استنافيه نحو قوله تعالى لِّنُبَيِّنَ لَكُمْ وَنُقِرُّ فِي الْأَرْحَامِ مَا نَشَاءُ، (١٥): واو اعتراضيه نحو قول الشاعر،

ان الثمانين وبلغتها — قد احوجتنى الى ترجمان

(١٢): بمعنى الباء نحو انت اعلم ومالك اى بمالك (١٧): واو الاشباع نحو قول الشاعر

دعوهم برا و بحرا لاكمن — خصو الدعاء بربهم فى الثانى

(١٨): بمعنى لكن يعنى للاستدراك، (١٩): للافتتاح يعنى پدى سره ابتداء د كلام كيږى،

(٢٠): واو تعليليه، (٢١): واو عاطفه نحو جاءنى زيد وعمرو **والفاء للترتيب** او فاء د حروف عاطفه ؤ نه دلالت كوى په جمع باندې سره د ترتيب نه بلا مهلة يعنى فاء دلالت كوى په درې خبرو باندې،

(١): چې دا حكم ثابت دى معطوف او معطوف عليه دواړو لره،

(٢): حكم ثابت دى معطوف عليه لره او لااو معطوف لره ثانيا،

(٣): چې دا حكم ثابت دى معطوف لره وروسته د معطوف عليه نه متصل بلا فصل بلا مهلة نحو جاءنى زيد فعمر او فاء په استعمال د كلام د عربو كې په اته معانيو سره راځي،

(١): فاء جزائيه نحو إِن كُنتُمْ تُحِبُّونَ اللَّهَ فَاتَّبِعُونِي يُحْبِبْكُمُ اللَّهُ، (٢): زائده نحو هَٰذَا فَلْيَذُوقُوهُ حَمِيمٌ وَغَسَّاقٌ، زيد فلا تضر به، خرجت فاذا اسد فى الدار، (٣): استنافيه نحو كن فيكون، (٤): تعليليه نحو قول الشاعر،

تمتع من شميم عرار نجد — فما بعد العشية من عرار

(٥): تفريعيه، (٦): تفصيليه، (٧): عاطفه،

**وثم مثلها**: اوثم د حروف عاطفونه په شان د فاء دى په ترتيب كې **مهلة**: سره د مهلت او تراخى نه په ثبوت د حكم كې لپاره د معطوف يعنى ثم دلالت كوى چې دا حكم ثابت دى معطوف لره وروسته د معطوف عليه نه مع الفصل او مع التراخى نحو جاءنى زيد ثم عمرو، **وحتى مثلها**: او حتى په شان د ثم دى په ترتيب كې او په تراخى كې ليكن دومره فرق دى چې مهلت او تراخى په حتى كې كمه ده او په ثم كې

زیاته ده، (۲): او بل فرق دا دی چې **ومعطوفها جزء من متبوعه** معطوف د حتی په اعتبار د اقتضاء د وضع سره جز دی د متبوع خپل نه چې معطوف علیه دی **لیفید** لپاره د دی چې دلالت وکړی دا عطف په حتی سره **قوة** په قوت باندې په معطوف کې نحو قدم الجیش حتی الامیر **او ضعفا** یا دلالت وکړي په ضعف باندې په معطوف کې نحو قدم الحاج حتی المشاة لپاره د دی چې دا خبر ممتا: وګرځي د کل نه په قوت او ضعف سره نو دا معطوف به غیر شی د معطوف علیه نه چې دا وګرځی صالح لپاره د دی چې وګرځولی شی غایه او انتهاء د هغه فعل لپاره چې متعلق شوی دی په کل پورې او دلالت وکړی انتهاء د فعل دی جزته په شمول د فعل باندې تولو اجزاء د کل له او اصل په حتی کې حتی جاره دی او د حتی جاره مدخول کله جز راځي او کله مجاور او ملاصق راځي او د حتی عاطفه مدخول فقط جز راځي نه مجاور او ملاصق لپاره د دی چې انحطاط د فرع راشی د اصل خپل نه،

**سوال** چې ته وائی معطوف د حتی به جز ضعیفه یا قویه وی د متبوع خپل نه او عطف تقاضه د مغائرت کوی نو عطف د جز په کل باندې ندی صحیح ځکه عطف د شی علی نفسه راځي ځکه دا جزیو فرد دی دا فراد و د کل نه **جواب**: معطوف د حتی جز د معطوف علیه وی لیکن دا جز به ضعیف وی یا به قوی وی نو دا جز په اعتبار د صفت سره مغائر شو د کل نه نو عطف د شی علی نفسه رانغی،

**سوال**: ته وائی چې معطوف د حتی به جزوی د متبوع نه دا قاعده ستا منقوضه شوه په اعجبتنی الجاریة حتی حدیثها سره چې دلته عطف د حدیثها راغلی دی، په الجاریة باندې او د هغې نه جز ندی؟

**جواب**: جز عام دی که حقیقة وی او که حکما وی نو حقیقة جز ندی خو حکما دی، ځکه چې صفت د شی جزوی د شی نه حکما او حتی دری قسمه دی،

(۱): حتی جاره، (۲): حتی ابتدائیه، (۳): عاطفه او تفصیل د دی تیر شوی دی په بحث د فعل او په حروف جاره ؤ کې او کون دحتی عاطفه مشروط دی په شروط اربعه ؤ سره،

(۱): حتی د عطف د اسم لپاره راځي نه د فعل لپاره، (۲): حتی د عطف د اسم ظاهر لپاره راځي نه د ضمیر لپاره، (۳): حتی د عطف د جز قویه یا ضعیفه لپاره راځي نه د عطف د کل لپاره،

(۴): مدخول د حتی به غایه وی لپاره د ماقبل،

## مابه الاشتراك درمیان حتی وثم

(۱) ثم راځی د جمع لپاره حتی هم راځي د جمع لپاره، (۲): دواړه دلالت کوی په ترتیب باندې.

(۳): دواړه راځی د مهلت او تراخی لپاره.

## مابه الامتیاز درمیان حتی وثم

(۱): مهلت په ثم کې زیات دی او په حتی کې کم دی، (۲): مدخول د حتی جزوی د ماقبل نه بخلاف ثم، (۳): ثم کې ترتیب لفظی موافق وی د ترتیب خارجی سره او حتی کې ترتیب لفظی موافق وی د ترتیب ذهنی سره او د ترتیب خارجی سره موافق وی او که نوی کله به موافق وی د ترتیب خارجی سره

نحو قدم الحاج حتى المشاة او كله معكوس وي نحو مات كل اب لي حتى ادم او كله نه بالكل موافق وي او نه بالكل بالعكس وي نحو مات الناس حتى الانبياء،

**واو واما وام لاحد الامرين مبهما، ربط** هر كله چې فارغ شو مصنف د بيان د معانی د حروف اربعه اول نه نو شروع يې وكړه په بيان د معاني د او ما ام كې نو وي ويل واو واما الخ،

**ترجمه**: كلمه دا واو او كلمه د اما بكسر الهمزه او ام هر واحد ددې امور ثلاثه ؤ نه وضع كړى شوى دى لپاره د دى چې دلالت وكړى چې دا حكم ثابت دى لپاره د احدالامرين يا د احد الامور لپاره په حال كون د دى احد كې مبهما چې غير معين دى عند المتكلم په نفس الامر كې يعنى هر واحد د دى حروف ثلاثه ؤ نه دلالت كوى چې دا حكم ثابت دى د احدهما لپاره لاعلى التعيين نه د مجموعى لپاره،

**سوال**: چې ته وائى چې هر واحد د دى حروف ثلاثه ؤ نه دلالت كوى په احدالامرين باندې مبهما نو دا قاعده ستا منقوضه شوه په جاءنى زيد او عمرو او بكر چې دلته كلمه دا و داحدالامرين مبها لپاره نده بلكه د احدالامور مبهما لپاره ده،

**جواب**: ذكر د تثنيه لپاره د بيان د ادنى مرتبى دى نه لپاره د حصر، (٢): يا لپاره د حصر دى خو مراد د حصر نه حصر اضافى دى په نسبت سره ماتحت ته نه په نسبت سره مافوق ته، (٣): يا دا عبارت په حذف د معطوف سره دى اى احدالامرين اوالامور،

**سوال**: چې ته وائى كلمه د او د احدالامرين لپاره راځي لاعلى التعيين دا قاعده ستا منقوضه شوه پدى قول د الله سره وَلَا تُطِعْ مِنْهُمْ ءَاثِمًا أَوْ كَفُورًا چې دلته احد الامرين نه دى بلكه د جمعې لپاره راغلى دى ځكه د دې ايت دا معنى نده چې د اثم او د كفور نه د احد هما لاعلى التعين اطاعة ونكړى بلكه معنى دا ده چې د دواړو اطاعت مه كوه؟ **جواب** (١): كلمه د او اصل كې مستعمل ده، د احدالامرين مبهم لپاره او دا عموم مستفا دى د وجى د وقوع د احد مبهم نه په سياق د نفى كې ځكه نكره چې واقع شى په سياق د نفى كې نو عموم فائده كوى،(٢): كلمه دا و بمعنى الواو ده فيكون المعنى ولا تطع منهم اثما وكفورا ځكه لكه څنګه چې په استعمال د كلام د عربو كې واو بمعنى او راځي كمافى قوله تعالى مَثْنَىٰ وَثُلَٰثَ وَرُبَٰعَ نو او بمعنى الواو هم راځي، لكه دلته شو او كلمه د او په استعمال د كلام د عربو كې نهه معانيو سره راغلى ده، (١): تخيير نحو تزوج هندا اواختها ،(٢): للاباحة نحو جالس الحسن او ابن سيرين او د اباحت او تخير په مينځ كې فرق دا دى، چې اباحت كې جمع بين الامرين جائز ده او تخيير كې نده جائز لهذا جالس الحسن او ابن سيرين كې د سامع لپاره درى كاره جائز دى كه د يو سره كيني،(٢): كه د دواړو سره كينى، (٣): او كه د دواړو سره نه كينى، (٣): للشك نحو لبثنا يوما او بعض يوم، (۴): للاخفاء والابهام نحو قوله تعالى حكاية وَإِنَّآ أَوْ إِيَّاكُمْ لَعَلَىٰ هُدًى أَوْ فِى ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ، او شك او اخفاء كې فرق دا دى، چې اخفاء كې متكلم عالم وى خو مقصود د ده ابهام راوستل وى په مخاطب باندې او په شك كې متكلم په خپله عالم نوى، (٥): للتنويع نحو قوله تعالى وَقَالَ سَٰحِرٌ أَوْ مَجْنُونٌ

(٢): بمعنی بل نحو قوله تعالی فَهِيَ كَالْحِجَارَةِ أَوْ أَشَدُّ قَسْوَةً ای بل اشد قسوة، الی مائة الف اویزیدون ای بل یزیدون وقوله علیه السلام او عابر سبیل ای بل عابر سبیل، (٧): بمعنی الواو نحو قوله تعالی وَلَا تُطِعْ مِنْهُمْ ءَاثِمًا أَوْ كَفُورًا (٨): بمعنی الا، (٩): بمعنی الی مثالها لالزمنك او تعطینی حقی ای الاان تعطینی حقی او الی ان تعطینی حقی. او اما بکسر الهمزه د حروف عاطفه ؤ نه دی او بفتح الهمزه د حروف شرط نه دی او امابکسر الهمزه په پنځه معانیو سره راغلی دی،

(١): للاباحة نحو جالس اماالحسن واماابن سیرین.(٢): للتخییر نحو تزوج اما ذی واما النائیه،

(٣): للتنویع نحو الکلمة اما اسم واما فعل واماحرف.(٤): للشك، (٥): للاخفاء مثال د دواړو لکه جاءنی امازید واماعمرو

او ام اولا درې قسمه دی: (١) ام تعریفی نحو لیس من امبرا مصیام فی امسفر. (٢): زائده نحو قوله تعالی افلاتبصرون، ام اناخیر. (٣): ام عاطفه دا بیا دوه قسمه دی.(١): متصله، (٢): منقطعه ام متصله دیته وائی چې د امابعد متصل کوی د ماقبل سره، او دا واقع کیږی وروسته د همزه د تسوی نه نحو قوله تعالی سَوَاءٌ عَلَيْهِمْ ءَأَنذَرْتَهُمْ أَمْ لَمْ تُنذِرْهُمْ (٣): واقع کیږی وروسته د همزی استفهامی نه چې پدی او په هغې سره طلب د تعیین کولی شي کقولك ارجل فی الدارام امراة او دیته ام معادله هم وائی، لمعادلتها للهمزة فی افادة التسویة په نوع اوله کې والاستفهام فی النوع الثانی،

## الفرق بینها

الاول لایستحق جوابا بخلاف الثانی، (٢): الاول یحتمل الصدق والکذب بخلاف الثانی،

(٣) الاول لاتقع الابین الجملتین، (٤): وهمافی تاویل المفردین بخلاف الثانی یقع غالبا بین المفردین قدیقع بین الجملتین لیستا بتاویل المفردین، **وام المتصلة**، او کلمه د ام داسې ام چې متصل وی، پدی سره یې احترز وکړو د ام منقطعه نه څکه د هغې حکم وروسته راروان دی او ام متصله دیته وائی چې متکلم طلب د تعین د یو شی کوی د سامع او مخاطب نه پس د علم ابهامی د متکلم نه او دهغې علامه دا ده چې د ام نه مخکې همزة التسویة راغلی وی یا همزه استفهامیه راغلی وی، څکه وائی چې **لازمة لهمزة الاستفهام** چې دا ام متصله لازم دی د همزة الاستفهام سره لفظاً یا تقدیرا پدی شان سره چې ام متصله غیر منفك دی د همزه استفهامی نه، (٢): یا دا ام متصله ملزوم دی او همزه استفهامی ورسره لازم ده پدی شان سره چې ام متصله بدون همزة الاستفهام نه راځي،

**سوال:** چې ته وائی ام متصله لازم دی د همزة الاستفهام سره نو د دی نه دا معلومه شوه چې همزه ملزوم او ام ورسره لازم دی او قاعده دا ده چې وجود د ملزوم مستلزم وی وجود د لازم لره یو ملزوم بی د لازم نه نه راځي، دا قاعده ستا منقوضه شوه په ازید قائم سره چې دلته همزه راغلی ده او ام ورسره نشته،

**جواب:** چې دلته لازمة په معنی اصطلاحی سره ندی بلکه په معنی لغوی سره دی چې غیر منفك لهمزة الاستفهام دی، (٢): یا لازمة په معنی د ملزومة سره دی لکه راضیة چې په معنی د مرضیة سره دی،

**سوال:** نه وائی چې ام متصله لازم دی د همزه استفهامی سره دا قاعده ستا منقوضه شوه پدی قول شاعر سره: لعمرما ادری وان كنت داريا بسبع رميت الجمرام بثمان
چې دلته ام راغلی دی بغير د همزی نه.
**جواب:** وام المتصلة لازمة الخ همزه استفهاميه عامه ده كه لفظأوی او كه تقديرا وی دلته تقديرا
**يليها احد المستاويين والاخر الهمزة تركيب:** (١): يلی مضارع معلوم او ها ضمير منصوب متصل مفعول راجع بسوی همزه او احد المتساويين فاعل د يلی والاخر مرفوع معطوف علی احد المتساويين والهـ معطوف دی په ضمير منصوب د يلی نو عطف د اسمين راغی په معمولينو مختلفين د عامل و حـ باندې او دا جائز دی بالاتفاق،
**ترجمه:** واقع كيږی د ام متصل نه وروسته متصل بلافصل احدالمستاويين يو د متساويين نه چې معطوف دی **والاخر** او مستوی اخر واقع كيږی، وروسته د همزی نه متصل بلافصل چې معطوف عليه دی **بعد ثبوت احدهما** دا ظرف متعلق دی وروسته د طلب التعيين پورې بنا په مذهب د هغه چا باندې چې تقديم دمعمول د مصدر جائز وائی په مصدر باندې چې دا معمول ظرف يا جار مجرور وو،
(٢): يامتعلق دی په لطلب التعيين مقدر او محذوف پورې او ما بعد لطلب التعيين د هغې لپاره تفسير دی بنا په مذهب د هغه چا باندې چې هغه تقديم دمعمول د مصدر په مصدر باندې جائز نه وائی مطلقا،
**ترجمه:** ام متصله وروسته د همزه استفهامی نه راځي **لطلب التعيين** لپاره د طلب كولو د متكلم تعين د احدالامرين د سامع او مخاطب نه پس د ثبوت د علم د متكلم نه په حصول د احدالامرين باندې ځكه ام متصله او همزه مجموعه په معنی د ای سره دی، او ددې امرين نه تعبير كولی شی په مفرد سره هغه مضاف اليه واقع كيږی د ای لپاره نحو ارجل فی الدارام امراة ای ايها فی الدار د دی ما قبل عبارت د مصنف نه دوه خبری معلومی شوی،
(١): معطوف عليه په همزه سره متصل وی د معطوف د ام سره،
(٢): دا مستعمليږی لپاره د طلب د تعين اوس پدی دوه شرطونو باندې دوه مسلی متفرع كوی، **ومن ثم د** دی وجی نه چې ده ام متصله نه وروسته واقع كيږی متصل بلا فصل يو د متساويين نه چې هغه معطوف دی او متساوی اخر واقع كيږې وروسته دهمزی نه متصل بلا فصل چې هغه معطوف عليه دی نو ندی جائز دا تركيب **ارايت زيد ام عمرا** ځكه متساويان دلته زيد او عمر دی او يو د دی دواړونه د همزی نه وروسته ندی راغلی بلكه د همزی نه وروسته رايت راغلی دی، او دا يو د متساويين نه ندی لهذا ازيدا رايت ام عمرا جائز دی او ارايت زيد ام عمرا ندی جائز عند المصنف او سيبويه ويلی دی چې ازيدا رايت ام عمرا احسن او افصح دی او ارايت زيدا ام عمرا جسن او فصيح دی او د كافيه بعض نسخو كې راغلی دی يليها احد المتساويين والاخر الهمزه علی الافصح ومن ثم ضعيف ارايت زيد ام عمرا،
**سوال:** د مصنف د دی عبارت نه معلوم شو عدم جواز د دی تركيب او سيبويه ورته جائز او حسن ويلی دی نو د دی كلامين په مينځ كې تناقض راغی او كومه نسخه كې چې وضعف راغلی دی په هغې

باندې دا اعتراض دی چې حکم په ضعف باندې د وجی د تنزل د دی ترکیب نه د مرتبی د افصحیت
نه فصیحیت ته ندی مناسب ځکه کوم شی چې حسن او فصیح دی هغه نه شی شمیرلی ضعیف.
جواب: دا ترکیب حسن او فصیح دی عند السیبویه او ممتنع یا ضعیف دی، عند المصنف وللناس
فیما یعشقون مذاهب ومن ثم او ددې دوجی نه چې ام متصله راځي د طلب د تعیین لپاره پس د ثبوت د
علم نه په حصول د احدالامرین عندالمتکلم کان دی. جوابها جواب د ام متصله بالتعیین په تعیین د
احدالامرین سره ځکه سوال شوی دی د تعیین د احدالامرین نه دون نعم او لا او ندی جائز جواب په نعم اولا
سره ځکه دا نعم اولا دلالت نکوی په تعیین د احدالامرین باندې په خلاف د ام او دا مامع الهمزه نه نحو
اجاءك زید ام عمرو اجاءك امازید واما عمرو، هلته جواب په اما او او سره صحیح دي، ځکه مقصود
تعیین د احدهما دی نه تعیین د امرین او سوال چې په ام سره وشی د هغې د جوابونو طریقی دوه دی.
(۱): جواب کولی شی په تعین د احدالامرین سره دیکې اشاره ده تصویب د سائل ته یا په نفی د دواړو
سره او پدیکې اشاره ده تخطیه د سائل ته،
سوال: نه وائی چې جواب فقط په تعیین سره دی او ام متصله سره چې سوال وشي نو د جوابونو طریقی
دوه دی کمامر، جواب: دا اعتراض به تا هله کولو چې دلته حصر حقیقی وی لیکن دا حصر حقیقی
ندی بلکه اضافی دی، او هر کله چې قاعده مستعمل وه په تعین باندې نو ځکه مصنف تفریع کړه په
تعین باندې دوه مسلی او راتله وکړه مصنف په دوه ځله اسم اشاره سره اشاره یې وکړه دی خبری ته
چې اوله مسله متفرع ده، په شرط اول باندې او دویمه متفرع ده په شرط ثانی باندې او که چرې
مصنف اتیان کړی وي په یو اسم اشاره باندې نو دا توهم راتلو چې دا دواړه شرطین مو قوف علیه د
دواړو تفریعینو دی والامر لیس کذلك نو پدی سره دفع د اعتراض وشوه،
سوال: مصنف لره پکار وه چې یوځل یې ثم ذکر کړی وی او دواړه به یې تفریع کړی وی په طریقه د لف
نشر مرتب سره په مذکور باندې نو اختصار به راغلی وو په عبارت کې نو دوه ځله یې اسم اشاره ولې
ذکر کړه؟ جواب: که اختصار یې کړی دی په یوه اسم اشاره باندې نو بیا دا توهم راتلو چې هر واحد د
دی شرطین نه داخل دی په هر واحد د تفریعین کې اوامر دارنګې ندی نو د دغه توهم دفع کولو لپاره
یې دوه ځله اسم اشاره ذکر کړه،
مابه الاشتراك په مینځ دام او اما کې دری دي،(۱): دری واړه راځي د احدالامرین لپاره لاعلی التعیین،
او مابه الامتیاز دا دی(۱): چې ام متصله وروسته دهمزه استفهامی نه راځي وجوبا بخلاف او واما
چې دا کله د همزی استفهامی نه وروسته راځي او کله نه راځي
(۲): ام متصله چې وروسته د همزی استفهامی نه راشي نو یو د متساویین نه واقع کیږي وروسته د
ام متصله نه اوبل واقع کیږي وروسته د همزه استفهامی نه بخلاف او ، اما د هغې جواب کولی شی
په نعم اولا سره والمنقطعة:ربط: هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د ام متصله نه نو شروع یې وکړه په
ام منقطعه کې نو وي ویل المنقطعه دا صفت دی تقاضه د موصوف کوی نو موصوف ورله محذوف
دی چې ام دی په تاویل د کلمة سره،

**ترجمه:** والمنقطعة او ام منقطعة **كبل** په شان د بل دی په معطوف علیه کې. **والهمزة** او په شان د همزی دی په معطوف کې پدی شان سره چې دا ام منقطعة په ماقبل کې اعراض فائده کوی دا معنی دبل ده او اما بعد کې شك پیدا کوی دا معنی د همزه ده او دا ام منقطعه واقع کیږي وروسته د خبر محض نه لکه دا مثال د ماتن شو انها لابل ام شاء.

**ترجمه:** په تحقیق سره دغه یو تن چې زه وینم هغه لره دا خامخا او ښان دی دا جمله خبریه ده او کله چې ده ته معلومه شوه چې دا اوښان ندی نو ده اعراض وکړه د اخبار نه او اظهار د شك یې وکړه په دی خبره باندې چې دا بیزی دی او که بل شی دی، نو سوال یې وکړو د سامع نه ام شاء ای بل هی مشاء چې دا شاء خبر دی د مبتدا محذوف لپاره چې هغه هی دی ځکه ام منقطعه داخلیږی په کلام باندې نه په مفرد باندې ځکه دا دلالت کوی، چې مابعد منقطع دی د ماقبل نه او انقطاع به هله راځي چې د ام منقطعه نه وروسته مستقل کلام شی بل مثال نحو قوله تعالی تنزیل الکتاب لاریب فیه من رب العالمین ام یقولون افتراه چې دا ام منقطعه واقع شوی دی وروسته د خبر محض نه.

(۲): دا واقع کیږی وروسته د همزی نه چې د انکار لپاره وی نحو قوله تعالی الهم ارجل یمشون بها ام لهم اید یبطشون بها چې دا اضراب یې کړی دی د استفهام اول نه استفهام ثانی ته.

(۳): ام منقطعه واقع کیږی وروسته د هل نه نحو قوله تعالی هَلْ يَسْتَوِي الْأَعْمَىٰ وَالْبَصِيرُ أَمْ هَلْ تَسْتَوِي الظُّلُمَاتُ وَالنُّورُ اوام منقطعه ته ام منقطعه وائی چې د امابعد کلام منقطع دی د ماقبل نه

## فرق د رمیان ام متصله ومنقطعه

(۱): ام منقطعه راځي د اضراب لپاره بخلاف المتصله، (۲): دا واقع کیږی بعد الخبر بخلاف المتصلة، (۳): ام متصله واقع کیږی پس د همزه تسویه نه بخلاف المنقطعه،

(۴): پس د ام منقطعه نه متصل کلام وی بخلاف ام متصله،

**سوال:** دا خبره ستا منقوضه شوه په انها لابل ام شاء باندې چې دلته ام منقطعه دی او مابعد د دی نه مفرد دی نه کلام، **جواب:** دا خبر د مبتدا محذوف دی ای هی شاء **واما** او ذکر کول د متکلم کلمه د اما لره مخکې د معطوف علیه نه **لازمة مع اما** لازم دی سره د اما نه دپاره د دی چې معلوم شی سامع ته د اول وهلت نه چې دا کلام د متکلم بنا دی په شك باندې نحو جاءنی امازید واما عمرو **جائزة مع او** او ذکر کول د اما په سر د معطوف علیه کې جائز دی سره د اونه یعنی چې متکلم دا قصد وکړی چې زه دا یو شی عطف کوم پدی بل باندې په کلمه د او سره نو بیا د متکلم خوښه ده چې په سر د معطوف علیه کې اما ذکر کوی او که نه ذکر کوی نحو جاءنی اما زید او عمرو او بعض نحویان وائی چې دا اما د حروف عاطفونه ندی ځکه که دا د حروف عاطفونه وی نو مخکې د معطوف علیه نه به نه واقع کیدو، ځکه حرف عطف مخکې د معطوف نه راځي نه د معطوف علیه نه،

(۲): او دارنګې واو عاطفه به نه داخلیدی پدی باندې ځکه دخول د حرف عطف په حرف عطف باندې ندی جائز د دی دوه خبرونه معلومه شوه چې دا عاطفه ندی جواب د طرفه د جمهورونه دا دی

چې کوم اما ذکر شوی دی، په سرد معطوف علیه کې دا اما عاطفه ندی بلکه ذکر شوی دی لپاره د تنبیه ورکولو سامع او مخاطب ته په شك باندې د اول وهلتېنه او د دویم نه جواب دا دی چې دا واو عاطفه چې داخل شی په اما باندې نو دا اوهم د عطف لپاره دی او اما هم د عطف لپاره دی، لیکن مال او مرجع د دواړو غیر غیر دی واو عطف د اما ثانی کوی په اما اولی باندې او اما عطف د مابعد کوی په ما بعد د اما اولی باندې، **ولا وبل ولكن لاحدهمامعينا**،لا اوبل او لکن د حروف عاطفونه راغی لپاره د نسبت د حکم احد الامرین ته چې هغه معطوف علیه او معطوف دی په حال کون ددې احد الامرین کې چې معین وی پدی شان سره چې لاثقی د حکم کوی د معطوف نه او ثابتوی معطوف علیه لره نحو جاءنی زید لاعمرو پدیکې قصر افراد او قصر قلب دواړه جوړیږی پدی شان سره که مخاطب معتقد د عکس وو نو قصر قلب او که معتقد د اشتراك وو نو قصر افراد او لا په کلام مثبت کې راځي نه په کلام منفی کې او بل عام دی په کلام مثبت کې هم راځي او منفی کې هم راځي بل چې په کلام مثبت کې راشی نو په هغې کې دوه مذهبه دی (١) جمهور (٢) ابن حاجب، جمهور وایې چې دا بل حکم مذکوره ورکوی مابعد لره چې معطوف دی اومعطوف علیه گرځوی په حکم د مسکوت عنه کې او ابن حاجب وایې چې دا بل حکم نفی کوی د معطوف علیه نه او ثابتهٔ وی یې معطوف لره نحو جاءنی زیدبل عمرو ترجمه عند الجمهور زیدراغلی دی نه حطا شوم بلکې عمرو راغلی دی او د زید پته ماته نشته چې راغلی دې او که نه.

ترجمه عندابن حاجب راغلی دی ماته زیدنه خطا شوم بلکی عمرو راغلی دی او زید نه دی راغلی او دا بل چې راشې په کلام غیر موجب کې نوپه هغې کې درې مذهبه دی. (١) جمهور (٢): ابن حاجب (٣): مبرد جمهور وائی چې دا بل حکم اصلی ورکوی معطوف لره او معطوف علیه په حکم د مسکوت عنه کې گرځوی،

(٢): او ابن حاجب وائی چې دا بل حکم مذکوره ورکوی معطوف لره اومعطوف علیه لره اصل حکم ورکوی (٣) او مبرد وایې چې دا بل حکم مذکوره ورکوی معطوف ته او معطوف علیه په حکم مسکوت عنه کې گرځوی نو مبرد په معطوف علیه کې د جمهورو ملگری دی، او په معطوف کې د ابن حاجب ملگری دی نحو ماجاءنی زید بل عمرو (**ترجمه** عندالجمهور) ندی راغلی ماته زید نه خطاء شوم بلکه عمرو راغلی دی او د زید نه نه یم خبر چې راغلی دی او کنه دی،

**ترجمه** عند ابن حاجب: زید ندی راغلی نه خطاء شوم بلکه عمرو ندی راغلی او زید راغلی دی

**ترجمه** عند المبرد) زید ندی راغلی نه خطاء شوم بلکه عمرو ندی راغلی او د زید نه نه یم خبر چې راغلی دی او کنه دی راغلی او بل درې قسمه دی،

١ اضرابی کمامر، (٢) تفسیریه، (٣): للترقی مثال د دواړو واذا تنازع الفعلان بل العاملان **ولكن لازمة للنفى** لکن لازم دی د نفی سره پدی شان سره چې لکن بی د نفی نه نه مستعملیږی بلکه د ده سره د انفی لازمه ده، او دا نفی عامه ده چې مخکې وی نحو ماجاءنی زید لکن عمرو یا وروسته وی نحو

جاءني زيد لكن عمرو لم يجي او دا لكن كه چري د عطف د مفرد على المفرد لپاره وو نو نقض دلا دى يعني نفى د حكم كوى، د معطوف عليه نه او ثابتوى يې معطوف له نحو ماقام زيد لكن عمرو اى لكن قام عمرو او كه چرى د عطف الجمله على الجمله لپاره وو نو دا كله راځي وروسته د نفى نه او كله راځي وروسته د مثبت نه په شان د بل د نفى نه چې وروسته راشي نو د اثبات د مابعد لپاره راځي نحو ماجاءني زيد لكن عمرو قد جاء او كه د اثبات نه وروسته راشي نو د نفى د مابعد لپاره راځي نحو جاءني زيد لكن عمرو لم يجي او پدى لكن كې خلاف دى د نحويانو او بيانيين نحويان وايې چې د قصرافراد او قلب دواړو لپاره راځي او بيانيين وائي چې د قصر افراد لپاره راځي نه قصر قلب لپاره،

## حروف التنبيه

**ربط:** هر كله چې فارغ شو مصنف د بيان د حروف عاطفونه نو شروع يې وكړه په بيان د حروف التنبيه كې او اضافت د حروف التنبيه ته اضافت د دال دى مدلول ته،

ترجمه: هغه حروف چې دلالت كوى په ايقاظ د سامع او مخاطب باندې مشهور درى دى، الا، اما، ها، او مجموعه پنځه دى درى دا دى، او څلورم يا ده نحو يَٰلَيْتَنِي كُنتُ تُرَٰبًا او پنځم كلا دى نحوقوله تعالى كَلَّآ إِنَّ ٱلْإِنسَٰنَ لَيَطْغَىٰٓ اى الا ان الانسان ليطغى الاو اما داخليږى په جمله باندې لپاره د ايقاظ د سامع او مخاطب دى، لپاره چې غافل نه شى سامع د هغه مضمون نه چې متكلم القاء د هغې كړيده سامع ته او كيني دا مضمون د جملى په ذهن د سامع كې او جمله عامه ده كه خبريه وى او كه انشائيه وى او انشائيه عامه ده كه امر وى، او كه نهى وى كه استفهام وى كه تمنى وى نحوالازيد قائم اما زيد قائم الاضرب زيدا الالاتضرب زيدا او هاء تنبيهى كله داخليږى په جمله باندې نحو ها زيد قائم او كله داخليږى په مفرد باندې نو غالبا داخليږى، په اسم اشاره باندې (لپاره دايقاظ د مخاطب لپاره د دى چې لازم نه شى لغويت د اشاره د متكلم د وجى د غفلت د سامع نه) متصل بلا فصل نحو هذا،

(۲): او كله داخليږى په ضمير مرفوع منفصل باندې نحو قوله تعالى هَٰٓأَنتُمْ هَٰٓؤُلَآءِ، (۳): او كله داخليږى په صفت د اى منا دى نحو قوله تعالى يَٰٓأَيُّهَا ٱلْمُزَّمِّلُ اى موصوف ها حرف تنبيه المزمل صفت،

(۴): كله داخليږى په لفظ د الله مقسم به باندې په وقت د حذف د حرف قسم كې نحو لاها الله او پديكې التقاء د ساكنينو على غير حده جائز ده.

**الا شپږ قسمه دى** (۱): كله راځي د تنبيه لپاره نحو قوله تعالى أَلَآ إِنَّهُمْ هُمُ ٱلْمُفْسِدُونَ أَلَآ إِنَّ أَوْلِيَآءَ ٱللَّهِ لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ (۲): للتوبيخ كقول الشاعر الاارعواء لمن ولت شيبته،

**ترجمه:** ايا ارتداع د عمل قبيح نده موجود شوى د هغه سړى لپاره چې زمانه د ځوانى يې تيره شويده.

(۳): للتمنى نحو الاماء ماء بارد (۴): للعرض نحو الاتنزل بنا فتصب خيرا، (۵): للتحضيض نحو قوله تعالى أَلَا تُقَٰتِلُونَ قَوْمًا نَّكَثُوٓاْ أَيْمَٰنَهُمْ، (۲): لاستفهام النفى نحوالازيد قائم، ترجمه: ايا زيد ندى ولاړ

**اما دوه قسمه دی** (۱): للتنبيه كما في قول الشاعر،

اما والله لو تجدين وجدى الى من بالعراق تشويقنى

ترجمه: ايا زيد ندى ولاړ

(۲): د استفهام د نفی لپاره نحو اما زيد قائم،

او ها په دری قسمه ده: (۱): ها تنبيهی نحو هَاَنْتُمْ هٰؤُلَاءِ (۲): اسم فعل بمعنی خذ نحو ها الكتاب ای خذ الكتاب او كله كله متصل كيږی د ها اسم فعل په اخير پوری كاف حرفی خطابی كما فی قول ابن مالك: هاك حروف الجر وهی من الى حتى خلا حاشا عدا فی عن علی

(۳): ها ضميری نحو ضربها،

## حروف النداء

هر كله چې فارغ شو مصنف د بيان د حروف التنبيه نه نو شروع يې وكړه په بيان د حروف النداء كې ديكې هم اضافت د دال راغلیٰ دی مدلول ته،

**ترجمه**: هغه حروف چې دلالت كوی په اواز باندې دا حروف په نز د مصنف باندې پنځه دی، يا، وايا، وحيا وای، وهمزه، او په نز د ابن مالك باندې اوه دی، پنځه دغه مذكور دی او شپږم. ا، او اوم، وا، دی، **يا اعمها الخ** غرض د مصنف ددې عبارت نه فرق استعمالی بيانول دی په مينځ د دی حروفو كې نو يا عام دی د دی حروف نداء نه په استعمال كې ځكه دا مستعمليږی په منادی قريب او بعيد دواړو كې، او جارالله ذ مخشری ويلی دی چې دا يا راځی د بعيد لپاره نو په هغه باندې اعتراض وازديږی په ياالله سره چې دلته اواز الله ته شوی دی او الله خو قريب دی نه بعيد،

**جواب**: بعيد عام دی كه حقيقتا وی او كه حكما وی دلته حكما دی ځكه الله د وجی د عظمت د شان خپل نه گرځيدلی دی په منزله د بعيد باندې ليكن مذهب د مصنف غوره دی د مذهب د جارالله ذ محشری نه ځكه يا مستعمل شويده په قريب او بعيد كې يو شان او تاويل خلاف الاصل دی، **وايا وهيا للبعيد** ايا او هيا راځی د منا دی بعيد لپاره ځكه پديكې حروف زيات دی او زيات د حروفو د لالت كوی په زيادت د مسافت باندې **وای** او كلمه د ای په فتحی د همزه او سكون د ياء سره **والهمزة** او همزه مفتوحة **للقريب** دا دواړه راځی د منادی غير بعيد دپاره بيا عامه ده كه قريبه وی او كه متوسطه وی، كه قريب وو نو د هغې لپاره همزه راځي ځكه قلت د حروفو دلالت كوی په قلت د مسافت باندې او ای د متوسط لپاره راځي ځكه پديكې حروف متوسط دی او توسط د حروفو دلالت كوی په توسط د مسافت باندې فاندفع ما قيل،

**سوال**: ته وائی چې ای راځي د منادی قريب لپاره نو دمنادی قريب لپاره خو فقط همزه راځي او ای خو راځي د متوسط لپاره، **جواب**: دلته قريب مقابل د بعيد دی نو متوسط داخل دی په قريب كې او پدی حروف نداء كې دوه مذهبه دی. (۱): جمهور، (۲): بعض وائی چې دا اسماء افعال دی ځكه هغه وائی حرف نداء سره د مابعدنه مركب تام دی لكه هيهات سره د ما بعد نه مركب تام دی او جمهور وائی دا

حروف دی نه اسماء افعال ځکه د یا نه وروسته منادی مفعول به ده نو فاعل به ورله ضمیر مستترامنی اوس استتار د ضمیر غائب ندی صحیح ځکه مخکې مرجع نشته، او استتار د ضمیر متکلم نه کیږی په اسماء الافعال کې او ضمیر مخاطب هم ندی صحیح ځکه مخاطب منادی دی،

**سوال:** هر کله چې دا حروف دی اسماء افعال ندی بیا یا زید ته جمله ولې وائی،

**جواب:** دیته جمله او مرکب تام نیابة او مجاز وائی، چې دا قائم شوی دی په مقام دا دعو باندې،

## حروف الایجاب

**ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د حروف نداء نه نو شروع یې وکړه، په حروف الایجاب کې او دیته حروف ایجاب ځکه وائی چې دا راځي د جواب لپاره یا ایجاب په معنی د اثبات سره دی، او دا هم راځي د اثبات لپاره او د تسمیه تغلیبا ده. ځکه بعض د دی حروفو نه د نفی لپاره هم راځي او حروف ایجاب مشهور شپږ دی، نعم، بلی، اجل، ای، جیر، ان، او مجموعه اته دی شپږ دا مذکور دی اوم لا دی اتم کلا دی بمعنی ای نحوقوله تعالی كَلَّا وَالْقَمَرِ ای والقمر **فنعم مقررة** هر کله چې فارغ شو د بیان د حروف ایجاب نه اجمالا نو شروع یې وکړه په تفصیل ددې حروف ایجاب کې نو دا فاء تفصیلیه ده فنعم مقررة، پس نعم ثابتوونکی دی په ذهن د سامع او مخاطب کې **لما** مضمون د هغه جملی لره **سبقها** چې هغه جمله مذکوره وی مخکې د نعم نه دا جمله عامه ده که خبراوی که استفهاما وی که ایجاباوی که نفیاوی مثال لکه نعم شوفی جواب من قال اقام زید بمعنی قام زید مثال د نفی لکه نعم شو په جواب د الم یقم زید کې بمعنی لم یقم زید او پدی نعم کې څلور لغات دی (۱): نعم بفتح النون والعين (۲): نعم.......... (۳): نعم بکسر النون والعين، (۴): نحم بفتح النون وقلب العين حاء **وبلی مختصة بایجاب النفی** بلی د دی حروف ایجاب نه مختص دی په اثبات د نفی پورې پدی شان سره چې د ابلی راځي وروسته د کلام منفی نه اوگرځوی هغه کلام منفی لره مثبت دا نفی عامه ده چې مجرور د عن الاستفهام وی، لکه بلی ته اوائی په جواب د هغه چې کې چې اوائی ماقام زید بمعنی قد قام زید یا مقرون وی دا نفی د استفهام سره بیا دا بلی نقض د هغه نفی کوی، چې وروسته د استفهام نه وی نحو قوله تعالی أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ قَالُوا بَلَىٰ ای بلی انت ربنا ابن عباس (رض) ویلی دی، چې که چرته پدی مقام کې د بلی په ځاې باندې نعم ویلی وی نو کفر لازمیدو ځکه د هغې معنی دا ده چې لست بربنا،

**لطیفه:** پخوا د یو منطقی او د نحوی مناظره وه پدی خبره چې منطق ویل ضروری دی، که نحوه ویل ضروری دی نو منطقی ویل چې منطق ویل ضروری دی نه نحوه او نحوی ویل چې الیس علم النحو بضروری نو هغه اویل چې بلی نو نحوی مناظره وگټله

او کله کله په طریقه د قلت او ندرة سره بلی د تصدیق د ایجاب لپاره هم راځي، لکه ته اوائی په جواب دا قام زید کې بلی ای قام زید **وای** او ای د حروف ایجاب نه بکسر الهمزه، ځکه بفتح الهمزه د نداء او تفسیر لپاره راځي **للاثبات** دا وضع کړی شوی دی لپاره د اثبات **بعدالاستفهام** د استفهام نه وروسته

**ويلزمها القسم** لازم دی د دی سره قسم بی د ذکر د فعل قسم نه او مقسم بهٔ د دی نه راخي مګر لفظ د رب او الله او عمر په تتبع اوا ستقراء سره پدی شان سره چې بی د قسم نه ای نه مستعمليږي نحوای وربی ای والله ای لعمری په جواب د سوال د هغه چا کې چې وائی چې هل ضرب زيد او ابن مالك وئلی دی چې ای په معنی د نعم سره راخي، **واجل وجير وان تصديق للمخبر** دا دری حروف راخي د تصديق د متکلم او تصديق د جملی خبريي لپاره لکه ته اوائی اجل وجيروان هغه متکلم ته چې هغه تاته اوائی قد اتاك زيد يالم ياتك زيد نو معنی د دی دا ده چې قداتی يالم يات بل مثال د تصديق للخبر نحو قوله تعالی إِنْ هَٰذَانِ لَسَٰحِرَٰنِ ای نعم هذان لساحران علی قول او ان کله کله په طريقه د قلت سره راغلی دی د تصديق د دعا لپاره لکه دا قول د ابن زبير شو لمن **قال لعن الله ناقة حملتنی اليك ان وراكبها** ای لعن الله تلك الناقة وراکبها او په طريقه د قلت سره راخي د تصديق د استفهام لپاره کما فی قول الشاعر

ليت شعری هل للمحب شفاء من جوی حبهن ان اللقاء

**ترجمه:** کاش چې وی علم زما پدی مضمون باندې چې ايا د عاشقانو لپاره دارو شته د سوزش د محبت د دوی نه د ښځو سره نو جواب وشو چې ان اللقاء ای نعم اللقاء شفاء للمحب دا حروف ايجاب دری قسم دی، (۱): مايقع بعد النفی فقط نحو بل (۲): مايقع بعد الاثبات فقط نحو نحو لا، (۳): ما يقع بعد النفی والاثبات لکه باقی حروف ايجاب شول،

## حروف الزيادة

ديته حروف لغوه او حروف الصله هم وايي لانهايتوصل بها الی زنة او اعراب لم يکن عند حذفهاسميت ايضا حروف الصله لانه يتوصل بها الی زيادة الفصاحة او الی اقامة وزن اوسجع.

**ربط:** هر کله چې فارغ شو د حروف ايجاب نه شروع يې وکړه په بيان د حروف الزيادة کې نو وي ويل حروف الزيادة،

**ترجمه:** هغه حروف چې هغه کله کله زائد راخي په استعمال د کلام د عربو کې پدی شان سره چې په ازاله او سقوط د دی سره خلل نه راخي په معنی د اصل کلام کې او دا زياتی کړی شوی دی په کلام کې د يو فائدی لپاره فائده عامه ده چې لفظيه وی او که معنويه وی فائده معنويه تاکيد د معنی دی او لفظيه تزيين د لفظ دی دا مجموعه اته دی، **ان، وما، ولا، ومن، والباء، واللام،** بل کاف دی هغه ماتن ندی ذکر کړی (۱): د وجی د قلت نه (۲): يا د دی وجی نه چې بعض نحويانو ويلی دی چې کاف زائده نه راخي حروف الزيادت مضاف اليه مبتدا ده ان وما الخ ورله خبر دی او عطف مقدم دی په ربط باندې،

**تشريح:** زده کړه دا خبره چې يو حروف زيادت دی، د صرفيانو په نز باندې او يو حروف زيادت دی د نحويانو په نز باندې بيا يو حروف الزيادة دی په حروف معانيو کې بل په حروف مباني وو کې نحويان د اول قسم حروف الزيادة نه بحث کوی او صرفيان د قسم ثانی نه حروف زيادت په نزد د صرفيانو باندې لس دی کما فی قول الشعر،

هويت السمان فشيبنی وقد کنت قد ما هويت السمان

**لطيفه:** يو شاگرد دا ستاذنه تپوس وکړو چې حروف زيادت کوم کوم دی، نو استاذ په جواب کې دا شعر اويلو نو شاگرد ورته اويل چې زه درنه د حروفو تپوس کوم او ته شعر وائی نو استاذ ورته اويل چې ما درته حروف دوه خله بيان کړه او ته پوه نه شوی او حروف زيادت عندالنحات اته دی ان وان وما ولامن وباء وکاف ولام،

**سوال:** هر کله چې حروف زيادت اته دی نو مصنف کاف زائده ولې ندی ذکر کړی، **جواب:** د ايې ترك کړی دی د وجې د قلت نه يا ددې وجې نه چې بعض نحات وائی چې کاف زائده نه راځي،

**سوال:** ته وائی چې ان ان الخ حروف زائده دی، يعنی زائد راځي په کلام کې دا خبره ستا منقوضه شوه په ان ضربت ضربت سره، او وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ سره چې دلته ان او ما زائد ندی راغلی دارنگې سرت من البصرة الى الکوفة کې من زائد ندی الحمد الله کې لام زائد ندی راغلی،

**جواب:** د حروف زيادت دا معنی نده چې دا حروف زائد راځي د ائما ابدا بلکه مطلب د دی دا دی چې هغه حروف چې کله کله زائد واقع کيږی په کلام د عرب کې نو هغه اته دی نه نور،

**سوال:** د حروف زيادت خو دا معنی ده چې دا حروف زائد راغلی دی او فائده پکې نشته نو د ابی فائدی حروف څنگه راغلی دی په کلام الله او کلام د فصحاو کې،

**جواب:** د حروف زيادت دا معنی نده چې فائده پکې نشته بلکه معنی دا ده چې په سقوط د دی سره نقصان نه راځي په اصل معنی د کلام کې او دی متکلم دا حروف زائد کړی وی د يو فائدی د وجی نه او فائده دوه قسمه ده، (۱): لفظيه، (۲): معنويه فائده معنويه تاکيد د نفی لپاره لکه وما الله بغافل کې دا باء زايده راغلی ده د تاکيد دنفی لپاره او ماجاءنی من احد کې من زائد راغلی دی د تاکيد د عموم لپاره او فائده لفظيه دا ده چې دا حروف زياتی کړی شوی دی لپاره د تزيين او تحسين د دی لفظ، **فان الخ** هر کله چې فارغ شو دا جمال نه نو شروع يې وکړه په تفصيل کې نو دا فاء تفصيليه ده، پس کلمه د ان زياتی کولی شی **مع النافية** سره د مانا فيه نه په طريقه د کثرت سره يعنی ان زائد راځي وروسته د مانافيه نه په طريقه د کثرت سره لپاره د تاکيد د نفی او که دا مامشبه بليس وو، بيا يې دا ان دعمل نه منع کوی نحو ما ان زائد قائم ما ان رائت زيدا ای ما رايت زيدا بل مثال لکه دا قول د حسان بن ثابت شو،

ما ان مدحت محمدا بمقالتی ولکن مدحت مقالتی بمحمد

**وقلت:** او قليل دی زيادت د ان **مع ما المصدرية** سره د ما مصدريه نه نحوا تنظر ما ان جلس القاضی ای انتظر مدة جلوس القاضی ولما او دغسی قليل دی، زيادت د ان سره د لما نه نحو لما ان قام زيد قمت او ان زائد راځي وروسته د لمانه په طريقه د کثرت سره نو ځکه مصنف وائی **وان** کلمه د ان په فتحی د همزی سره زياتی کولی شی سره د لما نه په طريقه د کثرت سره نحو قوله تعالی فَلَمَّآ أَنْ جَآءَ الْبَشِيْرُ وقول الشاعر،

فلما ان جری سمن عليها کماطينت بالفدن السياعا

**وبين لو والقسم** اوان زياتی کولی شی په مينځ د لو او قسم کې په طريقې د کثرت سره چې قسم مقدم وی په لو باندې نحو والله ان لو قام زيد قمت **وقلت** او قليل دی زيادت د ان مع الكاف وروسته دکاف تشبيهي نه الكاف کې الف لام عهدی دی او مراد د کاف نه کاف تشبيهی دی کما فی قول الشاعر:

ويوما توافينا بوجه مغسم كان ظبية تعطو الی ناضر السلم

**ترجمه**: ملاقات وکړو مونږه يوه ورځ د يو مخ سره داسې مخ چې هغه وو خائسته لکه ته به وائی چې دا هوسی ده او ميلان کوی سلم ونی ته د کان نه وروسته ظبية چې راغلی دی ديکې دری قسم اعراب لوستل جائز دی،

(۱) چې ظبيةً منصوب شی بنا پدی چې ان مخفف من المثقل دی او عمل لفظی ورله ورکړی شوی دی (۲) ظبيةٌ چې عمل يې باطل شوی دی (۳) ظبيةٍ چې کاف جاره تشبيهی دی او ان زائد دی وروسته د دينه او ظبية مجرور دی **ومامع اذا** او کلمه د اما زائده راځي سره د اذانه **ومتی** او دارنګې زائده راځي سره د متی نه **وای واين وان** او دارنګې زائد راځي سره د ای اين او ان نه **شرطا** په حال کون د دی کلمات کې چې دا خاوند د شرط واخلی يا په وقت د شرط کې شرطا منصوب دی بنابر حاليت په اعتبار د حذف د مضاف سره ای ذوات شرط يا منصوب دی بنابر مفعول فيه په اعتبار د حذف د مضاف سره يا په تقدير د فی سره اي وقت شرط يا فی شرط او که اذا متی ای اين او ان شرطی نه وو راغلی، بيا وروسته د دی نه ما زائده نه راځي مثال د ما چې زائد راغلی وی وروسته د اذا شرطی نه نحو اذا ما تخرج اخرج او وروسته د متی شرطی نه نحو متی ما تذهب اذهب او وروسته د ای شرطی نه نحو ايا ما تدعو افله الاسماء الحسنی او وروسته د اين نه نحو اين ما تجلس اجلس وروسته د ان نه نحو اماترين من البشر احدا

**وبعض حروف الجر** دا عطف دی په اذا باندې او ما قبل د معطوف عليه معاد وی د معطوف سره فيکون التقدير ومامع بعض حروف الجر دا کلمه د ما زياتی کولی شی سره د بعض حروف جاره ؤنه چې هغه پنځه دی، با، من، عن، کاف، رب، مثال د ما چې وروسته د باء نه زائد وی نحو قوله تعالی فَبِمَا رَحْمَةٍ مِّنَ اللَّهِ لِنتَ لَهُمْ وروسته د من نه نحو مِّمَّا خَطِيئَاتِهِمْ أُغْرِقُوا وروسته د عن نه نحو عَمَّا قَلِيلٍ لَّيُصْبِحُنَّ نَادِمِينَ او وروسته د کاف نه نحو زيد صديقی کما ان عمرا اخی او وروسته د رب نه نحو قوله تعالی رُّبَمَا يَوَدُّ الَّذِينَ كَفَرُوا ربما ضربة بسيف صيقل او ددې پنځو نه علاوه د نورو حروف جاره ؤ سره ما زائد نه راځي او ما چې زائد راشی وروسته د رب او کاف نه نو غالبا عمل لفظی د هغې باطل کونی وقلت مع المضاف او قليل دی زيادت د کلمه د ما سره د مضاف نه يعنی ما زائد راځي په طريقه د قلت سره بين المضاف والمضاف اليه نحو غضبت من غير ماجرم وقوله تعالی أَيَّمَا الْأَجَلَيْنِ قَضَيْتُ وقولك لاسيما الولد بعض نحويانو ويلی دی چې کلمه د ما په دغه مواضع کې نکره مضاف اليه دی او دا ما بعد مجرور بدل واقع شوی دی، د دی ما نه لهذا دا ما زائد ندی، ولامع الواو بعد النفی او کلمه د ما زائده راځي سره د واو عاطفه نه وروسته د حرف نفی نه دا حروف نفی عام دی چې لفظاوی نحو

ماجاءني زيد ولاعمرو یا معنی وی نحو غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ دلته غ ر په معنی دلایې نفی ذی او دغسی زائد راځی سره د واو عاطفه نه وروسته د نهی نه نحو لاتضرب زید او لاعمرا **وان المصدرية** دا عطف دی په مع الواو باندې نه په بعد النفی باندې ځکه که عطفۀ شی په بـ د النفی باندې نو لازمیږی فساد د معنی ځکه معنی بې دا شوه چې ولامع الواو بعد ان المصدرية او دا معنی باطله ده، بلکه معنی دا ده چې دا کلمه د لازیاتی کولی شی وروسته د ان مصدرية نه نحو قوله تعالی مَا مَنَعَكَ أَلَّا تَسْجُدَ إِذْ أَمَرْتُكَ دلته دا لا زائد دی،

(١): ځکه بل ځای راغلی دی بغیر د لا نه مامنعك ان تسجد نو هغه دلیل دی پدی چې لازائد دی

(٢): که لازائده نه شی نو لازمیږی فساد د معنی **وقلت قبل القسم** او قلیل دی زیادت د لامخکې د لفظ د اقسم نه یعنی لازائد راځي په طریقه د قلت سره مخکې د لفظ دا قسم نه نحو قوله تعالی لَا أُقْسِمُ بِهَذَا الْبَلَدِ دلته دری احتماله دی، (١): دا لا د نفی لپاره دی ای لیس الامر کما زعمتم اقسم بیوم القیامة،

(٢): یا دا لام ابتدائیه تاکیدیه دی، او الف پکې راغلی دی د فتحه اشباعی د وجی نه فیکون المعنی لاقسم بهذا البلد، (٣): دریم دحتمال دا دی چې دا زائد دی او نکته په زیادت د لاکې مخکې د أقسم نه تنبیه ورکول دی، د متکلم سامع او مخاطب ته په ظهور د قصه باندې چې دا قصه بالکل ظاهره ده او واضحه ده، داسې واضحه او ښکاره ده چې مستغنی ده د قسم نه نو ددې د وجی نه متکلم دا ښکاره کړه په صورت د نفی د قسم کې اګر چې نفی حقیقة نشته **وشذت مع المضاف** او شاذ دی زیادت د لاسره د مضاف نه یعنی دا لا زائد راځي په طریقه د قلت سره د مضاف او مضاف الیه په مینځ کې کقوله ع فی بیرلا حورسری وما شعر ............ حور صیغه جمع تکسیر مذکر اسم فاعل ده جمع د حائر ده من حار بمعنی هلك او دغسی لازائده راځي د دی نه علاوه نحو قوله تعالی لِئَلَّا يَعْلَمَ أَهْلُ الْكِتَابِ أَلَّا يَقْدِرُونَ عَلَى شَيْءٍ ای لیعلم اهل الکتاب اودا لازائد دی، ځکه که زائد نشی نو لازمیږی فساد د معنی وقوله تعالی وَحَرَامٌ عَلَى قَرْيَةٍ أَهْلَكْنَاهَا أَنَّهُمْ لَا يَرْجِعُونَ کې لازائد دی والایلزم فساد المعنی بل مثال نحوقوله تعالی وَمَا يُشْعِرُكُمْ أَنَّهَا إِذَا جَاءَتْ لَا يُؤْمِنُونَ **ومن والباء واللام تقدم ذكرها** د دی ذکر مخکې شوی دی په حروف جاره ؤ کې مثال د من جاره ماجاءنی من احد یغفر لکم من ذنوبکم مثال د باء زائده ومالله بغافل ولاتلقوا بایدیکم مثال د لام ردف لکم،

## حرفا التفسير

**ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د حروف زیادت نه نو شروع یې وکړه په حروفو د تفسیر کې نو وې ویل حرفا التفسیر،

**ترجمه:** دوه حروفونه دتفسیر ای او ان دی حرفا التفسیر مضاف مضاف الیه مبتدا ده او ای وّان ورله خبر دی دا اصل کې حرفان وو نون وغورځیدو داضافت د وجی، نه حرفا پاتې شو او **اضافته** حرفاز

تفسیر ته اضافت د دال دی، مدلول ته یعنی هغه دوه حرفونه چې دلالت کوی په تفسیر او بیان د یو شی باندې او حروف تفسیر څلو دی، ای، ان، بل، فاء، او مصنف دا دوه ترك کړی دی د وجی د عدم شهرت نه ای دوه قسمه دی (١): ندائیه، (٢): تفسیریه، او فرق په مابین د ای تفسیری او ان تفسیری کې دا دی چې ای راځي د تفسیر د هر مبهم لپاره عام دی چې مفرد وی، لکه جاءنی زید ای ابو عبدالله یا جمله وی نحوقطع رزق زید ای مات **فان** کې دافاء تفسیریه ده دا تفسیر کوی، د ان تفسیری فان پس دا ان مفسره **مختصة** خاص دی بما په هغه فعل پورې چې هغه متقرر دی فی معنی القول په معنی د قول کې په شان د تقرر د ظرف په مظروف کې چې ندی منفك د دغه فعل نه ما عبارت دی فعل نه اوفي معنی القول جار مجرور په اعتبار د متعلق محذوف سره چې متقرر دی صفت د ما دی نو ددې نه دری خبری معلومی شوی،

(١): یو دا چې ان تفسیری نه واقع کیږی وروسته د قول صریحی نه،

(٢): او دا ان تفسیری نه واقع کیږی وروسته د هغه فعل نه چې هغې کې معنی دقول نوی،

(٣): بلکه دا واقع کیږی وروسته د هغه فعل نه چې په هغې کې کائنه ده او موجوده ده معنی د قول، او ان تفسیری چې واقع شي وروسته د دغسی فعل نه نو غالبا دا بیان کوی د مفعول مقدر د هغه فعل چې هغه په معنی د قول سره دی، نحو قوله تعالی ونا دیناه ان یاابراهیم دا ان یا ابراهیم تفسیر دی دمفعول دنادینا اپاره چې **هغه** مقدر دی ای ونادینا بلفظ هو قولنا یا ابراهیم بل مثال لکه دا مقوله ستا شوه کتبت الیه ان ائت ای کتبت الیه شیئا هو ایت چې دا ان دلالت کوی پدی خبره باندې چې دا ائت تفسیر دی د مفعول به مقدر د کتبت لپاره چې هغه شیئا دی او هر چې دی پدی قول د الله کې مَا قُلْتُ لَهُمْ إِلَّا مَا أَمَرْتَنِي بِهِ أَنِ اعْبُدُوا اللَّهَ دا ان اعبدالله تفسیر دی د ضمیر د به او امرت فعل دی بمعنی القول او دا ان اعبدالله تفسیر د ما امرتنی ندی ځکه دا مفعول به دی د قول صریحی لپاره او ان تفسیر د مفعول به د قول صریحی نه واقع کیږی، (٢): او دا ان د تفسیر لپاره راځي لپاره د مفعول به مذکور په طریقه د قلت اود ندرت سره نحو قوله تعالی إِذْ أَوْحَيْنَا إِلَىٰ أُمِّكَ مَا يُوحَىٰ ۝ أَنِ اقْذِفِيهِ دا ان اقذفیه تفسیر د ما یوحی دی او دا مفعول د اوحینا دی او مذکور دی،

## حروف المصدر

**ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د حروف تفسیر نه نو شروع یې وکړه په بیان د حروف المصدر کې،

**ترجمه:** هغه حروف چې ګرځوی مدخول خپل لره مصدر مشهور ما وان وان دی او تول اووه دی، ما وان، وان، کی، ولو، والذی، همزة التسویة، **فالاولان** پس دا اول دوه چې ما او ان دی للفعلیة داخلیږی په جمله فعلیه باندې نه په جمله اسمیه باندې، (عندالسیبویه) او دا دواړه ګرځوی جملی فعلیی لره مفرد په تاویل د مصدر سره مثال د ما نحو قوله تعالی وَأَن تَصُومُوا خَيْرٌ لَّكُمْ ای صیامکم

خبر لکم او د سیبویه نه علاوه نورو نحویانو جائز کړی دی، دخول د ما او ان په جمله اسمیه باندې هم او شارح رضی ویلی دی وهوالحق وان کان قلیلا مثال لکه بقوا فی الدنیا ما الدنیا باقیة ما الدنیا باقیة کې ما مصدریه دی معنی دا ده، چې ژوندی دی ولړلی شی دوی تر څو پورې چې دنیا باقی ده **وان** او ان مفتوحة الهمزة **للاسمية** داخلیږی په جمله اسمیه باندې نه په جمله فعلیه باندې پدی شرط سره چې وروسته تری ما کافه نه وو راغلی او دا ان جمله ګرځوی په تاویل د مفرد سره پدی شان سره چې مصدر د خبر د ان به مضاف کړی اسم د ان ته مصدر عام دی، که حقیقی وی او که داعائی وی مثال د اول نحو اعجبنی انك قائم ای قیامك او مثال د ثانی اعجبنی ان زیدا اخوك ای اعجبنی اخوة زید او که د خبر د ان نه مصدر جوړه ول متعذر وو نو کون به مقدر راوباسی نحو اعجبنی ان هذا زید ای کونه زیدا او که وروسته ددې نه ماکافه راغلی وو نو بیا داخلیږی په جمله فعلیه باندې نه په جمله اسمیه باندې مثال د لو مصدریه نحو قوله تعالی وَدُّوا لَوْ تُدْهِنُ فَيُدْهِنُونَ مثال د کی مصدریه نحوقوله تعالی لِكَيْ لَا يَكُونَ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ حَرَجٌ او مثال د الذی مصدریه قوله تعالی وَخُضْتُمْ كَالَّذِي خَاضُوا ای کخوضهم مثال د همزه تسویه قوله تعالی سَوَاءٌ عَلَيْهِمْ ءَأَنْذَرْتَهُمْ أَمْ لَمْ تُنْذِرْهُمْ ای انذارك وعدم انذارك مستویان علیهم اوان څلور قسم دی،

(١): مخفف من المثقل نحو قوله تعالی وَآخِرُ دَعْوَاهُمْ أَنِ الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ.

(٢): زائده نحو قوله تعالی فَلَمَّا أَنْ جَاءَ الْبَشِيرُ، (٣): ان تفسیریه نحو قوله تعالی وَنَادَيْنَاهُ أَنْ يَا إِبْرَاهِيمُ،

(٤): مصدریه نحو وَأَنْ تَصُومُوا خَيْرٌ لَكُمْ،

## حروف التحضیض

هغه حروف چې دلالت کوی په تیز ولو د سامع او مخاطب باندې دا شپږ دی، هلا والا مشدد تین ولولا ولو ما ولو او پنځم الا مخفف دی دا کله کله د تحضیض لپاره راځي نحو قوله تعالی أَلَا تُقَاتِلُونَ قَوْمًا نَكَثُوا أَيْمَانَهُمْ او مثال د لو بمعنی هلا نحو لوتا مرنا فتطاع دا دواړه مصنف ندی ذکر کړی،د وجی د قلت او ندرت نه څکه د مصنف دا داب او طریقه ده چې هغه شی ذکر کوی چې شائع او متعارف وی، په کلام د عربو کې او کوم شی چې شائع نوی هغه ترك کوی او دا حروف تحضیض چې داخل شی په مضارع باندې دا دلالت کوی په تحضیض د فعل اتی باندې او دا په معنی د امر سره وی او که داخل شی په فعل ماضی باندې بیا دا راځي د توبیخ او تندیم لپاره په ترك د فعل باندې د دی وجی نه دیته حروف تندیم هم وائی لیکن غالبا دا مستعملیږی په لوم د مخاطب کې پدی خبره باندې چې ده ترك کړی دی یو شی په زمانه ماضی کې او ممکن دی تدارك دهغې په زمانه مستقبل کې چې دی اتیان وکړی په هغه فعل باندې چې هغه په شان د مافات دی نویدی اعتبار سره دغه حروف من حیث المعنی د تحضیض لپاره دی څکه ورته حروف تحضیض وائی. **ولهاصدرالكلام** هر کله چه ،فارغ شو د حروف تحضیض نه اجمالا نو شروع یې وکړه په احکامو د حروف التحضیض کې

نو يو حكم د احكامو د حروف التحضيض نه دا دى چې ثابت دى د دى لپاره صدرات د كلام پدى شان سره چې دا د كلام په اول سر كې راځي، نه په مينځ او نه په اخير كې لپاره د دى چې دلالت وكړي په نوعيت د كلام باندې د اول وهلت نه. **ويلزمها الفعل** لازم دى د دى حروف تحضيض سره فعل يعنى دا حروف التحضيض واجب الدخول دى په جمله فعليه باندې ځكه دا راځي د تحضيض او حث لپاره اودا تحضيض او حث نه راځي مگر په فعل كې او داتحضيض عام دى كه لفظا وى نحو هلا ضربت زيدا هلا تضرب زيدا **او تقديرا** يا تقديرا وى او دا تقديرا بيا عام دى چې وجوبا وى نحو هلا زيدا ضربته هلا زيدا تضربه يا جوازا وى كقوله عليه السلام فهلا بكرا تلاعبك وتلاعبها اى فهلا تزوجت بكرا اوكله كله په طريقه د قلت سره د وجى د ضرورت شعرى نه دا حروف تحضيض داخليږي په جمله اسميه باندې كما فى قول الشاعر،

يقولون ليلى ارسلت بشفاعة الى فهلا نفس ليلى شفيعها

دا هلا تحضيضى دى داخل شوى دى په جمله اسميه باندې چې نفس ليلى شفيعها دى د وجى د ضرورت شعرى نه،

## حرف التوقع

هغه حرف چې راځي د توقع لپاره او دلالت كوى په توقع د سامع او د مخاطب باندې قد دا لفظ د قد دى او قدا او لاخلور قسمه دى،

(١): قد اسمى بمعنى حسب نحو قد لكم الله اى حسبكم الله وكقولك قدى درهم اى حسبى درهم

(٢): دويم قد اسم فعل بمعنى كفى يكفى نحو قدنى درهم اى يكفينى درهم،

(٣): قد فعلى دا مشدد راځي يعنى قد په معنى د شلولو او څيرولو سره كما فى قول الشاعر،

نقرليهم لهذميات نقدبها ماكان خاط عليهم كل زراد

وقددت الاديم لراهشيه والفى قولها كذبا ومينا

**سوال:** قد متنى زيد فى المحراب څه تركيب دى **جواب:** قد فعل ماضى متنى مضاف مضاف اليه مفعول به مقدم زيد فاعل فعل سره د فاعل او مفعول به نه جمله فعليه خبريه او كه د قدم يقدم تقديما نه مشتق شى نو بيا دا تركيب ندى صحيح ځكه د فعل اسناد چې مذكر ته نو تذكير د فعل واجب دى بيا قدمنى زيد ويل پكار وو نظيره قول الشاعر،

قرعت الباب حتى كل متنى فلما كل متنى كلمتنى

فلما كل متنى شرط دى او كلمتنى جزاء ده كل فعل دى او متنى ورلة فاعل دى فعل سره د فاعل نه جمله شرطيه ده، او جزاء كې كلمتنى ماخوذ دى د كلم يكلم تكليما نه نو ترتب د جزء په شرط باندې صحيح شو ځكه كه شرط هم ماخوذ شى د كلم يكلم تكليما نه نو بيا لازميږى اتحاد بين الجزاء والشرط او ترتب نه صحيح كيږى،

(۴): قد حرفي دی دا داخليږی په فعل متصرف مثبت خبری باندې چې خالي وی عن الناصب و الجازم والتنفيس او قد حرفي په پنځه معانيو سره راځي (۱): توقع، (۲): تحقيق، (۳): تقريب مثال د دری واړو لکه قد قامت الصلوة (۴): للتقليل نحوان الكذوب قد يصدق (۵): او كله راځي للتكثير في موضع المدح نحو قد يعلم الله **وهي** او دا قد **في المضارع** چې داخل شي په مضارع باندې پدی شرط سره چې دا مضارع خالي وی د جازم ناصب او حرف تنفيس نه **للتقليل** نو دا راځي د تقليل لپاره غالبا او كله كله راځي د تكثير لپاره په مقام دمدح كې كمامر او قد چې داخل شي په فعل ماضي باندې نو دتوقع تحفيف تقريب لپاره راځي د دی وجی نه دیته حرف تقريب هم وائی او دا چې داخل شي په ماضي مطلق باندې شي ته ماضي قريب وائی په نزد صرفيانو باندې ځکه دا هغه زمانه د ماضي نژدی کوی زمانی د حال ته تقريب بين الزمانين راولی

(۲): چې داخل شي په مضارع باندې نو للتحقيق وی نحو قد نری تقلب وجهك في السماء او جائز دی فصل په مينځ د قد او فعل كې په قسم سره نحو قد والله.......... قدلعمری، بت ساهرا دارنګې جائز دی حذف د مدخول د قد په طريقه د قلت سره،

## حرفا الاستفهام

هر كله چې فارغ شو د بيان د حرف توقع نه نو شروع يې وكړه په حروف استفهام كې،

**تركيب:** حرفا مضاف الاستفهام مضاف اليه اصل كې حرفان وو نون حذف شوی دی د وجی د اضافت نه بيا التقاء الساكنين راغله بين الالف واللام علی غير حده اول مده حذف شو حرف الاستفهام پاتې شو مضاف سره د مضاف اليه نه مبتدا ده او الهمزة وهل ورله خبراو اضافت د حرف الاستفهام ته اضافت د دال دی مدلول ته،

**ترجمه:** هغه دوه حرفونه چې هغه دلالت کوی په استفهام باندې چې هغه طلب د حصول د صورة د شئ دی في العقل **الهمزة وهل** همزه اوهل دی فقط نه بل شی ځکه مبتدا او خبر چې دواړه معرفه راشي دا فائده کوی حصرا واختصاص لره او هر چې دی قول د سيد سند صاحب په نحو مير كې چې حروف استفهام سه اندما وهمزه وهل هغه بنا دی په مسامحه باندې چې حروف استفهام لره يې غلبه وركړيده په مااسمي باندې چې هغه يې ګرځولي دی د حروف استفهام نه او هلته يې ذكر كړی دی طرداً او قول د مناطقو په ما اعظم شانه كې چې دا ماحرفيه استفهاميه دی دا خطاء دی، ځکه ما په معنی د هل سره چرته ندی راغلی په استعمال د کلام د عربو كې ځکه ما استفهامي اسمي راځي نه حرفي ځکه مصنف د کافيه دا ګرځولي دی د ما اسمي نه نه د حرفي نه،

**تشريح:** زده کړه دا خبره چې حروف باعتبار الدخول دری قسم دی،

(۱): ځنی هغه دی چې داخليږی په فعل باندې فقط نه په اسم لکه عوامل ناصبه او جازمه شو،

(۲): ځنی هغه دی چې داخليږی په اسم باندې نه په فعل لکه حروف جاره او حروف مشبه بالفعل،

۳ او بعض هغه دی چې داخلیږی په اسم او فعل دواړو باندې لکه همزه او هل شو چې دا په جمله اسمیه او فعلیه دواړو باندې داخلیږی، یو حروف استفهام دی او یو اسماء استفهام دی نو اسماء استفهام نهه دی،

کم، ما، ای، من، متی، این، انی، ایان، کیف،

او حروف استفهام دوه دی، الهمزة وهل او همزه اته قسمه ده،

(۱) وصلیه نحو اضرب او دا بیا دوه قسمه ده (۱) سماعی، (۲) قیاسی سماعی په لسو ځایونو کې راځي، ابن، ابنه، ابنم، اسم، امة، اثنان، اثنتان المراة المراتان ایمن الله او قیاسي راځي په (۳۰) مواضع کې لکه په ماضی امر او مصدر د نهه بابو نو د ثلاثی مزید کې نو ۳×۹ = ۲۷ شو (۲۸) امر د ثلاثی مجردو (۲۹) د میم تعریفی سره نحو لیس من امبر امصیام فی امفسر (۳۰) لام تعریفی سره نحو الرجل،

(۲) همزه قطعیه نحو اکرم، (۳) تعریفیه نحو المراة عند المبرد (۴) ندائیه نحوا زید، (۵) همزة التکلم نحو اضرب، (۲) همزه اصلیه نحو اب (۷) همزه د تعدیت نحو اکرم، (۸) همزه استفهامیه نحو ازید قائم اوهمزه استفهامیه په اته معاني وو سره راځي مجازا (۱) تسویه نحو سَوَآءٌ عَلَيْهِمْ ءَأَنذَرْتَهُمْ أَمْ لَمْ تُنذِرْهُمْ (۲) الانکار الابطالی نحو أَفَأَصْفَىٰكُمْ رَبُّكُم بِٱلْبَنِينَ (۳) الانکار التوبیخی نحو قُلْ أَفَغَيْرَ ٱللَّهِ تَأْمُرُوٓنِّىٓ (۴) التقریر نحو ءَأَنتَ فَعَلْتَ هَٰذَا (۵) التهکم نحو اصلوتك تامرك

(۲) الامر نحوا اسلمتم بمعنی اسلموا (۷) التعجب نحو مَا لِىَ لَآ أَرَى ٱلْهُدْهُدَ (۸) الاستفتاء نحو الم دعوتك، أَلَمْ يَأْنِ لِلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟

او هل خلور قسمه دی (۱) هل استفهامیه نحو هل زید قائم، (۲) نافیه نحو هل تنتم منا الان امنا بالله هَلْ يَسْتَوِى ٱلَّذِينَ يَعْلَمُونَ وَٱلَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ، وقول عبدالله ابن مبارك هل افسد الدین الا الملوك واحبار السوء ورهبانها (۳) بمعنی قد نحو هَلْ أَتَىٰ عَلَى ٱلْإِنسَٰنِ حِينٌ مِّنَ ٱلدَّهْرِ (۴) تمنائیه نحو هل لی من شفیع حیث یعلم ان لا شفیع

او هل استفهامیه دوه قسمه دی (۱) هل بسطیه، (۲) هل مرکبه بسیطه دیته وائی چې هغه سره استفهام کولی شی د ثبوت او وجود د موضوع او علامه یې دا ده چې محمول به لفظ د موجود یا معدوم وی یا به مرادف د دی وی نحو هل الحرکة موجودة یا معدومة دی، هل ته هل بسطیه وائی او دی قضیې ته هلیه بسطیه وائی (۲) او هل مرکبه دیته وائی چې په هغه سره استفهام کولی شی د ثبوت د یو صفت موضوع لره چې صفت زائده وی د وجود نه نحو هل الحرکة دائمة او دی هل ته هل مرکبه او دی قضي ته هلیه مرکبه وائی، حروف استفهامیه دوه دی، همزه او هل او همزه اصل ده په استفهام کې د هل نه ځکه وضع کړی شوې ده د استفهام دپاره او هل په اصل وضع کې په معنی د قد سره وو او بیا وروسته مستعمل شوی دی په استفهام کې او دې هل نه ځکې به همزه استفهامیه ذکر کیده بیا د وجې د کثرت استعمال نه په استفهام کې همزه حذف شوه، او هل په استفهام کې

مستعمليږي، مصنف اول ما به الاشتراك بيانوي بين هل وهمزه او بيا ما به الامتياز بيانوي بين الهمزه وهل ځکه چې مابه الامتياز فرع دما به الاشتراك ده،

**مابه الاشتراك**

(۱) همزه هم د استفهام لپاره راځي او هل هم د استفهام لپاره راځي

(۲) لهما صدر الكلام دواړه په اول سر د كلام كې راځي لپاره د دې چې دلالت وكړي په نوعيت د كلام د اول د وهلت نه

(۳) همزه هم داخليږي په جمله اسميه او فعليه دواړو باندې او هل هم داخليږي په دواړو باندې **تقول** نو وائې به ته **ازيد قائم** دا مثال د جملې اسمي دى **واقام زيد** دا مثال د جملې فعليې دى، **وكذلك هل** او په شان د همزه دى هل په دخول على الجملة الاسمية والفعلية كې پدى دواړو باندې نحو هل زيد قائم او هل قام زيد ليكن ۱ ومره فرق دى چې داخليږي په هغه جمله اسميه باندې چې خبر ورله فعل نه وى راغلى او همزه عام ده، **والهمزة اعم تصرفا.**

**ربط:** هر كله چې فارغ شو، مصنف د بيان د ما به الاشتراك نه بين الهمزة وهل نو شروع يې وكړه په ما به الامتياز د همزه او هل كې، **والهمزة** او همزه استفهاميه **اعم** عامه ده او اكثر ده **تصرفا** د جهته د تصرف نه په استعمال كې د هل نه پدى شان سره چې په هل او همزه كې ديارلس فرقونه دى

(۱) همزه داخليږي په اسم باندې چې د هغې نه وروسته فعل راغلى وى بخلاف هل تقول وائې به ته ازيد اضربت فلا يقال هل زيدا ضربت. (۱) ځكه هل په هغه اسم باندې داخليږي چې د هغې نه وروسته بل اسم وى او كه چرې وروسته د اسم نه فعل وو نو هل په هغې باندې نه داخليږي ځكه د اهل په اصل وضع كې په معنى د قد سره وو داخليدو په فعل باندې او بيا د هغه نه معنى د قد وويستلى شوه، او په معنى د استفهام كې مستعمل كړى شو، هغه معنى د قد د دى نه هيره شوه اوس كله چې مونږه دا داخل كړو و په هغه اسم باندې چې وروسته د هغې نه فعل راغلى وى او د اهل هغه فعل اوينى نو بيا ورته هغه پخوانى زمانه يا دە شي نو دى شوق كوى، د دخول په فعل باندې او سره د دى نه داخلول د ده په اسم باندې د ده سره ظلم دى. (۲) زيد اضربت كې تقديم د مفعول به راغلى دى په فعل باندې دپاره د حصر دا دلالت كوى په حصول د علم تصديقى باندې او هل دلالت كوى په عدم حصول د علم تصديقى باندې په مابين د دى كې منافات دى په خلاف د همزى نه دا راځي د طلب د تصور لپاره نو د دى سره منافات نشته

(۲) **واتضرب زيدا وهو اخوك:** فلايقال هل تضرب زيدا و هو خوك ځكه مقصود دلته انكار د فعل دى، چې واقع دى في الحال بمعنى انه لاينبغى ان يكون ذاك اوهل خاص كوى مضارع په استقبال پورې دا صالح ندى لپاره د انكار د فعل چې واقع وى فى الحال بخلاف الهمزة چې دامضارع نه خاص كوى په استقبال پورې، (۲) هل دلالت كوى په ضرب استقبالى باندې ځكه دا راځي د استقبال لپاره او حال دلالت كوى په ضرب حالى باندې او په مابين د دى كې منافات دى،

(۳): حقيقت کې مدخول د همزه مقدر دی ځکه دا ضرب د مخاطب زيدلره معلوم دی متکلم ته د هغې نه استفهام نکوی بلکه دی استفهام کوی د هغه شی نه چې هغه مقدر دی ای.........، او همزه اصل ده په استفهام کې په مذکور او مقدر دواړو باندې داخليږی او هل فرع ده فقط په مذکور داخليږی، (۴): وازيد عندك ام عمرو: او وائی به ته ازيد عندك ام عمرو فلايقال هل زيد عند ام عمرو، (۱): ځکه ام متصله وروسته د همزی نه راځی او وروسته د هل نه نه راځي،
(۴): همزه داخليږی په حروف عاطفو باندې بخلاف هل تو وائی به ته اثم اذا ماوقع فلايقال هل ثم اذا ما وقع او دا اذا ماوقع عطف دی په مقدر باندې ای اذا حان وقت العذاب و وقع اثم اذا ما وقع امنتم و حينئذ لاتنفع الايمان دارنګې وائی به ته افمن کان او اومن کان فلايقال هل فمن کان هل ومن کان افمن کان علی بينة من ربه،، (دا مبتدا ده) او خبري محذوف دی چې کمن يريد الحيوة الدنيا دی، بيا دا جمله عطف ده په مقدر باندې فيکون التقدير او من کان مومنا کمن کان کافرا افمن کان علی بينة من ربه کمن يريد الحيوة الدنيا او من کان ميتا فاحييناه (مبتدا ده) او خبري حذف دی ای کمن مثله فی الظلمات او دا عطف دی په مقدر باندې ای من امن منکم،
(۵): هل د استفهام د نسبت ايجابی لپاره راځی فقط او همزه عامه ده، فلايقال هل لم يقم زيد بل يقال الم يقم زيد نحو قوله تعالى أَلَمْ نَشْرَحْ لَكَ صَدْرَكَ،
(۶): همزه داخليږي په هغه جمله اسميه باندې چې خبر يې فعليه راغلی وی فيقال ازيد قام او هل په هغه جمله اسميه باندې نه داخليږی، چې خبر يې جمله فعليه راغلی وی فلا يقال هل زيد قام،
(۷): همزه داخليږی په جمله شرطيه باندې بخلاف هل،
(۸): همزه داخليږی په ان تاکيديه نحو قوله تعالى أَإِنَّكَ لَأَنتَ يُوسُفُ بخلاف هل
(۹): همزه راځي د طلب د تصور او تصديق دواړو لپاره او هل فقط د طلب د تصديق لپاره،
(۱۰): هل چې داخل شی په مضارع باندې نو مضارع خاص کوی په استقبال پورې بخلاف الهمزة
(۱۱): با زائده د هل نه وروسته راځي نحو هل زيد بقائم، او د همزی نه وروسته نه راځي فلايقال ازيد بقائم، (۱۲): حذف د همزه جائز دی بخلاف هل نحو قول الشاعر،

فوالله ما ادری وان کنت داريا بسبع رميت الجمرام بثمان

وقوله تعالى هذا ربی ای اهذا ربی،
(۱۳): هل وروسته د ام اضرابی نه راځي بخلاف الهمزة لايقال اقام زيد ام اقعد بل يقال ام هل قعد،

## حروف الشرط

**ربط:** هر کله چې فارغ شو مصنف دبيان د حروف استفهام نه نو شروع يې وکړه په بيان د حروف شرط کې،
**ترجمه:** هغه حروف چې دلالت کوی په تعليق د مضمون د جزاء باندې په مضمون د شرط پورې، (عندالجمهور) ان ولو واما دی، **لهاصدرالکلام** ثابت دی د دی حروف شرط لپاره اوليت د کلام لپاره د دی چې دلالت وکړی په نوعيت د کلام باندې د اول وهلت نه،

**تشریح:** زده کړه دا خبره چې یو اسماء شرط دي او يو حروف شرط دي اسماء شرط مشهور نهه دي، لکه راغلی دي پدي قول د شاعر کې،

من وما مها وای حیثما اذ ما متی    اینما انی نه اسم جاز مند مر فعل را

او غیر مشهور دري دي، اذا ما کیفما لما، او حروف الشرط عندالجمهور دري دي، ان، ولو،واما، مثال د واو نحو قوله تعالی **مالم تمسوهن** ای ان لم تمسو هن، شرط په لغت کې الزام د يو شي دي د بل شی سره او په اصطلاح د نحویانو کې تعلیق د مضمون د جزاء دی په مضمون د شرط پورې او پدی معنی کې دا دري واړه حروف شريك دي او دغسی په صدارت د کلام کې دا دري واړه شريك دي.

**فان للاستقبال وان دخل على الماضي:** (ربط) هر كله چې فارغ شو مصنف د بيان د حروف شرط نه اجمالا نو شروع یې وکړه، په بیان د حروف شرط کې تفصیلا فان کې دا فاء تفصیلیه ده فان للاستقبال،

**ترجمه:** کلمه د ان وضع کړی شویده د استقبال لپاره **وان دخل على الماضي** اگر که داخل شي دا په ماضي باندې نو گرځوي دا ماضي که معنی د مستقبل سره الا اذا دخلت علی کان فانها لا تقلب كان الى معنى الاستقبال لقوة دلالته على معنى المضي عندالمبرد والزجاج والكوفيين، او كه په فعل مضارع باندې داخل شی نو دا خاص کوی په استقبال پورې نحو ان تكرمني اكرمك وان اكرمتني اكرمتك معنى د ثاني بعينه معنی د اول ده، د دواړو معنی دا ده ان وقع منك اكرامي فى الاستقبال وقع مني اكرامك ایضا فیه، او کلمه د لو عکس د ان ده پدې شان سره چې دا لو راځي د ماضی لپاره اگر که داخل شوی دی په مضارع باندې نحو قوله تعالی لَوْ يُطِيعُكُمْ فِي كَثِيرٍ مِّنَ الْأَمْرِ لَعَنِتُّمْ ای لو اطاعوكم في كثير من الامر لوقعتم في الجهد والهلال چې دلته لو په مضارع داخل شوی دی، او مضارع په معنی د ماضی سره ده بل مثال لو ضربت ضربت لو تضرب اضرب معنی د مثال ثانی بعینه معنی د مثال اول ده، ترجمه د دواړو دا ده چې لو وقع منك ضرب فى الماضى فقد وقع منى ضربك في الماضی خکه لو دلالت کوی په تعلیق د مضمون د جزاء په مضمون د شرط پورې په ماضی کې فرضاً سره د علم یقین د متکلم نه په انتفاء د دواړو باندې، او په بعض نسخو کې راغلی دی فان للاستقبال ولو للماضی او کله کله لو راځي په معنی د ان سره په مستقبل کې نحو قوله تعالى وَلَأَمَةٌ مُّؤْمِنَةٌ خَيْرٌ مِّن مُّشْرِكَةٍ وَلَوْ أَعْجَبَتْكُمْ ای وان تعجبكم وقوله تعالى وَلْيَخْشَ الَّذِينَ لَوْ تَرَكُوا ای وان يتركوا.

**تشریح: سوال:** فان للاستقبال الخ ددې عبارت ربط د ما قبل سره څه دی او غرض د مصنف د دی عبارت نه څه دی. **جواب:** مخکې بیان د حروف شرط وو اجمالا او د دی ځاي نه بیان د حروف شرط کوي، تفصیلا نو په معرفت د ربط سره غرض د مصنف هم معلوم شو چې تفصيل د حروف شرط دی،

**ترکیب:** فاتصیلیه ان مبتدا للاستقبال جار مجرور په اعتبار د متعلق محذوف سره خبر دی مبتدا سره دخبر نه جمله خبریه اسمیه شوه، او دغسی ترکیب د ولوعکسه دی چې لومبتداده اوعکسه یې خبردی،

**سوال:** ان اولو حرفان دي او حرف په ترکیب کې مبتدا نه واقع کیږی،

**جواب:** ان اولو دواړه پدی مقام کې مراد اللفظ علم دی دهغه ان اولو دپاره چې واقع کیږی په تراکیبو کې نو د علمیت د وجی نه پدیکې اسمیت راغلی دی، ځکه مبتدا واقع شویده،
**سوال:** وان ادخل علی الماضی شرط دی تقاضه د جزا کوی د دی جزا کوم ده،
**جواب:** جزا د دی فان للاستقبال دی بنا په مذهب د هغه چا چې تقدیم د جزا په شرط باندې جائز وائی لکه کوفیان، (۲) یا جزاء د دی حذف شویده او فان للاستقبال دال بالجزاء ده بنا په مذهب د هغه چې تقدیم د جزاء په شرط باندې جائز نه وائي یا دلته ان وصلیه دی او ان وصلیه جزا نه غواړي لفظا
**سوال** ان وصلیه څه ته وائی؟ **جواب** ان وصلیه دیته وائی چې نقیض د مشرط اولی بالجزاء وی. نو شرط پدی مقام کې دخل علی الماضی ده او نقیض د دی دخل علی المضارع دی اوس د دی معنی دا شوه چې ان چې داخل شی په فعل ماضی نو دهغې نه مستقبل جوړوی، نو که په فعل مضارع داخل شي نو د هغې نه په طریقه اولی سره مستقبل جوړوي او د ان او لو مینځ کې فرق دا دی چې ان دلالت کوي په تعلیق د مضمون د جزا په شرط پوري په زمانه استقبال کې اولو دلالت کوی په تعلیق د مضمون د جزاء په وجود د مضمون د شرط پورې فرضا په ماضی کې سره دعلم یقین د متکلم نه په انتفاء د دی دواړو باندې بیا د لو په معنی موضوع له کې اتفاق دی چې تعلیق د وجود د مضمون د جزاء دی په مضمون د شرط پورې فرضاً په ماضي کې سره د علم یقین د متکلم نه په انتفاء د دې دواړو باندې نو دا انتفاء د مضمون د شرط او دجزاء سره لازم ده او پدی معنی التزامی کې اختلاف دی د جمهورو او ابن حاجب، د جمهورو مذهب دا دی چې لو د لالت کوي په انتفاء د شيء ثاني باندې د وجی د انتفاء دشی اول نه او ابن حاجب وائی چې لو دلالت کوی په انتفاء د شی اول باندې د وجی د انتفاء د شی ثانی نه، دلائل د ابن حاجب دوه دی (۱) یو دلیل عقلی (۲) او بل دلیل نقلی، دلیل عقلی دا دی چې ابن حاجب صاحب جمهورو ته وائی چې وجود د مضمون د شرط سبب دی او وجود د مضمون د جزاء مسبب دی او قاعده دا ده، چې انتفاء د سبب مستلزمه نده انتفاء د مسبب له ځکه د مسبب واحد لپاره اسباب شتی وی مثال لکه ملکیت مسبب دی او اشرا سبب دی او انتفاء د شراء مستلزم ندی انتفاء د ملکیت لره ځکه ملکیت دی حاصل وی، په بلی طریقی سره چې توریث او هبه ده او انتفاء د مسبب مستلزم ده انتفاء د سبب لره او دارنګې مضمون د شرط ملزوم او مضمون د جزاء ورسره لازم دی او قاعده داده چې انتفاء د ملزوم مستلزم نده انتفاء د لازم لره او انتفاء د لازم مستلزم ده انتفاء د ملزوم لره نو زما هغه معنی جوړیږی او ستاسو هغه نه جوړیږی، او دلیل نقلی یې دا قول د الله دی لَوْكَانَ فِيهِمَآ ءَالِهَةٌ إِلَّا ٱللَّهُ لَفَسَدَتَا، چې دلته انتفاء د ثانی چې فساد د اسمان او زمکی دی دلیل دی په انتفاء د شی اول باندې چې هغه تعدد د الهه وو دی دا دلیل دی په دې خبره چې لو دلالت کوي په انتفاء د شي اول د وجی د انتفاء د شی ثانی نه،
**جواب:** د طرفه د جمهور ونه دا دی چې په تا باندې خلط راغلی دی د استعمالینو چې لو شرطی تعلیقي دوه قسمه دی (۱) یو راځی لپاره د بیان د ترکیب خارجی او لپاره د اظهار دعلیت خارجی، (۲) او

بل د راځي لپاره د ترتيب ذهني يا لپاره د استدلال د ترتيب خارجي لپاره په هغه ځاي کې راځي چې متکلم او مخاطب دواړه عالم وي چې دا مضمون د شرط او جزا دواړه په خارج کې نشته نو بيا متکلم دا جمله شرطيه ذکر کوي مخاطب ته لپاره د اظهار د علتيت نه خارجي چې دا متکلم مخاطب ته ښکاره کوي چې داعدم اولي چې مضمون د شرط دی، دا سبب دی په خارج کې لپاره د عدم ثاني چې مضمون د جزاء دی او لو شرطي تعليقي دپاره د استدلال په هغه ځای کې راځي چې شرط او جزا دواړه معدوم دي خو مخاطب ته عدم د يو معلوم دی او دبل دا مجهول دی نو متکلم لو د دی دپاره مستعملوي چې دغه مجهول د مخاطب په ذهن کې کينوي او دا معلوم د مخاطب دليل گرځوي د مجهول لپاره نحو لَوْ كَانَ فِيهِمَآ ءَالِهَةٌ إِلَّا ٱللَّهُ لَفَسَدَتَا چې مضمون د شرط او جزاء دواړو په خارج کې نشته ليکن دا بديهي دی مخاطب يې مني او عدم د تعدد دالهو نظري دی مخاطب يې نه مني لهذا دا معلوم دليل شو د اثبات د هغه مجهول لپاره او دليل د جمهورو لپاره دا ايت دی لو شاء الله لهداکم نو انتفاء د هدايت راغلی ده د وجې د انتفاء د مشيت نه بل دليل دا قول د شاعر دی،

ولو طار ذو حافر قبلها　　　　لطارت ولكنه لم يطر

دلته انتفاء د شي ثاني راغلی ده چې طيران د فرس دی د وجې دانتفاء د اول نه چې هغه طيران د ذوحافر دی بل مثال لکه دا قول د شاعر شو،

ولو دامت الدولات كانوا كغيرهم　　　　رعاي ولكن ما لهن دوام

دلته هم انتفاء د شي ثاني راغلی ده د وجې د انتفاء د شي اول نه پدی شان سره چه عدم دوام د دولتو، سبب دی د عدم کون د دوی دپاره رعايا د ممدوح.

**وتلزمان الفعل**: او لازم دی ان اولو دواړه د فعل سره فعل عام دی چې لفظا وي او که تقديرا وي مثال د ان چې داخل وي په فعل لفظا لکه وَإِنِ ٱسْتَنصَرُوكُمْ فِى ٱلدِّينِ فَعَلَيْكُمُ ٱلنَّصْرُ او مثال د ان چې داخل دی په فعل تقديرا نحو قوله تعالی وَإِنْ أَحَدٌ مِّنَ ٱلْمُشْرِكِينَ ٱسْتَجَارَكَ او مثال د لو چې داخل وي په فعل لفظا نحو قوله تعالی لَوْ يُطِيعُكُمْ فِى كَثِيرٍ مِّنَ ٱلْأَمْرِ لَعَنِتُّمْ مثال د لو چې داخل وي په فعل تقديرا نحو قوله تعالی لَّوْ أَنتُمْ تَمْلِكُونَ خَزَآئِنَ رَحْمَةِ رَبِّىٓ ای لو تملكون **ومن ثم** او د وجې د لزوم د فعل نه بعدهما لفظا يا تقديرا **قيل** ويلی شوي دي وروستو د لو محذوف الفعل نه **انك بالفتح** په فتحې د همزې سره نه په کسرې سره يعني د لو شرطي نه وروستو ان مفتوحة الهمزه راځي ان مکسورة الهمزه نه راځي **لانه فاعل** ځکه د ان سره د معمولينو نه فاعل دی د فعل مقدر بعد لو لپاره او ان سره د مابعد نه صالح دی لپاره د فاعليت او ان مکسورة الهمزه صالح لپاره د فاعليت نه دی ځکه فاعل کې لابدي ده د اسميت نه او اسميت عام دی که حقيقة وي او که تاويلا وي او ان مفتوحه الهمزة سره د معمولينو نه اسم تاويلي جوړيږي ځکه دا د مابعد جملې نه په تاويل د مصدر سره مفرد جوړوي په خلاف د ان مکسورة الهمزه نه چې هغه د لو نه وروستو نه راځي ځکه هغه جمله په خپل حال پاتې کوي سره د تاکيد نه **وانطلقت بالفعل** دا عطف

دی په لو انك باندې نو معنی دا شوه د وجې د لزوم د فعل نه وروستو د ان او لو نه ویلی شوی دی انطلقت بالفعل په صیغې د فعل سره **موضع منطلق** د منطلق په ځای باندې په دې شان سره چې لوانك انطلقت به وائې او لو انك منطلق به نه وائې اګر چې دا موضع. موضع د منطلق دی ځکه اصل په خبر کې افراد دی، لیکن دلته د دې ان مفتوحة الهمزة لپاره خبر به مفرد نه ذکر کوې بلکه فعل به ذکر کوې **لیکون کالعوض** د دې دپاره چې شي په منزله د عوض د فعل محذوف بعد لو نه او کالعوض یې وویل نه عین عوض ځکه کوم فعل چې مقدر دی وروستو د لو نه د هغې لپاره لاندې ده د مفسر نه او دا ان د وجې د کیدو د دې نه دال په معنی د تحقیق او ثبوت باندې دلالت کوې په شغه فعل مقدر باندې معناً نو دا ان عوض شو د فعل مقدر او محذوف نه من حیث المعنی او دا فعل واقع في جانب الخبر عوض دی د هغه فعل محذوف نه من حیث اللفظ او حقیقت کې د فعل او ان نه یو هم عوض نه دی د هغه فعل مقدر نه بلکه دا په منزله د عوض دی. او دا حکم هله دی چې دا خبر د ان مشتقي وو **فان کان جامدا** که خبر د ان واقع بعد لو لپاره اسم جامد وو چې د هغې نه ممکن نه وو اشتقاق د فعل **جاز** جائزه ده وقوع د اسم جامد خبر لپاره د ان **لتعذره** د وجې د تعذر د وقوع د فعل نه په موضع د خبر باندې نحو قوله تعالی وَلَوْ أَنَّمَا فِي الْأَرْضِ مِن شَجَرَةٍ أَقْلَامٌ دا اقلام خبر د ان دی او دا اسم جامد دی د دې نه اشتقاق د فعل نه دی ممکن ځکه اسم جامد خبر د ان راغلی دی چې واقع دی وروستو د لو نه.

**تنبیه**: ان چې واقع شي وروستو د لو ﷺ او خبر د دې لپاره مشتقي راتلو نو وضع د فعل ماضي په موضع د مشتقي کې غالب ده او کله کله مشتقي هم خبر راځي د دغه ان لپار، چې واقع شوی دی وروستو د لو نه او کله کله وضع د فعل مضارع راځي په موضع د مشتقي کې.

**ان** په پنځه معانیو سره راځي په استعمال د کلام د عربو کې.

(۱): زائده کما في قول حسان بن ثابت رضي الله عنه

ما ان مدحت محمدا بمقالتي ولکن مدحت مقالتي بمحمد

(۲): ان نافیه کما في قوله تعالی إِن كُلُّ نَفْسٍ لَّمَّا عَلَيْهَا حَافِظٌ (۳): ان شرطیه کما في قوله تعالی إِن كُنتُمْ تُحِبُّونَ اللَّهَ فَاتَّبِعُونِي يُحْبِبْكُمُ اللَّهُ (۴): وصلیه نحو قوله علیه السلام اکرموا الضیف **ولو کان کافرا**.

(۵): مصدریه نحو قوله تعالی وَدُّوا لَوْ تُدْهِنُ فَيُدْهِنُونَ.

(۶): استمراري نحو (لو أهانني زید لاکرمته نعم العبد صهیبا لو لم یخف الله لم یعص).

(۷): للتقلیل نحو قوله علیه السلام (تصدقوا ولم بظلف محرق). (۸): للتکثیر نحو قوله علیه السلام (اولم ولو بشاة). (۹): للعرض نحو لو تاتینا فتصیب خیرا. (۱۰): للتحضیض نحو لو تامرنا فتطاع.

(۱۱): بمعنی ان نحو قوله تعالی وَلْيَخْشَ الَّذِينَ لَوْ تَرَكُوا مِنْ خَلْفِهِمْ ذُرِّيَّةً ضِعَافًا (۱۲): محض د ربط لپاره.

## ما به الاشتراك درميان ان و لو

(۱): ان و لو دواړه واجب الدخول دي په فعل باندې لفظا يا تقديرا (۲): دا دواړه تعليق د مضمون د جزاء كوي په مضمون د شرط پورې (۳): د دواړو لپاره صدارت د كلام واجب دى.

## ما به الامتياز ان و لو

(۱): ان راځي د استقبال لپاره او لو راځي د ماضي لپاره غالبا.
(۲): ان تعليق د مضمون د جزاء كوي په مضمون د شرط پورې په استقبال كې او لو تعليق د مضمون د جزاء كوي په مضمون د شرط پورې په ماضي كې (۳): لو دلالت كوي په انتفاء د مضمون د شرط او د جزاء دواړو بخلاف ان (۴): ان د حروف عاملو نه دى او لو د حروف غير عاملو نه دى
(۵): جزاء د ان شرطيه كله جمله فعليه راځي او كله اسميه بالاتفاق او جزاء د لو شرطيه كې خلاف دى ابن هشام وائي غالبا جمله فعليه راځي او كله كله اسميه هم راځي او شيخ رضى وائي چې جمله فعليه راځي نه اسميه لهذا كوم ځاى چې جزاء د لو جمله اسميه وه هغه به دال بالجزاء وي او جزا به مقدره وي
(۶): ان مفتوحة الهمزه راځي وروستو د لو نه بخلاف ان.
(۷): ان راځي د شك لپاره او لو راځي د يقين لپاره او ان كله كله مستعملولى شي په مقام د جزم كې تجاهلا لكه څوك تپوس وكړي د عبد نه په باره د مولى كې چې هل هو في الدار او غلام ته معلومه وي چې مولى په كور كې شته خو په جواب كې وائي ان كان فيها اخبرك نو ان دلته مستعمل دى په مقام د جزم كې تجاهلا خوفا من السيد.
(۲): او كله كله مستعملولى شي په مقام د جزم كې د وجې د عدم جزم د مخاطب نه په وقوع د جزم باندې كقولك لمن يكذبك ان صدقت فما ذا تفعل
(۳): ان مستعمليږي په مقام د جزم كې د وجې د تنزيل د عالم نه بمنزلة الجاهل د وجې د مخالفت د دې عالم نه د مقتضى د علم نه كقولك لمن يؤذي اباه ان كان اباك فلا تؤذيه
(۴): ان مستعمليږي په مقام د جزم كې لپاره د توبيخ د مخاطب نحو قوله تعالى ﴿أَفَنَضْرِبُ عَنكُمُ الذِّكْرَ صَفْحًا أَن كُنتُمْ قَوْمًا مُّسْرِفِينَ﴾ غالبا شرط او جزاء دواړه مذكور وي او كله كله احدهما حذف كولى شي سره د بقاء د اخر نه په وقت د وجود د قرينه داله كې په تعين د محذوف باندې، نو حذف د شرط سره د بقاء د جزاء نه دا مشروط بشرطين دى: (۱) وجود د دليل په دې باندې (۲) كرن د شرط واقع بعد الاكما في قول الشاعر:

فطلقها ولست لها بكفو ... والا يعل مفرقك الحسام

يعل جزاء ده مضارع مجزوم ده په حذف د حرف علة سره او شرط د دې حذف شوى دى، اى و ان لم تطلقها، او حذف د جزاء جوازا سره د بقاء د شرط نه هم مشروط دى په شرطين سره: (۱): ان يكون معلوما (۲) ان يكون فعل الشرط ماضيا نحو قوله تعالى ﴿وَإِن كَانَ كَبُرَ عَلَيْكَ إِعْرَاضُهُمْ﴾ نو جزاء د دې حذف

ده چي فافعل دی، وکقوله علیه السلام (ارایت ان جاء رجل یرید اخذ مالي) (دا شرط دی) جزاء حذف ده فما افعل - لدلالة المقام علیه - نبي صلی الله علیه وسلم په جواب کې وفرمائیل (فلا تعطه مالك وریسي حدیث دا دی (ارایت ان قاتلني قال علیه السلام قاتله، قال فان قتلني قال علیه السلام فانت شهید قال ان قتلته قال علیه السلام فهو في النار)، او کله شرط مذکور وي او جزا محذوف وي وجوبا د معنی بیان کوي په دې قول سره **واذا تقدم القسم اول الكلام** که چرې واقع شي حرف قسم په جانب اول د کلام کې مقدم **علی الشرط** په حرف د شرط باندې **لزمه** لازم دی د حرف شرط سره **الماضي** فعل ماضي. یعني دا شرط واقع وروستو د حرف شرط نه به فعل ماضي وي او دا ماضي عامه ده چې لفظا وي لکه صیغه د ماضي شوه یا معنی وي لکه صیغه د مضارع چې لما او لم وربانډې داخل شي لپاره د دې چې حرف شرط ملغی شي د عمل کولو نه په فعل شرط کې **فیطابق** نو مطابق به شي فعل شرط د جزاء سره په عدم د عمل لفظي کې **وکان الجواب للقسم** او دی جاب د قسم لپاره فقط **لفظا** د جهت د لفظ نه د قسم او شرط دواړو لپاره ځکه بیا لازمیږي کون د جواب مجزوم او غیر مجزوم او دا محال دی او اولیت د اسبابو د ترجیح نه دی اما معنی، دا جواب د قسم لپاره هم دی د دې جهت نه چې محلوف علیه دی او د شرط لپاره هم دی د دې جهت نه چې دا مشروط دی په شرط سره. مثال د قسم چې مقدم وي په حرف شرط باندې او حرف شرط داخل شوی وي په فعل ماضي باندې لفظا او جواب د قسم لپاره گرځولی دی نحو والله ان اتیتني لاکرمتك او ماضي معنی لکه والله ان لم تاتیني لاکرمتك دلته حرف قسم او شرط دواړه جمع شوي دي او حرف قسم مقدم دی په حرف شرط باندې او دا مابعد جواب د قسم لپاره دی او جزاء د شرط محذوف ده.

**تشریح: سوال:** واذا تقدم القسم الخ دلته ظرفیت نه صحیح کیږي ځکه د دې معنی دا ده چې کله واقع شي قسم په اول د کلام کې نو اول د کلام نه دی مگر دغه قسم دی نو ظرفیت د شي لنفسه راغی؟

**جواب:** دا عبارت په حذف د مضاف سره دی ای واذا تقدم القسم في جانب اول الکلام نو ظرفیت د عام راغی د خاص لپاره

**سوال:** فرضي منصبي د مصنف اختصار بما هو اختصار دی نو پکار وه چې صرف و اذا تقدم القسم علی الشرط یې ویلی وي نو اول الکلام ذکر کولو ته ضرورت دی؟ **جواب:** که واذا تقدم القسم علی الشرط یې ویلی وی نو دا نه معلومیده چې د حرف شرط نه علاوه بله کلمه مخکې شته او کنه نو اول الکلام سره نفي د غیر وشوه. د شرط درې اطلاقه دي: بمعنی تعلیق. فعل شرط. حرف شرط. او دلته دا دریمه معنی مراد ده په قرینې د مقام سره

**سوال:** حرف شرط او حرف قسم چې یو ځای راشي او حرف قسم مقدم وي نو مابعد جواب د قسم ولې گرځوي د قسم او شرط دواړو لپاره یې ولې نه گرځوي؟ **جواب:** دا یو کلام ژه جواب د شرط او قسم دواړو لپاره نه شو گرځولی ځکه بیا لازمیږي اجتماع د نقیضین ځکه که جواب د شرط یې ووایې نو دا به مجزوم وي او که جواب د قسم یې ووایې نو مجزوم به نه وي او دا ممکن نه دی.

**سوال:** دا فقط د شرط لپاره جواب ولې نه ګرځوې؟
**جواب:** قسم مقدم دی په شرط باندې او تقدیم د اسبابو د ترجیح نه دی لان الفضل للمتقدم
**سوال:** په دغه صورة کې د حرف شرط سره ماضي لفظا یا معنی ولې لازم ده؟
**جواب:** لپاره د دې چې دا حرف شروط تاثیر ونه کړي په دې فعل شرط کې.
**سوال:** تاثیر لفظي د حرف شرط په فعل شرط کې ولې ملغی کوي؟
**جواب:** لپاره د دې چې موافق شي فعل شرط د جزاء سره په عدم د عمل لفظي د ان کې **وان توسط** او که چرې واقع شي حرف قسم په مینځ د اجزاؤ د جمله کې **بتقديم الشرط** د وجې د تقدیم د حرف شرط نه یا فعل شرط نه په دې قسم باندې **اوغيره** یا د وجې د تقدیم د غیر د حرف شرط نه په دې قسم باندې چې هغه مبتداء ده **جازان يعتبر وان يلغى** په ضمیر د ان یعتبر او ان یلغی کې دوه احتماله دي
(۱) یا راجع دی قسم ته یا شرط ته علی التعیین او اعتبار د هر واحد د دې دواړو نه واجب کوي الغاء د اخر لره فیکون المعنی ان یعتبر القسم ویلغی الشرط وان یلغی القسم یعتبر الشرط.
(۲) دویم احتمال دا دی چې ضمیر د یعتبر راجع دی احدهما ته لا علی التعیین او ضمیر د یلغی راجع دی بل ته فیکون المعنی جاز ان یعتبر احدهما ویلغی الاخر ځکه هر کله چې فوت شو صدارت د قسم نو تاثیر وجوبا نه کوي لهذا په دې کې جواز د وجهین دی **كقولك** لکه دا مقوله ستا شوه **انا والله ان تاتيني اتك** (۱) دا هغه مثال دی چې غیر شرط مقدم دی چې انا دی په قسم باندې چې والله دی (۲) دا هغه مثال دی چې قسم لغوه دی او شرط معتبر دی په اعتبار د تقدیم د غیر شرط سره د الف نشر غیر مرتب او په اعتبار د ان یعتبر سره لف نشر مرتب دی **وان اتيتني والله لاتينك** (۱) دا هغه مثال دی چې حرف شرط مقدم دی په قسم په دې اعتبار سره د الف نشر غیر مرتب دی (۲) دا هغه مثال دی چې قسم معتبر دی او شرط لغوه دی په دې اعتبار سره د الف نشر مرتب دی.
**وتقدير القسم كاللفظ** او قسم مقدره په شان د قسم ملفوظ دی په حکم کې په اعتبار د دې قسم کې او په الغاء د قسم کې په دې شان سره چې حرف قسم او حرف شرط دواړه یو ځای راشي او قسم مقدم وي په شرط باندې خو مقدر وي بیا دا ما بعد جواب د قسم لپاره ګرځولی شي نه د شرط لپاره نحو قوله تعالی لَئِنْ أُخْرِجُوا لَا يَخْرُجُونَ دلته دا ان حرف شرط دی جزاء غواړي لام موطئه للقسم دی
**تعریف:** هي التي تدخل على ادوات الشرط للدلالة على ان الجواب بعدها انما هو جواب لقسم مقدر قبلها لاجواب شرط لهذا د دې لام نه مخکې قسم مقدر دی دا جواب قسم غواړي لایخرجون جواب قسم دی او جزاء د شرط نه ده او دلیل په دې باندې ثبوت د نون دی ځکه که دا جزاء د شرط وی نو مضارع به مجزومه وه بل مثال د دې لپاره لکه دا قول د الله شو لَئِنْ أَشْرَكْتَ لَيَحْبَطَنَّ عَمَلُكَ بل مثال لکه وَإِنْ أَطَعْتُمُوهُمْ إِنَّكُمْ لَمُشْرِكُونَ چې د دې شرط نه مخکې قسم مقدر دی چې اصل کې (والله ان اطعتموهم) وو او دا ما بعد إِنَّكُمْ لَمُشْرِكُونَ جواب د هغه قسم مقدر دی، او دلیل په دې خبره (چې دا جواب قسم دی او جزاء

د شرط نه ده، دا دی چې که دا جزاء د شرط وی نو فاء جزائيه به پکښې راغلې وه ځکه جمله اسميه په جزاء د شرط واقع شي نو هلته فاء جزائيه راوړل واجب او لازم وي په دې سره يو اعتراض هم دفع شو.

**سوال:** دا قاعده ده چې جمله اسميه چې جزاء د شرط واقع شي نو لابدي ده د فاء جزائيه نه دا قاعده ستا منقوضه شوه په دې قول د الله جل جلاله [ ولئن اطعتموهم انكم لمشركون ] دلته جمله اسميه جزا واقع شوې ده او فا جزائيه نشته؟

**جواب:** [ انكم لمشركون ] جزاء د شرط نه ده بلكه دا جواب د قسم دی او قسم مقدر دی د حرف شرط نه مخکې كان في الاصل. والله لئن اطعتموهم انكم لمشركون، او قسم مقدره په شان د قسم ملفوظ دی په حکم کې او قاعده دا ده چې حرف شرط او قسم چې دواړه چې يو ځای راشي او قسم مقدم وي په حرف شرط باندې دا قسم عام دی که لفظا وي او که تقديرا وي نو دا مابعد كلام جواب د قسم لپاره گرځولی شي نه جواب د شرط د وجې د سبقيت د قسم نه.

**سوال:** وتقدير القسم كاللفظ دا تشبيه نه ده صحيح ځکه تقدير وصف دی او لفظ ذات دی نو تشبيه د لفظ راغلی د ذات سره؟

**جواب:** لکه څنګه چې لفظ مصدر مبني للمفعول بمعنى الملفوظ دی نو دارنګې تقدير هم مبني للمفعول دی بمعنى المقدر فيكون المعنى والقسم المقدر كالقسم الملفوظ نو تشبيه د ذات د ذات سره راغله نه تشبيه د وصف د ذات سره.

**واما الت‍فصيل: ربط:** هر كله چې فارغ شو مصنف د بيان د ان او لو شرطيه نه تفصيلا نو شروع يې وکړه په بيان د اما کې تفصيلا. په لفظ د اما کې مذاهب اربعه دي: خليل، جمهور، سيبويه، مير ابو البقاء.

(١): خليل وائي اما اصل کې مَهْمَا وو ها بدله شوه په همزې سره د وجې د قرب مخرج نه ځکه دواړه حروف حلق دي نو مَاْ مَا شو بيا په مابين د همزه او ميم کې قلب مکاني وکړی شو ځکه همزه تقاضه د صدارت کوي په بعض صورتونو کې نو پس د قلب مکاني نه په دې باندې تلفظ نه کېدو ځکه همزه ساکنه وه نو حرکت د ميم همزې لره ورکړی شو نو اَمْمَا شو بيا پکښې ادغام وشو نو اما شو.

(٢): جمهور وائي چې دا اصل کې مَامَا وو تصرف فيه كما تصرف فيه في مذهب الخيل.

(٣): او سيبويه وائي دا اصل کې اِنْ ما وو نون او ميم قريب المخرج يا مشترك الصفة في الغنة يو ځای راغلل نون بدل شو په ميم او ميم په ميم کې مدغم کړی شو نو اما ترې جوړ شو. يا اصل کې ان ما وو بيا د نون ساکنه نه وروستو ميم راغی او دا يو حرف دی د حروف د يرملون نه او قاعده دا ده چې د نون ساکنه نه وروسته چې يو حرف د حروف يرملون نه راشي نو دا نون بدلول په هغه حرف سره او ادغام کول واجب دي نو اما شو بيا کسره د همزې بدله شوه په فتحې سره لپاره د دې چې لازم نه شي التباس د امام عاطفه سره نو اما شو

**سوال:** دا قاعده د يرملون منقوضه شوه په صنوان سره چې دلته د نون ساکنه نه وروستو واو راغلی دی او ادغام نه دی شوی؟ **جواب:** دا قاعده په کلمتين کې ده نه په کلمه واحده کې.

(۴): او مير ابو البقاء وائي دا كلمه موضوعه براسها ده نه اصل كي مهما وو نه ملما وو نه ان ما وو بلكه واضع دغسي وضع كړی دی ځكه دا حرف دی او اصل په حروف كي عدم تغير او تصرف دی او دی اعتراض كوي په خليل باندي چي ته وائي دا اصل كي مهما وو نو په ادغام او ابدال سره شئ د خپل حقيقت نه نه وځي نو مهما خو اسم دی نو پس د ابدال او ادغام نه حرف څنګه جوړ شو خليل جواب كوي چي شئ د خپل حقيقت نه نه وځي فقط ادغام فقط ابدال او فقط قلب سره او كله چي دري واړه راشي نو بيا د خپل حقيقت نه وځي

او اما شرطيه په دوه قسمه دی: (۱): **للتفصيل** يو قسم دا دی چي وضع كړی شوی دی د تفصيل د ما اجمله المتكلم في الذكر لپاره كقولك جاء اخوتك اما زيد فاكرمته واما عمرو فاهنته واما بشير فاعرضت عنه يا د تفصيل د ما اجمله المتكلم في الذهن لپاره راځي په دې شرط سره چي دا ما جمله المتكلم في الذهن معلوم وي سامع او مخاطب ته په واسطه د قرائن سره كقولك ابتداء اما زيد فاكرمته واما عمرو فاهنته واما بشير فاعرضت عنه دا تفصيل دی د ما اجمله المتكلم في الذهن لپاره چي هغه جاء اخوتك دی، او كه دا ما اجمله المتكلم معلوم نه وو سامع او مخاطب ته په واسطه د قرائن سره نو اما د هغې د تفصيل لپاره نه راځي

او اما شرطيه د تفصيل د مجمل لپاره راځي په طريقه د تكرار سره وجوبا كما مر په دې شرط سره چي د تفصيل د ضدين لپاره نه وو راغلی او كه د تفصيل د ضدين لپاره راغلی وو نو هلته اكتفاء كولی شي په ذكر د قسم واحد سره بې د ذكر كولو د ضد اخر نه لدلالة احد الضدين على الاخر كقوله تعالى فَأَمَّا الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ زَيْغٌ فَيَتَّبِعُونَ مَا تَشَابَهَ مِنْهُ په دې ايت كي اما شرطيه د تفصيل د مجمل لپاره دی بې د تكرار نه ځكه اكتفاء كړی شوي ده په ذكر د قسم واحد سره چي اَلَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ زَيْغٌ دی، او د دې مقابل په دې مقام كي نه دی مذكور بلكه مقدر دی ځكه هغه معلوم كيږي د دې مذكور نه چي هغه، واما الذين ليس في قلوبهم زيغ فيتبعون المحكمات ويردون اليه المتشابهات، دی

(۲): او كله كله راځي د استيناف لپاره په دې شان سره چي د اما بعد تفصيل د ماقبل لپاره نه وي واقع شوی ځكه په ماقبل كي اجمال نشته لكه اما شو په اما بعد كي او اما بكسر الهمزه د حروف عاطفو نه دی د عطف لپاره راځي په طريقه د شك سره غالبا او اما بفتح الهمزة د حروف الشرط نه دی: د وجي د لزوم دفاء نه په جواب د اما كي. د وجي د سببيت د اول نه لپاره د ثاني

**سوال:** هر كله چي اما حرف شرط شو او حرف شرط لپاره لابدي ده د فعل شرط نه او د اما حرف شرط سره خو فعل شرط نه راځي په استعمال د كلام د عربو كي نو تاسو څنګه اما ته حرف شرط وايئ؟

**جواب:** **والتزام حذف فعلها** لازم كړی شوی دی حذف د هغه فعل شرط چي اما داخل شوی دی په هغې باندې **وعوض** او عوض راوړی شوی دی د فعل شرط مقدر نه **بينها** په مابين د كلمه د اما **وبين فائها** او په مابين د هغه فاء كي چي واقع شوي ده په جزاء د اما كي **جزء مما في حيزها مطلقا** يو جزء د هغې جملې نه چي هغه وروستو د دې اما نه راځي لپاره د دې چي لازم نه شي اتصال د حرف شرط او دفا

جزائیه په مینځ کې دغه جز عام دی چې مبتدا وي نحو اما زید فمنطلق یا معمول وي لما وقع بعد الفاء لپاره نحو اما یوم الجمعة فزید منطلق **مطلقا** په حال کون د دې جز کې چې دا نه دی مقید په تجویز د تقدیم د دې جز سره په دې فاء باندې او نه په عدم تجویز سره او دا مذهب د سیبویه دی چې دهٔ کړخولی دی د اما لپاره خصوصیت د جواز د تقدیم د هغه شئ چې ممتنع دی تقدیم د هغې مطلقا برابره خبره ده چې مانع د تقدیم دغه فاء جزائیه وي او که بل څه وي

**سوال:** مطلقا ولې منصوب دی؟

**جواب:** دا منصوب دی بنا بر حالیت د جزء لپاره. یا دا مصدر میمي منصوب دی بنا بر مفعول مطلق د فعل مقدر او محذوف لپاره ای اطلق اطلاقا. یا منصوب دی بنا بر مفعول مطلق د عوض لپاره په اعتبار د موصوف محذوف سره ای عوض تعویضا مطلقا

**وقیل** او چا ویلې دي (قائل د دې قول مبرد دی) **هو** دا ما وقع بینها وبین فائها، دا ما بعد د اما شرطیه **معمول المحذوف** معمول دی د شرط محذوف لپاره **مطلقا** (١) په معمولیت مطلقه سره (٢) زمان مطلق سره. برابره خبره ده چې مرفوع وي او که منصوب وي او برابره خبره ده چې تقدیم د دغه جز علی الفاء جائز وي او که نه وي او دا مطلقا منصوب دی (١) بنا بر مفعول مطلق د معمول لپاره (٢) یا مفعول فیه دی د معمول لپاره

**سوال:** دا منصوب بنا بر مفعول مطلق او منصوب بنا بر مفعول فیه دواړه نه دي صحیح ځکه چې مفعول مطلق خو مصدر د عامل مذکور ته وائي او مطلقا خو مصدر د معمول نه دی او مفعول فیه ظرف زمان او مکان ته وائي او دا یو هم نه دی؟

**جواب:** دا منصوب دی بنا بر مفعول مطلق یا بنا بر مفعول فیه په اعتبار د موصوف محذوف سره ای عملا مطلقا او زماناً مطلقا مثال لکه اما یوم الجمعة فزید منطلق تقدیر د دې بنا په مذهب د سیبویه مهما یکن من شئ فزید منطلق یوم الجمعة وو، بیا فعل شرط حذف شو چې یکن من شئ دی او اما قائم شو په مقام د مهما باندې بیا دا معمول د منطلق چې یوم الجمعة دی ذکر کړی شو بین اما وفا الجزائیة لپاره د دې چې لازم نه شي توالي د حرف شرط او د جزاء نو اما یوم الجمعة فزید منطلق جوړ شو او تقدیر بنا په مذهب د مبرد دا دی مهما یکن من شئ یوم الجمعة فزید منطلق دا یوم الجمعة معمول د فعل شرط دی هر کله چې فعل شرط حذف کړی شو او اما قائم شو په ځای د مهما باندې نو اما یوم الجمعة فزید منطلق پاتې شو او د مبرد په نزد دا یوم الجمعة معمول د منطلق نه دی ځکه تقدیم د ما بعد د فاء جزائیه په فاء جزائیه باندې ممتنع دی او سیبویه وائي چې دا معمول د ما بعد منطلق دی او تقدیم د مابعد د فاء جزائیه په فاء جزائیه باندې ممتنع دی لیکن دا خاصه د اما شرطیه ده چې دی جائز کوي تقدیم د هغه شئ چې ممتنع وو تقدیم د هغه

**وقيل** او چا ويلي دي (قائل د دي امام مازني دی) **ان كان جائز التقديم** كه چرې وو دا مابعد د اما جائز التقديم په دې فاء باندې په دې شان سره چې د فاء نه علاوه بل يو مانع د تقديم په دې کې **موجود نه** وو نحو اما يوم الجمعة فمزيد منطلق.

**فمن الاول** دا د قبيلې د قسم اول نه دی يعنې د اما بعد د اما او دا فاصل دا معمول د جز د جزاء دی او مقدم کړی شوی دی په فاء جزائيه باندې **والا** او که چرې نه وو جائز التقديم بلکه مانع مجود وو د تقديم نه علاوه د فاء جزائيه نه.

**فمن الثاني** نو دا د قبيلې د قسم ثاني نه دی چې معمول دی د فعل شرط محذوف لپاره مثال لکه اما زيد فاني ضارب چې دا زيد معمول دی د شرط مقدر لپاره او نه دی معمول د جز د جزاء لپاره چې هغه ضارب دی ځکه په دې کې فاء جزائيه نه علاوه بل مانع د تقديم موجود دی چې هغه ان دی ځکه تقديم د معمول د ان په ان باندې نه دی جائز.

**سوال:** په اما زيد فمنطلق کې ته فعل مقدر را اوباسې مهما يكن من شئ نو مهما يذكر ولې نه را اوباسې په صيغې د مجهول سره چې زيد ورله نائب فاعل شي او په اما يوم الجمعة فزيد منطلق کې مهما تذكر را اوباسه په صيغې د معلوم سره نو د كلمه د مهما سره خاص يكن من شئ فعل مقدر راويستو لپاره څه وجه ده؟ **جواب:** د كلمه د مهما سره يكن من شئ مقدر را اوباسم نه يذكر يا تذكر ځکه ذكر مستلزم نه دی انطلاق لره.

(۲) او دا ذكر فعل خاص دی او د افعال خاصو نه دنيا ډکه ده نو ترجيح بلا مرجح راځي.

## حرف الردع

هر كله چې فارغ شو مصنف د بيان د حروف شرط نه نو شروع يې وکړه په حرف الردع کې لکه څنګه چې حرف التوقيع يو دی نو حرف الردع هم يو دی او اضافت د حرف الردع ته اضافت د دال دی مدلول ته يعنې هغه حرف چې دلالت کوي په منع او زجر باندې **كلا** هغه فقط كلا دی لکه يو كس تا ته ووائي چې فلان يبغضك او ته ورته وائې چې كلا يعنې ليس الامر كما تقول بل مثال لکه دا قول د الله شو لَعَلِّيٓ أَعۡمَلُ صَٰلِحٗا فِيمَا تَرَكۡتُۚ كَلَّآ د دې معنی دا ده چې دا خبر مه کوه او د دې خبرې نه منع شه چې [ رب ارجعون ] دی لانه لاسبيل الى الرجوع.

**وقد جاء** او لږ لږ راغلی دی دا لفظ د كلا **بمعنى حقا** په معنی د حقا سره چې مقصود په دې کې تحقيق د مضمون د جمله اتيه دی نحو قوله تعالى كَلَّآ إِذَا دُكَّتِ ٱلۡأَرۡضُ دَكّٗا دَكّٗا چې دلته دا كلا په معنی د حقا سره دی راغلی دی لپاره د تحقيق د جمله اتيه او هر چې دی په دې قول د الله جل جلاله کې چې ثُمَّ يَطۡمَعُ أَنۡ أَزِيدَ، كَلَّآۖ إِنَّهُۥ كَانَ لِأٓيَٰتِنَا عَنِيدٗا دا كلا محتمل د احتمالين دی دا احتمال هم شته چې د ردع او زجر او منع لپاره شي او دا احتمال هم شته چې بمعنى حقا دی او كلا چې په معنی د حقا سره راشي نو جائز دی چې دېته اسمي وويلی شي او مبني دی د وجې د مشابهت د دۀ نه د كلا حرفي سره لفظا او معنی ليكن

نحويانو حکم کړی دی په حرفیت د دۀ باندې کله چې دا راشي بمعنی حقا څکه مقصود د دۀ سره تحقیق د مضمون د جمله دی لکه ان حرفي چې د تحقیق د مضمون د جملې لپاره راځي
زده کړه دا خبره چې کلا څلور قسمه دی: (۱): ردعي نحو كَلَّآ ۚ إِنَّهَا كَلِمَةٌ هُوَ قَآئِلُهَا
(۲): بمعنی حقا نحو كَلَّآ إِذَا دُكَّتِ ٱلْأَرْضُ دَكًّا دَكًّا (۳): تنبیهي نحو قوله تعالی كَلَّآ إِنَّ ٱلْإِنسَٰنَ لَيَطْغَىٰٓ دلته کلا بمعنی الا دی (ای ان الانسان لیطغی) څکه کلا چې بمعنی حقا وي د هغې نه وروستو ان مفتوحة الهمزه راځي نه ان مکسورة الهمزة او دلته ان مکسورة الهمزة راغلی دی او د الا تنبیهي نه وروستو ان راځي نحو قوله تعالی أَلَآ إِنَّ أَوْلِيَآءَ ٱللَّهِ لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ
(۴): کلا حرف ایجاب بمعنی ای قبل القسم نحو قوله تعالی كَلَّا وَٱلْقَمَرِ

## تاء التانیث

هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د حرف ردع نه نو شروع یې وکړه په بیان د تاء التانیث کې. تا اولا اووه قسمه ده. (۱): جاره نحو تالله. (۲) علامه د مضارع نحو تضرب. (۳) تاء باب استفعال نحو استخرج. (۴) تاء د باب افتعال نحو اکتسب. (۵) تا د باب تفاعل نحو تضارب. (۶) تاء المطاوعة نحو تعلم تدحرج في قولك علمته فتعلم ودحرجته فتدحرج. (۷) تاء التانیث. دا بیا دوه قسمه ده: ساکنه متحرکه. متحرکه خاص ده په اسم پورې او دا شپاړس قسمه ده او دا تیر شوي دي په بحث د الکلمة کې او تاء التانیث الساکنه خاص ده په فعل پورې نو توصیف د تانیث په الساکنة سره چې یې وکړو نو احتراز یې وکړو د متحرکې نه څکه هغه خاص ده په اسم پورې او ساکنه خاص ده په فعل پورې.
**سوال:** عکس یې ولې ونه کړو؟ **جواب:** (۱): څکه چې فعل ثقیل دی په اعتبار د معنی سره چې عبارت دی د امور ثلاثه نه چې حدث نسبت او زمان دی او اسم خفیف دی او تاء التانیث ساکنه خفیفه ده او متحرکه ثقیله ده نو خفیف ثقیل لره ورکړی شو او ثقیل خفیف لره ورکړی شو لرعایة التعادل والاتصاف.
(۲): څکه اصل په اسماؤ کې اعراب دی او اصل په افعال کې بناء ده او اصل په اعراب کې حرکت دی او اصل په بنا کې سکون دی نو څکه یې تاء التانیث الساکنه خاصه د فعل وګرځوله او متحرکه یې خاصه د اسم وګرځوله **تلحق** متصل کیږي دا تاء التانیث الساکنة **الماضي** په اخیر د فعل ماضي پورې **لتانیث المسند الیه** لپاره د دې چې دلالت وکړي په تانیث د مسند الیه باندې د اول وهلت نه او مسند الیه عام دی که فاعل وي او که نائب فاعل وي نحو قد قامت الصلوة وکما في قول الشاعر:

المت فحیت ثم قامت فودعت فلما تولت کادت النفس تزهق

**الماضي** دا صفت دی د موصوف محذوف لپاره چې الفعل دی او دې سره یې احتراز وکړو د فعل مضارع او امر حاضر معلوم نه څکه دا تاء تانیث ساکنه متصل کیږي په اخیر د ماضي پورې او په اخیر د مضارع او امر حاضر پورې نه متصل کیږي څکه په فعل مضارع کې استغناء راغلې ده په تا علامه د مضارع سره او فعل امر حاضر معلوم کې استغناء راغلې ده په یا ضمیر د مؤنث مخاطب سره.

**سوال:** لتانيث الفاعل يې ولې ونه ويل؟ **جواب:** لتانيث المسند اليه يې وويل نه لتانيث الفاعل دی لپاره چې شامل شي فاعل او نائب فاعل دواړو ته او كه لتانيث الفاعل يې ويلی وی نو بيا نائب فاعل خارجيدو.

**فان كان ظاهرا غير حقيقي فمخير: ربط:** هر كله چې فارغ شو مصنف د بيان د تانيث د فعل نه اجمالا نو شروع يې وكړه په بيان د تانيث د فعل كې تفصيلا په اعتبار د جواز او د وجوب سره په دې شان سره چې په كوم خای كې تانيث د **فعل** واجب دی او كوم خای كې جائز دی. **فان كان** كه چرې وو مسند اليه **ظاهرا** اسم ظاهر. **ظاهر** نه مراد اسم ظاهر دی مقابل د ضمير نه مقابل د مقدر **غير حقيقي** غير حقيقي چې د دې مؤنث مقابل كې مذكر من الحيون نشته **فمخير** نو ته اختيار لرې په مابين د الحاق د تاء التانيث او عدم الحاق د تاء التانيث كې، يا دا الحاق د تاء التانيث مخير دی په اخير د فعل ماضي پورې په اسم ظاهر مسند اليه مؤنث غير حقيقي كې لكه طلع الشمس وائي كه طلعت الشمس وائي ځكه دا مؤنث كامل نه دی په دې تانيث كې نو دا سرايت نه كوي تانيث د فعل ته وجوبا او اسم ظاهر سره يې احتراز وكړو د ضمير نه ځكه كه د فعل يا شبه فعل اسناد وشي ضمير د مؤنث ته بيا تانيث د فعل واجب دی مؤنث عام دی چې لفظي وي او كه حقيقي وي نحو هند قامت، الشمس طلعت. فلا يجوز الشمس طلع. او هر چې دی دا قول د شاعر ولاارض ابقل ابقالها. نو په حذف د مضاف سره دی ای ولامكان ارض ابقل ابقالها. او غير حقيقي سره يې احتراز وكړو د اسم ظاهر مؤنث حقيقي نه ځكه كه د فعل اسناد وشي اسم ظاهر د مؤنث حقيقي ته متصل بلا فصل نو تانيث د فعل واجب دی نحو ضربت هند واما قول سيبويه قال فلانة شاذ. او كه د فعل اسناد وشي اسم ظاهر د مؤنث حقيقي ته مع الفصل هلته جواز د وجهين دی نو ضرب اليوم هند وائي او كه ضربت اليوم هند وائي دواړه جائز دي په دې شرط سره چې دا اسم مؤنث حقيقي مشهور نه وو په مذكر كې او كه مشهور وو په مذكر كې نو بيا تانيث د فعل واجب دی نحو ضربت اليوم زيد فلا يجوز فيه ضرب اليوم زيد (چې زيد علم واخلې د يوې ښځې لپاره).

**سوال:** **فان كان** شرط دی او فمخير ورله جزاء ده او جزا نه راځي مگر جمله او دا مفرد دی؟

**جواب:** فمخير خبر دی د مبتدا محذوف لپاره چې انت دی يا هو دی مبتدا سره د خبر نه جمله اسميه خبريه جزا د شرط او جمله اسميه چې جزاء د شرط راشي نو فاء جزائيه پكې لازمه ده ځكه دلته راغلې ده.

**سوال:** مخير به خالي نه وائي يا به يې صيغه د اسم فاعل وائي او يا به يې صيغه د اسم مفعول وائي كه صيغه د اسم فاعل يې وائي نو خبريت يې د انت لپاره صحيح دی نه د هو لپاره ځكه هو راجع دی الحاق ته او الحاق مخير نه دی بلكه مخير متكلم دی او كه صيغه د اسم مفعول يې وائي نو بيا خبريت د دې د انت لپاره هم نه دی صحيح او د هو لپاره هم نه دی صحيح ځكه متكلم مخير دی نه مخير او الحاق د تاء التانيث مخير فيه دی نه مخير؟

**جواب:** مخير صيغه د اسم فاعل ده او دا خبر دی د مبتدا محذوف لپاره چې انت دی یا صیغه د اسم مفعول ده او خبر واقع شوی دی د هو محذوف لپاره په تقدیر دفیه سره.

**سوال:** دا مسئله ذکر شوه په بحث د مؤنث کې نو دلته یې دوباره ولې ذکر کوي؟

**جواب:** د دغه مسئلې دپاره دوه اعتباره دي: (۱) هلته یې ذکر کړی وه په دې اعتبار سره چې دا د احکامو د مؤنث نه وه.

(۲): او دلته یې ذکر کړه په دې اعتبار سره چې دا د احکامو د تاء التانیث ساکنه نه ده.

**واما الحاق علامة التثنية والجمعين فضعيف** دا جمله مستانفه جواب د سوال دی.

**سوال:** هر کله چې تاء التانیث الساکنة متصل کیږي په اخیر د فعل ماضي پورې لپاره د دلالت په تانیث د مسند الیه د اول وهلت نه نو جائز دې شي الحاق د علامه د تثنیه او جمع مذکر او مؤنث په اخیر د فعل پورې لپاره د دې چې دلالت وکړي په تثنیت او جمعیت د فاعل د اول دهلت نه؟

**جواب:** نو مصنف رحمه الله جواب وکړو چې واما الحاق علامة التثنية الخ الحاق د علامه د تثنیه او د علامه د جمع مذکر او جمع مؤنث په اخیر د فعل پورې چې د دې فعل لپاره فاعل راغلی وي اسم ظاهر **ضعيف** دا ضعیف دی. د وجې (۱) د عدم احتیاج د الحاق د علامه تثنیه او جمعین نه په اخیر د دې فعل پورې په شان د احتیاج د مسند الیه...... (۲) ځکه لازمیږي د دې نه توهم د تعدد د فاعل.

(۳): لازمیږي اضمار قبل الذکر لفظا او رتبتا بلا فائده.

**سوال:** د مصنف لپاره پکار وو چې ممتنع یې ویلی وی په ځای د ضعیف باندې ځکه ضعیف دلالت کوي په جواز د الحاق او الحاق د دې خو ممتنع دی ځکه لازمیږي اضمار قبل الذکر بلا فائده، او بل لازمیږي تعدد د فاعل او دا دواړه باطل دي؟ **جواب:** الحاق د علامه د تثنیه او جمع مذکر او مؤنث په اخیر د فعل پورې چې راشي دا مستلزم نه دی تعدد د فاعل لره او اضمار قبل الذکر لره (۱). دا ضمائر نه دي بلکه دا حروف دي راوړی شوي دي محض د دې لپاره چې دلالت وکړي په تثنیت او جمعیت د فاعل د اول وهلت نه لکه چې تاء التانیث ساکنه متصل شي په اخیر د فعل پورې نو هغه حرف دی نه ضمیر دلالت کوي په تانیث د فاعل باندې د اول وهلت نه.

(۲): یا دا ضمائر دي فاعل واقع شوی دی د فعل لپاره او دا ضمیر مبدل منه او مابعد اسم ظاهر د هغه نه بدل واقع شوی دی او اسم ظاهر بدل د ضمیر غائب نه واقع کیږي نحو قوله تعالی ثُمَّ عَمُوا وَصَمُّوا كَثِيرٌ نو دغسې دلته دا اسم ظاهر بدل واقع شوی دی د ضمیر فاعل نه.

(۳): یا دا ضمیر فاعل دی او فعل سره د فاعل نه جمله خبر مقدم دی او مابعد اسم ظاهر مبتدا مؤخره ده. (۴): یا دا فعل سره د ضمیر فاعل نه ځان له مستقله جمله ده او مابعد اسم ظاهر فاعل دی د فعل محذوف لپاره او دا فعل حذف شوی دی جوازا د وجې د وجود د قرینې د الی نه په تعین د محذوف چې هغه سوال مقدر دی په شان د اکلوني البراغيث کله چې دی متکلم اکلوني وویل نو د دې فعل فاعل معلوم نه شو سامع او مخاطب ته او ابهام د فاعل منشاء د سوال ده نو سائل سوال

وكړو چې (من اكلك؟) نو مجيب جواب وكړو (البراغيث) سره اى اكلني البراغيث. مثال د الحاق د علامه د تثنيه او جمع مذكر او جمع مؤنث نحو قوله تعالى [ واسروا النجوى الذين ظلموا ] وقوله عليه السلام (يتعاقبون فيكم ملائكة بالليل وملائكة بالنهار). وقول الشاعر:

تولى قتال المارقين بنفسه  فلما اسلماه مبعد وحميم

**ترجمه:** شروع وكړه مصعب ابن زبير د جنگ د هغه خلقو سره چې خارج وو د دين نه يك يواځې هر كله چې پرېښودو ده لره دوستانو او غير دوستانو دواړو.

## التنوين

بل حرف د حروف غير عاملو نه تنوين دى. او تنوين كې لابدي ده د معرفت د امور ثلاثة ؤ نه: مفهوم لغوي، مفهوم اصطلاحي، اقسام. نو تنوين صيغه د مصدر ده د باب تفعيل نه از نون ينون تنوينا په لغت كې ادخال النون ته وائي. يا جعل الشئ ذا نون ته وائي.

او په اصطلاح كې: (هي النون الساكنة الزائدة في اخر الاسم لفظا لا خطا) ته وائي.

(٢): يا **نون** دا يو نون دى **ساكنة** داسې نون چې ساكن دى وضعا **تتبع حركة الاخر** داسې نون چې تابعداري كوي د حركت د حرف اخير د كلمه په وجود او تلفظ كې **لا لتاكيد الفعل** او دا نه راځي د تاكيد د فعل لپاره او دلالت نه كوي په تاكيد د فعل باندې.

**سوال:** ته وائې چې تنوين نون ساكنه ته وائي دا قاعده ستا منقوضه شوه په عاد ن الاولى سره چې دلته دا تنوين ساكن نه دى بلكه متحرك دى؟ **جواب:** مونږ وايو چې دا به ساكن وي وضعا او په عاد ن الاولى كې حركت عارضي راغلى دى د وجې د التقاء د ساكنين نه.

**سوال:** ته وائي چې تنوين نون ساكنه دى تابعداري كوي د اخير د كلمه نو اخير د كلمه نه دى بلكه دغه حركت دى نو تتبع الاخر يې ولې ونه ويل چې حركة الاخر يې وويل؟

**جواب:** حركة الاخر يې وويل نه الاخر ځكه متبادر د اخر نه حرف اخير دى نه حركت.

**سوال:** اخر الاسم يې ولې ونه ويل؟ **جواب:** الاخر يې وويل نه اخر الاسم لپاره د دې چې دا تعريف د تنوين شامل شي تنوين ترنم ته چې هغه راځي په اخر د اسم فعل او حرف درې واړو كې.

**سوال:** تعريف د تنوين مانع نه شو د دخول د غير نه داخل شو پكې نون د انطلق په يا رجل انطلق كې ځكه دا نون ساكنه دى تابعداري كوي د اخير د كلمه او لا لتاكيد الفعل دى؟

**جواب:** تنوين هغه نون ساكنه ته وائي چې تابعداري كوي د اخير د كلمه په وجود او تلفظ كې په دې شان سره كه دا حركت موجود وو نو تنوين به موجود وي كه تا په هغې تلفظ وكړو نو په دې به تلفظ كوې او چې حركت نه وي نو تنوين به هم نه وي او چې په هغې تلفظ ونه كړې نو په دې هم تلفظ نه كيږي په خلاف د نون د انطلق نه دا نه دى محتاج حركت د يا رجل ته.

**سوال:** نه وائي چې تنوين نون ساكنه ته وائي چې تابعداري كوي د اخير د كلمه دا تعريف جامع نه شو خپلو افرادو لره خارج شو د دې نه تنوين د اب اخ يد دم وغيره څكه دا اگر چې نون ساكنه خو تابعداري د اخير د كلمه نه كوي بلكه تابعداري كوي د حركت د عين كلمه؟

**جواب:** هر كله چې لام كلمه د دوی حذف كړی شوه نسيا منسيا نو وگرځېده عين كلمه اخير د كلمه نو دا تنوين تابعداري كوي د حركت د حرف اخير د كلمه

**لا لتاكيد الفعل** سره يې احتراز وكړه د نون تاكيد خفيفه نه څكه هغه نون ساكنه تتبع حركة اخر الكلمه دی خو د تاكيد د فعل لپاره راځي لهذا هغه ته تنوين نه ويل كيږي

په هر تعريف كې لابدي وي د جنس او فصل نه **نون ساكنه** جنس دی خپل او پردي ټول پكې داخل شو او تتبع حركة الاخر سره يې احتراز وكړو د نون د من او لدن نه او لالتاكيد الفعل سره يې احتراز وكړو د نون تاكيد خفيفه نه نو تعريف جامع مانع شو

**وهو للتمكن: ربط:** هر كله چې فارغ شو مصنف د تعريف د تنوين نه شروع يې وكړه په تقسيم د تنوين كې لپاره د اتمام د تعريف د تنوين څكه تقسيم د مكملاتو او متمماتو د تعريف، نه دی څكه تعريف سره معلوميږي معنی او مفهوم د شئ او تقسيم سره معلوميږي افراد او مصداق د شئ نو پس د تقسيم نه به موږ ته تنوين معلوم شئ مفهوما او مصداقا **وهو** دا تنوين **للتمكن** راځي د تمكن لپاره او تنوين تمكن هغې ته وائي چې دلالت كوي په امكنيت د كلمه باندې چې هغه كون د اسم دی غير مشابه د فعل سره په وجود د فرعيتين كې نو په دې اسم كې اعرابات ثلاثه راځي سره د تنوين نه لكه تنوين د زيد شو **والتنكير** او تنوين راځي د تنكير لپاره او تنوين تنكير هغې ته وائي چې فارق وي بين المعرفة والنكرة په دې شان سره كه دا تنوين په دې اسم كې ووېن شي نو نكره كيږي او كه لرې يې كړي نو معرفه كيږي او تنوين تنكير دېته نه وائي چې دا تنوين په نكره كې راغلی وي لهذا تنوين د رجل تنوين تمكن دی نه تنوين تنكير څكه رجل كې كه تنوين وي او كه نه وي خو نكره ده مثال د تنوين تنكير لكه تنوين د صه او مه شو چې دا سره د تنوين نه نكره ده معنی يې دا ده چې اسكت سكوتا ما في وقت ما انكفف انكفافا ما في وقت ما او چې تنوين ترې نه لرې شي نو بيا معرفه ده او معنی يې دا ده اسكت سكوت الان انكفف انكفاف الان **والعوض** او بل تنوين راځي عوض د مضاف اليه نه او تنوين عوض د مضاف اليه نه په اووه اسماؤ كې راځي غالبا كل، بعض، ساعة، حين، عام، سنة، يوم مثال د كل كقول الشاعر

وكل يدعی وصلا بليلی وليلی لا تقر لهم بذاك

او مثال د بعض كقوله تعالی ا وجعلنا بعضهم فوق بعض ای ببعضهم ا ساعة اذ، حينئذ عامة اذ سنة اذ يومئذ چې اصل كې يوم اذا كان كذا وو يوم مضاف وو اذ نه او اذ مضاف وو جملې ته نو جمله حذف شوه تخفيفا بيا د هغې په عوض كې تنوين راځي په اذ كې نو حينئذ ساعة او عامة اذ سنة اذ يعني شو **والمقابلة** او كله راځي د مقابلې لپاره او تنوين مقابله هغه تنوين ته وائي چې راځي په اخير د جمع مؤنث

سالم کې مقابل د نون د جمع مذکر سالم مثال لکه تنوین د مسلمات شو دا راغلی دی مقابل د نون د جمع مذکر سالم ځکه الف او تا په دې کې علامه د جمع مؤنث سالم ده لکه واو چې علامه د جمع مذکر سالم ده خو جمع مذکر کې نون راغلی وو او د هغې عوض کې دلته تنوین راغی او دا تنوین د مسلمات تنوین تمکن نه دی ځکه که دا تنوین تمکن وی نو دا به زائله کېدو د وجې د وجود د علت نه چې هغه علم او تانیث دی کما في قوله تعالی فَإِذَآ أَفَضۡتُم مِّنۡ عَرَفَٰتٖ **والترنم** او پنځم تنوین راځي د ترنم لپاره او دا هغې ته وائي چې متصل کیږي په اخیر د ابیاتو او مصاریعو پورې لپاره د خوش اوازۍ او دا تنوین ترنم کله متصل کیږي په قافیه مطلقه پورې او کله متصل کیږي په قافیه مقیده پورې قافیه مطلقه هغې ته وائي چې حرکت د اشباع د حرکت د حرف اخیر د وجې نه د دې په اخیر کې الف واو او یاء راغلی وي او دغه واو الف او یاء ته د دوی په اصطلاح کې حروف الاطلاق وائي لاطلاق الصوت بامتدادها او دا تنوین ترنم چې متصل شي په دې قافیه مطلقه پورې نو دا حرف الاطلاق بدلیږي په تنوین سره او قافیه مقیده هغې ته وائي چې حروف روی د دهٔ ساکن وي او دې ته مقیده ځکه وائي چې حرف روی ه دې ساکن وي تقیید دصوت راځي او امتناع د امتداد راځي ځکه د دې په اخیر کې حرکت نشته چې د هغې د اشباع د وجې نه حروف الاطلاق راشي چې د هغې سره امتداد د صوت راتلو مثال د تنوین ترنم چې متصل شوی وي په قافیه مطلقه پورې کقول الشاعر

اقلی اللوم عاذل والعتابن وقولی ان اصبت لقد اصابن

عتابن او اصابن اصل کې العتاب او اصاب وو د فتحې اشباعي د وجې نه اخیر کې الف راغی نو عتابا او اصابا شو بیا هغه الف الاطلاق بدل کړی شو په تنوین ترنم سره نو عتابن او اصابن شو، مثال د تنوین ترنم چې راغلی وي قافیه مقیده کې کقول الشاعر

وقاتم الاعماق خاوي المخترق مشبه الاعلام لماع الخفقن

**ترجمه:** ډیر کرته یو بیابان چې تیاره وو نواحي او اطراف د دې بیابان په لیدلو کې او خالي ده لاړ د هغه د ونو نه او مشتبه دي نښې د دې لارې او پرقا کوونکی دی شګو ګل د میدان، حرف روی د قافیه په دې بیت کې قاف ساکنه دی نو ممکن نه دی مد د صوت په دې قافیه ساکنه سره خو حرکت ورکړی شو دې قاف ساکنه لره په فتحې او کسرې سره او بیا دا نون داخل کړی شو لپاره د خوش اوازۍ او دې تنوین ته د دوی په اصطلاح کې تنوین غالي هم وائي ځکه غالي د غلو نه دی تجاوز عن الحد ته وائي او دې بیت هم تجاوز کړی دی په لحوق د تنوین سره د حد د وزن نه د دې د وجې نه په تقطیع جوړولو کې دا تنوین لرې کولی شي د بیت نه.

شمېرل د تنوین ترنم د اقسامو د حروف معاني نه مسامحه ده ځکه تنوین ترنم موضوع نه دی د معنی لپاره بلکه دا وضع کړی شوی دی د خوش اوازۍ لپاره په شان د حروف هیجاء چې هغه وضع کړی شوی دی د غرض د ترکیب لپاره نه لپاره د معنی او دا تنوینات اربعه د خواصو د اسم نه دي د وجې د اختصاص د مدلولاتو د دوی نه په اسم پورې او اختصاص د مدلول مستلزم دی اختصاص د

ذال لره او تنوين ترنم خاصه د اسم نه ده بلکه دا راځي په اخير د اسم فعل او حرف درې واړو کې د وجې د عدم اختصاص د مدلول د دۀ نه په اسم پورې.

**ويحذف من العلم موصوفا بابن مضافا الى علم اخر الخ** او حذف کولی شي دا تنوين وجوبا د علم نه ځکه دا علمين مع الابن په منزله د شي واحد دی په حال کون د علم کې چې موصوف وي په ابن په حال کون د ابن کې چې مضاف به وي علم آخر ته نحو جاءني زيد بن عمرو د وجې د کثرت د استعمال د ابن نه بين العلمين چې يو د علمين نه موصوف وي په ابن سره او بل علم مضاف اليه وي د ابن دپاره دا تقاضا د تخفيف کوي لفظاً په حذف د تنوين سره د موصوف نه خطاً په حذف د الف د ابن سره او دغسې تنوين به لرې کوي د موصوف نه او همزه به لرې کوي په فلان بن فلان کې ځکه دا کنايه ده د علم نه او که دا ابن صفت وو د غير علم دپاره نحو جاءني الرجل ابن زيديا صفت د علم دپاره دی او مضاف دی غير علم ته، نحو زيد ابن عالم نو تنوين نه شي حذف کولی د حذف نه او الف نه شي حذف کولی د ابن نه په رسم خط کې د وجې د قلت د استعمال نه او دا ابن چې واقع شي بين العلمين او صفت نه وي د علم دپاره بلکه خبر واقع شوی وي د علم دپاره بيا دا تنوين د دې موصوف نه نشي حذف کولی او دغه همزه د ابن نه نشي حذف کولی په رسم خط کې او حکم د ابنة په شان د حکم د ابن دی في جميع ما ذکرنا په حذف د همزه کې، ځکه حذف د همزه د ابنة جائز نه دی، د دې دپاره چې لازم نه شي التباس د بنة نحو هذه هند ابنة عاصم

**زده کړه دا خبره** چې اسباب دپاره د ازالې د تنوين د اسم نه شپږ دي. (۱) تنوين حذف کولی شي د وجې د اضافت نه نحو غلام زيد. (۲) لدخول اللام نحو جاءني الغلام. (۳) د وجې د عدم الفراق نه نحو عمر. (۴) د اتصال د ضمير د وجې نه نحو ضاربک، بنا په مذهب د هغه چا چې مضاف او مضاف اليه نه واني بلکه دې ضمير ته منصوب متصل مفعول به واني نو دا حذف شوی دی د اتصال د وجې نه لکه چې نون قائم مقام د تنوين حذف کيږي د اتصال د وجې نه. (۵) تنوين حذف کولی شي د هغه علم نه چې موصوف ري په ابن سره چې مضاف وي علم اخر ته نحو وجاءني زيد بن عمرو، هذه هند ابنة عاصم، (۲) لضرورة الشعر نحو:

الحال وصف فضلة منتصب مفهم في حال کفرد اذهب

**قاعده:** (۱) د ضرورت شعري د وجې نه د منصرف نه غير منصرف جوړولی شي على سبيل القلة لکه مثال مذکور شو چې مفهم منصرف دی او په دې شعر کې تنوين حذف شوی دی د وجې د ضرورت شعري نه. (۲) د ضرورت شعري د وجې نه د غير منصرف نه منصرف جوړولی شي على سبيل الکثرة نحو صبت علي مصائب الخ. (۳) د ممدود نه مقصور جوړولی شي په طريقې د کثرت سره د وجې د ضرورت شعري نه کقول الشاعر:

حمامة جرعى حومة الجندل اسجعي فانت بمرای من سعاد ومسمع

چې اصل کې جرعاء وو. (۴) د ضرورت شعري د وجې نه د مقصور نه ممدود جوړولی شي على سبيل القلة نحو:

(۵) او دا لفظ د ابن چې واقع شي بين العلمين متناسلين په مينځ کې د کرښه کې او د ماقبل دپاره صفت وي او مابعد ته مضاف وي نو همزه د ابن لرې کولی شي لفظاً وخطاً، نحو جاءني زيد ابن عمرو، او که د علمين په مينځ کې نه وو نو بيا همزه ليکلی شي نحو جاءني زيد بن ظريف، اوکه واقع وو بين العلمين خو علمين متناسلين نه وو نو هم همزه ليکلی شي نحو عبدالله بن ابي ابن سلول، دلته د ابی او سلول په منځ کې چې کوم ابن دی ديکې همزه ليکلی شوې ده په رسم خط کې ځکه دا علمين متناسلين نه دي، بلکه ښځه او خاوند دي او که دا واقع وو په منځ د علمين متناسلين کې خو د کرښې په منځ کې نه وو بلکه علم د کرښې په اخر کې وو او ابن د کرښې اول کې وو نو بيا هم ليکلی شي نحو زيد ابن عمرو، او که بين العلمين متناسلين وو او د کرښې په منځ کې وو خو مقابل دپاره صفت نه وو نو هم ليکلی شي نحو زيد ابن عمرو شو ترجمه: زيد زوی د عمرو دی.

**سوال:** دا قاعده منقوضه شوه په عيسى ابن مريم سره دلته ابن واقع دی بين العلمين متناسلين د کرښې په منځ کې او ماقبل لره صفت او مابعد ته مضاف دی، او همزه نه ده لرې شوې په رسم خط کې؟ **جواب:** خطان لا يقاسان خط العروض و خط المصحف.

**سوال:** ته وائې چې علم موصوف وي په ابن سره او مضاف وي علم اخر ته نو د علم نه تنوين حذف کولی شي دا قاعده ستا منقوضه شوه په جارية من قيس ابن ثعلبة سره، دلته قيس معرفه بالعلم دی موصوف دی په ابن سره او ابن مضاف دی علم اخر ته چې ثعلبه دی او د دېنه تنوين نه دی حذف شوی؟

**جواب:** يجوز في الشعر ما لا يجوز في غيره، او هر چې دی دا قول د الله تعالى چې قل هو الله احد بدون تنوين نو دا شاذ دی.

بل حرف د حروف غير عامله ؤ نه نون تاکيد دی نون په استعمال د کلام د عربو کې اته قسمه دی: (۱) نون الاعراب نحو يضربان (۲) نون المثنى نحو ضاربان (۳) نون الجمع نحو ضاربون (۴) نون الضمير نحو ضربن (۵) نون الوقايه نحو جاءني زيد (۶) نون وصليه نحو عادن الاولى (۷) نون التکلم نحو نضرب (۸) نون التاکيد. نو هر کله چې نون منقسم وو اقسام ثمانيه ؤ ته نو اضافت د نون يې وکړو تاکيد ته په دې سره يې احتراز وکړو د باقي اقسامو د نون نه او نون تاکيد دوه قسمه دی (۱) **خفيفة ساكنة** يو نون تاکيد خفيفه دی چې دا ساکن راځي متحرک نه راځي ځکه دا حرف دی او مبني دی او اصل په بناء کې سکون دی **ومشددة** او دويم قسم نون مشدده دی چې هغه ته نون تاکيد ثقيله وائي **مفتوحة** او دا مفتوح راځي مبني على الحرکة وګرځولی شو دپاره د دې چې لازم نه شي التقاء د ساکنين او مبني على الفتحه يې وګرځوو د وجې د ثقل د تضعيف او د خفت د فتحې نه **مع غير الالف** په حال کون د دې نون تاکيد ثقيله کې چې دا به معي نه وي د غير د الف د تثنيې سره نحو ضاربان او غير د الف فاصله نه په منځ د نون د جمع مؤنث او نون تاکيد کې نحو اضربنان. ځکه که دا نون تاکيد ثقيله واقع شي وروستو د الف نه نو دا مبني على الکسره راځي. (۱) ځکه دا مشابه دی د نون د تثنيه سره په وقوع بعد الالف کې او نون د تثنيه مکسور راځي نو دا هم مکسور راځي (۲): لپاره دې چې لازم نه شي توالي د اربعه فتحات ځکه دا مکسور راځي

**سوال:** نون تاكيد خفيفه فرع ده د نون تاكيد ثقيله نو تا دا فرع ولې مقدم كړه په اصل؟ **جواب:** لخفتها
**سوال:** نون تاكيد ثقيله او خفيفه په تاكيد د فعل كې مساوي دي او كه نه؟
**جواب:** دا دواړه مساوي دي په تاكيد د طلب د فعل كې عند الجمهور صرف خليل ويلې دي چې تاكيد په نون ثقيله كې زيات دى دخفيفه نه ځكه زيادت د حروفو دلالت كوي په زيادت د معنى دليل د هغه لپاره دا قول د الله دى لَيُسْجَنَنَّ وَلَيَكُونًا مِّنَ الصَّٰغِرِينَ ځكه امراة العزيز اشده حارثه وه په قيد كولو د يوسف عليه السلام د ذليل كولو نه د دې وجې نه د لَيُسْجَنَنَّ سره يې نون تاكيد ثقيله او د وَلَيَكُونًا مِّنَ الصَّٰغِرِينَ سره يې نون خفيفه ذكر كړو

**(ما به الاشتراک په مابين د نون تاكيد ثقيله او خفيفه كې)**

(۱): نون تاكيد ثقيله په اخر د مضارع او امر پورې متصل كيږي وهكذا نون تاكيد خفيفه
(۲): نون تاكيد ثقيله دلالت كوي په تاكيد د طلب د فعل باندې او خفيفه هم كوي
(۳): د اتصال د نون ثقيله د وجې نه نون اعرابي غورځيږي او د اتصال د نون تاكيد خفيفه نه هم غورځيږي
(۴): واو ضميري او يا ضميري حذف كيږي لاجل اتصالهما ان كان ما قبل الواو مضموما وما قبل الياء مكسورا (۵): دواړه مضارع خاص كوي په استقبال پورې (۶): دواړه چې متصل شي په مضارع پورې نو مضارع مبني كيږي

**(ما به الامتياز بينهما)**

(۱): نون تاكيد ثقيله مشدد دى او خفيفه ساكن دى
(۲): نون تاكيد ثقيله په څوارلس صيغو كې راځي او خفيفه په اته ځايونو كې راځي
(۳): په ثقيله كې تاكيد زيات دى او خفيفه كې كم دى (عند الخليل)

او نون التاكيد خاصه د فعل ده متصل كيږي په اخير د فعل پورې نه په اسم او حرف پورې په شان د تاء التانيث الساكنه ليكن نون التاكيد په هر فعل پورې نه متصل كيږي **تختص بالفعل المستقبل** مختص دى هر واحد د نون تاكيد ثقيله او خفيفه نه په فعل پورې داسې فعل چې مستقبل دى دلالت كوي په وجود د معنى مصدري در زمانه استقبال او داسې فعل مستقبل چې كائن دى په ضمن د امر كې نو اضربن **والنهي** يا په ضمن د نهي كې نحو لاتضربن **والاستفهام** او په ضمن د استفهام كې نحو هل تضربن **والتمني** او په ضمن د تمني كې نحو ليت تضربن **والعرض** او په ضمن د عرض كې نحو الا تنزلن بنا فتصيب خيرا **والقسم** او په ضمن د قسم كې نحو والله لافعلن. او نون تاكيد ثقيله نه متصل كيږي په فعل ماضي پورې او نه متصل كيږي په فعل مضارع بمعنى الحال پورې او نه متصل كيږي په هغه فعل مستقبل پورې چې خالي وي د معنى د طلب نه ځكه نون التاكيد وضع شوى دى لپاره د تاكيد د طلب د فعل او په دې كې طلب نشته

فعل ځلور قسمه دی: ماضي، امر حاضر معلوم، حال، استقبال نو نون تاکید ثقیله نه متصل کیږي په ماضي پورې مطلقا او متصل کیږي امر حاضر پورې مطلق او نه متصل کیږي په مضارع حالي پورې او متصل کیږي په مستقبل پورې په دې شرط سره چې په ضمن د امر نهي استفهام تمني عرض او قسم کې راغلی وي

**سوال:** ته وائې چې نون تاکید ثقیله په فعل ماضي پورې نه متصل کیږي دا خبره ستا منقوضه شوه په دې قول د نبي علیه السلام باندې (اما ادرکن احدکم الرجال) چې دا ادرکن ماضي ده او نون تاکید وربورې متصل شوی دی؟ **جواب:** دلته ماضي په معنی د مضارع سره ده ای (اما یدرکن احدکم) او حرف شرط چې داخل شي په فعل مضارع باندې او د هغې تاکید شوی وي په ما زائده سره نو تاکید د مضارع په نون تاکید ثقیله سره ضروري دی ځکه دلته تاکید شوی دی په نون تاکید ثقیله سره **وقلت** او قلیل دی نون تاکید ثقیله او خفیفه **في النفي** په نفي کې فلا یقال زید ما یقومن ـ الا قلیلا ـ نفس جائز ځکه دی چې دا مشابه ده د نهي سره او قلیل ځکه دی چې معنی د طلب پکې نشته مثال د نون تاکید چې راغلی وي په نفي کې نحو قوله تعالی وَاتَّقُوا فِتْنَةً لَا تُصِيبَنَّ الَّذِينَ ظَلَمُوا مِنكُمْ خَاصَّةً وقول الشاعر:

يحسبه الجاهل ما لم يعلما شيخ على كرسيه معمما

ما لم یعلما اصل کې ما لم یعلمن وو دا نون تاکید خفیفه د وقف د وجې نه الف سره بدل شوی دی ما لم یعلما ترینه جوړ شوی دی **والزمت** او لازم دی دا نون تاکید **في مثبت القسم** په فعل مضارع مثبته کې چې واقع شوی وي جواب د قسم داسس اضافة د مثبت قسم ته د قبیلې د جرد قطیفه نه دی اضافت د صفت موصوف ته شوی دی اصل کې داسې وو في القسم المثبت.

**سوال:** ته وائې چې فعل مضارع مثبته چې جواب قسم واقع شي نو لابدي ده د زیات د نون تاکید نه دا خبره ستا منقوضه شوه په دې قول د الله تعالی سره وَلَئِن مُّتُّمْ أَوْ قُتِلْتُمْ لَإِلَى اللَّهِ تُحْشَرُونَ؟ **جواب:** دا حکم په هغه فعل مضارع مثبته کې دی چې هغه مفصول نه وي د لام الجواب نه او که فعل مضارع مثبته مفصول د لام جواب القسم نه واقع شي نو بیا تاکید د دې په نون تاکید سره ممتنع دی

**سوال:** دا قاعده ستا منقوضه شوه بقوله تعالی تَاللَّهِ تَفْتَؤُا تَذْكُرُ يُوسُفَ چې دلته تفتئ تذکر مضارع مثبته جواب القسم واقع شوی دی او موکد په نون تاکید سره نه دی؟

**جواب:** دلته فعل مضارع مثبته جواب د قسم نه نده واقع شوې بلکه فعل مضارع منفي جواب د قسم واقع شوې ده حرف نفي مقدر دی چې هغه لا دی فیکون التقدیر (تالله لا تفتئ تذکر یوسف) او فعل مضارع منفي چې جواب د قسم واقع شي حرف نفي عام دی چې لفظي وي او که تقدیري وي نو زیادت د نون التاکید جائز دی نه لازم. او نون تاکید ثقیله کله کله متصل کیږي په فعل مضارع مثبت پورې چې هغه نه دی واقع شوی جواب قسم کما في قول الشاعر:

ربما اوفيت في علم ترفعن بي شمالات

او دا مصنف نه دی ذکر کړی د وجې د نهایت قلت او ندرة نه **وکثرت** او کثیر دی زیادت د نون التاکید **في مثل اما تفعلن** مرا د د دې نه هر هغه ترکیب دی چې د حرف شرط نه وروستو ما زائده راشي لپاره د تاکید د حرف شرط بیا کثیر دی په فعل شرط کې زیادت د نون تاکید ثقیله لپاره د دې چې لازم نه شي انقصیت د مقصود چې هغه تاکید د فعل دی د غیر مقصود نه چې هغه تاکید د حرف دی نحو قوله تعالی ﴿فَإِمَّا تَرَيِنَّ مِنَ الْبَشَرِ أَحَدًا﴾ اما اصل کې ان وو بیا ما زائده کړی شو وروستو د ان حرف شرط نه لپاره د تاکید د ان حرف شرط نو ان ما ترینه جوړ شو بیا قاعده د یرملون پکې موجوده شوه نو نون بدل شو په میم او میم په میم کې مدغم شو نو اما جوړ شو [ ترین ] اصل کې ترایین وو همزه متحرکه ما قبل حرف صحیح ساکن وو حرکة د همزې نقل شو ما قبل ته او همزه حذف شوه لزوما خلاف القیاس لحصول التخفیف د وجې د کثرت د استعمال نه نو ترایین نه تریین پاتې شو بیا یا متحرك ماقبل مفتوح وو یا بدله شوه الف سره بیا التقاء د ساکنین راغله بین الالف والیاء علی غیر حده اول مده وو حذف شو نو ترین پاتې شو بر وزن تفین بحذف العین واللام او د دخول د ان حرف شرط د وجې نه نون اعرابي وغورځېدو نو اما تری پاتې شو بیا نون تاکید ثقیله متصل شو په اخیر د تری پورې التقاء د ساکنین راغله بین الیاء والنون علی غیر حده او اول مده نه وو نو د التقاء د ساکنین د وجې نه یا لره حرکت د کسرې ورکړی شو از برای مناسبت یاء نو اما ترین جوړ شو **و ماقبلها مع ضمیر المذکرین مضموم: وما** او هغه حرف **قبلها** چې واقع شوی دی دا حرف مخکې د نون تاکید نه دا نون تاکید عام دی که خفیفه وي او که ثقیله وي **مع ضمیر المذکرین** په حال کون د دې حرف کې چې دا ملګری شوی دی د ضمیر د جمع مذکر غائبین او مخاطبین سره چې **هغه واو دی مضموم** مضموم به وي لپاره د دې چې دلالت وکړي په واو محذوفه باندې او دا واو حذف شوی دی د وجې د التقاء د ساکنین علی غیر حده نه بنا په مذهب د هغه چا باندې چې هغه التقاء الساکنین علی حده دپاره وحدت د کلمه شرط وائي یا دا واو حذف شوی دی د وجې د ثقل د واو نه بعد الضمة وقبل النون المشددة بنا په مذهب د هغه چا باندې چې التقاء د ساکنین علی حده لپاره وحدت د کلمه شرط نه وائي مثال د جمع مذکر غائبین نحو لیضربن او مثال د جمع مذکر مخاطبین لتضربن چې اصل کې لیضربون لتضربون وو کله چې نون تاکید ثقیله متصل شو په اخیر د دې پورې نو نون اعراب از بین رفت بیا التقاء د ساکنین راغله علی غیر حده بیا په مذهب د هغه چا چې وحدت شرط وائي یا حذف شو لثقل الواو نو لیضربن شو

**ومع المخاطبة** او سره د ضمیر واحد مؤنث مخاطب نه چې هغه یاء ده **مکسور** مکسور راځي د دې لپاره چې دلالت وکړي په یاء محذوفه باندې هغه یاء چې حذف شوې ده د وجې د التقاء د ساکنین علی غیر حده نه بنا په مذهب د هغه چا چې وحدت د کلمه شرط وائي او لثقل الیاء بعد الکسرة وقبل النون المشدده بنا په مذهب د هغه چا چې وحدت د کلمه شرط نه وائي مثال د دې لکه لتضربن شو اصل کې

لتضربين وو چې نون تاكيد راغی نو نون اعرابي لاړو بيا د التقاء د ساكنين د وجې نه يا حذف شوه د وجې د ثقل نه او كسره د ماقبل پاتې شوه د دې لپاره چې دلالت وكړي په حذف د ياء باندې

**سوال:** ته وائې چې لتضربُن او لتضربِن كې واو او ياء حذف شوي دي د وجې د التقاء د ساكنين على غير حده نه نو التقاء د ساكنين على حده څه ته وائي او على غير حده څه ته وائي؟

**جواب:** التقاء د ساكنين دوه قسمه دی: على حده. على غير حده.

(١): على حده دې ته وائي چې اول لين او ثاني ساكن مدغم وي په دې كې دوه مذهبه دي: بعض وحدت د كلمه شرط وائي. او بعض وحدت د كلمه شرط نه وائي او حكم د دې دا دی چې دا په كلمه واحده كې جائز دی نه په كلمتين كې او التقاء د ساكنين على حده ته على حدة ځكه وائي چې د اندازې د تلفظ نه ندی بهر بلكه په اندازه د تلفظ كې دننه دی

(٢): او التقاء د ساكنين على غير حده دې ته وائي چې اول لين او ثاني ساكن مدغم نه وي د دې صورتونه درې دي: (١): چې اول لين دی او ثاني ساكن مدغم نه دی نحو اضربُن اضربِن (٢): ثاني ساكن مدغم دی او اول لين نه دی نحو اضربَن (٣): اول لين نه دی او ثاني ساكن مدغم نه دی نحو اضربَن او حكم د دې دا دې چې دا نه دی جائز بلكه التقاء د ساكنين على غير حده چې راشي نو دا حرف اول به خالي نه وي يا به مده وي يا به لين وي او يا به غير وي د دې دواړو نه كه مده وو نو اول به حذف كيږي كه اول لين وو يعنې حرف علة ساكنه وو او ماقبل حركت موافق نه وو نو بيا واو لره ضمه او ياء لره كسره وركولی شي او كه اول غير وو نو بيا ورله حركة وركولی شي كسره لان الساكن اذا حرك حرك بالكسره او د دې نه عدول كولی شي ضمې او فتحې ته د وجې د مقتضی نه مثال لكه مُد صيغه د واحد مذكر امر حاضر معلوم كې نحو مُدِ، مُدُ، مُدَ. كسره وركولی شي لما مر ضمه وركولی شي د تابعدارۍ دفاء كلمې لپاره او فتحه وركولی شي لپاره د خفت

**وفيما** او په هغه ځايونو كې **عدا ذلك** چې سوا د دې مذكورو نه دي يعنې سوا د جمع مذكر مخاطبين جمع مذكر غائبين او د جمع مؤنث مخاطب نه بيا عام دی چې واحد مذكر غائب وي او كه مخاطب وي او كه واحده مؤنثه غائبه وي كه واحد متكلم وي او كه متكلم مع الغير وي **مفتوح** مفتوح به وي د وجې د خفت د فتحې نه نحو ليضربن لتضربن لاضربن لنضربن

**سوال:** دا خبره ستا منقوضه شوه په تثنيه او جمع مؤنث سره ځكه دا هم عدا ذلك دی او مخكې د نون نه مفتوح نه دی بلكه الف دی؟ **جواب: وتقول في التثنية وجمع المؤنث** يعنې دا تثنيه او جمع مؤنث مستثنی دي د ماعدا ذلك نه په دې شان سره چې ماعدا ذلك كې مخكې حرف د نون تاكيد نه مفتوح راځي ما سوا د تثنيه او جمع مؤنث نه چې دوی كې مكسور راځي نه مفتوح مثال د تثنيه لكه اضربانّ نو دلته مخكې د نون نه الف راغلی دی او دا يې نه دی حذف كړی د وجې د التقاء د ساكنين نه ځكه التقاء د ساكنين على حده ده بنا په مذهب د هغه ځا باندې چې هغوی وحدت د كلمه شرط نه وائي او دا التقاء د ساكنين على حده جائز دی او دا التقاء د ساكنين على غير حده دی بنا په مذهب د دغه

چا چې وحدت د کلمه شرط وائي دا جائز نه ده بلکه که اول مده وو نو دا به حذف کيږي او دلته يې نه دی حذف کړی لپاره د دې چې التباس رانه شي د مثنی د واحد سره مثال د جمع مؤنث لکه اضربنان شو په زيادت د الف سره وروستو د نون د جمع مؤنث او مخکې د نون التاکيد نه د دې لپاره چې لازم نه شي اجتماع د ثلاث نونات زائده څکه دا مستکره ده په کلام د عرب کې او د التقاء د ساکنين د وجې نه الف نه دی حذف شوی څکه دا علی حده ده د هغه چا په مذهب چې وحدت د کلمه شرط نه وائي نو دا جائز ده او علی غير حده ده که مذهب د هغه چا چې وحدت د کلمې شرط وائي او دا نه ده جائز، بلکه که اول مده وو نو حذف کيږي به او دلته نه دی حذف کړی د دې لپاره چې لازم نه شي اجتماع د ثلاث نونات متواليات څکه دا نه دي جائز

**سوال:** د اقاعده ستا منقوضه شوه ليکونن سره او ليمنن چې دی اول کې اجتماع د ثلاث نونات متواليات راغلی ده او ثاني کې اجتماع د اربعه نونات متواليات راغلي ده؟

**جواب:** مونږ وايو چې اجتماع د ثلاث نونات زائدات متواليات نه ده جائز او **دلته اجتماع د ثلاث** نونات زائده نه ده راغلي بلکه يو نون اصلي دی او دوه زائد دي په اول کې او **په ثاني کې اول دوه** نونين اصلي دي بجای عين ولام او دوه زائد دي

**ولا تدخلهما** او نه داخليږي په تثنيه او جمع مؤنث باندې **الخفيفة** نون تاکيد خفيفه. **الخفيفة صفت** دی تقاضا د موصوف کوي او موصوف يې محذوف دی چې النون دی په قرينې **د مقام سره.**

**سوال:** نون تاکيد خفيفه په تثنيه او جمع مؤنث کې ولې نه راځي؟

**جواب:** د دې لپاره چې لازم نه شي التقاء د ساکنين علی غير حده بالاتفاق د وجې د عدم کون د ثاني نه ساکن مدغم او التقاء د ساکنين علی غير حده نه ده جائز **خلافا ليونس** خلاف کړی **دی جمهورو** بصريانو نه، دا د کوفيانو ملګري شوي دي چې هغوی اتصال د نون تاکيد **خفيفه جائز وائي بدليل** قوله تعالی [ولاتتبعان] علی قراة عامر، والمراد منه موسی وهارون. جواب د طرفه د بصريانو نه دا دی چې عامر په دې قراة کې متفرد دی. قراة د ابن ذکوان کې ولاتتبعان راغلی دی دا واو حاليه دی او لا نفی دی او دا نون اعرابي دی حال واقع شوی دی د ضمير د فاستقيما نه ای فاستقيما غير متبعين په قراة د جمهور ابن ذکوران باندې دا واو حاليه دی نه عاطفه څکه بيا لازميږي عطف د خبر علی الانشاء او دا جائز نه دی (فافهم).

مخالف کړی دی جمهورو په خلاف کولو سره داسې خلاف چې هغه ثابت دی يونس بن حبيب لره څکه دی وائي چې نون تاکيد خفيفه په تثنيه او جمع مؤنثه کې راځي او التقاء د ساکنين علی غير حده په دې کې مغتفر ده څکه دا يونس دا قياس کوي په وقف باندې نحو اِيَّاكَ نَعْبُدُ وَاِيَّاكَ نَسْتَعِيْنُ او التقاء د ساکنين علی غير حده په وقف کې مغتفر ده نو په دې کې هم مغتفر ده.

جواب د طرفه د جمهورو نه دا دی چې التقاء د ساکنین علی غیر حده یې په وقف کې جائز ګرځولی ده اضطرارا او کوم شی چې جائز وي د وجې د ضرورة نه هغه مختص وي په مورد د سمع پورې ولا یقاس علیه غیره لهذا د دې قیاس په هغه باندې قیاس مع الفارق دی.

**وهما في غيرهما مع الضمير البارز كالمنفصل:(ربط):** هر کله چې فارغ شو مصنف د بیان د مواضع د نون تاکید ثقیله او خفیفه نه نو شروع یې وکړه په بیان د افعال متصلة الاواخر کې په وقت د الحاق د نون تاکید کې په اخیر د دې افعال پورې.

**(ترکیب) هما** مبتدا **كالمنفصل** جار مجرور خبر د مبتدا **في غيرهما** جار مجرور په اعتبار د متعلق محذوف سره حال دی د ضمیر مستتر د کالمنفصل نه چې راجع دی هما ته او **مع الضمير البارز** ظرف په اعتبار د متعلق سره حال واقع شوی دی د غیرهما نه.

**(ترجمه) هما** دا نون تاکید ثقیله او خفیفه په لحوق د دې کې په اخیر د فعل پورې کالمنفصل په شان د لفظ د منفصل دی په حال کون د ده کې چې په غیر د تثنیه او جمع نه یې واخلې او په حال کون د دې غیر کې چې دا معی وي د ضمیر بارز مرفوع سره دا دوه صیغې دي اول جمع مذکر دویم واحد مؤنث په دې شان سره که د واو او یا نه مخکې حرکت موافق وو په اتصال د لفظ منفصل سره واو او یا حذف کیږي مخکې مضموم او مکسور پاتې کیږي نحو.....

دارنګې نون تاکید چې متصل شي نو هم واو او یا حذف کیږي او مخکې مضموم او مکسور پاتې کیږي لکه اغزنّ یا قوم اغزن یا قوم اغزن، یا هند که چرې مخکې حرکت موافق نه وو نو په اتصال د لفظ منفصل سره په واو ضمه او په یاء باندې کسره به وایې نحو اخشوُ القوم اخشيِ القوم درانګې په اتصال د نون تاکید سره په واو کې په ضمه او یاء کې به کسره وائې نحو اخشونّ یا قوم اخشینّ یا امرة.

**فان لم يكن** که چرې نه وو ضمیر بارز بلکه مستتر وو دا صرف په واحد مذکر کې راځي **فكالمتصل** پس دا نون تاکید په شان د لفظ متصل دی چې هغه الف د تثنیه دی مثال لکه اخش او ارم کې الف ضمیر متصل شي نو محذوف واپس کیږي نحو اخشینّ ارمینّ او في غیر هما یې وویل ځکه په تثنیه او جمع مؤنث کې صحیح او معتل یو شان راځي بیان کولو ته یې ضرورت نشته **ومن ثم** او د دې وجې نه چې دا نون تاکید سره د ضمیر مستتر نه کالمتصل دی او سره د ضمیر بارز نه کالمنفصل دی **قيل** ویلی شوي دي **هل ترين** په هل ترى کې په اعادې د حرف محذوف سره د وجې د اتصال د نون تاکید ثقیله نه لکه چې ویلی کیږي تریا په اعادې د محذوف سره د وجې د اتصال د الف تثنیه نه دا مثال دی د ضمیر مستتر لپاره چې لام کلمه د ده متحرکه شوې ده په فتحې سره، سره د الف د تثنیه لپاره د دې چې التباس را نه شي د صیغې د تثنیه د صیغې د واحد سره **وترون** او دغسې ویل کیږي هل ترون په هل ترون کې په اسقاط د نون د جمع سره د وجې د اتصال د نون تاکید ثقیله نه په ضمې د واو سره د وجې د التقاء د ساکنین نه د نون تاکید ثقیله سره او د دې واو نه مخکې حرکت موافق نه دی ځکه ضمه ورکولی شي دغه واو لره په وقت د اتصال د لفظ منفصل کې

د وجي د التقاء د ساكنين نه نحو لم تروا القوم دا مثال دی د ضمير بارز چي دي ضمير لره ضمه ورکړی شوي ده د وجي د نون نه و ترين او دارنګي ويل کيږي هل ترين په هل ترين کي دا مثال دی د ياء ضمير بارز چي کسره ورکړی شوي ده يا لره د وجي د اتصال د نون تاکيد ثقيله نه د وجي د التقاء د ساکنين نه لکه چي دي يا لره کسره ورکولی شي په اتصال د لفظ منفصل سره نحو لم تری الناس واغزون دا عطف دی په هل ترين نه په ترين يواځي او ماقبل د معطوف عليه معاد وي د معطوف سره نو کيږي تقدير د عبارت دارنګي ومن ثم قيل اغزون په اعادي د واو سره د وجي د اتصال د نون التاکيد نه لکه واو معاد کولی شي د وجي د الف ضمير نه نحو اغزوا
واغزن ويل کيږي په اغزوا کي په حذف د واو سره د وجي د التقاء د ساکنين نه او دا ماقبل مضموم دی دلالت کوي په حذفيت د واو باندي لکه چي دا واو حذف کولی شي د وجي د التقاء د ساکنين نه په وقت د اتصال د لفظ منفصل کي نحو اغزوا القوم واغزن او اغزن ويلی کيږي په اغزی کي په حذف د ياء سره د وجي د التقاء د ساکنين نه د نون تاکيد او د يا نه مخکي حرف مکسور دی دا دلالت کوي په حذف د يا باندي لکه چي دا ياء حذف کيږي د التقاء د ساکنين د وجي نه په وقت د اتصال د لفظ منفصل کي نحو اغز القوم والمخففة او نون تاکيد خفيفه تحذف حذف کولی شي للساکن په وقت د اتصال د حرف ساکن کي د نون تاکيد خفيفه سره د وجي د التقاء د ساکنين نه مثال لکه دا قول د شاعر شو

**لا تهين الفقير علك ان ترفع يوما والدهر قد رفعه**

دا اصل کي لاتهينن وو په دوه نونو سره يو نون لام کلمه وه او بل نون تاکيد خفيفه وو بيا نون تاکيد خفيفه حذف کړی شو د وجي د التقاء د ساکنين نه د لام ساکنه د الفقير سره چي د ده نه وروستو راغلی دی او دا فتحه د ماقبل د نون تاکيد خفيفه پاتي شوه چي دا دلالت کوي په حذفيت د نون تاکيد خفيفه باندي نو لاتهينن الفقير پاتي شو او د التقاء د ساکنين د وجي نه حرکت ورنه کړی شو نون تاکيد خفيفه لره د دي لپاره چي فرق راشي د نون تاکيد خفيفه او د تنوين په مينځ کي ځکه تنوين لره د التقاء د ساکنين د وجي نه حرکت ورکولی شي نحو عاد ن الاولی په خلاف د نون تاکيد خفيفه نه چي دا حذف کولی شي

**سوال:** فرق خو په عکس سره هم راتلو نو عکس يې ولي ونه کړو؟ **جواب:** عکس يې ونه کړو لپاره د انحطاط د مرتبه د فرع چي نون تاکيد خفيفه دی د اصل نه چي تنوين دی

**سوال:** دا تنوين اصل او نون تاکيد خفيفه فرع ولي ده؟ **جواب:** ځکه تنوين راځي په اسم کي او نون تاکيد خفيفه راځي په فعل کي او اسم اصل دی او فعل فرع ده نو تنوين اصل شو او نون تاکيد فرع شوه او للساکن کي دا لام، لام وقتيه دی بمعنی وقت دی او دليل په دي خبره باندي چي دا لام وقتيه دی نه احليه عطف د ظرف دی په دي للساکن باندي چي هغه في الوقف دی وفي الوقف او دغسي حذف کولی شي نون تاکيد خفيفه په حالت د وقف کي په هغه حرف باندي چي دا نون تاکيد خفيفه په هغه پوري متصل شوی دی تخفيفا په دي شرط سره چي د دي نون تاکيد خفيفه نه مخکي مضموم يا مکسور وو لکه چي تنوين حذف کولی شي په حالت د وقف کي تخفيفا کله چي د تنوين نه مخکي حرف مضموم

یا مکسور وو **قید ما حذف** نو رد کولی شي هغه حرف چې حذف شوی وو د وجې د اتصال د نون تاکید
خفیفه نه د وجې د زوال د موجب د حذف نه چې هغه التقاء د ساکنین نه فیقال اضربوا بالواو في حالة
الوقف في اضربن او غسي اضربي ویلی کیږي په اعادې د یاء سره په اضربن کې په حالت د وقف کې
په خلاف د تنوین نه چې دا حذف شي په حالت د وقف کې نو هغه محذوف نه شي معاد کولی ځکه دا
تنوین لازم دی په وصل کې د کلمې سره او نون تاکید خفیفه لازم د کلمې سره نه دی پس وګرځولی شو د
لازم لپاره خیریت په ابقاء د اثر د ده سره په هغه شئ باندې چې هغه لازم د کلمې سره نه دی.
**والمفتوح ما قبلها** او نون تاکید خفیفه داسې نون تاکید خفیفه چې مفتوح وي هغه حرف چې د نون
تاکید خفیفه نه مخکې واقع شوی دی **تقلب الفا** بدل کولی شي په الف سره په حالت د وقف کې د
وجې د مشابهت د ده نه د تنوین سره چې هغه واقع شوی دی وروستو د فتحې نه په دې شان سره چې
تنوین واقع شي د فتحې نه وروستو نو په حالت د وقف کې بدلیږي په الف سره، لکه رایت زیدا کې
رایت زیداً ویلی کیږي دغسې نون تاکید خفیفه چې واقع شي وروستو د فتحې نه نو په حالت د وقف
کې په الف سره بدلیږي په اضربن کې اضربا ویلی کیږي په حالت د وقف کې مثال د نَون تاکید
خفیفه پس د فتحې نه چې بدل شوی دی په الف سره په حالت د وقف کې کقول الشاعر:

یحسبه الجاهل ما لم یعلما
شیخ علی کرسیه معمما

چې ما لم یعلما اصل کې ما لم یعلمن وو په نون تاکید خفیفه سره چې متصل شوی دی په فعل
مضارع پورې پس د نفې نه په طریقه د قلت سره او د نون تاکید خفیفه واقع شوی دی پس د فتحې نه
او بدل شوی دی په الف سره د وقف د وجې نه نو د ما لم یعلمن نه ما لم یعلما جوړ شوی دی.

**سوال:** المفتوح صیغه د اسم مفعول ده صفت دی موصوف غواړي نو موصوف د دې کوم دی؟

**جواب:** موصوف د دې محذوف دی چې المخففة دی فیکون التقدیر والمخففة المفتوح ما قبلها.

**سوال:** مطابقت نشته بین الموصوف والصفة ځکه موصوف مؤنث او صفت مذکر دی؟

**جواب:** المفتوح صفت بحال متعلقه دی نه صفت بحاله او صفت بحال متعلقه په امور خمسه کې تابع
د ماقبل وي: تعریف ـ تنکیر ـ رفع ـ نصب ـ جر. او باقي پنځه امورو کې تابع د مابعد وي چې هغه:
افراد ـ تثنیت ـ جمعیت ـ تذکیر او تانیث دي، نو دلته المفتوح په تعریف او اعراب کې د موصوف
محذوف تابع دی او په تذکیر کې د مابعد تابع دی چې ماقبلها دی په دې شان سره چې نائب فاعل د
المفتوح لپاره مذکر راغلی دی او قاعده دا ده چې د فعل یا صفت لپاره فاعل یا نائب فاعل چې
مذکر راشي نو تذکیر د فعل او شبه فعل واجب دی بل مثال د صفت بحال متعلقه چې په تعریف او
اعراب کې تابع د ماقبل دی او تذکیر کې تابع د مابعد دی قوله تعالی رَبَّنَآ أَخْرِجْنَا مِنْ هَٰذِهِ الْقَرْيَةِ الظَّالِمِ أَهْلُهَا.

**تمت بالخیر**

